# أنوار الجلالين

## لفوايد قيودات الجلالين

پښتو ترجمه — جلد اول

# جمالين شرح جلالين


شارح: محمد جمال بلندشهرى

مدرس د دارالعلوم ديوبند

پښتو مترجم: مولانا شاه فيصل

فاضل دارالعلوم اسلاميه چارسده، امداد العلوم پيښور، وفاق المدارس


## خصوصيات

① لغوي تحقيق. چې ددې لفظ په لغت كښې څه معنى ده.

② صرفي تحقيق مثلاً دا كلمه د څه صيغه ده وغيره

③ نحوي تحقيق مثلاً دا كلمه په تركيب كښې څه واقع شوې ده.

④ بلاغي تحقيق چې په دې اضافي قيد كښې كومه بلاغي نكته ده.

⑤ فقهي تحقيق چې په دې اضافي قيد سره كومې مسئلې ته اشاره ده.

⑥ د قراءت تحقيق چې په دې مقام كښې دا قراءت څنګه دي.

⑦ تقديرات راويستل چې دلته كوم لفظ مقدر پروت دې.

⑧ د تقديري عبارا تو وجه او سبب بيانول.


خورونكى

فيصل كتب خانه مدينه ماركيټ

محله جنګى پيښور موبائل نمبر: ۰۳۱۵۹۵۹۵۸۱۷

# فهرس د سورتونو او آیاتونو

......................

# پاره نمبر - ٢٣ [وَمَالِيَ]

## [٣٨] سورة ص

## سورة ص مكية وهى ست او ثمان وثمانون آية

سورة ص مکی دې، او په دې کښې شپږ اتیا، یا اته اتیا آیاتونه دی.

[ایاتونه: ١ - ١٤]

بسم الله الرحمن الرحيم (ص) الله أعْلَم بِمُرَادِهِ بِهِ (وَالْقُرآنِ ذِي الذِّكْرِ) أيْ الْبَيَان أوْ الشَّرَف وَجَوَاب هَذَا الْقَسَم مَحْذُوف أيْ مَا الْأَمْر كَمَا قَالَ كُفَّار مَكَّة مِنْ تَعَدُّد الآلِهَة (بَلِ الَّذِينَ كَفَرُوا) مِنْ أهْل مَكَّة (فِي عِزَّةٍ) حَمِيَّة وَتَكَبُّر عَنْ الْإِيمَان (وَشِقَاقٍ) خِلَاف وَعَدَاوَة لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (كَمْ) أيْ كَثِيرًا (أَهْلَكْنَا مِنْ قَبْلِهِمْ مِنْ قَرْنٍ) أيْ أُمَّة مِنْ الْأُمَم الْمَاضِيَة (فَنَادَوْا) حِين نُزُول الْعَذَاب بِهِمْ (وَلَاتَ حِينَ مَنَاصٍ) أيْ لَيْسَ الْحِين حِين فِرَار وَالتَّاء زَائِدَة وَالْجُمْلَة حَال مِنْ فَاعِل نَادَوْا أيْ اسْتَغَاثُوا وَالْحَال أنْ لَا مَهْرَب وَلَا مَنْجَى وَمَا اعْتَبَرَ بِهِمْ كُفَّار مَكَّة (وَعَجِبُوا أَنْ جَاءَهُمْ مُنْذِرٌ مِنْهُمْ) رَسُول مِنْ أنْفُسهمْ يُنْذِرهُمْ وَيُخَوِّفهُمْ النَّار بَعْد الْبَعْث وَهُوَ النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (وَقَالَ الْكَافِرُونَ) فيه وضع الظاهر موضع المضمر (هَذَا سَاحِرٌ كَذَّابٌ) (أَجَعَلَ الْآلِهَةَ إِلَٰهًا وَاحِدًا) حَيْثُ قَالَ لَهُمْ قُولُوا لَا إلَه إلَّا اللَّه أيْ كَيْفَ يَسَع الْخَلْق كُلّهمْ إلَه وَاحِد (إِنَّ هَٰذَا لَشَيْءٌ عُجَابٌ) أيْ عَجِيب (وَانْطَلَقَ الْمَلَأُ مِنْهُمْ) مِنْ مَجْلِس اجْتِمَاعهمْ عِنْد أبِي طَالِب وَسَمَاعهمْ فِيهِ مِنْ النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُولُوا لَا إلَه إلَّا اللَّه (أَنِ امْشُوا) يَقُول بَعْضهمْ لِبَعْضٍ امْشُوا (وَاصْبِرُوا عَلَىٰ آلِهَتِكُمْ) اُثْبُتُوا عَلَى عِبَادَتهَا (إِنَّ هَٰذَا) المذكور من التوحيد (لَشَيْءٌ يُرَادُ) مِنَّا (مَا سَمِعْنَا بِهَٰذَا فِي الْمِلَّةِ الْآخِرَةِ) أيْ مِلَّة عِيسَى (إِنْ) مَا (هَٰذَا إِلَّا اخْتِلَاقٌ) كذب (أَأُنْزِلَ) بِتَحْقِيقِ الْهَمْزَتَيْنِ وَتَسْهِيل الثَّانِيَة وَإِدْخَال أَلِف بَيْنهمَا عَلَى الْوَجْهَيْنِ وَتَرْكه (عَلَيْهِ) عَلَى مُحَمَّد (الذِّكْرُ) أيْ الْقُرآن (مِنْ بَيْنِنَا) وَلَيْسَ بِأكْبَرِنَا ولا اشرفنا اي لم ينزل عليه قال تعالى (بَلْ هُمْ فِي شَكٍّ مِنْ ذِكْرِي) وَحْيِي أيْ الْقُرآن حَيْثُ كَذَّبُوا الْجَائِي بِهِ (بَلْ لَمَّا) لَمْ (يَذُوقُوا عَذَابِ) وَلَوْ ذَاقُوهُ لَصَدَّقُوا النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيمَا جَاءَ بِهِ وَلَا يَنْفَعهُمْ التَّصْدِيق حِينَئِذٍ (أَمْ عِنْدَهُمْ خَزَائِنُ رَحْمَةِ رَبِّكَ الْعَزِيزِ) الْغَالِب (الْوَهَّابِ) مِنْ النُّبُوَّة وَغَيْرهَا فَيُعْطُونَهَا مَنْ شَاءُوا (أَمْ لَهُمْ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا) إنْ زَعَمُوا ذَلِكَ (فَلْيَرْتَقُوا فِي الْأَسْبَابِ) الْمُوَصِّلَة إلَى السَّمَاء فَيَأْتُوا بِالْوَحْيِ فَيَخُصُّوا بِهِ مَنْ شَاءُوا وَأَمْ فِي الْمَوْضِعَيْنِ بِمَعْنَى هَمْزَة الْإِنْكَار (جُنْدٌ مَا) أيْ هُمْ جُنْد حَقِير (هُنَالِكَ) فِي تَكْذِيبهمْ لَك (مَهْزُومٌ) صِفَة جُنْد (مِنَ الْأَحْزَابِ) صِفَة جُنْد أيْضًا أيْ مِنْ جِنْس الْأَحْزَاب الْمُتَحَزِّبِينَ عَلَى الْأَنْبِيَاء قَبْلك وَأُولَئِكَ قَدْ قُهِرُوا وَأُهْلِكُوا فَكَذَا نُهْلِك هَؤُلَاءِ (كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ) تَأْنِيث قَوْم بِاعْتِبَارِ الْمَعْنَى (وَعَادٌ وَفِرْعَوْنُ ذُو الْأَوْتَادِ) كَانَ يَتِد لِكُلِّ مَنْ يَغْضَب عَلَيْهِ أرْبَعَة أوْتَاد يَشُدّ إلَيْهَا يَدَيْهِ وَرِجْلَيْهِ وَيُعَذِّبهُ (وَثَمُودُ وَقَوْمُ لُوطٍ وَأَصْحَابُ الْأَيْكَةِ) أيْ الْغَيْضَة وهم قوم شعيب عليه السلام

(أولئك الأحزاب) (إنْ) مَا (كُلّ) مِنَ الأَحْزَاب (إلّا كَذَّبَ الرُّسُل) لِأَنَّهُمْ إِذَا كَذَّبُوا وَاحِدًا مِنْهُمْ فَقَدْ كَذَّبُوا جَمِيعَهُمْ لِأَنَّ دَعْوَتَهُمْ وَاحِدَة وَهِيَ دَعْوَة التوحيد (فحق) وجب (عقاب)

**ترجمه**: شروع کوم د الله په نوم سره چې ډیر مهربانه او ډیر رحم کونکې دې، صٓاد، الله ددې د مراد نه ښه خبر دې، قسم دې په ذکر والا یعنی بیان والا یا شان والا قرآن باندې، جواب د قسم محذوف دې، یعنی خبره داسې نه ده څنګه چې کافران د ډیرو خدایانو منونکی دی، خو د مکې کافران په غرور او د ایمان په مقابله کښې په تکبر او دمحمد ﷺ په مخالفت اودشمنۍ کښې پراته دی، او مونږ ددوی نه مخکښې هم یعنی تیر شوی ډیر قومونه هلاک کړې دی، په هغوی باندې د عذاب د نازلیدو په وخت هغوی ډیرې چغې اووهلې خو هغه وخت د خلاصی نه وو، یعنی هغه د تیختې وخت نه وو، او په لات کښې تاء زائده ده، او جمله د نادوا د ضمیر نه حال ده، یعنی هغوی فریاد اوکړو حالانکه نه د تیختې موقع وه او نه د خلاصی، او د مکې کافرانو د هغوی نه څه عبرت حاصل نه کړو، او کافرانو ته په دې خبره باندې حیرانتیا اوشوه، چې هم په دوی کښې یو کس ددوی ویروی د پاره راغلو، یعنی ددوی نه یو رسول راغلو، کوم چې د مرګ نه پس دوی د اور نه ویرول، او هغه محمد ﷺ دې، او کافرانو اووئیل چې دا خو جادوګر دې، (او) دروغژن دې، په دې کښې د اسم ضمیر په ځاې اسم ظاهر دې، آیا دهٔ د دومره ډیرو معبودانو نه یو معبود جوړ کړو؟ واقعی دا ډیر د حیرانتیا خبره ده، دا خبره دوی هغه وخت اوکړه چې کله رسول الله ﷺ دوی ته اووئیل چې تاسو اووایئ چې د الله نه سوا بل معبود نشته، یعنی د ټول مخلوق دانتظام د پاره یو معبود څنګه کافی کیدې شی؟ ددوی سردار د ابوطالب په مجلس کښې د رسول الله ﷺ نه (قولوا لا إله إلا الله) اوریدلو سره د ابوطالب د مجلس نه اووتل او دائې اووئیل، چې بس تاسو په خپلو معبودانو باندې یعنی د هغوی په عبادت باندې کلک اوسیږئ، یقینا د دې توحیدِ مذکوره په مطالبه کښې زمونږ نه ضرور څه مطلب (غرض) دې، مونږ خو دا خبره په مخکښینۍ دین یعنی د عیسی ﷺ په دین کښې نه وه اوریدلې، دا خو د ځان نه جوړ شوې دروغ دی، آیا مونږ کښې په داسې کس باندې د الله کلام نازل شوې دې؟ یعنی هغه زمونږ نه نه لوې دې او نه شرافت والا، یعنی په ده باندې دالله کلام نازل شوې نه دې، ءَأنزل کښې د دواړو همزو تحقیق او د دویمې تسهیل، او د دواړو همزو په مینځ کښې الف داخلولو سره او نه داخلولو سره، په اصل کښې دا خلق ځما د ذکر (وحی) نه یعنی دقرآن په باره کښې شک کښې دی، څکه دوی وحی راوړونکو والا نه دروغژن ګنړی، بلکه صحیح خبره داده چې دوی تر اوسه پورې، ځما عذاب څکلې نه دې، او چې دوی کله دې عذاب لره اوڅکی، نو د نبی ﷺ ددې خبرې تصدیق بهٔ اوکړی، کومه چې هغه راوړې ده. خو هغه وخت به د تصدیق څهٔ

فائده نه وی، آیا دوی سره ستا د زبردست مهربانه رب د رحمتونو خزانې دی؟ چې په هغې کښې نبوت وغیره هم شامل دې. چې دا خلق ئې چا ته اوغواړی نو ورئې کړی او چا ته چه اوغواړی نو هغه ته ئې ورنکړی؟ آیا په زمکه او اسمان او څه چې ددې په مینځ کښې دی ددوی حکومت دې؟ او که دوی ته ددې خبرې یقین وی. نو پکار ده چې اسمان ته رسئ اوترې او اوخیژی، او وحی دې راوړی او په خاص توګه چاته چې اوغواړی نو ور دې کړی. او (ام) په دواړه ځایونو کښې د همزه انکاری په معنی کښې دې. دلته یعنی ستاد تکذیب په باره کښې شکست خوړونکی یو کمزورې لښکر دې، مهزوم د جند صفت دې، او من الاحزاب هم د جند صفت دې. یعنی دا لښکر د هغه لښکرو د جنس نه دې کوم چې ستا نه مخکښې د پیغمبرانو په مقابله کښې ولاړ وو، او هغوی مغلوب او هلاک شول. دغه شان دوی به هم هلاک کړی شی. ددې نه مخکښې هم قوم نوح د قوم تانیث د معنې په اعتبار سره دې، او عادیانو او میخونو والا فرعون هم تکذیب کړې وو، فرعون چې به چا ته غصه شو نو څلور میخونه به ئې تک وهل، او دې سره به ئې دهغه کس دواړه لاسونه او دواړه خپې ترلې. او هغه ته به ئې سزا ورکوله. او ثمود اوقوم لوط او د ایکه اوسیدونکو هم (اصحب ایکه) یعنی ځنګل والا. او هغه د شعیب ﷺ قوم وو. دا لوئې لښکرې وې، په دې لښکرو کښې یو هم داسې نه دې چا چې د رسولانو تکذیب نه وی کړې، ځکه چې کله دوی د یو رسول تکذیب اوکړو نو ګویا چې د ټولو رسولانو ئې تکذیب اوکړو. ځکه چې دټولو دعوت یو وو. او هغه دعوت دتوحید وو. نو په دوی باندې سزا ثابته شوه.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله** ص: دې ته سورة داؤد هم وئیلې شی، (خازن) په دې کښې پنځه قراءتونه دی.
(۱) د جمهورو په نیز په سکون سره، یعنی صاد. (۲) ضمه بغیر د تنوین نه، صادُ (۳) کسره بغیر د تنوین صادِ (۴) کسره مع التنوین صادٍ.
ضمه بغیر د تنوین په صورت کښې د مبتدأ محذوف خبر دې، أی هذا صاد په دې صورت کښې به ص د سورت نوم شی. او د علمیت او تانیث د وجې نه به غیر منصرف وی، چا چې مفتوح بغیر د تنوین نه وئیلې دې د هغې درې صورتونه کیدې شی.
(۱) مبنی بر فتحه. تخفیفاً لکه کیف وأین. (۲) جر تقدیری سره، د حرف قسم مقدر کیدو د وجې نه. (۳) نصب د فعل مقدر د وجې نه. یا د حرف قسم د حذف کیدو د وجې نه (جمل ملخصاً)

**قوله** والقرآن: واؤ جاره قسمیه دې. القرآن مقسم به دې، په جواب قسم کښې خوروجوه دی،
① کم اهلکنا من قبلهم جواب قسم دې، په اصل کښې لکم أهلکنا وو، لام د فصل کثیر د

وجې نه حذف کړې شو، څنګه چې په سورة شمس کښې د قَد أفلح جوابِ قسم نه لام حذف کړې شو

②جواب قسم إن کل إلا کذّب الرسل دې. ③جواب قسم محذوف دې او هغه لقد جاءکم الحق وغیره دې، او ابن عطیه وئیلې دی چې جواب قسم ما الأمر کما تزعمون محذوف دې. علامه محلی ما الأمر کما قال کفار مکة من تعدد الأله قسم محذوف ګنړلې دې، او زمخشری إنه لمعجز مقدر ګنړلې دې، او شیخ إنك لمن المرسلین مقدر ګنړلې دې، چې دا د یٰسٓ والقرآن الحکیم إنك لمن المرسلین نظیر دې، (جمل ملخصاً)

**قوله**: أي کثیرا، په دې کښې ئې اشاره اوکړه چې کم خبریه ده، کوم چې د أهلکنا مفعول دې، (من قرن) ددې تمیز دې.

**قوله**: ولات حین مناص: د لات د تاء په رسم الخط کښې اختلاف دې، بعضې حضراتو مفصولاً اوړدې "ت" په شکل کښې لیکلې دې، څنګه چې دې نسخه کښې دی، او بعضو (ت) حین سره یوځائې کولو سره لیکلې ده، أی لا تحین مناص او ددې اختلاف مدار په وقف باندې دې، بعضې حضرات په "ت" باندې وقف کوی، نو هغوی "ت" په اوږده شکل کښې لیکی، او بعضې حضرات په لا باندې عطف کوی.

**قوله**: مناص: (ن) نه مصدر میمی دې، تختیدل، پناه اخستل، اسم ظرف هم دې، ځائې دپناه، ځائې د تختیدو، ددې معنی ده لیس الحین حین فرار، تاء زائده ده او جمله دنادو د فاعل نه حال دې، مطلب دادې چې د پیغمبرانو مکذبینو ډیرې چغې اووهلې خو هغوی ته د تیختې ځایې حاصل نه شو، او نه ورته د خلاصیدو ځائې، خو د مکې کافرانو ددې حالت نه هم عبرت حاصل نکړو،

**قوله**: أي لیس الحین: په دې عبارت سره علامه محلی په لات کښې د سیبویه او د خلیل مذهبِ مختار ته اشاره کړې ده، هغه دا چې په لات کښې لا په معنی د لیس دې، او ددې اسم او خبر محذوف دی، او هغه اسم او خبر لفظ د حین دې، تقدیری عبارت داسې دې، لیس الحین حین مناص، اولنې حین اسم دې، اودویم خبر، او په لات کښې "ت" د تاکید د نفی د پاره زیاته کړې شوې ده.

**قوله**: فیه وضع الظاهر موضع المضمر: د قباحت د زیاتوالی د پاره د اسم ضمیر په ځائې اسم ظاهر استعمال شوې دې یعنی د قالوا په ځائې ئې قال الکافرون وئیلې دی.

**قوله**: عجاب: لوې عجیبه څیز، د مبالغې صیغه، داسې عجیبه څیز چې هغه د یقین کولو قابل نه وی.

قوله: أن امشوا: په دې کښې أن تفسيريه دې، څنګه چې مفسر علام اشاره کړې ده.
قوله: إن هذا الشيء يراد: دا د اصبروا على آلهتكم علت دې.
قوله: بل هم في شك: دا د مقدر نه اعراض دې، تقديري عبارت داسې دې، إنكارهم للذكر ليس عن علم بل هم في شك منه.
قوله: بل لما يذوقوا عذاب: أي عذابي، د شک سبب بيانولو د پاره اضراب انتقالي دې، يعنې ددوی د شک سبب دادې چې دې خلقو اوسه پورې څما د عذاب مزه څکلې نه ده، لو ذاقوا لصدقوا النبي ﷺ
قوله: لما: په لم سره ئې اشاره اوکړه، چې لما په معنی د لم دې.
قوله: فليرتقوا في الأسباب: فاء د شرط مقدر په جواب کښې واقع ده، څنګه چې مفسر علام تقديري عبارت راوخکلو سره اشاره کړې ده، أي ان زعموا ذلك فليرتقوا في الأسباب.
قوله: أي هم جند: په دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چې جند د مبتدأ محذوف خبر دې، او تنوين د تقليل او د تحقير د پاره دې، او ما د قلت د تاکيد د پاره ده.
قوله: هنالك: دجند يا د مهزوم ظرف دې او مهزوم په معنی د مغلوب او مقهور دې، مطلب دادې چې قريش د رسولانو خلاف جماعت جوړونکې يو معمولي او لږ جماعت دې، چې ډير زر به شکست اوخوري،
قوله: صفة جند: أيضا: دلته د جند درې صفات بيان کړې شوی دی، اولنې صفت ما، دويم صفت مهزوم، دريم من الأحزاب
قوله: اولئك الأحزاب: دا د طوائف مذکوره نه بدل دې.
قوله: لأنهم: الخ، دا د يو سوال مقدر جواب دې، سوال دادې چې إن كل الا كذب الرسل ولې اووئيلې شو، باوجود ددې چې هر يو قوم صرف د يو رسول تکذيب کړې دې؟
جواب دادې چې چونکه د ټولو پيغمبرانو او رسلانو اصول د دين او د دعوت هم يو وو لهذا د يو رسول تکذيب د ټولو رسولانو تکذيب شميرلې شي.

[اياتوله: ١٥ - ٣٦]

﴿وَمَا يَنظُرُ﴾ ينتظر ﴿هَٰؤُلَاءِ﴾ اي كفار مكة ﴿إِلَّا صَيْحَةً وَاحِدَةً﴾ هي نفخة القيامة تحل بهم العذاب ﴿مَّا لَهَا مِن فَوَاقٍ﴾ بفتح الفاء وضمها رجوع ﴿وَقَالُوا﴾ لما نزل ﴿فَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ بِيَمِينِهِ﴾ الخ ﴿رَبَّنَا عَجِّل لَّنَا قِطَّنَا﴾ اي كتاب اعمالنا ﴿قَبْلَ يَوْمِ الْحِسَابِ﴾ قالوا ذلك استهزاء قال تعالى ﴿اصْبِرْ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ وَاذْكُرْ عَبْدَنَا دَاوُودَ ذَا الْأَيْدِ﴾ اي القوة في العبادة كان يصوم يوما ويفطر يوما ويقوم نصف الليل وينام ثلثه ويقوم سدسه ﴿إِنَّهُ

أَوَّاب، رَجَّاعٌ إِلَى مَرْضَاةِ اللّٰهِ ﴿إِنَّا سَخَّرْنَا الْجِبَالَ مَعَهُ يُسَبِّحْنَ﴾ بِتَسْبِيحِهِ ﴿بِالْعَشِيِّ﴾ وَقْتَ صَلَاةِ الْعِشَاءِ ﴿وَالْإِشْرَاقِ﴾ وَقْتَ صَلَاةِ الضُّحٰى وَهُوَ أَنْ تُشْرِقَ الشَّمْسُ وَيَتَنَاهٰى ضَوْءُهَا ﴿وَ﴾ سخرنا ﴿الطَّيْرَ مَحْشُورَةً﴾ مَجْمُوعَةً إِلَيْهِ تُسَبِّحُ مَعَهُ ﴿كُلٌّ﴾ مِنَ الْجِبَالِ وَالطَّيْرِ ﴿لَهُ أَوَّابٌ﴾ رَجَّاعٌ إِلَى طَاعَتِهِ بِالتَّسْبِيحِ ﴿وَشَدَدْنَا مُلْكَهُ﴾ قَوَّيْنَاهُ بِالْحَرَسِ وَالْجُنُودِ وَكَانَ يَحْرُسُ مِحْرَابَهُ فِي كُلِّ لَيْلَةٍ ثَلَاثُوْنَ أَلْفَ رَجُلٍ ﴿وَآتَيْنَاهُ الْحِكْمَةَ﴾ النُّبُوَّةَ وَالْإِصَابَةَ فِي الْأُمُورِ ﴿وَفَصْلَ الْخِطَابِ﴾ البيان الشافي في كل قصد ﴿وَهَلْ﴾ مَعْنَى الْاِسْتِفْهَامِ هُنَا التَّعْجِيبُ وَالتَّشْوِيقُ إِلَى اسْتِمَاعِ مَا بَعْدَهُ ﴿أَتَاكَ﴾ يَا مُحَمَّدُ ﴿نَبَأُ الْخَصْمِ إِذْ تَسَوَّرُوا الْمِحْرَابَ﴾ مِحْرَابَ دَاوٗدَ أَيْ مَسْجِدَهُ حَيْثُ مُنِعُوا الدُّخُولَ عَلَيْهِ مِنَ الْبَابِ لِشُغْلِهِ بِالْعِبَادَةِ أَيْ خَبَرُهُمْ وَقِصَّتُهُمْ ﴿إِذْ دَخَلُوا عَلَى دَاوٗدَ فَفَزِعَ مِنْهُمْ قَالُوا لَا تَخَفْ﴾ نَحْنُ ﴿خَصْمَانِ﴾ قِيلَ فَرِيقَانِ لِيُطَابِقَ مَا قَبْلَهُ مِنْ ضَمِيرِ الْجَمْعِ وَقِيلَ اثْنَانِ وَالضَّمِيرُ بِمَعْنَاهُمَا وَالْخَصْمُ يُطْلَقُ عَلَى الْوَاحِدِ وَأَكْثَرَ وَهُمَا مَلَكَانِ جَاءَا فِي صُوْرَةِ خَصْمَيْنِ وَقَعَ لَهُمَا مَا ذكر هنا عَلَى سَبِيلِ الْفَرْضِ لِتَنْبِيهِ دَاوٗدَ عَلَيْهِ السَّلَامُ عَلَى مَا وَقَعَ مِنْهُ وَكَانَ لَهُ تِسْعٌ وَتِسْعُوْنَ امْرَأَةً وَطَلَبَ امْرَأَةَ شَخْصٍ لَيْسَ لَهُ غَيْرُهَا وَتَزَوَّجَهَا وَدَخَلَ بِهَا ﴿بَغٰى بَعْضُنَا عَلٰى بَعْضٍ فَاحْكُمْ بَيْنَنَا بِالْحَقِّ وَلَا تُشْطِطْ﴾ تَجُرْ ﴿وَاهْدِنَا﴾ أَرْشِدْنَا ﴿إِلٰى سَوَاءِ الصِّرَاطِ﴾ وَسَطِ الطَّرِيقِ الصواب ﴿إِنَّ هٰذَا أَخِي﴾ أَيْ عَلَى دِينِي ﴿لَهُ تِسْعٌ وَّتِسْعُوْنَ نَعْجَةً﴾ يُعَبَّرُ بِهَا عَنِ الْمَرْأَةِ ﴿وَلِيَ نَعْجَةٌ وَّاحِدَةٌ فَقَالَ أَكْفِلْنِيهَا﴾ أَيِ اجْعَلْنِي كَافِلَهَا ﴿وَعَزَّنِي﴾ غَلَبَنِي ﴿فِي الْخِطَابِ﴾ أَيِ الْجِدَالِ وَأَقَرَّهُ الْآخَرُ عَلَى ذٰلِكَ ﴿قَالَ لَقَدْ ظَلَمَكَ بِسُؤَالِ نَعْجَتِكَ﴾ لِيَضُمَّهَا ﴿إِلٰى نِعَاجِهِ وَإِنَّ كَثِيرًا مِّنَ الْخُلَطَاءِ﴾ الشُّرَكَاءِ ﴿لَيَبْغِي بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَقَلِيلٌ مَّا هُمْ﴾ مَا لِتَأْكِيدِ الْقِلَّةِ فَقَالَ الْمَلَكَانِ صَاعِدَيْنِ فِي صُوْرَتَيْهِمَا إِلَى السَّمَاءِ قضى الرجل على نفسه فتنبه داود قال تعالى ﴿وَظَنَّ﴾ أَيْ أَيْقَنَ ﴿دَاوٗدُ أَنَّمَا فَتَنَّاهُ﴾ أَوْقَعْنَاهُ فِي فِتْنَةٍ أَيْ بَلِيَّةٍ بِمَحَبَّتِهِ تِلْكَ الْمَرْأَةَ ﴿فَاسْتَغْفَرَ رَبَّهُ وَخَرَّ رَاكِعًا﴾ اي ساجدا ﴿وَأَنَابَ﴾ ﴿فَغَفَرْنَا لَهُ ذٰلِكَ وَإِنَّ لَهُ عِنْدَنَا لَزُلْفٰى﴾ أَيْ زِيَادَةَ خَيْرٍ فِي الدُّنْيَا ﴿وَحُسْنَ مَآبٍ﴾ مَرْجِعٍ فِي الْآخِرَةِ ﴿يَا دَاوٗدُ إِنَّا جَعَلْنَاكَ خَلِيفَةً فِي الْأَرْضِ﴾ تُدَبِّرُ أَمْرَ النَّاسِ ﴿فَاحْكُمْ بَيْنَ النَّاسِ بِالْحَقِّ وَلَا تَتَّبِعِ الْهَوٰى﴾ أَيْ هَوَى النَّفْسِ ﴿فَيُضِلَّكَ عَنْ سَبِيلِ اللّٰهِ﴾ أَيْ عَنِ الدَّلَائِلِ الدَّالَّةِ عَلَى تَوْحِيدِهِ ﴿إِنَّ الَّذِينَ يَضِلُّونَ عَنْ سَبِيلِ اللّٰهِ﴾ أَيْ عَنِ الْإِيمَانِ بِاللّٰهِ ﴿لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌ بِمَا نَسُوا﴾ بِنِسْيَانِهِمْ ﴿يَوْمَ الْحِسَابِ﴾ الْمُرَتَّبَ عَلَيْهِ تَرْكُهُمُ الْإِيمَانَ وَلَوْ أَيْقَنُوا بِيَوْمِ الْحِسَابِ لَآمَنُوا فِي الدُّنْيَا

**ترجمه**: دوی یعنی د مکې کافران انتظار نه کوی مګر د یوې چغې، او هغه به د قیامت شپیلۍ وی، چې په دوی باندې به عذاب نازل کړی، او دې شپیلۍ د پاره به توقف نه وی، فواق د فاء په فتحې او ضمې سره، چې کله آیت: فلما من لولی کتابه ببعه نازل شو نو دوی اووئیل چې ای زمونږ پروردګاره ته زمونږ حصه یعنی اعمال نامه د حساب د ورځې نه مخکښې په دنیا کښې مونږ ته راکړه، دا خبره هغوی د ټوقو په توګه کړې وه، الله تعالی اوفرمائیل تاسو د دوی په خبرو باندې صبر کوئ، او زمونږ بنده داود علیه السلام یاد کړه چې په عبادت کښې ډیر قوی

وو، يو ورځ به ئې روژه وه او بله ورځ کوژه، نيمې شپې پورې به ئې قيام کولو او د شپې په دريمه حصه کښې به اوده کيدو او بيا به ئې د شپې د شپږمې حصې قيام کولو، يقينا هغه د الله د رضا طرف ته ډير رجوع کونکې وو، مونږ غرونه د هغه تابع کړی وو، چې هغه سره د مابنام په وخت يعنی د عشاء (ماسخوتن د مونځ) په وخت او د إشراق يعنی د إشراق د مونځ په وخت او هغه داچې نمر ښه روښانه شی او د هغې رنړا آخرى حد ته اورسى تسبيح به ئې وئيله، او مرغۍ مو د هغه تابع کړې وې هغه سره به جمع کيدلې او ټولو به هغه سره تسبيح وئيله، او غرونه او مرغۍ ټول په ټول په تسبيح وئيلو کښې د هغه د حکم تابعدار وو، او مونږ د هغه حکومت ته د ځوکيدرانو او لښکرو په ذريعه قوت ورکړې وو، د هغوی د محراب په هره ورځ ديرش زره محافظينو نګرانی کوله، او مونږ هغه ته حکمت يعنی نبوت او په معاملاتو کښې د صحيح رائې قدرت ورکړې وو، او يو فيصله کونکې (خطاب) يعنی په مقصد کښې پورا بيان مو ورکړې وو، هل د استفهام په معنی کښې دې، او دلته د تعجب د پاره دې، مخکښې کلام په شوق سره د اوريدو د پاره دې او آيا تا ته اې محمد ﷺ د دوه جګړه کونکو خبر ملاو شوې دې، چې کله هغوی د داود عليه السلام محراب يعنی عبادت خانې ديوال نه واړيدل او عبادت خانې ته راغلل، چې کله د دواد عليه السلام خواله په دروازه باندې د تلو نه منع کړې شو، د حضرت داود عليه السلام په عبادت کښې د مشغوليدو د وجې نه، آيا تاسو ته د هغوی د قصې خبر راغلې دې، چې کله دوی داود عليه السلام ته اورسيدل نو هغه دوی نه اويريدو، راتلونکو اووئيل يريږه مه، مونږ دواړه د مقدمې فريقان يو، او وئيلې شوې دی چې د خصمان نه مراد فريقان دې، چې د تُسَوَّرُوا د ضمير مطابق شی، او وئيلې شوې دی چې د تثنيې په معنی کښې دې، او د خصم اطلاق په يو او د يو نه په زيات باندې کيږی، او هغه دواړه فرشتې وې، چې د مدعِی او د مدعٰی عليه په شکل کښې راغلې وې، او چې څه ذکر شو دا ددوی د پاره علی سَبيل الفرض په قرآن کښې واقع شوې دی، چې داواد عليه السلام په دې خطاء باندې خبردار شی، کومه چې د هغه نه شوې وه، او د دواد عليه السلام يو کم سل ښځې وې، او د يو داسې کس ښځه ئې هم اوغوښتله، چې هغه سره ددې نه علاوه بله ښځه نه وه، او د هغې سره دواد (ع) نکاح کولو نه پس يوځائې والې هم کړې وو، په مونږ کښې يو په بل باندې زياتې کړې دې، نو تاسو زمونږ په مينځ کښې فيصله اوکړئ، او ناانصافی مه کوئ او مونږ ته نيغه لار اوښايئ، يعنی مينځنۍ لاره، نو واوره دا ځما رور يعنی دينی رور دې، ده سره يو کم سل چيلۍ دی ښځه نه ئې په چيلۍ سره تعبير اوکړو، او دې په خبرو يعنی بحث او مباحثه کښې په ما باندې غالبه شوې ده، او دويم فريق (مدعٰی عليه) ددې اقرار هم اوکړو، نو هغوی اوفرمائيل دده په خپلو چيلو کښې ستا د چيلۍ يوځائې کولو سوال کول بې شکه په تا باندې ظلم دې، او بې شکه اکثر شريکان هم داسې وی، چې په يو بل باندې ظلم

کوي، سوا د هغه نه چې ايمان ئې راوړې وي، او چا چې نيک عملونو اوکړل، او داسې خلق ډير کم دي، "ما" د تاکيد د قلت د پاره ده، نو دغه دواړه فرشتې په خپل اصلي شکل کښې اسمان طرف ته اوښتلې، او دا ئې اووئيل چې دې کس خو پخپله په خپل ځان باندې د ځان خلاف فيصله اوکړه، نو هغه وخت دواد عليه السلام ته پته اولګيده، او پوهه شو، الله تعالى اوفرمائيل، او داود ته يقين اوشو چې موږ د هغه نه امتحان واخستلو، يعنى هغه مو په امتحان کښې اچولې دې، په داسې طريقه چې هغه مو ددې ښځې د محبت په فتنه کښې مبتلا کړو، بيا ئې خپل رب ته استغفار شروع کړو او په سجده کښې پريوتلو، او خپل مولى طرف ته ئې رجوع اوکړه، نو موږ هم د هغه ګناه معاف کړه، يقينا هغه څموږ په نيز باندې اوچتې مرتبې والا دې، يعنى په دنيا کښې ډيرې نيکو والا دې، او په آخرت کښې ښه ځايونو والا دې، او اې دواد موږ ته په زمکه باندې خليفه جوړ کړې د دې د پاره چې ته د خلقو د معاملاتو تدبير کوه، ته د خلقو په مينځ کښې په حق سره فيصله کوه، او د خواهشاتو تابعدارى مه کوه، يعنى د نفساني خواهشاتو ګنى هغه به تا لره د الله د لارې نه يعنى د هغه د دلائلو نه کوم چې د هغه په توحيد باندې دلالت کوي، واړوي، يقينا کوم خلق چې د الله د لارې نه يعنى د ايمان نه واوړي، نو د هغوى د پاره سخت عذاب دې، د دوى آخرت د ورځې لره د هيرولو د وجې نه، چې په کومه هيره باندې د دوى د ترک ايمان مرتب شو، که دې خلقو په ورځ د آخرت باندې يقين کړې وو نو په دنيا کښې به ئې ايمان راوړې وو،

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: فواق: د فاء په فتحې او ضمې سره، أي الرجوع، دا اسم فعل دې، ددې جمع أفوقة وآفِقَة ده، د پيو دوه ځلو لوشلو کښې مينځنې وقفه، يو ځل لوشلو نه پس بچې د پئ څکلو د پاره پريښودلې شى، د بچي څکلو سره د خناور په تنو کښې دوباره پئ راځى، نو لوشلو والا بچې اخوا کړى او پې اولوشى، ددې مينځنې وقفې ته فواق وئيلې شى (قاموس) دلته مراد سکون او وقفه ده، يا رجوع مراد ده، څنګه چې مَحلي مراد اخستې ده، يعنى د قيامت شپيلې به بغير د وقفې نه په تسلسل سره وى.

**قوله**: مالها: مانافيه ده، او لها خبر مقدم دې، من زائده دې او فواق مجرور لفظا، د ما اسم يا د مبتدأ مؤخر کيدو د وجې نه محلا مرفوع دې، جمله مالها من فواق، د صيحة صفت کيدو د وجې نه د نصب په محل کښې دې

**قوله**: ذالأيد: أيد د بيع په وزن باندې، د آدَ يَئِيْدُ نه مصدر مفرد دې، إذا قوى واشتد د ا د يد جمع نه ده.

**قوله**: إنه أواب: داد داود عليه السلام په دين کښې د قوى کيدو علت دې.

قوله: يسبحن: دا د الجبال نه حال دې.

قوله: والطير محشورة: په الجبال باندې د عطف كيدو د وجې نه منصوب دې، او بعضو مبتدأ خبر كيدو د وجې نه فرفوع وئيلې دې.

قوله: كل له أواب: د "له" مرجع داود ﷺ دې، څنګه چې د مفسر علام د عبارت نه معلوميږي، په دې صورت كښې به مطلب داوى چې غرونه او مرغۍ په تسبح وئيلو كښې د دواد ﷺ حكم تابع وو، د داود ﷺ د تسبح وئيلو د وجې نه، چې به كله داود ﷺ دوى ته د تسبيح وئيلو حكم اوكړو نو دوى به د داود ﷺ سره په تسبيح كښې مصروف شول، په دې صورت كښې به د اوّاب معنى مسبح وى، دويم صورت دا چې د "له" مرجع الله تعالى اوګرځولې شى نو په دې صورت كښې به مطلب داوى چې داود ﷺ غرونه او مرغې د الله تعالى طرف ته رجوع كونكى او تسبيح ويونكى وو، د علامه مَحَلّى د عبارت نه معلوميږى چې "له" د اوّاب صله ده، دا جمله مستانفه ده د ماسبق مضمون تاكيد او د اجمال د تفصيل د پاره راوړې شوې دې.

قوله: بالحرس: د حاء په ضمې او د راء په فتحې سره، د حارس جمع ده، او د دواړو فتحو سره، حرس په وزن خدم، په معنى د خادمان، نوكران

قوله: هل أتاك: هل استفهاميه تعجبيه دې، يعنى مخاطب په حيرانتيا كښې اچولو د پاره يا د راروان كلام ته د شوق پيدا كولو د پاره، دا داسې ده چې كله يو عجيبه خبر اورول وى نو د مخاطب د متوجه كولو د پاره وئيلې شى، هل تعلم؟ ما وقع اليوم؟ پښتو كښې داسې وئيلې شى: تاته پته شته؟ نن داسې چل شوې دې.

قوله: تسوروا: ماضى جمع مذكر غائب، هغوى د ديوال نه راواوړيدل، ديوال پار كولو سره داخل شول، اذ تسوروا د مضاف محذوف ظرف دې، تقديرى عبارت دادې هل أتاك تخاصم الخصم إذ تسوروا

قوله: إذ دخلوا: دا د اول (إذ) نه بدل دې، او د تسوروا نه هم بدل كيدې شى.

قوله: خبرهم وقصتهم: دا د نبؤ تفسير دې،

قوله: قيل فريقان ليطابق ما قبله: دا د يو سوال مقدر جواب دې،

سوال دادې چې تسوروا د جمع صيغه استعمال شوې ده، او خصمان تثنيه ده، په دواړو كښې مطابقت نشته، حالانكه د دواړو مصداق يو دې؟

د جواب حاصل دادې چې د خصمان نه مراد فريقان دې، او هر فريق په ډيرو افرادو باندې مشتمل دې، څكه دې ته فريق وائى، لهذا په دواړو كښې مخالفت نشته،

دويم جواب دا ورکړې شوې دې چې خصم مصدر هم دې ځکه ددې اطلاق په واحد، تثنيه او په جمع ټولو باندې کيږي.

**قوله**: وقيل اثنان والضمير بمعناهما: دا د مذکوره اعتراض دريم جواب دې چې د هغې خلاصه دا ده چې ديوال باندې راوړيدونکی هم دوه وو، خو په تسوروا کښې د جمع نه مراد مافوق الواحد دې، چې د هغې اطلاق په دوؤ هم کيدې شي.

**قوله**: وقع لهم ما ذکر على سبيل الفرض: د مفسر علام مقصد ددې عبارت نه د يو اعتراض جواب ورکول دی.

**اعتراض**: دوه فرشتې په دې مسئله کښې د مدعی او مدعا عليه په شکل کښې راغلې، او هغوی د داود عليه السلام په عدالت کښې داسې مقدمه پيش کړه چې د هغې د سره وجود هم نه وو، کومه چې په دروغو باندې مشتمل وه، حالانکه فرشتې معصوم دی، او دهغوی نه د معصيت صدور نشی کيدلې؟

**جواب**: د جواب خلاصه دا ده چې دروغ او گناه هغه وخت وی چې کله په حقيقت کښې د يوې واقعې خبر ورکول مقصود وی دلته د خبردارۍ د پاره د يو فرضی صورت تصور کړې شوې دې، په دې کښې د خلاف واقع او دروغو هيڅ سوال نه پيدا کيږي، دا داسې ده لکه چې استاد د ماشومانو د پوهه کولو د پاره اووائی، ضرب زيد عمرا او اشترى بكر دارا حالانکه دلته نه ضرب شته، او نه شراء، دلته هم داود عليه السلام ته تعريض کول مقصود وو نه چې بيان د واقعې.

**قوله**: وأقره الآخر: ددې عبارت د اضافې مقصد د يو سوال جواب ورکول دی
سوال دادې چې داود عليه السلام د مدعیٰ عليه بيان اوريدلو نه بغير او د گواهانو د گواهئ نه بغير څنگه يو طرفه فيصله اوکړه؟

**جواب**: د جواب حاصل دادې چې داسې معلوميږي چې مدعٰی عليه د مدعِی دعوی تسليم کړې وه، او چې مدعی عليه د مدعی دعوی تسليم کړی نو بيا نه د گواهانو ضرورت راځی او نه د صفايئ د بيان.

**قوله**: قليل ما هم: قليل خبر مقدم دې، (ما) د قلت د تاکيد د پاره زيات شوې دې، "هم" مبتدأ مؤخر ده.

**قوله**: زلفى: درجه، مرتبه، زلفى په وزن د قربى، مصدر دې.

[اياتونه: ٢٧ - ٤٠]

{وَمَا خَلَقْنَا السَّمَاءَ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا بَاطِلًا} عَبَثًا {ذَٰلِكَ} أَيْ خَلْقَ مَا ذُكِرَ لَا لِشَيْءٍ {ظَنُّ الَّذِينَ كَفَرُوا} مِنْ أَهْلِ مَكَّةَ {فَوَيْلٌ} وَادٍ {لِلَّذِينَ كَفَرُوا مِنَ النَّارِ} {أَمْ نَجْعَلُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ كَالْمُفْسِدِينَ فِي الْأَرْضِ أَمْ نَجْعَلُ الْمُتَّقِينَ كَالْفُجَّارِ} نَزَلَ لَمَّا قَالَ كُفَّارُ مَكَّةَ لِلْمُؤْمِنِينَ إِنَّا نُعْطَى فِي الْآخِرَةِ مِثْلَ مَا تُعْطَوْنَ وَأَمْ بِمَعْنَى هَمْزَةِ الْإِنْكَارِ {كِتَابٌ} خَبَرُ مُبْتَدَأٍ مَحْذُوفٍ أَيْ هَذَا {أَنْزَلْنَاهُ إِلَيْكَ مُبَارَكٌ لِيَدَّبَّرُوا} أَصْلُهُ يَتَدَبَّرُوا أُدْغِمَتِ التَّاءُ فِي الدَّالِ {آيَاتِهِ} يَنْظُرُوا فِي مَعَانِيهَا فَيُؤْمِنُوا {وَلِيَتَذَكَّرَ} يَتَّعِظَ {أُولُوا الْأَلْبَابِ} أَصْحَابُ الْعُقُولِ {وَوَهَبْنَا لِدَاوُودَ سُلَيْمَانَ} ابْنَهُ {نِعْمَ الْعَبْدُ} أَيْ سُلَيْمَانُ {إِنَّهُ أَوَّابٌ} رَجَّاعٌ فِي التَّسْبِيحِ وَالذِّكْرِ فِي جَمِيعِ الْأَوْقَاتِ {إِذْ عُرِضَ عَلَيْهِ بِالْعَشِيِّ} هُوَ مَا بَعْدَ الزَّوَالِ {الصَّافِنَاتُ} الْخَيْلُ جَمْعُ صَافِنَةٍ وَهِيَ الْقَائِمَةُ عَلَى ثَلَاثٍ وَإِقَامَةِ الْأُخْرَى عَلَى طَرَفِ الْحَافِرِ وَهُوَ مِنْ صَفَنَ يَصْفِنُ صُفُونًا {الْجِيَادُ} جَمْعُ جَوَادٍ وَهُوَ السَّابِقُ الْمَعْنَى أَنَّهَا إِذَا اسْتُوقِفَتْ سَكَنَتْ وَإِنْ رَكَضَتْ سَبَقَتْ وَكَانَتْ أَلْفَ فَرَسٍ عُرِضَتْ عَلَيْهِ بَعْدَ أَنْ صَلَّى الظُّهْرَ لِإِرَادَتِهِ الْجِهَادَ عَلَيْهَا لِعَدُوٍّ فَعِنْدَ بُلُوغِ الْعَرْضِ مِنْهَا تِسْعَمِائَةٍ غَرَبَتِ الشَّمْسُ وَلَمْ يَكُنْ صَلَّى الْعَصْرَ فَاغْتَمَّ {فَقَالَ إِنِّي أَحْبَبْتُ} أَيْ أَرَدْتُ {حُبَّ الْخَيْرِ} أَيِ الْخَيْلِ {عَنْ ذِكْرِ رَبِّي} أَيْ صَلَاةِ الْعَصْرِ {حَتَّى تَوَارَتْ} أَيِ الشَّمْسُ {بِالْحِجَابِ} أَيِ اسْتَتَرَتْ بِمَا يَحْجُبُهَا عَنِ الْأَبْصَارِ {رُدُّوهَا عَلَيَّ} أَيِ الْخَيْلَ الْمَعْرُوضَةَ فَرَدُّوهَا {فَطَفِقَ مَسْحًا} بِالسَّيْفِ {بِالسُّوقِ} جَمْعُ سَاقٍ {وَالْأَعْنَاقِ} أَيْ ذَبَحَهَا وَقَطَعَ أَرْجُلَهَا تَقَرُّبًا إِلَى اللَّهِ تَعَالَى حَيْثُ اشْتَغَلَ بِهَا عَنِ الصَّلَاةِ وَتَصَدَّقَ بِلَحْمِهَا فَعَوَّضَهُ اللَّهُ خَيْرًا مِنْهَا وَأَسْرَعَ وَهِيَ الرِّيحُ تَجْرِي بِأَمْرِهِ كَيْفَ شَاءَ {وَلَقَدْ فَتَنَّا سُلَيْمَانَ} ابْتَلَيْنَاهُ بِسَلْبِ مُلْكِهِ وَذَلِكَ لِتَزَوُّجِهِ بِامْرَأَةٍ هَوَاهَا وَكَانَتْ تَعْبُدُ الصَّنَمَ فِي دَارِهِ مِنْ غَيْرِ عِلْمِهِ وَكَانَ مُلْكُهُ فِي خَاتَمِهِ فَنَزَعَهُ مَرَّةً عِنْدَ إِرَادَةِ الْخَلَاءِ وَوَضَعَهُ عِنْدَ امْرَأَتِهِ الْمُسَمَّاةِ بِالْأَمِينَةِ عَلَى عَادَتِهِ فَجَاءَهَا جِنِّيٌّ فِي صُورَةِ سُلَيْمَانَ فَأَخَذَهُ مِنْهَا {وَأَلْقَيْنَا عَلَى كُرْسِيِّهِ جَسَدًا} هُوَ ذَلِكَ الْجِنِّيُّ وَهُوَ صَخْرٌ أَوْ غَيْرُهُ جَلَسَ عَلَى كُرْسِيِّ سُلَيْمَانَ وَعَكَفَتْ عَلَيْهِ الطَّيْرُ وَغَيْرُهَا فَخَرَجَ سُلَيْمَانُ فِي غَيْرِ هَيْئَتِهِ فَرَآهُ عَلَى كُرْسِيِّهِ وَقَالَ لِلنَّاسِ أَنَا سُلَيْمَانُ فَأَنْكَرُوهُ {ثُمَّ أَنَابَ} رَجَعَ سُلَيْمَانُ إِلَى مُلْكِهِ بَعْدَ أَيَّامٍ بِأَنْ وَصَلَ إِلَى الْخَاتَمِ فَلَبِسَهُ وَجَلَسَ عَلَى كُرْسِيِّهِ {قَالَ رَبِّ اغْفِرْ لِي وَهَبْ لِي مُلْكًا لَا يَنْبَغِي} لَا يَكُونُ {لِأَحَدٍ مِنْ بَعْدِي} اي سواي نحو {فمن يهديه من بعدي} اي سوى الله {إنك أنت الوهاب} {فَسَخَّرْنَا لَهُ الرِّيحَ تَجْرِي بِأَمْرِهِ رُخَاءً} لَيِّنَةً {حَيْثُ أَصَابَ} أَرَادَ {وَالشَّيَاطِينَ كُلَّ بَنَّاءٍ} يَبْنِي الْأَبْنِيَةَ الْعَجِيبَةَ {وَغَوَّاصٍ} فِي الْبَحْرِ يَسْتَخْرِجُ اللُّؤْلُؤَ {وَآخَرِينَ} مِنْهُمْ {مُقَرَّنِينَ} مَشْدُودِينَ {فِي الْأَصْفَادِ} الْقُيُودِ بجمع ايديهم إلى اعناقهم وقلنا له {هَذَا عَطَاؤُنَا فَامْنُنْ} أَعْطِ مِنْهُ مَنْ شِئْتَ {أَوْ أَمْسِكْ} عن الإعطاء {بِغَيْرِ حِسَابٍ} أَيْ لَا حِسَابَ عَلَيْكَ فِي ذَلِكَ {وَإِنَّ لَهُ عِنْدَنَا لَزُلْفَى وَحُسْنَ مَآبٍ} تقدم مثله

**ترجمه** او مونږ اسمانونو او زمکې لره او ددې په مینځ کښې څیزونو لره باطل یعنی بې فائدې پیدا کړې نه دی، یعنی دې ذکر شوې څیزونو لره بې فائدې پیدا کولو ګمان خو د مکې د

کافرانو دي، نو د کافرانو د پاره د اور ده، آیا مونږ به هغه خلق چې ایمان ئې راوړې دې او نیک عمل ئې کړې دې د چا برابر کړو کوم چې په زمکه باندې فساد کوی؟ یا پرهیزګاران د بدکارانو په شان کړو؟ مذکوره آیت هغه وخت نازل شو چې کله کافرانو مومنانو ته اووئیل چې مونږ ته به په آخرت کښې هم هغه شان راکولې شی څنګه چې تاسو ته درکولې شی.، او ام د همزه انکاری په معنی کښې دې، دا د برکت نه ډک کتاب دې، دا د مبتدأ محذوف یعنی د هذا خبر دې، کوم چې مونږ ستا طرف ته نازل کړې دې چې خلق ددې آیتونو کښې غور او فکر اوکړی، د یَدَّبَّرُوا اصل یَتَدَبَّرُوا وو، ت په دال کښې مدغم کړې شوه، ددې په معنی کښې غور او فکر اوکړی او ایمان راوړی، او عقل مند ددې نه نصیحت حاصل کړی، او مونږ داود علیہ السلام ته سلیمان نومې ځوې ورکړې وو، کوم چې ډیر ښه بنده وو، او هغه ذکر او تسبیح طرف ته هر وخت ډیر زیات رجوع کوونکې وو، چې کله د ماښام په وخت او دا دزوال نه پس وخت دې، د هغه مخکښې کره اسونه پیش کړې شول، د صافنات معنی اسونه ده، او دا د صافنة جمع ده، هغه اس ته وئیلې شی چې په درې خپو او د څلورمې خپې د نال په سر باندې ولاړ وی، او دا د صفن، یصفن صفونا نه مشتق دې، الجیاد د جواد جمع ده، او ددې معنی د (تیز تلونکی) ده، مطلب دادې چې که چرې دوی ادرولې شی نو اودریږی، او که دوی ته چابک ورکړې شی نو مخکښې والې کوی، او دا زر اسونه وو، چې د ماسپخن مونځ نه پس د هغوی مخکښې د هغوی دشمن سره د جهاد په اراده پیش کړې شوی وو، په دې کښې نهه سوه اسونه ئې کتلې وو، چې نمر اوغورزیدو، او هغوی د مازیګر مونځ نه وو کړې، نو هغوی ته خفګان اوشو نو وئې فرمائیل چې ما د خپل پروردګار په یاد باندې د دې اسونو محبت ته ترجیح ورکړه، یعنی د مازیګر په مونځ مې ترجیح ورکړه تر دې چې نمر پریوتلو، یعنی په داسې څیز کښې پټ شو چې هغې لره د خلقو د نظر نه پټ کړی، دا اسونه دوباره ځما مخکښې راولئ، بیا ئې په تورې سره پنډئ او پریکول شروع کړل، سوق د ساق جمع ده، یعنی د الله نزدیکت حاصلولو دپاره ئې هغه ذبح کړل او د هغې خپې ئې کټ کړې، څکه چې دهغې د وجې نه د مونځ نه غفلت راغلې وو، او هغوی د هغې غوښه صدقه کړه، نو الله تعالی ورته ددې نه ښه تیز تلونکې څیز ورکړو، او هغه هوا وه، چې هغه به د هغه په حکم سره چلیده، کوم طرف ته چې به ئې خوښه وه، او مونږ سلیمان علیہ السلام نه امتحان واخستلو یعنی دهغه نه دهغه حکومت اخستلو سره مو ترې امتحان واخستلو، او دا امتحان د هغه ښځې سره دنکاح کولو په وجه وو، چا سره چې ددوی مینه وه، او د سلیمان علیہ السلام په کور کښې د هغه په لاعلمئ کښې به هغې ښځې بت پرستی کوله، او د هغه حکومت د هغه د ګوتمې په وجه وو، نو یو ورځ ئې بیت الخلاء د ارادې په وخت خپله ګوتمه ویستلو نه پس بهر یو ښځې چې نوم ئې امینه وو، د خپل عادت مطابق ئې د

هغې په حواله کړه، نو يو پيرې د سليمان عليه السلام په شکل کښې راغلو او هغه ګوتمه ئې د هغې نه واخستله، او مونږ د هغه په کرسۍ باندې يو جوثه واچوله، او دا هغه پيرې وو چا چې دا ګوتمه اخستې وه، او هغه صخر وو، يا دده نه علاوه بل څوک وو چې د سليمان عليه السلام په کرسۍ باندې ناست وو، او د هغه د پاسه موغو وغيره په هغه باندې سورې کړو، نو سليمان عليه السلام د خپل معتاد هيئت نه علاوه په بل هيئت سره راوتلو نو هغه ئې په کرسۍ باندې اوليدلو، او خلقو ته ئې اووئيل چې څه سليمان عليه السلام يم، خو خلقو هغه اونه پيژندلو، بيا سليمان عليه السلام په خپل حکومت باندې څو ورځې پس واپس راغلو په داسې طريقه چې هغه ګوتمه هغه ته ملاؤ شوه، هغه ئې په لاس کړه او په خپل تحت باندې کيناستلو سليمان عليه السلام دعا اوکړه اې څما ربه، ماته داسې حکومت راکړه چې څما نه علاوه دبل چا لائق نه وي، يعنې څما نه پس بيا چا ته ورنکړې، من بعدی بمعنی سوای څنګه چې فمن يهديه من بعد الله کښې من بعد الله د سوی الله په معنی دې، ته دير ورکړې والايې، نو مونږ هوا د هغه د حکم تابعداره کړه، هغې بهٔ د هغه په حکم سره کوم طرف ته چې ئې غوښتله په تيزئ سره بوتللو، د هغه د حکم تابعداره مو کړه او عمارت جوړونکې هر يو پيرې مو هم د هغه د حکم تابع کړو چې عجيبه عمارتونه به ئې جوړول، او په سيندونو کښې غوټه وهونکې هم يعنې چې ملغلرې به ئې راويستلې، او په دوې کښې نور پيريان هم کوم چې په زنځيرونو باندې تړلې شوي وو، د هغوی لاسونه په څټونو پورې تړلوو سره، او مونږ هغوی ته اووئيل دا څما د طرف نه ورکړه ده اوس ته احسان اوکړه، يعنې ددې نه چه چاته اوغواړې ورکوې (اوچاته چه اوغواړې) نه ورکوې په تا باندې په دې کښې هيڅ حساب نشته او د هغه د پاره څمونږ سره دير نزديکت دې، او هغه دير ښه ځائې دې، ددې پشان مخکښې تيرې شوې دې.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله**: وما خلقنا السماء والأرض وما بينهما باطلا: دا کلام مستانف دې د مخکښې مضمون د تاکيد او تقرير د پاره راوړلې شوې دې.

**قوله**: باطلا: دا د مصدر محذوف صفت دې، أی خلقا باطلا او دا هم جائز ده، چې د خلقنا ضمير د فاعل نه حال وي، أی خلقنا مبطلين.

**قوله**: ذلك: أی خلق ما ذكر لا لشيء ددې عبارت د زياتوالی مقصد د ذلک مشار اليه متعين کول دی. يعنې د زمکې او اسمان تخليق بې ځايه نه دې شوې.

**قوله**: كتاب: د مبتدأ محذوف خبر دې، أی هذا كتاب

**قوله**: انزلناه إليك: د کتاب صفت دې

**قوله**: مبارك: د مبتدأ محذوف خبر ثانی دې، بعضې حضراتو مبارک د کتاب صفت

گرځولې دي، خو دا صحيح نه ده، ځکه چې د جمهورو په نيز وصف غير صريح په وصف صريح باندې مقدم کولې نشي.

**قوله** ليدبروا: ددې تعلق د أنزلناه سره دې، ښکاره داده چې د ليدبروا فاعل حذف کړې شوې دې، او دا د باب د تنازع فعلان نه دې، ځکه چې ليدبروا اوليتذكروادواړه أولوا الألباب خپل فاعل جوړول غواړي، د بصريينو د مذهب مطابق دلته کښې فعل ثاني ته عمل ورکړې شوې دې، او د اول دپاره ضمير راوړې شوې دې،

**قوله** أي سليمان: دا د نعم مخصوص بالمدح دې

**قوله** إذ عرض: دا د فعل محذوف ظرف دې، تقديرى عبارت داسې دې، اذكر إذ عرض.

**قوله** الجياد: جمع جوَاد اووئيلې شوى ده، چې د جيد جمع ده، ښه او تيزرفتاره اسونه، د جوَاد اطلاق په نر او ماده دواړو کيږي.

**قوله** المعنى: دادصافنات الجياد په معنې دې

**قوله** احببت حب الخير: حب الخير دا د أحببت مفعول به دې، او أحببت په معنى دآثرت دې، ځکه چې د أحببت صله (عن) نه راځى، يا د حب الخير احببت مفعول مطلق دې، حرف زوائد حذف کولو سره لکه أنبت نباتا او (عن) په معنى د (على) دې، او خير په معنى د خيل دې، په حديث شريف کښې فرمائيلې شوې دى چې الخيل معقود بنواصيها الخير، يعنى د اس تندى پورې خير تړلې شوې وى،نو غالبا هم په ددې مناسبت سره خيل ته خير اووئيلې شو.بعضې حضراتو فرمائيلې دى چې خيل کثير المنافع وى،دې وجې نه دې ته خير وئيلې شوې دى

**قوله**: توارت الحجاب: د توارت فاعل هى ضمير مستتر دې، او د هى مرجع الشمس ده، اګرچې شمس مخکښې ذکر نه دې چې د هغې د وجې نه إضمار قبل الذکر لازميږى، خو چونکه د العشيّ قرينه د شمس په حذف باندې دلالت کوى لهذا د إضمار قبل الذکر اعتراض نه لازميږى، ځکه چې ذکر يا قرينه د ذکر کافى وى، دلته قرينه موجود ده، او وئيلې شوې دى چې د توارت ضمير صافنات ته راجع دې، کذا فى الکشاف، امام رازى هم دا راجح ګرځولې ده، ځکه چې داسونو په معائنه کښې دومره مشغوليدل چې مونځ فوت شى دا لويا ګناه ده، کومه چې دانبياؤ د شان مناسب نه ده، په دې صورت کښې به ترجمه دا وى چې سليمان عليه السلام د اسونو معائنه کوله تردې چې هغه د نظرونو نه غائب شول، (يعنى اسونه ئې د جهاد د تيارئې د پاره په منډه کړې وو،تر دې چې هغه د نظر نه غائب شول.

**قوله**: أصاب: أى أراد سليمان، دلته أصاب په معنى د أراد دې، ځکه چې دلته أصاب په معنى

فعل يفعل الصواب صحيح نه دي، او أصاب په معنى د أراد د عربو په لغت كښې مستعمل دي، ونيلې شى أصاب الصواب فأخطاء الجواب د صحيح جواب اراده ئې اوكړه خو جواب خطا شو.

**قوله** مقرنين: اسم مفعول جمع مذكر واحد، مقرن (تفعيل) تړلې شوى،

**قوله** الاصفاد: جمع صفد، بمعنى قيد يا بيړئ

**قوله** زلفى: درجه، مرتبه، نزديكت، د قربى په شان مصدر دي، امام بغوى ليكلي دى زلفة اسم په وصف د مصدر دي، په دي كښې مذكر مؤنث، واحد تثنيه او جمع ټول برابر دى.

**[اياتونه: ٤١ - ٦٤]**

(وَاذْكُرْ عَبْدَنَا أَيُّوبَ إِذْ نَادَى رَبَّهُ أَنِّي) أَيْ بِأَنِّي (مَسَّنِيَ الشَّيْطَانُ بِنُصْبٍ) ضُرٍّ (وَعَذَابٍ) أَلَمٍ وَنَسَبَ ذٰلِكَ إِلَى الشَّيْطَانِ وَإِنْ كَانَتِ الْأَشْيَاءُ كُلُّهَا مِنَ اللّٰهِ تَأَدُّبًا مَعَهُ تَعَالَى وقيل له (اركض) اضْرِبْ (بِرِجْلِكَ) الْأَرْضَ فَضَرَبَ فَنَبَعَتْ عَيْنُ مَاءٍ فَقِيلَ (هٰذَا مُغْتَسَلٌ) مَاءٌ تَغْتَسِلُ بِهِ (بَارِدٌ وَشَرَابٌ) تَشْرَبُ مِنْهُ فَاغْتَسَلَ وَشَرِبَ فَذَهَبَ عَنْهُ كُلُّ دَاءٍ كَانَ بِبَاطِنِهِ وَظَاهِرِهِ (وَوَهَبْنَا لَهُ أَهْلَهُ وَمِثْلَهُمْ مَعَهُمْ) أَيْ أَحْيَا اللّٰهُ لَهُ مَنْ مَاتَ مِنْ أَوْلَادِهِ وَرَزَقَهُ مِثْلَهُمْ (رَحْمَةً) نِعْمَةً (مِنَّا وَذِكْرَى) عِظَةً (لِأُولِي الْأَلْبَابِ) لِأَصْحَابِ الْعُقُولِ (وَخُذْ بِيَدِكَ ضِغْثًا) هُوَ حُزْمَةٌ مِنْ حَشِيشٍ أَوْ قُضْبَانٍ (فَاضْرِبْ بِهِ) زَوْجَتَكَ وَكَانَ قَدْ حَلَفَ لَيَضْرِبَنَّهَا مِائَةَ ضَرْبَةٍ لِإِبْطَائِهَا عَلَيْهِ يَوْمًا (وَلَا تَحْنَثْ) بِتَرْكِ ضَرْبِهَا فَأَخَذَ مِائَةَ عُودٍ مِنَ الْإِذْخِرِ أَوْ غَيْرِهِ فَضَرَبَهَا بِهِ ضَرْبَةً وَاحِدَةً (إِنَّا وَجَدْنَاهُ صَابِرًا نِعْمَ الْعَبْدُ) أَيُّوبُ (إِنَّهُ أَوَّابٌ) رَجَّاعٌ إِلَى اللّٰهِ تَعَالَى (وَاذْكُرْ عِبَادَنَا إِبْرَاهِيمَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ أُولِي الْأَيْدِي) أَصْحَابِ الْقُوَى فِي الْعِبَادَةِ (وَالْأَبْصَارِ) الْبَصَائِرِ فِي الدِّينِ وَفِي قِرَاءَةٍ عَبْدَنَا وَإِبْرَاهِيمَ بَيَانٌ لَهُ وَمَا بَعْدَهُ عُطِفَ عَلَى عَبْدَنَا (إِنَّا أَخْلَصْنَاهُمْ بِخَالِصَةٍ) هِيَ (ذِكْرَى الدَّارِ) الْآخِرَةِ أَيْ ذِكْرُهَا وَالْعَمَلُ لَهَا وَفِي قِرَاءَةٍ بِالْإِضَافَةِ وهي للبيان (وَإِنَّهُمْ عِنْدَنَا لَمِنَ الْمُصْطَفَيْنَ) الْمُخْتَارِينَ (الْأَخْيَارِ) جَمْعُ خَيِّرٍ بالتشديد (وَاذْكُرْ إِسْمَاعِيلَ وَالْيَسَعَ) وَهُوَ نَبِيٌّ وَاللَّامُ زَائِدَةٌ (وَذَا الْكِفْلِ) اُخْتُلِفَ فِي نُبُوَّتِهِ قِيلَ كَفَلَ مِائَةَ نَبِيٍّ فَرُّوا إِلَيْهِ مِنَ الْقَتْلِ (وَكُلٌّ) أَيْ كُلُّهُمْ (مِنَ الْأَخْيَارِ) جَمْعُ خَيِّرٍ بِالتَّثْقِيلِ (هٰذَا ذِكْرٌ) لَهُمْ بِالثَّنَاءِ الْجَمِيلِ هُنَا (وَإِنَّ لِلْمُتَّقِينَ) الشَّامِلِينَ لَهُمْ (لَحُسْنَ مَآبٍ) مَرْجِعٍ فِي الآخرة (وجنات عدن) بَدَلٌ أَوْ عَطْفُ بَيَانٍ لِحُسْنَ مَآبٍ (مُفَتَّحَةً لَهُمُ الْأَبْوَابُ) مِنْهَا (متكئين فيها) على الأرائك (يدعون فيها بفاكهة كثيرة وشراب) (وَعِنْدَهُمْ قَاصِرَاتُ الطَّرْفِ) حَابِسَاتُ الْعَيْنِ عَلَى أَزْوَاجِهِنَّ (أَتْرَابٌ) أَسْنَانُهُنَّ وَاحِدَةٌ وَهُنَّ بَنَاتُ ثَلَاثٍ وَثَلَاثِينَ سَنَةً جَمْعُ تِرْبٍ (هٰذَا) الْمَذْكُورُ (ما يوعدون) بِالْغَيْبَةِ وَبِالْخِطَابِ الْتِفَاتًا (لِيَوْمِ الْحِسَابِ) أَيْ لِأَجْلِهِ (إِنَّ هٰذَا لَرِزْقُنَا مَا لَهُ مِنْ نَفَادٍ) أَيِ انْقِطَاعٍ وَالْجُمْلَةُ حَالٌ مِنْ رِزْقُنَا أَوْ خَبَرٌ ثَانٍ لِإِنَّ أَيْ دَائِمًا أَوْ دَائِمٌ (هٰذَا) الْمَذْكُورُ للمؤمنين (وإن للطاغين) مستانف (لشر مآب) (جَهَنَّمَ يَصْلَوْنَهَا) يَدْخُلُونَهَا (فَبِئْسَ الْمِهَادُ) الْفِرَاشُ (هٰذَا) أَيِ الْعَذَابُ

الْمَفْهُوم مِمَّا بَعْده ﴿فَلْيَذُوقُوهُ حَمِيمٌ﴾ أَيْ مَاء حَارّ مُحْرِق ﴿وَغَسَّاقٌ﴾ بِالتَّخْفِيفِ وَالتَّشْدِيد مَا يَسِيل مِنْ صَدِيد أَهْل النَّار ﴿وَآخَرُ﴾ بِالْجَمْعِ وَالْإِفْرَاد ﴿مِنْ شَكْلِهِ﴾ أَيْ مِثْل الْمَذْكُور مِنْ الْحَمِيم وَالْغَسَّاق ﴿أَزْوَاجٌ﴾ أَصْنَاف أَيْ عَذَابهمْ مِنْ أَنْوَاع مُخْتَلِفَة وَيُقَال لَهُمْ عِنْد دُخُولهمْ النَّار بِأَتْبَاعِهِمْ ﴿هَذَا فَوْجٌ﴾ جمع ﴿مُقْتَحِمٌ﴾ دَاخِل ﴿مَعَكُمْ﴾ النَّار بِشِدَّةٍ فَيَقُول الْمَتْبُوعُونَ ﴿لَا مَرْحَبًا بِهِمْ﴾ اي لا سعة عليهم ﴿إِنَّهُمْ صَالُو النَّارِ﴾ ﴿قَالُوا﴾ أَيْ الْأَتْبَاع ﴿بَلْ أَنْتُمْ لَا مَرْحَبًا بِكُمْ أَنْتُمْ قَدَّمْتُمُوهُ﴾ أَيْ الْكُفْر ﴿لَنَا فَبِئْسَ الْقَرَارُ﴾ لَنَا وَلَكُمْ النَّار ﴿قَالُوا﴾ أَيْضًا ﴿رَبَّنَا مَنْ قَدَّمَ لَنَا هَذَا فَزِدْهُ عَذَابًا ضِعْفًا﴾ أَيْ مِثْل عَذَابه عَلَى كُفْره ﴿فِي النَّارِ﴾ ﴿وَقَالُوا﴾ أَيْ كُفَّار مَكَّة وَهُمْ فِي النَّار ﴿مَا لَنَا لَا نَرَى رِجَالًا كُنَّا نَعُدُّهُمْ﴾ فِي الدنيا ﴿مِنَ الْأَشْرَارِ﴾ ﴿أَتَّخَذْنَاهُمْ سِخْرِيًّا﴾ بِضَمِّ السِّين وَكَسْرهَا كُنَّا نَسْخَر بِهِمْ فِي الدُّنْيَا وَالْيَاء لِلنَّسَبِ أَيْ أَمَفْقُودُونَ هُمْ ﴿أَمْ زَاغَتْ﴾ مَالَتْ ﴿عَنْهُمُ الْأَبْصَارُ﴾ فَلَمْ تَرَهُمْ وَهُمْ فُقَرَاء الْمُسْلِمِينَ كَعَمَّارٍ وَبِلَال وَصُهَيْب وسلمان ﴿إِنَّ ذَلِكَ لَحَقٌّ﴾ وَاجِب وُقُوعه وَهُوَ ﴿تَخَاصُمُ أَهْلِ النَّارِ﴾ كَمَا تَقَدَّمَ

**ترجمه**: او زمونږ د بنده ايوب هم ذکر اوکړه کله چې هغه خپل رب ته اواز اوکړو چې شيطان ماته غم او درد راکړې دې أنى په اصل کښې بِأني وو، د غم او درد نسبت شيطان طرف ته شوې دې، اګرچې هر څيز د الله طرف نه وی، دا د الله دادب د وجې نه، نو هغه ته اووئيلې شو چې خپله خپه په زمکه باندې اووهه، نو خپه وهلو سره د اوبو چينه راوتله، نو اووئيلې شو دا د لامبولو او د څکلو يخې اوبه دی، چنانچه ايوب عليه السلام په هغې باندې غسل اوکړو، او وئې څکلې، نو دې سره د هغه هر قسم ظاهری او باطنی ټولې بيمارئې ختمې شوې، او مونږ هغه ته د هغه اهل ورکړل، بلکه د هغې سره هغه هومره نور هم خاص د خپل رحمت نه (ورکړل) يعنی الله تعالی د هغه مړه اولاد ژوندی کړل، او هغه هومره ئې ورته نور هم ورکړل، او دعقلمندو د پاره نصيحت دې، او په خپل لاسونو کښې د ګياه يا د ډکو په يو ګيډې خپله ښځه اووهه، يو ورځ دهغې په ناوخته راتلو باندې ئې قسم خوړلې وو چې څۀ به دا څل کوړې وهم، او ضغث د ګيا يو پنډ ته وائی، او ده وهلو پرېښودلو سره ته حانث نه شې، چنانچه ايوب عليه السلام د اذخر يا د بل څيز سل ډکی راوخستل اوټول ئې يوځای کړل او هغه ئې اووهله، رشتيا خو دادی چې مونږ هغه ډېر صبر کونکې موندلې وو، او هغه ډېر نيک الله طرف ته رجوع کونکې بنده وو، او زمونږ په بندګانو کښې د ابراهيم، اسحق او يعقوب عليهم السلام هم ذکر اوکړه چې په عبادت کښې ډير طاقت ور وو، او په دين کښې بصيرت لرونکې وو، او په يو قراءت کښې عبدنا دې، او ابراهيم ددې بيان دې، او ددې مابعد په عبدنا باندې معطوف دې، او مونږ هغوی يو خاص خبرې سره مخصوص کړی وو، او هغه خبره دآخرت ياد دې، يعنی هغه ياد ساتل او د هغې د پاره عمل کول، او په يو قراءت کښې په اضافت بيانيه دې، او دا خلق زمونږ په نيز خوښ بهتر خلق وو، اخيار، خيِّر مشدد جمع ده، او اسماعيل او يَسَعْ هغه نبيان دی، او لام زائد دې، او د ذوالکفل عليه السلام هم ذکر اوکړه، او دذوالکفل په

نبوت کښې اختلاف دې وئیلې شوی دی چې هغه د سلو نبیانو کفالت کړې وو، چې د قتل د ویرې نه د دوی خواله تلې وو، او دا ټول ښه خلق وو، اخیار د خیّر مشدد جمع ده، او دلته دا د هغوی ذکر جمیل دې، او یقین اوساته د متقیانو د پاره کوم چې په دوی کښې شامل دی، به آخرت کښې ئې ښه ځائې دې، یعنی د همیشه والا جنتونه دی، چې د هغې دروازې د هغوی د پاره کولاؤ دی، جنت عدن، د حسن مآب نه بدل دې، یا عطف بیان دې، چې په هغې کښې بهٔ ئې په بالختونو باندې تکیه وهلې وی، ناست به وی، په کولاؤ زړه سره د مختلف قسم میوو او قسم قسم شرابونو فرمائش به کوی، او دوی سره لاندې نظرونو والا یعنی نظرونه په خپلو خاوندانو باندې ساتونکی همځولې حورې به وی، یعنی د ٣٣ کالو به وی، أتراب د ترب جمع ده، دا مذکوره هغه دی د کوم چې تاسو سره د حساب په ورځ باندې وعده کولې شي؟ په غیبت سره، او دالتفات په طور په خطاب سره، بې شکه دا ځمونږه ورکړه ده، چې د هغې به چرته ختمیدل نه وی، یعنی کمېدنه به نه وی، او جمله د رزقنا نه حال ده، یا د (إن) خبر ثاني دې، یعنی دائما، (د حال په صورت کښې) او دائم (د خبر ثاني په صورت کښې) دا مذکوره د مومنانو د پاره دی، او د سرکشو دپاره خراب ځائې دې، دا جمله مستانفه ده، دا جهنم دې کوم ته چې به دوی داخلیږی، څومره خراب ځائې دې؟ دا عذاب کوم چې د ما بعد نه معلومیږی، یشیدلې اوبه او پیپ دې، غساق(سین) په تخفیف او تشدید سره، کوم چې به د جهنمیانو د زخمونو نه بهیږی، دا اوڅکی، ددې نه علاوه مختلف قسمونه دی، یعنی د دوی عذاب به مختلف قسمونو باندې به وی، او آخر جمع او افراد سره دې، (یعنی آخر وأخر) دا یو قوم دې چې په سختئ سره به تاسو سره یو ځائې دوزخ ته داخلیږی، نو سرداران به اووایئ ددوی د پاره دې "په خیر راغلې" نه وی، یعنی د دوی د پاره هیڅ قسم سهولت نشته، دا خو جهنم ته تلونکی دی، د هغوی پیروکار به جواب ورکړی، چې هم تاسو یئ چې تاسو د پاره پخیر راغلې نشته هم تاسو زمونږ مخکښې کفر وراندې کړې وو، لهذا زمونږ او ستاسو د پاره جهنم خراب ځاې دې، اې زمونږ پروردګاره چا چې د کفر رسم زمونږ د پاره راویستلو د هغه په حق کښې د جهنم سزا دوچنده کړه، یعنی د هغوی په کفر کښې سزا دوچنده کړه، او د مکې کافران به وائی، په داسې حال کښې چې جهنم کښې به وی چې څه خبره ده مونږ ته هغه خلق په نظر نه راځی کوم به چې مونږ په دنیا کښې خراب ګڼل؟ آیا مونږ هغوی پسې توقې کولې، د سین په ضمې او کسرې سره،، یعنی په دنیا کښې به مونږ په هغوی پورې توقې کولې او په (سخریا) کښې (ی) نسبتی ده، یعنی آیا هغوی غائب دی، یا د هغوی نه زمونږ نظرونه لرې شوی دی؟ چې د هغې د وجې نه مونږ هغوی نه وینو، او هغه فقیران مسلمانان دی، لکه عمار، بلال، صهیب او سلمان فارسی ﷺ شو، بې شکه دا حق دې یعنی ددې راتلل ضروری دی، یقین اوساته د دوزخیانو دا جګړه به ضروری وی، څنګه چې مخکښې تیر شول،

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** بنصب: النصب د نون په ضمې او د صاد په سكون سره، نَصب د نون په فتحې او د صاد په سكون سره، نُصُب د دواړو په ضمو سره، درد، تكليف، مصيبت (لغات القرآن) اذكرعبدنا أيوب دا دی عطف د عطف قصه على القصه په طور په اذكرعبدنا داود باندې دی.

**سوال:** د سليمان عليه السلام واقعه ذكر كولو په وخت اذكر او نه وئيلې شو، ددې څه وجه ده؟

**جواب:** د داود عليه السلام او دهغه دځوی سليمان عليه السلام په مينځ كښې اتصال زيات وو گويا چې د دواړو قيصې يوه ده، ځكه د سليمان عليه السلام قصه ئې په اذكر سره شروع نكړه.

**قوله:** اذكرعبدنا أيوب: ايوب دعبدنا نه بدل يا عطف بيان دې او إذنادى د ايوب نه بدل الاشتمال دې،

**قوله:** رحمة وذكري: دواړه په ذريعه د عطف، د وهبنا مفعول لأجله دې،

**قوله:** ضغثا: حزمة حشيش د اوچې گيا گيدې، حزمة، مُتې، فارسئ كښې ورته دسته وائی.

**قوله:** بخالصة: دا موصوف د محذوف صفت دې أى بخصلة خالصة.

**قوله:** ذكري الدار: مفسسر علام د "هى" مبتدأ محذوف خبر گرځولې دې، په دې صورت كښې به ذكرى محلا مرفوع وی او په يو قراءت كښې ئې ذكرى الدار د خالصة مضاف اليه گرځولې دې، اضافت به بيانيه وی، په دې صورت كښې به ذكرى محلا مجرور وی.

**قوله:** اليسع: هو ابن اخطوب بن العجوز

**قوله:** مفتحة، دا د جنت عدن نه حال دې، او جنت عدن د حسن مآب نه بدل يا عطف بيان واقع شوې دې.

**قوله:** متقين: د لهم ضمير (هم) نه حال دې

**قوله:** التفاتا: يعنى توعدون په (ت) سره اووئيلې شی نو د غائب نه به د خطاب طرف ته التفات راشى.

**قوله:** هذا فليذوقوه: حميم وغساق: هذا مبتدأ ده او حميم وغساق معطوف معطوف عليه د مبتدأ خبر دې، په عبارت كښې تقديم او تاخير دې، تقديرى عبارت داسې دې هذا حميم وغساق فليذوقوه:

**قوله:** يقال لهم: ويونكی به فرشتې وی، په دې عبارت سره اشاره كړې شوې ده چې هذا فوج كلام مستانف دې،

**قوله:** بأتباعهم أى مع أتباعهم

قوله بل أنتم: أى بل أنتم أحق بما قلتم لنا

قوله أنتم قدمتموه: دا ددوى د احقيت علت دې،

قوله في النار: دا خو يا د "زده" ظرف دې، يا د عذابا صفت دې، أى عذابا كائنا في النار.

قوله وهم: هم ضمير د رجالا طرف ته راجع دې

قوله وسلمان: دا كلام چونكه د كفر او د گمراهۍ مشرانو د مكې د فقيرانو په باره كښې كړې وو، لهذا مناسب دا معلوميږى چې لفظ د سلمان حذف كړې شى، ځكه چې دوى په مدينه منوره كښې ايمان راوړې وو،

[ايات نوله: ٦٥-٨٨]

(قُلْ) يَا مُحَمَّد لِكُفَّارِ مَكَّة (إِنَّمَا أَنَا مُنْذِرٌ) مُخَوِّف بِالنَّارِ (وَمَا مِنْ إِلَهٍ إِلَّا اللهُ الوَاحِدُ القَهَّارُ) لخلقه (رب السماوات وَالأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا العَزِيزُ) الغَالِب عَلَى أَمْرِه (الغفار) لأوليائه (قل) لهم (هو نبأ عظيم) (أنتم عنه معرضون) اي القرآن الَّذِي أَنْبَأْتُكُمْ بِهِ وَجِئْتُكُمْ فِيهِ بِمَا لا يعلم إلا بوحي وهو قوله (مَا كَانَ لِيَ مِنْ عِلْمٍ بِالْمَلَإِ الْأَعْلَى) أي المَلَائِكَة (إِذْ يَخْتَصِمُونَ) فِي شَأن آدم حين قال الله تَعَالَى (إِنِّي جَاعِلٌ فِي الْأَرْضِ خَلِيفَةً) إلخ (إِنْ) مَا (يُوحَى إِلَيَّ إِلَّا أَنَّمَا أَنَا) اي اني (نذير مبين) بين الإنذار اذكر (إِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَائِكَةِ إِنِّي خَالِقٌ بَشَرًا مِنْ طِينٍ) هُوَ آدم (فَإِذَا سَوَّيْتُهُ) أتممته (وَنَفَخْتُ) أجريت (فِيهِ مِنْ رُوحِي) فَصَارَ حَيًّا وَإِضَافَة الرُّوح إِلَيْهِ تَشْرِيف لِآدَم وَالرُّوح جِسْم لَطِيف يَحْيَا بِهِ الإِنْسَان بِنُفُوذِهِ فِيهِ (فَقَعُوا لَهُ سَاجِدِينَ) سُجُود تحية بالانحناء (فَسَجَدَ الْمَلَائِكَةُ كُلُّهُمْ أَجْمَعُونَ) فِيهِ تَأْكِيدَانِ (إِلَّا إِبْلِيسَ) هُوَ أَبُو الْجِنّ كَانَ بَيْن المَلَائِكَة (اسْتَكْبَرَ وَكَانَ مِنَ الْكَافِرِينَ) فِي عِلْم الله تعالى (قَالَ يَا إِبْلِيسُ مَا مَنَعَكَ أَنْ تَسْجُدَ لِمَا خَلَقْتُ بِيَدَيَّ) أي تَوَلَّيْت خلقه وَهَذَا تَشْرِيف لِآدَم فَإِنَّ كُلّ مَخْلُوق تَوَلَّى الله خلقه (أستكبرت) الآن عن السجود استفهام توبيخ (أَمْ كُنْتَ مِنَ الْعَالِينَ) المُتَكَبِّرِينَ فَتَكَبَّرْت عَنْ السجود لكونك منهم (قَالَ أَنَا خير منه خلقتني من نار وخلقته من طين) (قَالَ فَاخْرُجْ مِنْهَا) أَيْ مِنْ الْجَنَّة وَقِيلَ مِنْ السَّمَاوَات (فَإِنَّكَ رَجِيمٌ) مَطْرُود (وَإِنَّ عَلَيْكَ لَعْنَتِي إِلَى يَوْمِ الدِّينِ) الجَزَاء (قَالَ رَبِّ فَأَنْظِرْنِي إِلَى يَوْمِ يُبْعَثُونَ) أَيْ الناس (قال فإنك من المنظرين) (إِلَى يَوْمِ الْوَقْتِ الْمَعْلُومِ) وَقْت النَّفْخَة الأُولَى (قال فبعزتك لأغوينهم أجمعين) (إِلَّا عِبَادَكَ مِنْهُمُ الْمُخْلَصِينَ) أَيْ المُؤْمِنِينَ (قَالَ فَالْحَقُّ وَالْحَقَّ أَقُولُ) بِنَصْبِهِمَا وَرَفْع الأَوَّل وَنَصْب الثاني فَنَصْبُهُ بِالْفِعْلِ بَعْده وَنَصْب الأَوَّل قِيلَ بِالْفِعْلِ المَذْكُور وَقِيلَ عَلَى المَصْدَر أَيْ أَحِقّ الْحَقّ وَقِيلَ عَلَى نَزْع حَرْف الْقَسَم وَرَفْعه عَلَى أَنَّهُ مبتدأ مَحْذُوف الخَبَر أَيْ فَالْحَقّ مِنِّي وَقِيلَ فَالْحَقّ قَسَمِي وَجَوَاب الْقَسَم (لأملأن جهنم منك) بذريتك (وممن تبعك منهم) اي الناس (أجمعين) (قُلْ مَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ) عَلَى تَبْلِيغ الرِّسَالَة (مِنْ أَجْرٍ) جُعْل (وَمَا أَنَا مِنَ الْمُتَكَلِّفِينَ) المُتَقَوِّلِينَ القرآن مِن تِلْقَاء نَفْسِي (إِنْ هُوَ) أي مَا القرآن (إِلَّا ذِكْرٌ) عِظَة (لِلْعَالَمِينَ) لِلإِنْسِ

وَالْجِنّ وَالْعُقَلاء دُون الْمَلَائِكَة (وَلَتَعْلَمُنَّ) يَا كُفَّار مَكَّة (نَبَأَهُ) خَبَر صِدْقه (بَعْدَ حِينٍ) أَيْ يَوْم الْقِيَامَة وَعَلِمَ بِمَعْنَى عَرَفَ وَاللَّام قَبْلَهَا لَام قَسَم مُقَدَّر أَيْ وَاللّٰه

**ترجمه.** اې محمد ﷺ كفار مكه ته اووايئ چې ځه صرف خبرونكې يم د اور نه ويرونكې يم په خپل مخلوق باندې د غالب واحد نه سوا بل څوک د عبادت لائق نشته، كوم چې د اسمانونو او د زمكې او څه چې د دې په مينځ كښې دى، پروردگار دې، كوم چې غالب دې، په خپل كار كښې او بخښونكې دې خپلو دوستانو لره دوى ته اووايه چې دا ډير لوې خبر دې د څه نه چې تاسو مخ اړوئ، يعنى قرآن د كوم چې ما تاسو ته خبر دركړو او ما په دې كښې ستاسو د پاره هغه خبر راوړې دې چې د هغې علم بغير د وحى نه نه كيږى، او هغه خبر ماكان لى من علم بالملأ الأعلى إذ يختصمون دې، ما ته د ملاء أعلىٰ يعنى د فرشتو د عالم علم نه وو، چې كله فرشتو د آدم عليه السلام په شان كښې خبرې كولې او چې كله الله تعالى اوفرمائيل چې ځه په زمكه باندې خپل خليفه جوړول غواړم، ما ته خو صرف هم دا وحى كيږى چې ځه خو صفا صفا خبرونكې يم، د هغه وخت تذكره اوكړه چې كله ستا رب فرشتو ته ارشاد اوكړو چې ځه د خاورې نه يو انسان پيدا كولو والا يم، او هغه ادم دې نو چې كله هغه ځه برابر كړم يعنى مكمل كړم او په هغې كښې خپل روح جارى كړم او هغه ژوندې شى، او د روح نسبت د الله طرف ته د شرافت په طور سره دى، او روح يو نازک لطيف جسم دې، د روح د انسان په بدن كښې خوريدو(د سرايت كولو)، د وجې نه انسان ژوندې شى، نو تاسو ټول د هغه مخكښې په سجده شئ، يعنى په خكته كيدو سره ورته د سلامئ سجده اوكړئ، چنانچه ټولو فرشتو سجده اوكړه په دې كښې دوه تاكيدونه دى خو ابليس اونكړه، او هغه د پيريانو مشر نيكه وو، د فرشتو په مينځ كښې به اوسيدلو هغه تكبر اوكړو، او هغه د الله په علم كښې د كافرانو نه وو، الله تعالى اوفرمائيل اې ابليس ته هغه چا ته د سجدې كولو نه چا منع كړې څوک چې ما په خپل لاس سره بغير د واسطې نه پيدا كړو، ما دده د تخليق كفالت اوكړو او دا د آدم عليه السلام دويم اعزاز وو، گنى د هر مخلوق كفالت هم الله تعالى كوى، يا ته په غرور كښې راغلې؟ يا ته د اوچتې مرتبې والو نه ئې؟ يعنى د تكبر كوونكو نه ئې، نو تا د متكبرينو نه د كيدو د وجې نه د سجدې نه انكار اوكړو، نو شيطان جواب وركړو، چې ځه دده نه ښه يم ځكه چې تا ما لره د اور نه پيدا كړم او دې د ې خاورې نه پيدا كړو، ارشاد اوشو ته دې ځاې نه د جنت نه، او وئيلې شوى دى چې د اسمانونو نه اوځه، ته لعنتى شوې او په تا باندې به د قيامت د ورځې پورې ځما غصه وى، وې وئيل چې اې ځما پروردگاره د خلقو د دوباره پاسيدلو ورځې پورې ما ته مهلت راكړه، الله تعالى اوفرمائيل چې تا ته مهلت دركړې شوې دې، د يو متعين وخت پورې يعنى د اولنئ شپيلئ وخت پورې وې وئيل چې ما ته ستا د عزت قسم ځه به دا ټول گمراه كړم سوا ستا د هغه بندگانو نه چې د خوښ كړې شوو نه وى، يعنى مومنان ونې فرمائيل چې رشتيا خو دادى او ځه رشتيا وايم، د

دوارو په نصب سره، او د اول په رفع سره او دويم په نصب سره، ددې نصب بعدوالا فعل د وجې دې، او د اول په نصب وئيلې شوې دې، چې د فعل مذكور د وجې نه دې، او وئيلې شوې دى چې د مصدريت د وجې نه دې، أى أحق الحق او وئيلې شوى دى چې صرف د قسم د حذف كيدو د وجې نه منصوب دې، او رفع ځكه ده چې هغه مبتدأ محذوف الخبر دې، أى فالحق منى او وئيلې شوى دى فالحق قسمى، او جواب قسم لأملأن جهنم الخ دى، جهنم به ستا نه او ستا د اولاد نه ډک کړم، او د هغه ټولو خلقو نه چې ستا اتباع کوى، او وايه چې څه په دې پيغام رسولو باندې ستاسو نه څه بدله نه غواړم، او نه څه د قرآن په باره کښې تکلف کونکې يم، يعنى د ځان د طرف نه څه خبره کونکې نه يم، دا قرآن د ټولې دنيا د پاره يعنى د جن او انس او ټول عقل لرونكو د پاره نصيحت دې، نه چې ملائكو د پاره، اې مكې كافرانو! ددې خبر رشتينوالى باندې به څه موده پس يعنى د قيامت په ورځ پوهه شى، او عَلِمَ په معنى ۰ عَرَفَ دې، او ددې په شروع کښې لام د قسم مقدر دې، أى والله (لَتَعْلَمُنَّ)

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله**: قل إنما أنا منذر: حضور ﷺ زيرې وركونكې هم دې او ويرولو والا هم دې، حالانكه دلته دوى د پاره صرف صفت د نذير استعمال شوې دې، ددې څه وجه ده، ؟
ددې جواب دادې چې چونكه مخاطب مشركين دى او د هغوى سره مناسب د حضور ﷺ نذير كيدل دى، ځكه دلته صفت د نذير خاص كړې شوې دې إنما أنا منذر كښې حصر اضافى دې نه چې حقيقى أى إنما أنا منذر لا ساحر ولا شاعر ولا كاهن وغير ذلك په دې حصر سره د هغه صفاتو نفى كولل مقصود دى كوم چې به كافرانو د حضور ﷺ د پاره ثابتول، نه چې د إنذار نه علاوه ټولو صفاتو لره.

**قوله**: إنما أنا منذر: تر د العزيز الغفار پورې د (قل) مقوله ده، په دې مقوله کښې د الله تعالى پنځه صفات بيان شوى دى، چې ټول په توحيد باندې دلالت كوى.
①الواحد ②القهار ③رب السموات والأرض وما بينهما ④العزيز، ⑤الغفار، (د تفصيل د پاره روح المعانى اوګورئ)

**قوله**: قل هو نبأ عظيم: د قل په تكرار سره دې خبرې ته اشاره كول دى چې مامور به جليل القدر او اوچت شان والا دې، دې طرف ته امر اولاً اوثانياً توجه كول ضرورى دى.

**قوله**: القرآن: دا په هو نبأ عظيم کښې د هو تفسير دې، يعنى قرآن عظيم الشان كثير الفائده خبر دې، چې د هغې ما تاسو ته خبر دركړې دې، او په هغې کښې ما داسې خبر راوړې دې چې د وحى نه بغير نه معلوميږى، لهذا دې سره ځما د رسالت دعوى ثابتيږى.

**قوله**: وهوبعا كان لي من علم: مفسر علام د (هو) مرجع ما كان لي من علم الغ گرخولي دي خو دا صحيح نه ده، بلكه ددي مرجع "إني جاعل في الأرض خليفة" الغ ده، البته دا ونيلي شي، چي ما كان لي من علم بالملأ الأعلى ئي د ما لا يعلم د تمهيد په طور سره راوړي وي، مطلب دادي چي هغه چه د هغي علم د وحي نه بغير پته نه لګی هغه دالله تعالى هغه فرمان دي چي په هغي كښې الله تعالى ملأ اعلى كښې فرشتو ته وئيلى وو، إني جاعل في الأرض خليفة او په دې د فرشتو دا جواب أتجعل فيها من يفسد فيها دغه شان دالله تعالى د دې ارشاد قال يا إبليس ما منعك أن تسجد لما خلقتُ بيدي په جواب كښې د ابليس أنا خير منه خلقتني من نار وخلقته من طين وئيل مذكوره خبري او سوال او جواب دا هغه خبري دي، كومې چې په ملأ اعلى كښې د الله تعالى او دفرشتو په مينځ كښې شوي وي، ددي پتې او د ملأ أعلى د خبرو خبر ورکول د وحي نه علاوه نشي كيدلي، كوم چې د هغوى ﷺ د نبوت ناقابل ترديد ثبوت دي.

**قوله**: ألآن: ددې كلمې په اضافې سره د مفسر علام مقصد د يو سوال جواب ورکول دي، سوال دادې چي من العالين معنى من المتكبرين ده، او د أستكبرت معنى هم د تكبر كولو ده، لهذا تكرار لازميږي.

د جواب حاصل دادې چي أتركت السجود لاستكبارك الحادث أم لاستكبارك القديم المستمر، مطلب دا چې ادم عليه السلام ته د سجدې نه انكار ستا د پوخ او زوړ تكبر د وجې نه دې يا د نوى تكبر د وجې نه، لهذا تكرار نه لازميږي.

**سوال**: رجيم، دمطرود په معنى كښې دي، ځنګه چې شارح ظاهره كړې ده او مخكښې وئيلې شوې دى إن عليك لعنتي إلى يوم الدين د لعنت معنى هم د طرد ده، لهذا دلته هم تكرار لازميږي.

**جواب**: د رجيم معنى طرد من الجنة أو السماء ده، او د لعنت معنى طرد من الرحمة ده، لهذا تكرار نشته.

**قوله**: قال فالحق والحق اقول: د مخكښې جملو په شان دا جمله هم مستانفه ده، او فاء استينافيه ده، مفسر علام د مذكوره جملې دوه تركيبونه كړي دى، ① الحق دواړه ځايونو كښې منصوب ② اول مرفوع، دويم منصوب. دويم د پاره ناصب، أقول فعل مؤخر دې، او د اول ناصب بعضو وئيلي دى چه ددې ناصب هم أقول فعل مؤخر دي، او بعضو وئيلى دى چې د مصدريت د وجه نه منصوب دې، أي أحق الحق او بعضو وئيلي دى چې د حرف قسم د وجه نه منصوب دي، أي أقسم بالحق، لوحرف قسم دواړه حذف شوى دى، چې د

هغې د وجې نه حق منصوب شو، خلاصه دا چې د دویم دنصب صرف یوه وجه ده، او هغه (أقول) فعل مؤخر دې او د الحق اول د منصوب کیدو درې وجې دی ① یو خو د فعل مؤخر یعنی (أقول) د وجې نه ②دویم د حرف قسم حذف کیدو د وجې نه ③دریم د مصدریت د وجې نه، د اول د رفع دوه وجو نه دې ①مبتدأ کیدو د وجې نه مرفوع ای الحق منی ②د خبر کیدو د وجې نه، ای انا الحق، د قسم په صورت کښې به جواب قسم لأملأن جهنم محذوف وی.

جمهورو الحق دواړه ځایونو کښې منصوب وئیلې دې، د نصب وجه د "مقسم به" نه حرف خافض حذف دې، تقدیری عبارت دادې أقسم بالحق او حرف جر دواړه حذف کړې شول، دې وجې نه الحق منصوب شو یعنی منصوب بنزع الخافض، بعضې حضراتو فعل اغراء (آماده کول) په وجه منصوب وئیلې دې أی الزموا الحق الزموا الحق، یا دواړه د مصدریت د وجې نه منصوب دې، مصدر مخکښې جملې لأملئن تاکید د پاره دې، أی أحق الحق، او اعمش او اعصم وغیره اول په رفع سره او دویم په نصب سره وئیلې دې، داول رفع مبتدأ کیدو په صورت کښې به خبر یا خو محذوف وی لکه فالحق منی، یا به ذکر وی، او هغه لأملأن جهنم دې یا به فالحق د مبتدأ کیدو د وجه نه مرفوع وی، او هغه مبتدأ (أنا) ده، مثلا، او د دویم د نصب روستو ذکر شوې (أقول) فعل د وجه وی، انا أقول الحق په دې صورت کښې به د فعل تکرار تاکید د وجې وی، او فراء فالحق د حقاً مصدر په معنی کیدو د وجه نه منصوب وئیلې دې، أی حقاً لأملأن جهنم (فتح القدیر هو کالی ملخصا)

**قوله**: المتقولین: تقوّل (تفعل) بناوټی خبرې کول، د دروغو نه کار اخستل،

**قوله**: دون الملائکة: قرآن د ټولو عالمو د پاره نصیحت دې، په عالم کښې انس، جن، ملائکه ټول داخل دی، خو دلته ئې ملائکو لره په دون الملائکه وئیلوسره د عالم نه خارج کړل، ځکه چې قرآن د اهل عالم د پاره ذکر او نصیحت دې او ذکر او نصیحت او ویرول د جن او انس سره مناسب دی، د ملائکو سره نه دی مناسب.

**قوله**: علم: د مفسر علام ددې عبارت نه مقصد د یو سوال جواب ورکول دی
سوال دادې علم متعدی په دوو مفعولو سره وی، دلته متعدی په یو مفعول سره دې، ځکه چې د تعلمن صرف یو مفعول ذکر دې او هغه نبأ دې؟
د جواب حاصل دادې چې عَلِم په معنی د عَرَفَ دې، په ولَتَعلَمُنّ کښې لام قسمیه دې، او قسم والله محذوف دې بعضې حضراتو وئیلې دی چې عَلِمَ په خپل باب باندې دې، یعنی متعدی په دوو مفعولو سره، او دویم مفعول بعد حین دې.

## [٣٨] سورة الزمر

**سورة الزمر مكية الا قل يا عبادي الذين اسرفوا على انفسهم (الاية) فمدنية وهي خمس وسبعون اية**

سورة الزمر مكى دي، سوا د آيت: قل يا عبادي الذين اسرفوا على انفسهم، نه چه دا مدنى دي، اوپه دې كښې پنځه اويا آيتونه دي.

**[اياتونه: ١-٩]**

بسم الله الرحمن الرحيم (تنزيل الكتاب) القرآن مبتدأ (من الله) خبره (الْعَزِيزِ) في مُلكه (الْحَكِيمِ) في صُنعه (إِنَّا أَنزَلْنَا إِلَيْكَ) يَا مُحَمَّد (الْكِتَابَ بِالْحَقِّ) مُتَعَلِّق بأنزل (فَاعْبُدِ اللَّهَ مُخْلِصًا لَّهُ الدِّينَ) مِنَ الشِّرْك أَيْ مُوَحِّدًا لَهُ (أَلَا لِلَّهِ الدِّينُ الْخَالِصُ) لَا يَسْتَحِقُّهُ غَيْره (والذين اتخذوا من دونه) الأَصْنَام (أَوْلِيَاءَ) وَهُمْ كُفَّار مَكَّة قَالُوا (مَا نَعْبُدُهُمْ إِلَّا لِيُقَرِّبُونَا إِلَى اللَّهِ زُلْفَى) قُرْبَى مَصْدَر بِمَعْنَى تَقْرِيبًا (إِنَّ اللَّهَ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ) وَبَيْن الْمُسْلِمِينَ (فِي مَا هُمْ فِيهِ يَخْتَلِفُونَ) مِنْ أَمْر الدِّين فَيُدْخِل الْمُؤْمِنِينَ الْجَنَّة وَالْكَافِرِينَ النَّار (إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي مَنْ هُوَ كَاذِبٌ) فِي نِسْبَة الْوَلَد إِلَيْهِ (كَفَّارٌ) بِعِبَادَتِهِ غير الله (لَوْ أَرَادَ اللَّهُ أَنْ يَتَّخِذَ وَلَدًا) كَمَا قَالُوا (اتَّخَذَ الرَّحْمَنُ وَلَدًا) (لَاصْطَفَى مِمَّا يَخْلُقُ مَا يَشَاءُ) وَاتَّخَذَهُ وَلَدًا غَيْر مَنْ قَالُوا من الملائكة بنات الله وعزير بن الله والمسيح بن الله (سُبْحَانَهُ) تَنْزِيهًا لَهُ عَنِ اتِّخَاذ الْوَلَد (هو الله الواحد القهار) لخلقه (خلق السماوات وَالْأَرْضَ بِالْحَقِّ) مُتَعَلِّق بخلق (يُكَوِّرُ) يُدْخِل (اللَّيْلَ عَلَى النَّهَارِ) فَيَزِيد (وَيُكَوِّرُ النَّهَارَ) يُدْخِلهُ (عَلَى اللَّيْلِ) فَيَزِيد (وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ كُلٌّ يَجْرِي) فِي فُلْكه (لِأَجَلٍ مُسَمًّى) لِيَوْم الْقِيَامَة (أَلَا هُوَ الْعَزِيزُ) الْغَالِب عَلَى أَمْره الْمُنْتَقِم مِنْ أَعْدَائِهِ (الْغَفَّارُ) لِأَوْلِيَائِهِ (خَلَقَكُمْ مِنْ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ) أَيْ آدَم (ثُمَّ جَعَلَ مِنْهَا زَوْجَهَا) حَوَّاء (وَأَنْزَلَ لَكُمْ مِنَ الْأَنْعَامِ) الإبل والبقر والغنم والضان وَالْمَعز (ثَمَانِيَةَ أَزْوَاجٍ) مِنْ كُلّ زَوْجَانِ ذَكَر وَأُنْثَى كَمَا بَيَّنَ فِي سُورَة الْأَنْعَام (يَخْلُقُكُمْ فِي بُطُونِ أُمَّهَاتِكُمْ خَلْقًا مِنْ بَعْدِ خَلْقٍ) أَيْ نُطَفًا ثُمَّ عُلَقًا ثُمَّ مُضَغًا (فِي ظُلُمَاتٍ ثَلَاثٍ) هِيَ ظُلْمَة الْبَطْن وَظُلْمَة الرَّحِم وَظُلْمَة الْمَشِيمَة (ذَلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمْ لَهُ الْمُلْكُ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ فَأَنَّى تُصْرَفُونَ) عَنْ عِبَادَته إِلَى عِبَادَة غَيْره (إِنْ تَكْفُرُوا فَإِنَّ اللَّهَ غَنِيٌّ عَنْكُمْ وَلَا يَرْضَى لِعِبَادِهِ الْكُفْرَ) وَإِنْ أَرَادَهُ مِنْ بَعْضهمْ (وَإِنْ تَشْكُرُوا) اللَّه فَتُؤْمِنُوا (يَرْضَهُ) بِسُكُونِ الْهَاء وبضمها مَعَ إِشْبَاع وَدُونه أَيِ الشُّكْر (لَكُمْ وَلَا تَزِرُ) نَفْس (وَازِرَةٌ وِزْرَ) نَفْس (أُخْرَى) أَيْ لَا تَحْمِلهُ (ثُمَّ إِلَى رَبِّكُمْ مَرْجِعُكُمْ فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ إِنَّهُ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ) بِمَا فِي الْقُلُوب (وَإِذَا مَسَّ الْإِنْسَانَ) أَيِ الْكَافِرَ (ضُرٌّ دَعَا رَبَّهُ) تَضَرَّعَ (مُنِيبًا) رَاجِعًا (إِلَيْهِ ثُمَّ إِذَا خَوَّلَهُ نِعْمَةً) أَعْطَاهُ إِنْعَامًا (مِنْهُ نَسِيَ) تَرَكَ (ما كان يدعوا) يتضرع (إليه من قبل) وهو الله فما في موضع من (وَجَعَلَ لِلَّهِ أَنْدَادًا) شُرَكَاء (لِيُضِلَّ) بِفَتْحِ الْيَاء وَضَمِّهَا (عَنْ سَبِيلِهِ) دِين الْإِسْلَام (قُلْ تَمَتَّعْ بكفرك قليلا) بقية اجلك (إنك من أصحاب النار) (أمن) بتخفيف الميم (هُوَ قَانِتٌ) قَائِم بِوَظَائِف الطَّاعَات (آنَاءَ اللَّيْلِ) سَاعَاته (سَاجِدًا وَقَائِمًا) فِي الصَّلَاة (يَحْذَرُ الْآخِرَةَ) اي يخاف عذابها (ويرجوا رَحْمَةَ) جنة (رَبِّهِ) كَمَنْ هُوَ عَاصٍ بِالْكُفْرِ او غيره وَفِي قِرَاءَة أَمْ مَنْ فَأَمْ بِمَعْنَى بَلْ والهمزة (قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الَّذِينَ

يَعْلَمُونَ وَالَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ، أي لا يَسْتَوِيَانِ كَمَا لا يَسْتَوِي العالم والجاهل ﴿إنما يتذكر﴾ يتعظ ﴿أولوا الْأَلْبَابِ﴾ أَصْحَابُ الْعُقُول

**ترجمه**: شروع کوم د الله په نوم سره چې ډير مهربانه او ډير رحم کولو والا دې، دا کتاب يعنې قرآن، په خپل بادشاهئ کښې د غالب (په خپل صنعت کښې) حکمت والا الله د طرف نه نازل شوې دې، القرآن مبتدأ، او من الله ددې خبر، اې محمد ﷺ يقينا مونږ دې کتاب لره ستا طرف ته په حق سره نازل کړې دې بالحق أنزلناه سره متعلق دې نو تاسو د شرک نه پاکې عقيدې سره د يعنې توحيد عقيدې ساتلو سره د هغه بندګي کوئ ياد ساتئ چې عبادت چې خاص د الله د پاره وي نو هغه ددې لائق دې د هغه نه علاوه نور څوک د دې مستحق نشته، او کومو خلقو چې هغه نه علاوه د بتانو لره دوستان جوړ کړې دی او هغه د مکې کافران دی او هغوی وائی چې مونږ د دوی عبادت صرف د دې پاره کوو چې مونږ الله ته نزدې کړی قربی تقريبا، په معنى د مصدر کښې دې، په کوم ديني کار باره کښې چې دوی اختلاف کوی الله تعالی بهٔ ددوی او د مسلمانانو په مينځ کښې عملی فيصله اوکړی چې مومنانو لره به جنت ته او کافرانو لره به دوزخ ته داخل کړی هغه طرف ته د ولد په نسبت کولو کښې دروغژن به او د غير الله عبادت کولو سره ناشکره کس ته الله تعالى لار نه ښائی، که د الله تعالى اراده د اولاد وه څنګه چې کافران وائی، چه د الله اولاد دې نو په خپل مخلوق کښې چه ئې څوک غوښتل منتخب کول به ئې، (يعنی) هغه به ئې اولاد جوړولې، دهغوی نه علاوه چا باره کښې چه کافران وائی (يعنی داچه) فرشتې د الله لوربانې دی او عزير او عيسى ﷺ د هغه خامن دی نو هغه د دې نه پاک دې، يعنی اولاد نيولو نه هغه پاک دې، هغه خو داسې الله دې چې يو دې په خپل مخلوق باندې زبردست دې، هغه زمکه او اسمان په حکمت سره پيدا کړل، بالحق د خلق سره متعلق دې او هغه شپې لره په ورځ کښې داخلوی چې هغې سره ورځ لويه شی، او ورځ لره په شپه کښې داخلوی نو شپه لويه شی هغه نمر او سپوږمئ لره په کار باندې لګولې دی هر يو به په خپل محور کښې د وخت مقرر پورې يعنې د قيامت ورځې پورې چليږی، يقين اوساته هم هغه په خپل کارونو باندې غالب دې، او د خپل دشمنانو نه انتقام اخستونکې دې، او خپل دوستانو لره بخښونکې دې، هغه تاسو خلقو لره د يو بدن نه يعنې د ادم ﷺ نه پيدا کړئ، بيا هم د هغه نه ئې د هغه جوړا حواء ﷺ پيدا کړه، او ستاسو د پاره ئې په څناورو کښې يعنې اوښه، غوا، چيلئ، ګډه وغيره کښې اته جوړې پيدا کړې، د هر نر او د مادې جوړه، څنګه چې په سورة انعام کښې بيان کړې شوې دی، هغه تاسو لره ستاسو د مينو په ګيډو کښې په درجه درجه جوړوی، يعنې اول نطفه، بيا علقه، بيا مضغه، په درې تيارو کښې هغه د ګيډې تياره، د رحم تياره، او د جالئ تياره ده، دا الله تعالى دې د ستاسو رب او هم د دهٔ بادشاهی ده، د هغه نه

سوا بل څوک د عبادت لائق نشته، نو د هغه بندګی پرېښودلو سره د نورو بندګئ کولو سره کوم طرف ته واوړيدې که تاسو کفر کوئ نو ياد ساتئ چې الله تعالى ستاسو محتاج نه دې، هغه د خپل بندګانو کفر نه خوښوی، اګرچې په دې کښې د بعضو د کفر اراده اوکړی، او که تاسو د الله شکر ويستلو سره ايمان راوړئ نو هغه دې لره يعنی ستاسو شکر لره خوښوی، په يَرضَه، کښې د هاء په سکون او ضمې سره، سره د اشباع نه، او څوک د چا پيټې اوچتولې نشی بيا تاسو لره خپل پروردګار طرف ته تلل دی، نو هغه به تاسو ته ستاسو ټول عملونه ښکاره کړی کوم چې تاسو کول، يقينا هغه دزړه د خبرو نه خبردار دې، او انسان کافر ته چې کله څه تکليف اورسی، نو بيا دير په رجوع شی او په عاجزئ سره خپل رب ته اوازونه کوی، بيا چې کله الله تعالى ورته د خپل طرف نه نعمت يعنی انعام ورکړی نو ددې نه مخکښې چې هغه کومه دعا کوله هغه بالکل هيره کړی، او هغه الله دې، او (ما) د (من) په ځائې دې، او د الله تعالى سره شريک جوړول شروع کړی، چې ددې لارې نه يعنی د دين اسلام نه واوړی، يا نور خلق واړوی، د (ی) په فتحې او ضمې سره، تاسو ورته اوفرمايئ چې د کفر د بهار نه څو ورځې نوره مزې واخله، يعنی په خپل باقی ژوند کښې، بيا آخر به ته ددوزخيانو نه يئ، کوم کس چې د شپې په وختونو کښې تابعدارئ کښې مشغوليدو سره ويرېږی، او د خپل پروردګار د رحمت (د جنت په) اميد هم کوی (امن) کښې د ميم په تخفيف سره، د هغه سړی په شان کيدې شی چې هغه دکفر وغيره په ذريعه سره نافرمانی کولو والا وی، ، او په يو قراءت کښې (ام من) دې، او (ام) په معنی د (بل) او همزه دې، تاسو ورته اووايئ چې څرته علم والا او بې علم برابريدې شی، يعنی برابريدې نشی، څنګه چې عالِم او جاهل نشی برابريدلې، يَقينا نصيحت هغه څوک حاصلوی کوم چې عقلمند وی.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

ددې سورت نوم سورة زمر دې، زمر د زمرة جمع ده، او ددې معنی د جماعت ده، او دې سورت ته سورة غُرَف هم وئيلې شی دا دواړه کلمې په دې سورت کښې راغلې دی، په دې وجه دا د اسم الکل باسم الجزء د قبيلې نه دې، زمر کلمه (وسيق الذين كفروا الى جهنم زمرا) (وسيق الذين اتقوا ربهم الى الجنة زمرا) کښې استعمال شوې ده، او دغُرَف کلمه "لهم غُرَف من فوقها غُرَف" کښې استعمال شوې ده، دا پوره سورت مکی دې، سوا د درې آيتونو نه، ياعبادي الذين أسرفوا على أنفسهم نه درې آيتونو پورې مدنی دی، او بعضو د دې ځاې نه تر د اوو آيتونو پورې مدنی وئيلی دی.

**قوله:** تنزيل الكتاب: د هو مبتدأ محذوف د خبر د وجې نه مرفوع دې، أی هو تنزيل الكتاب او وئيلې شوی دی چې د مبتدأ کيدو د وجې نه مرفوع دې، او کائن جار مجرور

سره متعلق کيدو سره د مبتدأ خبر مقدر دې، أي للايل كائن من الله او فراء او کسائی د فعل مقدر د وجې منصوب هم وئيلې دې، أي انبعوا للايل الكتاب يا الزموا للايل الكتاب او فراء د إغراء په طور نصب هم جائز وئيلې دې، أي الزموا للايل الكتاب (فتح القدير هو كاني)

**قوله**: مُخْلِصاً: دا د عبد د ضمير نه حال دې،

**قوله**: زلفى: دا د يقربون مصدر بغير لفظه دې، په اصل کښې يزلفون زلفى وو، د انبتكم من الأرض نباتا په شان مصدر بغير لفظه دې.

**قوله**: يكور تكويرا: په معنى د اللف واللئ په معنى د راغوندولو، يقال كار العمامة على رأسه وكورها، پټکې د سر نه تاوول.

**قوله**: وان أراده من بعضهم: يعنى الله تعالى دخپل بنده په کفر نه راضى نه دې، اګرچې د کفر وجود هم د الله په ارادې سره دې، ځکه چې د الله د ارادې او خوښې نه بغير د يو څيز وجود نشى کيدې، او د ارادې سره رضا لازم نه ده، لکه په ناچارئ کښې د يو کار کولو اراده خو وى، خو رضامندى پرې نه وى.

**قوله**: يرضه: د (ه) ضمير مرجع كفر دې، که تاسو د الله شکر اوباسئ نو هغه به ستاسو په شکر خوشحاله شى، يرضه په اصل کښې يرضاه وو، د شرط جزاء کيدو په وجه الف ساقط شو، يرضه کښې درې قراءتونه دى ضمه مع إشباع، يعنى رانښکلو سره، او ضمه بغير د إشباع نه، او د ها په سکون سره.

**قوله**: أي الشكر: ددې اضافې مقصد د يرضه د ضمير مفعول مرجع متعين کول دى، او د يرضه فاعل الله دې.

**قوله**: خوله: د تخويل(تفعيل) نه ماضى واحد مذكر غائب، هغه ته ئې ورکړو، مالک ئې جوړ کړو، د (منه) ضمير الله تعالى ته راجع دې.

**قوله**: ترك: د نسى تفسير په ترک کښې ئې کولو سره اشاره اوکړه چې دلته د نسيان لازم معنى مراد ده، ترک د نسيان سره لازم دې، او د لازم معنى مراد اخستلو ضرورت ځکه راغلو چې په نسيان باندې نيول نشته، رفع عن أمتي الخطأ والنسيان حديث مشهور دې.

**قوله**: ما كان يدعوا إليه من قبل: په (ما) کښې درې وجې جائز دى.

① ما موصوله، په معنى د الذى، او د الذى نه مراد ضُرّ(تکليف)، أي نسي الضر الذي كانوا يدعوا إلى كشفه يعنى زمونږ په ده باندې د انعام کولو او د ده نه تکليف لرې کولو نه پس هغه دا تکليف هير کړو د کوم د پاره چې ئې دعا کوله.

②ما په معنی د الذی، مراد تري نه الله تعالی، أی لمن الذی كان يضرع إليه يعنی تكليف لرې كولو نه پس ئې هغه ذات هير كړو چې تا ئې د تكليف لرې كولو دپاره دعا كړې وه، خو دادهغوی په نيز باندې صحيح ده، ځوک چه د(ما) اطلاق د ذوی العقول دپاره جائز ګڼړی.
③ما مصدريه وی، ای لسی كونه داعيا يعنی د مصيبت د تيريدو نه پس هغه دا هم هير كړل چې څه وخت غوښتونكې ووم،

**قوله**: من قبل أی من قبل تحويل النعمة

**قوله**: وهو الله: مفسر علام په دې عبارت سره اشاره اوكړه چې د دهٔ په نيز دلته دا دويم صورت خوښ دې.

**قوله**: قانت: د قنوت نه اسم فاعل، د اطاعت ذمه واری ادا كونكې، (إعراب القرآن خشوع خضوع كونكې، اطاعت كونكې.

**قوله**: اناء: دا د (أنی) جمع ده، په معنی د وختونو

**قوله**: أمن: (ام) متصله هم كيدې شی، ددې مقابل محذوف دې، تقديری عبارت دادې الكافر خير أم الذی هو قانت همزه په (من) موصوله باندې داخلې ده، او ميم په ميم كښې مدغم كړې شوې دې، يا (ام) منقطع دې، ددې تقدير به په (بل) او همزې سره وی، أی بل أمن هو قانت كغيره؟ او په تخفيف سره هم وئيلې شوې دې په دې صورت كښې همزه به د استفهام انكاری به وی.

**قوله**: كمن هو عاص بكفره وغيره: په دې سره د شارح مقصد د أمن هو قانت معادل بيانول دی.

[اياتونه: ١٠ - ٢١]

(قُلْ يَاعِبَادِ الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا رَبَّكُمْ) اَيْ عَذَابه بِاَنْ تُطِيعُوهُ (لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا فِي هَذِهِ الدُّنْيَا) بِالطَّاعَةِ (حَسَنَةٌ) هِيَ الْجَنَّة (وَأَرْضُ اللَّهِ وَاسِعَةٌ) فَهَاجِرُوا اِلَيْهَا مِنْ بَيْنِ الْكُفَّار وَمُشَاهَدَة الْمُنْكَرَات (إِنَّمَا يُوَفَّى الصَّابِرُونَ) عَلَى الطَّاعَة وَمَا يُبْتَلَوْنَ بِهٖ (أَجْرَهُمْ بِغَيْرِ حِسَابٍ) بِغَيْرِ مِكْيَال وَلَا مِيزَان (قُلْ إِنِّي أُمِرْتُ أَنْ أَعْبُدَ اللَّهَ مُخْلِصًا لَهُ الدِّينَ) مِنَ الشِّرْك (وَأُمِرْتُ لِأَنْ) اَيْ بِاَنْ (أَكُونَ أَوَّلَ الْمُسْلِمِينَ) من هذه الامة (قل إني أخاف إن عصيت ربي عذاب يوم عظيم) (قُلِ اللَّهَ أَعْبُدُ مُخْلِصًا لَهُ دِينِي) مِنَ الشرك (فَاعْبُدُوا مَا شِئْتُمْ مِنْ دُونِهِ) غَيْره فِيهِ تَهْدِيد لَهُمْ وَاِيذَان بِاَنَّهُمْ لَا يَعْبُدُونَ الله تَعَالٰى (قُلْ إِنَّ الْخَاسِرِينَ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنْفُسَهُمْ وَأَهْلِيهِمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ) بِتَخْلِيدِ الْاَنْفُس فِي النَّار وَبِعَدَمِ وُصُولهمْ اِلَى الْحُور الْمُعَدَّة لَهُمْ فِي الْجَنَّة لَوْ آمَنُوا (أَلَا ذَٰلِكَ هُوَ الْخُسْرَانُ الْمُبِينُ) البين (لَهُمْ مِنْ فَوْقِهِمْ ظُلَلٌ) طِبَاق (مِنَ النَّارِ وَمِنْ تَحْتِهِمْ ظُلَلٌ) مِنَ النَّار (ذَٰلِكَ يُخَوِّفُ اللَّهُ بِهِ عِبَادَهُ) اَيْ الْمُؤْمِنِينَ لِيَتَّقُوهُ يَدُلّ عليه (ياعباد فاتقون) (وَالَّذِينَ اجْتَنَبُوا الطَّاغُوتَ) الْاَوْثَان (أَنْ يَعْبُدُوهَا

﴿وَأَنَابُوا﴾ اقبلوا ﴿إِلَى اللَّهِ لَهُمُ الْبُشْرَىٰ﴾ بالجنة ﴿فَبَشِّرْ عِبَادِ﴾ ﴿الَّذِينَ يَسْتَمِعُونَ الْقَوْلَ فَيَتَّبِعُونَ أَحْسَنَهُ﴾ وَهُوَ مَا فِيهِ صَلَاحهم ﴿أُولَٰئِكَ الَّذِينَ هَدَاهُمُ اللَّهُ وَأُولَٰئِكَ هُمْ أُولُو الْأَلْبَابِ﴾ اصحاب العقول ﴿أَفَمَنْ حَقَّ عَلَيْهِ كَلِمَةُ الْعَذَابِ﴾ اي ﴿لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ﴾ الآية ﴿أَفَأَنْتَ تُنْقِذُ﴾ تخرج ﴿مَنْ فِي النَّارِ﴾ جواب الشرط واقيم فيه الظاهر مقام المضمر والهمزة للإنكار والمعنى لا تقدر على هدايته فتنقذه من النار ﴿لَٰكِنِ الَّذِينَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ﴾ بان اطاعوه ﴿لَهُمْ غُرَفٌ مِنْ فَوْقِهَا غُرَفٌ مَبْنِيَّةٌ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ﴾ اي من تحت الغرف الفوقانية والتحتانية ﴿وَعْدَ اللَّهِ﴾ منصوب بفعله المقدر ﴿لَا يُخْلِفُ اللَّهُ الْمِيعَادَ﴾ وعده ﴿أَلَمْ تَرَ﴾ تعلم ﴿أَنَّ اللَّهَ أَنْزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَسَلَكَهُ يَنَابِيعَ﴾ ادخله امكنة نبع ﴿فِي الْأَرْضِ ثُمَّ يُخْرِجُ بِهِ زَرْعًا مُخْتَلِفًا أَلْوَانُهُ ثُمَّ يَهِيجُ﴾ ييبس ﴿فَتَرَاهُ﴾ بعد الخضرة مثلا ﴿مُصْفَرًّا ثُمَّ يَجْعَلُهُ حُطَامًا﴾ فتاتا ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَذِكْرَىٰ﴾ تذكيرا ﴿لِأُولِي الْأَلْبَابِ﴾ يتذكرون به لدلالته على وحدانية الله تعالى وقدرته

**ترجمه**: ته ورته اووايه چې اې ايمان والا بندګانو ! د خپل رب نه ويرېږئ، يعنى د هغه دعذاب نه اويرېږئ، په داسې طريقه چې د هغه عبادت اوکړئ کوم خلق چې په دې دنيا کښې د تابعدارئ په ذريعه نيکى کوى د هغوى د پاره ښه بدله ده او هغه جنت دې، او د الله تعالى زمکه ډير خوره ده، د کافرانو د مينځ نه او د منکراتو د کتلو نه د بچ کيدو د پاره بلې زمکې ته هجرت اوکړئ لاړ شئ، په نيکو اوپه هغه مصيبتونو باندې په کوم کښې چې دوى مبتلا شوئ دى د صبر کولو والو ته پورا او بې شميره بدله ملاويږى، يعنى بغير د ناپ کولو او تللو نه اجر ورته ملاويږى، ته ورته اووايه چې ماته حکم راکړې شوې دې چې څه د الله تعالى داسې عبادت اوکړم چې هم د هغه د پاره د شرک نه دين خالص کړم، او ماته حکم راکړې شوې دې چې څه په دې قوم کښې د ټولو نه اول فرمانبردار جوړ شم، تاسو اووايئ چې که چرې څه د الله تعالى نافرمانى اوکړم نو د يو لوې ورځې د عذاب نه ويريږم، تاسو ورته اووايئ چې څه خو د الله عبادت داسې کوم چې عبادت د هغه د پاره د شرک نه خالص کوم، تاسو چې دهغه پرېښودلو سره د چا چې مو خوښه وى نو بندګى اوکړئ، په دې کښې د هغوى د پاره تهديد (دهمکى) ده، او د دې خبرې اعلان دې چې دوى د الله تعالى بندګى نه کوى، او تاسو دوى ته دا هم اووايئ چې حقيقى تاوان کونکى هغه دې چې خپل ځان او خپل خاندان به د قيامت په ورځ په نقصان کښې واچوى، په خپله ځان په جهنم کښې اچولو . او هغه حورې نه حاصلولو سره کومې چې د هغوى د پاره تيارې شوى دى، که دوى ايمان راوړې وو ياد ساتئ ښکاره نقصان دا دې چې ددوى د پاره ددوى د پاسه هم د اور نه ګيره اچونکى شغلې دى، او د دوى لاندې هم، د اور نه ګيره اچونکې شغلې دى، دا هغه عذاب دې چې د هغې نه الله خپل مومنان بندګان ويروى، چې د هغه نه اويريږى، او په دې وصف د ايمان باندې يا عباد فاتقون دلالت کوى، اې زما بندګانو زما نه اويرېږئ، او کومو خلقو چې د طاغوت يعنى د بتانو د بندګئ نه ځان بچ

اوساتو او الله طرف ته متوجه شو، هغه د جنت د خوشخبرئ مستحق دي، نو ځما هغه بندګانو ته خوشخبری واوروه چې خبرې ته غوږ کېږدی، بیا دې کښې د ښې خبرې اتباع کوی، او ښه خبره هغه ده چې په هغې کښې کامیابی ده، دا هغه خلق دی چاته چې الله تعالی هدایت کړې دې، هم دغه خلق عقل مند دی، آیا په کوم کس باندې چه د عذاب خبره ثابته شی یعنی د لأملان جهنم الآیة نو آیا ته داسې کس کوم چې په دوزخ کښې دې، خلاصولې شې؟ أفأنت الخ جواب شرط دې، او په دې کښې د ضمیر په ځائې اسم ظاهر ایخودې شوې دې، او همزه د انکار د پاره ده، او معنی د آیت داده چې تاسو ددوی په هدایت باندې قدرت نه لرئ، چې هغه د اور نه بچ کړئ، خو چې کوم خلق د الله نه ویرېږی په داسې تو که چې د هغوی عبادت کوی د هغه د پاره بالاخانې دی چې د هغې د پاسه هم بالاخانې دی، کومې چې جوړې تیارې دی، او د هغې لاندې نهرونه بهیږی، یعنی د بره او لاندې بالاخانو لاندې نهرونه جاری دی، دا الله وعده کړې ده (وعد الله) د فعل مقدر د وجې نه منصوب دې، الله تعالی وعده خلافی نه کوی، آیا تا په دې خبره باندې نظر نه دې کړې؟ چې الله تعالی د اسمانونو نه اوبه نازلې کړې بیا هغه د زمکې په سورو کښې یعنی د چینو په ځایونو کښې داخلوی، بیا د هغې په ذریعې سره مختلف قسم پتی راخیژوی، بیا هغه اوچ شی، بیا اې مخاطبه ته هغې له مثلا د شینوالی نه پس زیړ وینې، بیا هغه دې له ریزه ریزه کړی، په دې کښې د عقلمندو د پاره لوئ نصیحت دې، چې څوک ددې نه نصیحت حاصلوی، د دې د الله په وحدانیت او قدرت باندې دلالت کولو د وجې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: بأن تطیعوه: دا د تقوی تفسیر دې.

**قوله**: للذین أحسنوا فی هذه الدنیا: جمله خبر مقدم دې، او حسنة مبتدأ مؤخر ده،

**قوله**: أرض الله واسعة: دا مبتدأ خبر دی،

**قوله**: فیه تهدید لهم: په دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چې فاعبدوا امر تهدید یعنی د دهمکئ د پاره دې، نه چې د طلب فعل د پاره.

**قوله**: لهم من فوقهم ظلل: لهم خبر مقدم دې، (من فوقهم) حال دې، ظلل مبتدأ مؤخر ده.

**قوله**: طباق: أی قطع کبار: غټې غټې تکرې، د اور په غټو غټو شعلو باندې د ظلل اطلاق د تهکم په طور باندې دې، ګنی د اور په شعلو کښې د سوری سوال هډو پیدا کیږی نه، ظلل د ظلة جمع ده، په معنی د سائبان

**قوله**: من تحتهم ظلل:

**سوال**: د سائبان بره کیدل خو په عقل کښې رازی خو د سائبان د لاندې نه کیدل په عقل

کښې د نه راتللو خبره ده؟

**جواب:** ددې صورت به دا وی چې د برنۍ طبقې د پاره به فرش وی نو ددې نه د لاندې طبقې والا دپاره به سائبان وی څنګه چې په اوچت محل کښې مینځنې چت د يو فريق د پاره فرش وی او د بل فريق د پاره چهت وی.

**قوله:** ذلك تخويف: أي ذكر احوال أهل النار تخويف المؤمنين د ذلک مرجع ذکر أحوال أهل النار ده،

**قوله:** الأوثان: د طاغوت په څو تفسيرونو کښې يو دادې، بعضو د طاغوت نه شيطان مراد اخستې دې، او بعضو هر هغه معبود مراد اخستې دې چې د چا د الله نه علاوه عبادت کړې شوې وی.

**قوله:** أقيم فيه الظاهر مقام المضمر: يعنى من النار د اسم ضمير په ځائې دې او د شناعت د زيادت د بيانولو د پاره دی، چې د هغوی د دوزخيانو نه کيدل ښکاره شی، ګنی أفأنت تنقذه کافی وو، أفأنت کښې همزه د انکار د پاره ده، د فمن حق عليه جواب دې، د همزې اعاده کول د انکار د تاکيد د پاره دی.

**قوله:** لهم غرف من فوقها غرف: د اهل جنت په باره کښې دا قول د مقابلې د پاره دې، د اهل دوزخ په باره کښې د الله د قول لهم من فوقهم ظلل من النار ومن تحتهم ظلل.

**قوله:** بفعلة المقدر: ددې تقدير دې، وعدهم الله وعدا د وعدا فعل ناصب (وعد) محذوف دې.

**[اياتونه: ٢٢-٣١]**

{أَفَمَنْ شَرَحَ اللَّهُ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ} فاهتدى {فَهُوَ عَلَىٰ نُورٍ مِنْ رَبِّهِ} كَمَنْ طُبِعَ عَلَى قَلْبِه دَلَّ عَلَى هَذَا {فَوَيْلٌ} كَلِمَة عَذَاب {لِلْقَاسِيَةِ قُلُوبُهُمْ مِنْ ذِكْرِ اللَّهِ} أَيْ عَنْ قَبُول الْقرآن {أُولَٰئِكَ فِي ضَلَالٍ مُبِينٍ} بَيِّن {اللَّهُ نَزَّلَ أَحْسَنَ الْحَدِيثِ كِتَابًا} بَدَل مِنْ أَحْسَن أَيْ قرآنا {مُتَشَابِهًا} أَيْ يُشْبِه بَعْضه بَعْضًا فِي النَّظْم وَغَيْره {مَثَانِيَ} ثُنِّيَ فِيهِ الْوَعْد وَالْوَعِيد وَغَيْرهمَا {تَقْشَعِرُّ مِنْهُ} تَرْتَعِد عِنْد ذِكْر وَعِيده {جُلُودُ الَّذِينَ يَخْشَوْنَ} يَخَافُونَ {رَبَّهُمْ ثُمَّ تَلِينُ} تَطْمَئِنّ {جُلُودُهُمْ وَقُلُوبُهُمْ إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ} أَيْ عِنْد ذِكْر وَعْده {ذَٰلِكَ} أَيْ الْكِتَاب {هُدَى اللَّهِ يَهْدِي بِهِ مَنْ يَشَاءُ وَمَنْ يُضْلِلِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِنْ هَادٍ} {أَفَمَنْ يَتَّقِي} يَلْقَى {بِوَجْهِهِ سُوءَ الْعَذَابِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ} أَيْ أَشَدّه بِأَنْ يُلْقَى فِي النَّار مَغْلُولَة يَدَاهُ إِلَى عُنُقه كَمَنْ أَمِنَ مِنْهُ بِدُخُولِ الْجَنَّة {وَقِيلَ لِلظَّالِمِينَ} أَيْ كُفَّار مَكَّة {ذُوقُوا مَا كُنْتُمْ تَكْسِبُونَ} أَيْ جَزَاءَهُ {كَذَّبَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ} رُسُلهمْ فِي إِتْيَان الْعَذَاب {فَأَتَاهُمُ الْعَذَابُ مِنْ حَيْثُ لَا يَشْعُرُونَ} مِنْ جِهَة لَا تَخْطِر بِبَالِهِمْ {فَأَذَاقَهُمُ اللَّهُ الْخِزْيَ} الذُّلّ وَالْهَوَان مِنَ الْمَسْخ وَالْقَتْل وَغَيْره {فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَلَعَذَابُ الْآخِرَةِ أَكْبَرُ لَوْ كَانُوا} أَيْ الْمُكَذِّبُونَ {يَعْلَمُونَ} عَذَابهَا مَا كَذَّبُوا {وَلَقَدْ ضَرَبْنَا} جَعَلْنَا {لِلنَّاسِ فِي هَٰذَا الْقُرْآنِ مِنْ كُلِّ مَثَلٍ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ} يَتَّعِظُونَ {قُرْآنًا عَرَبِيًّا} حَال مُؤَكِّدَة

(غَيْرَ ذِي عِوَجٍ) أَيْ لَبْس وَاخْتِلَاف (لَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ) الْكُفْر (ضَرَبَ اللّٰهُ) لِلْمُشْرِكِ وَالْمُوَحِّد (مَثَلًا رَّجُلًا) بَدَل مِنْ مَثَلًا (فِيهِ شُرَكَاءُ مُتَشَاكِسُونَ) مُتَنَازِعُونَ سَيِّئَة اخلاقهم (ورجلا سالما) خَالِصًا (لِرَجُلٍ هَلْ يَسْتَوِيَانِ مَثَلًا) تَمْيِيز أَيْ لَا يَسْتَوِي الْعَبْد لِجَمَاعَةٍ وَالْعَبْد لِوَاحِدٍ فَإِنَّ الْأَوَّل إِذَا طَلَبَ مِنْهُ كُلّ مِنْ مَالِكِيهِ خِدْمَته فِي وَقْت وَاحِد تَحَيَّرَ فِيمَنْ يَخْدُمهُ مِنْهُمْ وَهٰذَا مَثَل لِلْمُشْرِك. وَالثَّانِي مَثَل لِلْمُوَحِّدِ (الْحَمْدُ لِلّٰهِ) وَحْده (بَلْ أَكْثَرُهُمْ) أَيْ أَهْل مَكَّة (لَا يَعْلَمُونَ) مَا يَصِيرُونَ إِلَيْهِ مِنَ العذاب فيشركون (إِنَّكَ) خِطَاب لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (مَيِّتٌ وَإِنَّهُمْ مَيِّتُونَ) سَتَمُوتُ وَيَمُوتُونَ فَلَا شَمَاتَة بِالْمَوْتِ نَزَلَتْ لَمَّا اسْتَبْطَئُوا مَوْته صَلَّى اللّٰه عليه وسلم (ثُمَّ إِنَّكُمْ) أَيُّهَا النَّاس فِيمَا بَيْنَكُمْ مِنَ المظالم (يوم القيامة عند ربكم تختصمون)

**ترجمه**: آيا د چا سينه چه الله د اسلام د پاره کړ لاؤ کړی وی چې د هغې د وجې نه هغه هدايت اومندلو نو هغه د خپل پروردګار د طرف نه په رڼړا باندې دې، نو آيا هغه د داسې کس په شان کيدې شی چې د چا په زړه باندې مهر وهلی شوې وی، بربادی ده هغه خلقو د پاره د چا زړونه چې دالله د ياد نه يعنی د قرآن د قبولو نه غافله کيږی، د خبر په حذف باندې ويل دلالت کوی، ويل د عذاب کلمه ده، هم دغه خلق ښکاره ګمراهی کښې دی، الله تعالی بهترين کلام نازل کړې دې، هغه داسې کتاب دې، يعنی قرآن چې يو شان دې كِتٰبًا أَحْسَنَ الْحَدِيثِ نه بدل دې، يعنی بعضې د بعضې مشابه دې په الفاظو وغيره کښې، په دې کښې وعده وعيد وغيره بار بار ذکر کړې شوې دې چه په دې سره ددې خلقو بدن زيګ زيګ شی (ويريږی) چې کله په هغې کښې وعيد ذکر کړی شی، چې د خپل رب نه اويريږی، آخرکار د هغوی زړونه او جسم د هغه د وعدې د ذکر په وخت کښې نرم (مطمئن) کيږی، دا کتاب د الله هدايت دې، ددې په ذريعه چاته چې غواړی هدايت ورکوی، او الله چې څوک ګمراه کول اوغواړی هغه ته څوک هدايت ورکولو والا نشته، هغه کس چې دقيامت په ورځ به خپل مخ د هغه خراب عذاب د پاره ډهال جوړ کړی، يعنی د سخت عذاب د پاره په داسې طريقه چې د هغه دواړه لاسونه به اوتړلې شی د هغه په څټ کښې او اور ته به واچولې شی، د هغه کس په شان کيدې شی چې د جهنم د اور نه بچ کيدو سره جنت ته داخل شی؟ ظالمانو يعنی د مکې کافرانو ته به اووئيلې شی د خپل کړو سزا (مزا) يعنی د هغې سزا اوڅکئ، د عذاب راتلو په باره کښې ددوی نه مخکښې خلقو هم رسولانو لره دروغ ګنړلې وو، نو په دوی باندې عذاب داسې راغلو چې ددوی خيال هم نه وو يعنی د داسې طرف نه راغلې چې د هغوی په وهم او ګمان کښې هم نه وو، نو الله تعالی دوی ته د دنيا په ژوند کښې ذلت او رسوائئ عذاب اوڅکو، هغه مسخ او قتل وغيره دې، او د آخرت عذاب نور هم لوئې دې، کاش دا تکذيب کونکی د هغه په عذاب باندې پوهه شوی وو، نو تکذيب به ئې نه کولو، او يقينا مونږ د خلقو د پاره په دې قرآن کښې هر قسم مثالونه بيان کړې دی چې دا خلق نصيحت حاصل کړی، حال دا چې قرآن په عربئ کښې دې، دا حال مؤکده دې، په

دي څه قسم کوږوالي التباس او اختلاف نشته، چې دا خلق د کفر نه بچ شي، الله تعالى د مشرک او مؤحد يو مثال بيان اوفرمايو، هغه دا چې يو سړي غلام دې، رجلا، ''مثلا'' نه بدل دې، چې په هغې کښې بد اخلاقي جګړ مار څه خلق شريک دي، او دويم هغه کس د (غلام) دې چې خالص ديو کس غلام دې، نو ايا ددې دواړو حالت يو شان کيدې شي؟ مثلا تميز دې، يعنى د پوره جماعت غلام او د يو کس غلام برابريدې نشي، ځکه چې د اول نه د هغه هر مالک په يو وخت کښې خدمت اخلى نو هغه غلام به حيرانه وی چې په دوی کښې د چا خدمت اوکړم، دا مثال د مشرک دې، او دويم مثال دموحد دې د الله د پاره ټول تعريفونه دی، خبره دا ده چې په اهل مکه کښې دير خلق دې عذاب لره نه پيژنی کوم طرف ته چې دوی روان دی، ددې عدم علم د وجې نه په شرک کښې پراته دی، يقينا تاته به هم مرګ رازی، او دوی هم مړه کيدونکی دی، دا حضور ﷺ ته خطاب دې، لهذا د چا په مرګ باندې خوشحالی څه خبره نه ده، دا آيت هغه وخت نازل شو چې کله اهل مکه د حضور ﷺ د مرګ انتظار شروع کړو، بيا يقينا تاسو ټول په ټوله اې خلقو په خپل مينځ کښې به حقوقو په باره کښې د قيامت په ورځ د خپل رب په مخکښې جهګړې کوئ.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: أفمن شرح الله صدره للإسلام: دا کلام مستانف دې، په ماقبل کښې مذکور في ذلك لذکرى لأولى الألباب د پاره په منزله د علت دې، يعنى ذكرى نې د أولى الألباب سره د خاص کولو د علت قائم مقام دې، مطلب دادې چې داسمان نه اوبه نازليدو نه پس د اوبو په ذريعه الله تعالى د خپل پورا قدرت ځنګه عجيبه تبديلی ښکاره کوی، لهذا دې ته کتلو سره د عقلمندو شرح صدر کيږی، او هم دا شرح صدر د عقلمندو د پاره د قبول ذکر سبب جوړيږی، (اعراب القرآن ترميما) همزه د استفهام انکاری ده، او فاء عاطفه دې، معطوف مقدر دې، أي أكل الناس سواء من موصوله دې، ددې نه پس پوره جمله صله ده، موصول د خپلې صلې سره مبتدأ، او ددې خبر محذوف دې، ځنګه چې مفسر علام ظاهر کړې دې، كمن طبع على قلبه او په دې حذف د خبر باندې قول للقاسية دلالت کوی، او بعضې حضراتو من شرطيه هم وئيلې دې، او روستو جمله ددې جزاء ده.

**قوله**: عن ذكر قبول القرآن: ددې عبارت نه د علامه محلی مقصد د دوو خبرو طرف ته اشاره ده، اول دا چې (من) په معنى د (عن) دې، او دا چې په کلام کښې مضاف محذوف دې، عن ذكر الله أي عن قبول ذكر الله او دا هم صحيح ده چې (من) په خپل باب باندې وی، او د تعليل د پاره وی، أي قست قلوبهم من اجل ذكر الله لفساد قلوبهم وعدم لينها.

**قوله**: مثاني: دا د مَثنى جمع ده، خو دا د مفرد صفت هم واقع کيدې شی، ځنګه چې

دلته د كتاب صفت واقع شوې دې، كتاب اگر چې مفرد دې خو ډېرو تفاصيلو ته د شامليدو د وجې نه د يوې مجموعې نوم دې، لهذا ددې صفت جمع راوړلې شی، ددې نظير د عربو دا قول دې، الانسان عروق وعظام واعصاب.

**قوله**: وغيرهما: كالقصص والاحكام،

**قوله**: تقشعر: منه عند ذكر عيده شارح اشاره اوكړه چې (من) په معنى د (عند) دې، تقشعر أي ترتعد وتضطرب ربيدل، ددې مصدر اقشعرار، فارسئ كښې موئ برتن خاستن يقال اقشعر الشعر أي قام وانتصب من فزع او برد د ويرې يا د يخنې د وجې ويخته اودريدل، زمخشري وئيلې دی چې دا په اصل كښې القشع دې، اوچه څرمن، دې لره رباعی جوړولو د پاره ددې په اخر كښې راء زياته كړې شوه چې د لفظ زيادتی د معنی په زيادت باندې دلالت اوكړی، (لغات القرآن)

**قوله**: إلى ذكر الله أي عند ذكر وعده: په دې كښې اشاره ده چې إلى په معنى د عند ده.

**قوله**: ذلك: أي الكتاب الموصوف بتلك الصفات المذكورة

**قوله**: هدى الله: أي سبب في الهدى يا د مبالغې په توگه د زيد عدل د قبيلې نه دې، يعنى دا كتاب دومره قدرې د هدايت سبب دې گويا چې هغه خپله په هدايت دې.

**قوله**: أفمن يتقى: ويلقى بوجهه سوء العذاب په يوه نسخه كښې د يلقى په ځاې يقى دې، (من) موصوله خپلې صلې سره جمله مبتدا، ددې خبر محذوف دې، چې هغه علامه محلى كمن امن منه وئيلو سره ښكاره كړو، مطلب دادې چې كوم سړې خپل مخ داور د پاره ډهال جوړ كړی، آيا هغه د هغه سړی په شان كيدې شی كوم چې د اور نه په امن او محفوظ وی.

**قوله**: قيل للظلمين: د يقينی وقوع د وجې نه ئې په ماضی سره تعبير اوكړو، ددې عطف په يتقى باندې دې، للظلمين د اسم ظاهر په ځاې اسم ضمير د دوی صفت د ظلم بيانولو د پاره راوړې شوې دې، گنی وقيل لهم كافی وو،

**قوله**: اي كفار مكة: ددې په ځاې ئې كه مطلقا كفار وئيلی وو نو زيات به مناسب وه، ځكه چې دا قول د كفار مكه سره خاص نه دې،

**قوله**: أي جزاءه: په دې كښې اشاره ده چې مضاف محذوف دې، أي ذوقوا جزاء ما كنتم تكسبون.

**قوله**: لو كانوا يعلمون: لو شرطيه دې، كانوا فعل ناقص، په دې كښې دننه ضمير هغه اسم، يعلمون د كان خبر، كان د اسم او خبر سره شرط، جواب شرط محذوف، چې هغه مفسر

علامہ ماګذیوار او بنکلو سره ښکاره کړو، او عذابها مقدر ګنړلو سره ئې اشاره اوکړه چې د يعلمون مفعول محذوف دې

**قوله**: ولقد ضربنا: په لقد کښې لام د قسم محذوف په جواب باندې داخل دې، او ضربنا بمعنى بينا او اوضحنا دې

**قوله**: قرآناعربيا: د هذا القرآن د پاره حال مؤكده دې،

**قوله**: متشاكسون: اسم فاعل جمع مذكر غائب، جهګړالو، شكس، يشكس، (ك) شكاسة بدخلق كيدل، قال زمخشري التشاكس والتشاخص أي الاختلاف.

**قوله**: هل يستويان: مثلا تميز دې كوم چې د فاعل نه منقول دې، تقديرى عبارت دادې أي لايستوي مثلها وصفتهما.

**قوله**: ميت: فراء وئيلې دی چه ياء په تشديد سره، هغه كس چې لا مړ شوې نه وى، او ډير زر مړ كيدونكې وى، او ميت د (ى) په تخفيف سره، (مړې) بعضې حضراتو وئيلې دى، چې د دوارو په معنى كښې فرق نشته،

## پاره نمبر-٢٤ [فَمَنْ أَظْلَمُ]

## [اياتونه: ٣٢-٤١]

{فَمَنْ} أيْ لا أحد {أَظْلَمُ مِمَّنْ كَذَبَ عَلَى اللَّهِ} بِنِسْبَةِ الشَّرِيك وَالْوَلَد إلَيْهِ {وَكَذَّبَ بِالصِّدْقِ} بالقرآن {إِذْ جَاءَهُ أَلَيْسَ فِي جَهَنَّمَ مَثْوًى} مَأْوَى {لِلْكَافِرِينَ} بَلَى {وَالَّذِي جَاءَ بِالصِّدْقِ} هُوَ النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {وَصَدَّقَ بِهِ} هُمْ الْمُؤْمِنُونَ فَالَّذِي بِمَعْنَى الَّذِينَ {أُولَئِكَ هُمُ الْمُتَّقُونَ} الشِّرْك {لهم ما يشاءون عِنْدَ رَبِّهِمْ ذَلِكَ جَزَاءُ الْمُحْسِنِينَ} لِأَنْفُسِهِمْ بِإِيمَانِهِمْ {لِيُكَفِّرَ اللَّهُ عَنْهُمْ أَسْوَأَ الَّذِي عَمِلُوا وَيَجْزِيَهُمْ أَجْرَهُمْ بِأَحْسَنِ الَّذِي كَانُوا يَعْمَلُونَ} أسْوَأ وَأَحْسَن بمعنى السيء والحسن {أَلَيْسَ اللَّهُ بِكَافٍ عَبْدَهُ} أيْ النَّبِيّ بَلَى {وَيُخَوِّفُونَكَ} الْخِطَاب لَهُ {بِالَّذِينَ مِنْ دُونِهِ} أيْ الأصنام ان تقتله او تخبله {ومن يضلل الله فما له من هاد} {وَمَنْ يَهْدِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِنْ مُضِلٍّ أَلَيْسَ اللَّهُ بِعَزِيزٍ} غَالِب عَلَى أَمْره {ذِي انْتِقَامٍ} مِنْ أَعْدَائِهِ بَلَى {ولئن} لام قسم {سألتهم من خلق السماوات والأرض ليقولن الله قل أفرأيتم مَا تَدْعُونَ} تَعْبُدُونَ {مِنْ دُونِ اللَّهِ} أيْ الْأَصْنَام {إِنْ أَرَادَنِيَ اللَّهُ بِضُرٍّ هَلْ هُنَّ كَاشِفَاتُ ضُرِّهِ} لا {أَوْ أَرَادَنِي بِرَحْمَةٍ هَلْ هُنَّ مُمْسِكَاتُ رَحْمَتِهِ} لا وَفِي قِرَاءَة بِالْإِضَافَةِ فِيهِمَا {قُلْ حَسْبِيَ اللَّهُ عَلَيْهِ يَتَوَكَّلُ الْمُتَوَكِّلُونَ} يثق الواثقون {قُلْ يَا قَوْمِ اعْمَلُوا عَلَى مَكَانَتِكُمْ} حَالَتكُمْ {إِنِّي عَامِلٌ} على حالتي {فسوف تعلمون} {من} موصول مَفْعُول الْعِلْم {يَأْتِيهِ عَذَابٌ يُخْزِيهِ وَيَحِلُّ} يَنْزِل {عَلَيْهِ عَذَابٌ مُقِيمٌ} دَائِم هُوَ عَذَاب النَّار وَقَدْ أَخْزَاهُمْ اللَّه بِبَدْرٍ {إِنَّا أَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَابَ لِلنَّاسِ بِالْحَقِّ} مُتَعَلِّق بِأَنْزَلَ {فَمَنِ اهْتَدَى فَلِنَفْسِهِ} اهتداؤه {وَمَنْ ضَلَّ فَإِنَّمَا يَضِلُّ عَلَيْهَا وَمَا أَنْتَ عَلَيْهِمْ بِوَكِيلٍ} فتجبرهم على الهدى

**ترجمه:** د دهغه چا نه غټ ظالم څوک دی؟ يعنى هيڅ څوک نشته، چې په الله باندې يعنى هغه طرف ته د شرک او د اولاد نسبت کولو سره دروغ وائى او رشتيا يعنى قرآن چې کله دوى له راشى نو د هغې تکذيب اوکړو آيا د داسې کافرانو په پاره د جهنم کښې ټهکانه نشته ؟ ولې نه او کوم سړى چې رشتيا خبره راوړه او هغه نبى ﷺ دې او چا چې د هغه تصديق اوکړو هغه مومن دې، الذى د الذين په معنى کښې دې، دغه د شرک نه بچ کيدونکى خلق د دوى دپاره ددوى د رب سره هر هغه څيز دې کوم به چې دوى غواړى، دا صله ده، د ايمان په ذريعه په خپل ځان باندې د احسان کونکو دې د پاره چې الله تعالى د د دوى نه د دوى خراب عملونه لرې کړى، او دوى چې کوم نيک عملونه کړى دى د هغې بنه صله ورکړى، أسوأ د السّيئ او أحسن د الحَسنُ په معنى کښې دې، (يعنى دواړه د اسم تفضيل د صفت په معنى کښې دې) آيا الله تعالى د خپل بنده يعنى د محمد ﷺ د پاره کافى نه دې؟ آو خامخا کافى دې، او خلق تا له د غير الله يعنى د بتانو نه يروى، په دې کښې حضور ﷺ ته خطاب دې، دا چې هغه بتان بې تاسو له هلاک کړى يا به مو بالکل پاګل جوړ کړى، او الله چې څوک ګمراه کړى د هغه څوک رهنمائى کولو والا نشته، او چا ته چې هغه هدايت ورکړى د هغه څوک ګمراه کولو والا نشته، آيا الله تعالى په خپل کار باندې غالب د خپل دشمنانو نه انتقام اغستونکې نه دې؟ آو ولې نه دې او قسم دې که ته ددوى نه تپوس اوکړې چې اسمانونه او زمکه چا پيدا کړى دى؟ په لئن کښې لام دقسم دې، نو يقينا دوى به هم دا جواب ورکړى چې الله، پيدا کړى دى تاسو دوى ته اووائه دا راته اووايئ چې د چا تاسو د الله نه سوا بندګى کوئ يعنى د بتانو که الله تعالى ماته نقصان راکول اوغواړى نو آيا دوى د هغه نقصان لرې کولې شى؟ نا يا الله په ما باندې د مهربانئ اراده اوکړى نو آيا دوى دا هغه مهربانى بندولې شى؟ او په يو قراءت کښې د دواړو په اضافت سره دې، (يعنى کاشفاتُ او ممسکاتُ) دې ته ورته اووايه چې الله ځما د پاره کافى دې، توکل کونکى هم په هغه باندې توکل کوى، يعنى بهروسه کونکى هم په هغه باندې بهروسه کوى، ته ورته اووايه اې ځما قومه تاسو په خپل ځائې يعنى په خپله طريقه باندې عمل کوئ، او زه هم په خپله طريقه باندې عمل کوم، نو ډير زر به تاسو ته معلومه شى چې په چا باندې رسوا کونکې عذاب راتلونکې دې، (من) موصوله د تعلمون مفعول دې او په چا باندې هميشګير عذاب نازليدونکې دې؟ او هغه د دوزخ عذاب دې، او بې شکه الله تعالى دوى په غزوه بدر کښې ذليله کړل، يقينا مونږ په تا باندې په حق سره دا کتاب د خلقو د هدايت د پاره نازل کړې دې، بالحق، د انزل متعلق دې نو کوم کس چې په نيغه لار باندې راشى نو د هغه په هدايت باندې د راتلو فائده هم د هغه دپاره ده، او کوم کس چې ګمراه شى نو د هغه د ګمراهئ وبال هم په هغه باندې دې، تاسو ددوى ذمه دار نه يئ، چې دوى په زور په هدايت باندې راولئ.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: فمن أظلم: أي لا أحد دا دي تفسیر مقصد دې خبرې ته اشاره کول دی چې فمن أظلم کښې استفهام انکاری په معنی د نفی دې.

**قوله**: كذب بالصدق: مفسر علام د صدق نه مراد قرآن اخستې دې او قرآن ته کوم چې صادق دې، مبالغةً صدق وئیلې شوی دی

**قوله**: بلى: مفسر علام د بلى اضافه د سنتو په اتباع کښې کړې ده، حضور ﷺ فرمائیلی دی: من قرء أليس الله بأحكم الحاكمين، فليقل بلى، لهذا أليس كذا؟ "مثلاً" د تلاوت په وخت کښې بلى وئیل سنت دی. (حاشية جلالين)

**قوله**: الذي جاء بالصدق: د الذی موصول دوه صلې دی یو واحد، او هغه جاء بالصدق (محمد ﷺ) دې، او دویم صدق به المؤمنون دې، کوم چې جمع ده، د اول د صلې رعایت ساتلو د وجې الذی مفرد راوړې شوې دې، او د دویم د رعایت د وجې نه الذی د الذین په معنی کښې اخستلې شوې دې، او هم د دویمې صلې د رعایت د وجې نه أولئك هم المتقون کښې د جمع صیغې راوړې شوی دی، الذی چونکه اسم جنس دې، لهذا په دې کښې د واحد او جمع دواړو گنجائش شته،

**قوله**: أسوأ وأحسن: د السیئ او الحسن په معنی کښې دی، ددې عبارت د اضافې مقصد د سوالِ مقدر جواب دې.

**سوال**: سوال دادې چې د ذکر شوی آیت نه خو معلومیږی، چې الله تعالى به د مومنانو د نیک تر عملونو صله به ورکړی او بد تر اعمال به معاف کړی، په دې کښې د نیک او د بد عملونو ذکر نشته؟

مفسر علام د مذکوره عبارت اضافه کولو سره جواب ورکړو چې اسم تفضیل په خپله معنی کښې نه دې، بلکه د اسم فاعل په معنی کښې دې، لهذا د نیک او نیک تر او د بد او بد تر دواړه قسم عملونه په دې کښې داخل شو.

**قوله**: تخبله: (ن) عقل خرابول، پاگل کول، تخبیل هم دغه معنی ده،

**قوله**: وفي قراءة بالاضافة: دا دواړه قراءتونه سبعیه دی، که اضافت سره او وئیلې شی نو كاشفات ضره او ممسكات رحمته به وئیلې شی.

[اياتونه: ٤٢-٥٢]

(الله يتوفى الأنفس حين موتها و) يتوفى (التي لم تمت في منامها) اي يتوفاها وقت النوم (فيمسك التي قضى عليها الموت ويرسل الأخرى إلى أجل مسمى) اي وقت موتها والمرسلة نفس التمييز تبقى بدونها نفس الحياة بخلاف العكس (إن في ذلك) المذكور (لآيات) دلالات (لقوم يتفكرون) فيعلمون ان القادر على ذلك قادر على البعث وقريش لم يتفكروا في ذلك (أم) بل (اتخذوا من دون الله) اي الأصنام آلهة (شفعاء) عند الله بزعمهم (قل) لهم (أ) يشفعون (ولو كانوا لا يملكون شيئا) من الشفاعة وغيرها (ولا يعقلون) انكم تعبدونهم ولا غير ذلك لا (قل لله الشفاعة جميعا) اي هو مختص بها فلا يشفع احد الا باذنه (له ملك السماوات والأرض ثم إليه ترجعون) (وإذا ذكر الله وحده) اي دون آلهتهم (اشمأزت) نفرت وانقبضت (قلوب الذين لا يؤمنون بالآخرة وإذا ذكر الذين من دونه) اي الأصنام (إذا هم يستبشرون) (قل اللهم) بمعنى يا الله (فاطر السماوات والأرض) مبدعهما (عالم الغيب والشهادة) ما غاب وما شوهد (أنت تحكم بين عبادك فيما كانوا فيه يختلفون) من أمر الدين اهدني لما اختلفوا فيه من الحق (ولو أن للذين ظلموا ما في الأرض جميعا ومثله معه لافتدوا به من سوء العذاب يوم القيامة وبدا) ظهر (لهم من الله ما لم يكونوا يحتسبون) يظنون (وبدا لهم سيئات ما كسبوا وحاق) نزل (بهم ما كانوا به يستهزءون) اي العذاب (فإذا مس الإنسان) الجنس (ضر دعانا ثم إذا خولناه) اعطيناه (نعمة) إنعاما (منا قال إنما أوتيته على علم) من الله باني له أهل (بل هي) اي القولة (فتنة) بلية يبتلى بها العبد (ولكن أكثرهم لا يعلمون) ان التخويل استدراج وامتحان (قد قالها الذين من قبلهم) من الأمم كقارون وقومه الراضين بها (فما أغنى عنهم ما كانوا يكسبون) (فأصابهم سيئات ما كسبوا) اي جزاؤها (والذين ظلموا من هؤلاء) اي قريش (سيصيبهم سيئات ما كسبوا وما هم بمعجزين) بفائتين عذابنا فقحطوا سبع سنين ثم وسع عليهم (أولم يعلموا أن الله يبسط الرزق) يوسعه (لمن يشاء) امتحانا (ويقدر) يضيقه لمن يشاء ابتلاء (إن في ذلك لآيات لقوم يؤمنون) به

**قوله:**: هم الله تعالى روحونه اخلي، د مرګ په وخت، او د چا چې مرګ نه وي راغلې نو د هغوی په خوب کښې اخلي، يعنی د هغوی په خوب کښې قبض کړی، بيا په چا چې د مرګ حکم لګيدلې وي هغوی ايسار کړی او نور روحونو لره يو وخت مقرر پورې پرېږدی، يعنی د هغوی دمرګ وخت پورې، او پرېښودنکې روح تميز دې، چې د هغې نه بغير روح حيات باقی پاتې کيدې شی، ددې عکس ممکن نه دې، يقينا په دې ذکر شوو خبرو کښې د غور او فکر کونکو د پاره ډيرې نښې دی، لهذا په دې خبره باندې پوهه شئ چې کوم ذات په دې باندې قادر دې، هغه په بعث بعد الموت باندې هم قادر دې، او قريشو د دې معاملې په باره کښې غور او فکر اونکړو، بلکه دې خلقو الله پرېښودلو سره د نور معبودان يعنی بتان په خپل

خیال کښې د الله په مخکښې سفارشیان جوړ کړي دي، ته د دوی نه تپوس اوکړه چې آیا دوی به سفارش کوی؟ اگر که هغوی د سفارش وغیره هیڅ اختیار نه لري، او نه هغوی په دې پوهیږی، چې تاسو ددوی عبادت کوئ، او نه د دې نه علاوه په څه خبره پوهیږی، تاسو اووایئ چې دټولو سفارشونو اختیار صرف د الله سره دې، سفارش هم د هغه سره خاص دې، لهذا د هغه د اجازت نه بغیر څوک سفارش کولې نشی، په زمکه او اسمان کښې هم د هغه حکومت دې، بیا به تاسو ټول هغه طرف ته واپس کولې شئ، چې کله ددوی معبود پرېښودلو سره د الله وحده لا شریک ذکر کولې شی نو د هغه خلقو په زړونو کښې نفرت راشی، کوم چې په آخرت باندې ایمان نه راوړی، یعنی دوی تنگیږی، او چه د هغه پرېښودلوسره د هغوی د معبودانو یعنی دبتانو ذکر اوکړې شی نو هغوی فوراً خوشحاله شی، تاسو دغه شان دعا کوئ چې اې الله، د اسمان او د زمکې پیدا کونکیه، په پټو او په ښکاره باندې خبرداره، اللهم د یا الله په معنی کښې دې، هم ته د خپل بندگانو په مینځ کښې په دې دینی معامله کښې فیصله کولې شې، په کوم کښې چې دا خلق اختلاف کوی، یعنی د څه په باره کښې چې دوی اختلاف کوی، ته زمونږ په هغې کښې حق طرف ته رهنمائی اوکړه، که ظلم کولو والا سره هر هغه څه چې وی کوم چې د مځ په زمکه باندې دی او دوی سره دومره نور هم وی، نو بیا به هم د بدترینې سزا په بدله کښې دا ورکړی، او ددوی مخې ته به دالله د طرف نه هر هغه څه ښکاره شی د کوم چې دوی گمان هم نه کولو، او په دوی باندې به ددوی ټول خراب عملونه ښکاره شی، او کوم عذاب پسې چې دوی ټوقې کولې هغه به دوی راونیسی، انسان ته چې کله یو تکلیف وراورسی نو هغه مونږ ته اوازونه شروع کړی او بیا چې کله هغه ته مونږ د خپل طرف نه څه نعمت ورکړو نو وائی، چې دا انعام خو ما ته ځکه راکړې شوې دې چې الله ته معلومه ده چې څه ددې مستحق یم، بلکه دا یعنی د ده دا خبره فتنه ده، چې د هغې په وجه بنده په امتحان کښې اچولې شوې دې، خو په دوی کښې اکثر خلق نه پوهیږی، چې دا ورکړه مهلت او امتحان دې، ددوی نه مخکښې خلقو هم دا وئیلی دی، لکه قارون او د هغه قوم کوم چې په دې خبره باندې راضی وو، نو د هغوی کاروائی د هغوی په څه کار رانغله، نو د هغوی د خرابو عملونو یعنی د هغوی سزا په هغوی باندې راغله، او په هغه چا باندې هم چې ددوی نه یعنی د قریشو نه ظالمان دی، د هغوی د خرابو عملونو سزا رارسیدونکې ده، او دوی مونږ لره عاجزکونکی نه دی، یعنی زمونږ د عذاب نه بچ کیدې نشی، چنانچه اووه کاله په قحط کښې مبتلا کړې شو، بیا دوی ته فراخی ورکړې شوه، آیا دوی ته دا معلومه نه ده، چې الله تعالی چا ته اوغواړی د امتحان په طور ورته روزی پراخه کوی او چا ته چې اوغواړی د امتحان په تو گه روزی ورته تنگوی، د ایمان راوړنکو د پاره په دې کښې ډیرې نښې دی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: يتوفى: واحد مذکر غائب مضارع معروف (تفعل) هغه روح قبض کوی.

**قوله**: أنفس: جمعُ نفس، روحونه، خانونه، يتوفى الأنفس أي يقبض الأرواح عند حضور آجالها، الله مبتدأ، يتوفى الأنفس جمله خبر، حين موتها د يتوفى متعلق دې، واؤ حرف عطف، التى لم تمت عطف دې په انفس او فى منامها د يتوفى ظرف دې، مطلب دادې چې د كومو نفسونو د مرگ وخت نه وى راغلې نو هغوى د اوده كيدو په وخت كښې قبض كړى، او هم په دې معنى د الله تعالى قول وهوالذى يتوفكم بالليل. دې.

**قوله**: والمرسلة نفس التميز..الخ: ددې خلاصه داده چه نفس په دوه قسمه دې: نفس تميز او نفس حيات، د نفس تميز نه بغير نفس حيات باقى پاتې كيدې شى خو نفس تميز د نفس حيات نه بغير ژوندې نه شى پاتې كيدې، دحضرت ابن عباس رضى الله عنهما نه روايت دې چه په ابن آدم كښې يوُ نفس دې او يو روح دې، دعقل اوتميز تعلق دنفس سره دې او دحركت او ساه تعلق د روح سره دې، كله چه بنده اوده شى نو الله تعالى دهغه نفس قبض كوى، روح نه قبض كوى، همدغسې قول دحضرت على رضى الله عنه نه هم منقول دې، لكه چه مخكښې تيرشوى دى.

**قوله**: اولو كانو: په دې كښې دې خبرې ته اشاره ده چې همزه د استفهام انكارى ده، او محذوف باندې داخل ده، تقديرى عبارت دا دې أيشفعون، څنگه چې مفسر ښكاره كړې ده، واؤحاليه دې"أولو"شرطيه دې جمله دحال كيدود وجې نه دنصب په ځائې ده،د "لو" جواب محذوف دې تقدير داسې دې أى وإن كانوا بهذه الصفة تتخذونهم من دون الله شفعاء

**قوله**: قل لله الشفاعة جميعا: مفسر علام د اى هو مختص بها فلا يشفع احد الا باذنه اضافه كولو سره د يو سوال مقدر جواب كړې دې،

**سوال**: لله الشفاعة جميعا نه معلوميږى چې د الله نه علاوه چانه د سفارش حق نشته، او نه به څوک د چا سفارش اوكړى، حالانكه د احاديثو نه معلوميږى چې انبياء عالمان او شهيدان وغيره به سفارش كوى

**جواب**: خلاصه داده چې د سفارش څومره هم قسمونه دى هغه به د الله په اجازت سره وى، لهذا دا سفارشونه هم الله تعالى سره خاص دى الله تعالى اوفرمائيل لا يشفعون إلا لمن ارتضى،بل ځائې ئې اوفرمائيل من ذالذى يشفع عنده إلا بإذنه.

**قوله**: نعمة: إنعاما دنعمة تفسير په انعاما سره كولو كښې مقصد د إنما أوتيته مرجع صحيح كول دى، چې په ضمير او مرجع كښې متابعت راشى، دا به په دې صورت كښې وى چې (ما كانوا كښې ما كافه اومنلې شى او كه ما (ما) موصوله اومنلې شى، نو د دې تاويل ضرورت به نه وى.

**قوله** :اي القولة: ددې اضافې مقصد د هی ضمیر او د هغې مرجع قول په مینځ کښې مطابقت کول دی، دې وجې نه د قول نه مراد مقوله اخستې ده، او دمقوله نه مراد د هغه دا مقوله ده چې إنما أوتيته على علم او بعضې حضراتو د هی مرجع نعمة ګرځولې دې، أی بل النعمة فتنة په دې صورت کښې به د تاویل ضرورت نه وی،

**قوله** :وبدا لهم سيئات ما كسبوا: أي جزاؤها ددې عبارت د اضافې مقصد دې خبرې ته اشاره کول دی چې د سیئات مضاف محذوف دې،

**[ایاتونه:٥٣-٦٣]**

{قُلْ يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلَى أَنْفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوا} بِكَسْرِ النُّونِ وَفَتْحِهَا وَقُرِئَ بِضَمِّهَا تَيْأَسُوا {مِنْ رَحْمَةِ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ جَمِيعًا} لمن تاب من الشرك {إنه هو الغفور الرحيم وَأَنِيبُوا} ارجعوا {إِلَى رَبِّكُمْ وَأَسْلِمُوا} أخلصوا العَمَل {لَهُ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَأْتِيَكُمُ الْعَذَابُ ثُمَّ لَا تُنْصَرُونَ} بِمَنْعِهِ إِنْ لَمْ تَتُوبُوا {وَاتَّبِعُوا أَحْسَنَ مَا أُنْزِلَ إِلَيْكُمْ مِنْ رَبِّكُمْ} هُوَ القرآن {مِنْ قَبْلِ أَنْ يَأْتِيَكُمُ الْعَذَابُ بَغْتَةً وَأَنْتُمْ لَا تَشْعُرُونَ} قَبْلَ إتيانه بوقته فَبَادِرُوا قَبْلَ {أَنْ تَقُولَ نَفْسٌ يَا حَسْرَتَى} أصله يَا حَسْرَتِي أَيْ نَدَامَتِي {عَلَى مَا فَرَّطْتُ فِي جَنْبِ اللَّهِ} اي طاعته {وَإِنْ} مُخَفَّفَةٌ مِنَ الثَّقِيلَةِ أَيْ وَإِنِّي {كُنْتُ لَمِنَ السَّاخِرِينَ} بِدِينِهِ وَكِتَابِه {أَوْ تَقُولَ لَوْ أَنَّ اللَّهَ هَدَانِي} بِالطَّاعَةِ فَاهْتَدَيْتُ {لَكُنْتُ مِنَ الْمُتَّقِينَ} عذابه {أَوْ تَقُولَ حِينَ تَرَى الْعَذَابَ لَوْ أَنَّ لِي كَرَّةً} رَجْعَةً إِلَى الدُّنْيَا {فَأَكُونَ مِنَ الْمُحْسِنِينَ} الْمُؤْمِنِينَ فَيُقَالُ لَهُ مِنْ قِبَلِ اللَّهِ {بَلَى قَدْ جَاءَتْكَ آيَاتِي} القرآن وَهُوَ سَبَبُ الْهِدَايَةِ {فَكَذَّبْتَ بِهَا وَاسْتَكْبَرْتَ} تَكَبَّرْتَ عَنِ الْإِيمَانِ بِهَا {وكنت من الكافرين وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ تَرَى الَّذِينَ كَذَبُوا عَلَى اللَّهِ} بِنِسْبَةِ الشَّرِيكِ وَالْوَلَدِ إِلَيْهِ {وُجُوهُهُمْ مُسْوَدَّةٌ أَلَيْسَ فِي جَهَنَّمَ مَثْوًى} مَأْوًى {لِلْمُتَكَبِّرِينَ} عَنِ الْإِيمَانِ بلى {وَيُنَجِّي اللَّهُ} مِنْ جَهَنَّمَ {الَّذِينَ اتَّقَوْا} الشِّرْكَ {بِمَفَازَتِهِمْ} أَيْ بِمَكَانِ فَوْزِهِمْ مِنَ الْجَنَّةِ بِأَنْ يجعلوا فيه {لا يمسهم السوء ولا هم يحزنون} {اللَّهُ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ وَكِيلٌ} مُتَصَرِّفٌ فِيهِ كَيْفَ يَشَاءُ {لَهُ مَقَالِيدُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ} أَيْ مَفَاتِيحُ خَزَائِنِهِمَا مِنَ الْمَطَرِ وَالنَّبَاتِ وَغَيْرِهِمَا {وَالَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ اللَّهِ} القرآن {أُولَئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ} مُتَّصِلٌ بِقَوْلِهِ {وَيُنَجِّي اللَّهُ الَّذِينَ اتَّقَوْا} إلخ وَمَا بَيْنَهُمَا اعتراض

**ترجمه**: ځما د طرف نه اووایه چې اې ځما بندګانو اچا چې په خپل ځان باندې زیاتې کړې دې په تاسو د الله د رحمت نه مایوسه کیږئ مه، تقنطوا د نون په فتحې او کسرې سره، او په ضمې سره هم وئیلې شوې دې، یقینا الله تعالی به د هغه کس ټول ګناهونه معاف کړی چا چې د شرک نه توبه اوکړه، بې شکه هغه لوئې بښنې والا او رحمت والا دې او تاسو ټول خپل پروردګار طرف ته رجوع کوئ او د هغه حکم پوره کوئ، یعنی عمل د هغه د پاره خالص کړئ، مخکښې ددې نه چې په تاسو باندې عذاب راشی، بیا به ستاسو مدد نه کیږی، دې عذاب لره لرې کولو سره که تاسو توبه اونه باسئ او تابعداری اوکړئ دهغه بهترین څیز کوم چې ستاسو د پروردګار د طرف

نه تاسو ته نازل شوې دې، او هغه قرآن دې، مخکښې ددې نه چې په تاسو عذاب راشي اچانک، او تاسو ته خبر هم نه وي، ددې د راتلو نه مخکښې تاسو ته د دې د راتلو وخت خبر هم نه وي، لهذا توبه اوباسئ مخکښې ددې نه چې يو کس اووايئ چې افسوس ځما په هغه کوتاهئ باندې کومه چې ما د الله په باره کښې يعنې په تابعدارئ کښې اوکړې، يأحسرتی بألفلمنقی په معنی کښې دې، ځه دې دين او ددې کتاب لره په توقو سره نيونکو نه ووم، ان مخففه عن الثقيله ده، يا به دا وائې چې چرې الله تعالى په دنيا کښې ماته د تابعدارئ هدايت راکړې وو، نو ما به هدايت موندلې وو، نو ځه به هم د هغه د عذاب نه د بچ کيدو نه ووم، يا څوک عذاب کتلو سره به دا وائي چې کاش په دنيا کښې ځما واپسی اوشي، نو ځه به هم د نيکانو خلقو نه يعنې د مومنانو نه شوې ووم، يعنې د ايمان راوړونکو به ووم، نو ده ته به د الله د طرف نه اووئيلې شي چې آو! بې شکه تاته ځما قرآني ايتونه راړسيدلې وو او هغه د هدايت ذريعه وه، کوم چې تا رد کړل او په هغې باندې د ايمان راوړلو نه تا تکبر اوکړو، او ته د کافرانو نه شوې، او کوم خلقو چې په الله باندې د هغه طرف ته د شرک او د ولد نسبت کولو سره دروغ اوتړل نو ته به اوګورې چې د قيامت په ورځ به د هغوی مخونه تور وي، آيا د ايمان نه تکبر کولو والا ځائي جهنم نه دې؟ او ولې نه دې، او کومو خلقو چې د شرک نه ځان بچ کړو نو الله تعالى به هغوی د کاميابي په مقام کښې د داخليدو په سبب د جهنم نه بچ کړي، او هغه ځائې جنت دې، او که مفازة مصدر ميمي او (ب) لره سببيه اوګنړلې شي نو ترجمه به دا وي چې الله به دوی د کاميابي د وجې نه د جهنم نه بچ کړي، داسې چه دوی به جنت ته داخل کړې شي، دوی ته به يو تکليف هم نه رسي، او نه به دوی پريشانه شي، الله تعالى د هر څيز پيدا کولو والا دې، او هم هغه د هر يو څيز محافظ دې، يعنې چې په هغې ښنګه غوارې تصرف کوی د اسمانونو او د زمکې د کنجيانو مالک دې، يعنې د زمکې او د اسمانونو د خزانو مالک دې او هغه اوبه، پتې وغيره دی، چا چې هم د الله د آيتونو د قرآن نه انکار اوکړو هم هغه په تاوان کښې دې، په دې جمله کښې د «والذين کفروا» عطف د الله په قول وينجي الله الذين اتقوا الخ باندې دې، او د دې دواړو په مينځ کښې الله خالق کل شيء الخ جمله معترضه ده،

**نوټ**: ددې جملې اسميې عطف په جمله فعليه باندې دې، کوم چې جائز دې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: يا عبادي: بحذف الياء وثبوتها مفتوحة په يا عبادی کښې دوه قراءتونه دی د ياء په حذف سره او د دال په کسرې سره، أي يا عباده وثبوت ياء مع فتح الياء أي يا عبادي.

**قوله**: الذين أسرفوا على أنفسهم: أسرفوا د إسراف نه ماضی جمع مذکر غائب، هغوی زياتې اوکړو، د حد نه واوړيدل، يعنې په خپل نفس باندې ئې په معصيت او ګناه کولو

سره زياتئ اوكړو، دلته د اسراف نه أسراف فى المعصية مراد دي، د اسراف معنى ده مطلقا زياتي كول، اسراف مقيد مثلا، أسرف فى المال كښې به مجازا استعمال وی، او بعضې حضراتو ددې عكس وئيلي دي، خو اول راجح دي.

**سوال:** د اسراف صله "على" نه ده؟

**جواب:** اسراف چونكه د جنايت معنى لره متضمن دي، ځكه ددې صله "على" راوړل صحيح دی.

**قوله:** :لاتقنطوا: دا اكثر (س، ض، ن) نه رازی، د (ک) نه شاذ دي،

**قوله:** :هو القرآن: دا د أحسن تفسير دي يعنى په اسمانى كتابونو كښې قرآن د ټولو نه بهترين دي.

**قوله:** :أن تقول نفس: (أن) او څه چې ددې لاندې دی مفعول لأجله كيدو د وجې نه محلا منصوب دی، زمحشری ددې تقدير كراهة أن تقول وئيلي دي، او ابو البقاء أنذرناكم مخافة أن تقول، او مفسر علام د بأدروا فعل مقدر معمول گرځولي دي، څنګه چه ښكاره ده.

**قوله:** :بالطاعة: په يوه نسخه كښې بالطاعه دي

**قوله:** :بنسبة الشريك والولد إليه: دا عبارت دې خبرې ته اشاره كوی چې دلته مطلقا كذب مراد نه دي، بلكه هغه كذب مراد دي د كوم نه چې شرک لازميږی، ځكه چې مخكښې كوم وعيد ذكر شوي دي هغه د مطلقا كذب نه دي، بلكه دا هغه كذب دي د كوم كذب نه چې كفر لازميږی.

**قوله:** :مقاليد: د مقلاد ومقليد جمع ده، په معنى د كنجى په هر څيز كښې د ډير تصرف او قدرت لرلو نه كنايه ده.

**[اياتوله: ٦٤-٧٠]**

﴿قُلْ أَفَغَيْرَ اللَّهِ تَأْمُرُونِّي أَعْبُدُ أَيُّهَا الْجَاهِلُونَ﴾ غَيْر مَنْصُوب بِأَعْبُد المَعْمُول لِتَأْمُرُونِّي بِتَقْدِيرِ أَنْ بِنُونٍ وَاحِدَة وَبِنُونَيْنِ ادغام و وَفَكٌ ادغام ﴿وَلَقَدْ أُوحِيَ إِلَيْكَ وَإِلَى الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكَ﴾ والله ﴿لئن أشركت﴾ يا محمد فرضا ﴿ليحبطن عملك ولتكونن من الخاسرين﴾ ﴿بَلِ اللَّهَ﴾ وَحْده ﴿فَاعْبُدْ وَكُنْ مِنَ الشَّاكِرِينَ﴾ إنعامه عليك ﴿وَمَا قَدَرُوا اللَّهَ حَقَّ قَدْرِهِ﴾ مَا عَرَفُوهُ حَقّ مَعْرِفَته أَوْ مَا عَظَّمُوهُ حَقّ عَظَمَته حِين أَشْرَكُوا بِهِ غَيْره ﴿وَالْأَرْضُ جَمِيعًا﴾ حَال أَيْ السَّبْع ﴿قَبْضَتُهُ﴾ أَيْ مَقْبُوضَة لَهُ أَيْ فِي ملكه وتصرفه ﴿يوم القيامة والسماوات مَطْوِيَّاتٌ﴾ مَجْمُوعَات ﴿بِيَمِينِهِ﴾ بِقُدْرَتِهِ ﴿سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى عَمَّا يشركون﴾ معه ﴿وَنُفِخَ فِي الصُّورِ﴾ النَّفْخَة الأولى ﴿فَصَعِقَ﴾ مَاتَ ﴿من فى السماوات ومن فى الأرض إِلَّا مَنْ شَاءَ اللَّهُ﴾ مِنَ الحُور وَالوِلْدَان وَغَيْرهمَا ﴿ثُمَّ نُفِخَ فِيهِ أُخْرَى

﴿فَإِذَا هُمْ﴾ أي جميع الخلائق الموتى ﴿قِيَامٌ يَنْظُرُونَ﴾ ينتظرون ما يفعل بهم ﴿وَأَشْرَقَتِ الْأَرْضُ﴾ أضاءت ﴿بِنُورِ رَبِّهَا﴾ حين يتجلى الله لفصل القضاء ﴿وَوُضِعَ الْكِتَابُ﴾ كتاب الأعمال للحساب ﴿وَجِيءَ بِالنَّبِيِّينَ وَالشُّهَدَاءِ﴾ أي بمحمد صلى الله عليه وسلم وأمته يشهدون للرسل بالبلاغ ﴿وَقُضِيَ بَيْنَهُمْ بِالْحَقِّ﴾ أي العدل ﴿وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ﴾ شيئا ﴿وَوُفِّيَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَا عَمِلَتْ﴾ أي جزاءه ﴿وَهُوَ أَعْلَمُ﴾ عالم ﴿بِمَا يَفْعَلُونَ﴾ فلا يحتاج إلى شاهد

**ترجمه**: ته ورته اووايه اې جاهلانو! بيا هم تاسو ماته د غير الله د عبادت وايئ، غير د تأمروني معمول د أعبد په ذريعه منصوب دې، د (أن) په تقدير سره، يو نون، دوه نوناتو سره، او ادغام او بغير د ادغام نه، يقينا ستا طرف ته او هغه نبيانو طرف ته کوم چې ستا نه مخکښې تير شوي دي، دا وحى ليږلې شوې ده، چې والله که فرض کړه اې محمد ﷺ تا ته هم شرک اوکړې نو بې شکه ستا عمل به هم ضائع شي، او يقينا ته به د تاوانيانو نه شې، بلکه ته د الله وحده عبادت کوه، او خان باندې د هغه په انعام باندې د شکر کونکو نه شه، او دې خلقو د الله عظمت پيژندلې نه دې، څنګه چې پيژندل پکار، هغه سره په شرک کولو سره نه ئې د هغه حق او پيژندلو څنګه چې د هغه د پيژندلو حق وو، او نه ئې د هغه تعظيم اوکړو څنګه چې پکار وو، ټوله زمکه به د قيامت په ورځ د هغه په مُټى کښې وى، جميعا حال دې، يعنى اوو واړه زمکې به د هغه په قبضه کښې وى، يعنى د هغه په ملکيت او تصرف کښې به وى، او ټول اسمانونه به د هغه په ښى لاس کښې راغونډ وى، يعنى د هغه په قدرت کښې به وى، هغه پاک دې او اوچت دې د هغه څيز نه کوم چې دا خلق د هغه شريک جوړوى، او شپيلې به اووهلې شى، اولنۍ شپيلې، لهذا په زمکه او اسمانوو کښې چې څه دى ټول به مړه شى، خو چې چالره هغه اوغواړى، يعنى حورې او ماشومان وغيره بيا به دوباره شپيلې اووهلې شى، هم هغه وخت به ټول مړه مخلوق پاسيږى، او انتظار به کوى، چې دوى سره به څه معامله کيږى، او زمکه به د الله په حکم سره پرق وهى، چې کله هغه د مقدمو فيصلو د پاره کينى، کتاب يعنى اعمال نامه به د حساب د پاره مخکښې کيخودلې شى، او نبيان او شهيدان به راوستلې شى، يعنى محمد ﷺ او د هغه امت بهٔ راوستلې شى، او دا خلق د رسولانو د پيغام رسولو ګواهى ورکړى، او د خلقو په مينځ کښې به په عدل او انصاف سره فيصلې اوکړى، او په دوى باندې به د ذرې برابر هم ظلم نه کيږى، او هر کس ته به د هغه د عمل پورا پورا بدله ورکړې شى، او څه چې دا خلق کوى هغه د دې نه ډير ښه خبردار دې، لهذا هغه ته به د ګواه ضرورت نه وى.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله**: أفغير الله تأمروني: دا په اصل کښې أتأمروني أن أعبد غير الله وو، د اعبد مفعول غير الله ئې په تامروني باندې کوم چې د اعبد عامل دې، مقدم کړو، بعضې حضراتو وئيلې

دی چې دا صورت ضعیف دې، خو ضعیف وئیل صحیح نه دی، ځکه چې (أن) په لفظونو کښې نشته، لهذا د دې عمل به باقی نه وی.

دویم صورت به دا وی چې غیر الله د تامرونی په ذریعه منصوب اومنلې شی، او أعبد ددې نه بدل اشی، نو تقدیر به داسې وی، قل: أتأمروني بعبادة غير الله دا ترکیب به د بدل الاشتمال د قبیلې نه وی.

دریم صورت به دا وی چې غیر د فعل محذوف د وجې نه منصوب شی، أی أفتلزموني غير الله په دې صورت کښې به ددې مابعد ددې د پاره مفسر وی، ددې نه علاوه نور ترکیبونه هم کیدې شی. (إعراب القرآن)

**قوله**: تأمروني: صیغه جمع مذکر حاضر، تاسو ماته حکم راکوئ، په دې کښې (ی) ضمیر واحد متکلم ده، او نون د ادغام د وجې نه مشدد دې.

**قوله**: ولقد اوحي اليك: لام د جواب قسم د پاره دې، أی والله لقد قد حرف تحقیق دې، أوحی فعل ماضی مجهول دې، او اولئک قائم مقام د نائب فاعل دې، او بعضې حضراتو وئیلی دی چې نائب فاعل د سیاق او سباق د قرینې د وجې نه محذوف دې، أن أوحي اليك التوحيد

**قوله**: فرضاً: دا د یو سوال مقدر جواب دې،

سوال دادې چې پیغمبران معصوم وی د هغوی نه د شرک جرم نشی کیدلې، نو بیا لئن أشركت ولې اووئیلې شول؟

**جواب**: د فرض محال په توګه وئیلې شوی دی بعضې حضراتو دا جواب ورکړې دې چې خطاب اګرچې حضور ﷺ ته دې خو مراد ترې نه امت دې،

خو اوس سوال دا پیدا کیږی چې بیا خو د لئن أشركت په ځائې لأن أشركتم وئیل پکار وو، ددې جواب دادې چې د دې معنی دا ده أوحي إلى كل واحد منهم لئن أشركت الخ څنګه چې په عربو کښې وئیلې شی کسانا الأمير حلة أی كسا كل واحد منا حلة.

**[اياتو نه: ٧١-٧٥]**

(وَسِيقَ الَّذِينَ كَفَرُوا) بِعُنفٍ (إِلَى جَهَنَّمَ زُمَرًا) جَمَاعَات مُتَفَرِّقَة (حَتَّى إِذَا جَاءُوهَا فُتِحَتْ أَبْوَابُهَا) جَوَاب إِذَا (وَقَالَ لَهُمْ خَزَنَتُهَا أَلَمْ يَأْتِكُمْ رُسُلٌ مِنْكُمْ يَتْلُونَ عَلَيْكُمْ آيَاتِ رَبِّكُمْ) القرآن وَغيره (وَيُنْذِرُونَكُمْ لِقَاءَ يَوْمِكُمْ هَذَا قَالُوا بَلَى وَلَكِنْ حَقَّتْ كَلِمَةُ الْعَذَابِ) اي (لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ) الآية (على الكافرين) (قِيلَ ادْخُلُوا أَبْوَابَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا) مُقَدَّرِينَ الخلود (فَبِئْسَ مَثْوَى) مَأوى (الْمُتَكَبِّرِينَ) جَهَنَّم (وَسِيقَ الَّذِينَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ) بِلُطفٍ (إِلَى الْجَنَّةِ زُمَرًا حَتَّى إِذَا جَاءُوهَا وَفُتِحَتْ أَبْوَابُهَا) الوَاو فِيهِ لِلحَالِ بِتَقدِيرِ قَد (وَقَالَ لَهُمْ خَزَنَتُهَا سَلَامٌ

عَلَيْكُمْ طِبْتُمْ﴾ حال ﴿فَادْخُلُوهَا خَالِدِينَ﴾ مُقَدَّرِينَ الخُلُود فِيهَا وَجَوَاب إِذَا مُقَدَّر أَيْ دَخَلُوهَا وَسَوْقُهُمْ وَفَتْح الأَبْوَاب قَبْل مَجِيئِهِمْ تَكْرِمَة لَهُمْ وَسَوْق الكُفَّار وَفَتْح أَبْوَاب جَهَنَّم عِنْد مَجِيئِهِمْ لِيَبْقَى حَرّهَا إِلَيْهِمْ إِهَانَة لَهُمْ ﴿وَقَالُوا﴾ عُطِفَ عَلَى دَخَلُوهَا المُقَدَّر ﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي صَدَقَنَا وَعْدَهُ﴾ بِالْجَنَّةِ ﴿وَأَوْرَثَنَا الْأَرْضَ﴾ أَيْ أَرْض الجَنَّة ﴿نَتَبَوَّأُ﴾ نَنْزِل ﴿مِنَ الْجَنَّةِ حَيْثُ نَشَاءُ﴾ لِأَنَّهَا كُلّهَا لَا يُخْتَار فِيهَا مَكَان عَلَى مَكَان ﴿فَنِعْمَ أَجْرُ الْعَامِلِينَ﴾ الجَنَّة ﴿وَتَرَى الْمَلَائِكَةَ حَافِّينَ﴾ حَال ﴿مِنْ حَوْلِ الْعَرْشِ﴾ مِنْ كُلّ جَانِب مِنْهُ ﴿يُسَبِّحُونَ﴾ حَال مِنْ ضَمِير حَافِّينَ ﴿بِحَمْدِ رَبِّهِمْ﴾ مُلَابِسِينَ لِلْحَمْدِ أَيْ يَقُولُونَ سُبْحَان اللّٰه وَبِحَمْدِهِ ﴿وَقُضِيَ بَيْنَهُمْ﴾ بَيْن جَمِيع الخَلَائِق ﴿بِالْحَقِّ﴾ أَيْ العَدْل فَيَدْخُل المُؤْمِنُونَ الجَنَّة وَالكَافِرُونَ النَّار ﴿وَقِيلَ الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ﴾ خَتْم اسْتِقْرَار الفَرِيقَيْنِ بِالحَمْدِ مِنَ المَلَائِكَة

---

**ترجمه:** او ډلې ډلې د کافرانو به په مختلفو ډلو کښې په سختئ سره به جهنم ته اوشړلې شي، چې کله دوی جهنم ته اورسی نو د جهنم دروازې به کولاؤ شی فتحت الأبواب د إذ جواب دې، هلته به نګرانان د دوی نه تپوس اوکړی چې آیا تاسو لان ته رسول نه وو راغلې، چې تاسو ئې ته ستاسو د رب آیتونه قرآن وغیره لوستلې وو، ؟ او تاسو ئې د دې ورځې د ملاقات نه یرولئ وئی؟ دوی به جواب ورکړی چې آو رشتیا دی، خو د عذاب کلمه یعنی دلاملان جهنم، الاية په کافرانو باندې پخه شوه، حکم به ورکړې شی چې اوس د جهنم په دروازو باندې داخل شئ کوم ځائې چې به تاسو همیشه اوسئ، په داسې حال چې همیشه والې ستاسو په نصیب شو، نو د سرکشو د پاره خراب ځائې ذې، او کوم خلق چه خپل رب نه یریدل، د هغوی ډلې ډلې به جنت ته په عزت سره روانې کړې شی، تر دې چې هغوی جنت ته اورسیږی په داسې حال چې دروازې به کولاؤ وی، وفتحت کښې واؤ حالیه دې، د قد په تقدیر سره، او د هغه ځائې نګرانان به دوی ته اووایئ چې په تاسو دې سلام وی خوشحاله اوسئ او تاسو دې ته د همیشه د پاره لاړ شئ، په داسې حال چې ددوی په دې کښې دا همیشه اوسیدل مقدر شول، د (اذ) جواب مقدر دې، أی دخلوها او ددوی بوتلل او ددوی د راتلو نه مخکښې د دروازو کولاویدل اعزاد دې، او د کافرانو شړل او جهنم ته د راتلو نه پس د دوزخ دروازې کولاوهل چې د جهنم هغه ګرموالې برقرار وی، د دوی د سپکوالی د پاره ده، دوی به وائی چې د الله شکر دې چا چې مونږ سره د خپل جنت وعده پورا کړه او مونږ هغه د زمکې یعنی د جنت وارثان جوړ کړو، چې په جنت کښې مونږ کوم ځائې غواړو اوسیږو به، ځکه چې جنتی به یو ځائې ته په بل ځائې باندې ترجیح نه ورکوی، نو د عمل کوونکو څه ښه بدله ده، او ته به فرشتو له د هغې د څلور واړه طرفو نه د عرش نه ګیر چاپیره د خپل رب تسبیح او ثنا ویونکې یعنی په دې کښې مشغوله ګورې، یسبحون د حافین د ضمیر نه حال دې، یعنی سبحان الله وبحمده به وائي، او په دوی کښې یعنی د ټولو مخلوقاتو په مینځ کښې به په حق سره یعنی په عدل او انصاف سره به فیصله اوکړې شی، نو مومنان به جنت او

کافران به دوزخ ته داخل شی، او اوبه وئیلې شی چې ټولې خوبیانې د الله د پاره دی، کوم چې د ټول جهان پالونکې دې، د دوو ډلو یعنی د جنتیانو او د دوزخیانو هیسارید لو(استقرار نې د ملائکو په حمد سره ختم شی، (والله سبحانه تعالی أعلم)

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: وسیق الذین کفروا: بعنف، واؤ عاطفه، سیق فعل ماضی مجهول، الذین اسم موصول، کفروا صله، موصول د صلې سره د سیق نائب فاعل، إلى جهنم سیق د متعلق دې، زمراً حال دې، زمر د زمرة جمع ده، په معنی د جماعت سره.

**قوله**: بعنف: ددې اضافې په سره د سختی بیان کول دی، ځکه چې د جهنمیانو سره هم دا حال مناسب دې،

**قوله**: سیق الذین اتقوا ربهم بلطف: د لطف په اضافه کول د احترام او د اکرام د بیان د پاره دې،

**سوال**: د جهنمیانو او دوزخیانو دواړو د پاره د سیق لفظ استعمال شوې دې، د جهنمیانو د پاره معنی بیان کړې شوه، (په سختئ او په زور سره شړل) او د جنتیانو د پاره ئې معنی بیان کړه (په عزت او احترام سره بوتلل) حالانکه لفظ یو دې، صیغه یوه ده، ماده یوه ده، نو په دواړو ځایونو کښې په معنی کښې فرق د څه وجې دې؟

**جواب**: د جهنمیانو د پاره سیق لفظ استعمال صحیح او معقول دې، ځکه چې کله دهغوی د پاره د سزا او د عذاب فیصله اوکړې شوه، نو د هغوی حیثیت د داسې مجرم دې، چاته چې د قید حکم ورکړې شوې وی، نو داسې باغی او مجرم په سختئ او تیزئې سره بوتلل شی، چې زر نه زر هغه جیل خانې ته داخل کړې شی، البته د هغه خلقو په باره کښې سوال پیدا کیږی، چې د چا د پاره د جنت فیصله کړې شوې وی نو د هغوی په تیز ئی سره د بوتلو څه ضرورت دې، هغوی خو په عزت او احترم سره بوتلل بوتلل پکار وو، ددې جواب دادې چې الذین اتقوا ربهم نه مخکښې مضاف محذوف دې، او هغه مراکب دې، اوس به عبارت داسې وی سیق مراکب الذین اتقوا یعنی د جنتیانو سورلئ به تیزئی سره بوتللې شی، چې هغوی خپل د آرام ځایونو ته زر اورسی، او د لفظ د محذوف کنړلو قرینه دا ده چې دا جنتیان به پیدل نشی بوتللې، بلکه د قبرونو نه پاسیدو سره به دوی ته سورلئ ورکړې شی.

ما أحسن قول الزمخشري في هذا الصدد قال: فإن قلت كيف عبر عن الذهاب بالفريقين جميعاً بلفظ السوق؟ قلت: المراد بسوق أهل النار طردهم إليها بالهوان والعنف كما يُفعل بالأسارى والخارجين على السلطان إذا سيقوا إلى حبس أو قتل والمراد بسوق أهل الجنة سوق مراكبهم لأنه لايذهب بهم إلا

راكبين وحثها إلى دار الكرامة والرضوان كما يفعل عمن يشرف ويكرم من الوافدين على بعض الملوك فشتان بين السوقين، (إعراب القرآن للدرويش)

**قوله**: حتى اذا جاءوها فتحت أبوابها. حتى ابتدائيه ده، إذا جاءوها شرط، فتحت أبوابها، په اتفاق سره جزاء ده.

**قوله**: حتى اذا جاءوها وفتحت ابوابها:

**سوال**: دلته په وفتحت ابوابها كښې واؤ راوړلې شوې دې ددې نه مخكښې واؤ نه دې راوړې شوې، په دې كښې څه نكته ده.؟

**جواب**: په دې كښې دا نكته ده، چې د جيل خانو دروازې عام طور سره بندې وی چې كله يو مجرم راوستلې شی نو هغه وخت د لږ وخت د پاره كولاؤ كړې شی، بيا فورا بندې كړې شی، په دې كښې د راتلونكو سپک والې دې، لهذا په دې كښې واؤ مناسب نه دې، په خلاف د مهمان خانو او د سيل د ځايونو، چې هغه دراتلونكو په انتظار كښې كولاؤ وی، نو په دې كښې د راتلونكو عزت دې، نو دلته واؤ مناسب دې،

دلته د (إذ) په جواب كښې درې صورتونه كيدې شی:

① وفتحت جواب شرط دې، واؤ زائده دې، دا د كوفيانو او د اخفش رائې ده.

② جواب محذوف دې، زمخشری وئيلې دی چې د خالدين نه پس دې محذوف اومنلې شی، ځكه چې د متعلقات شرط نه پس معطوف عليه راوړې شی، تقديری عبارت به داسې وی: اطمأنوا او مبرد سعدوا مقدر منلې دې، اومحلی دخلوها مقدر منلې دې،

③ بعضې حضراتو وئيلی دی چه جواب وقال لهم خزنتها دې، د واؤ په زياتوالی سره.

**قوله**: مقدرين الخلود فيها: ددې عبارت مقصد ددې اعتراض جواب وركول دی، چې خالدين د فادخلوا د ضمير نه حال دې، او د حال او د ذوالحال زمانه يوه وی، حالانكه دلته د دواړو زمانه يوه نه ده، ځكه چې د داخليدو نه پس هميشه والې وی نه چې يو ځايې؟

ددې جواب دا وركړې شو چې د هغوی د پاره هميشه والې په تقدير كښې ليكلې شوې دې، يعنی هغوی به جنت ته داخل شی په داسې حال چې هميشوالې د هغوی په تقدير كښې ليكلې شوې دی.

## [٤٠] سورة غافر (المؤمن)

### سورة غافر مكية إلا "الذين يجادلون" الآيتين خمس وثمانون اٰية

سورة غافر مكی دي، سوا د: الذين يجادلون ـه دوه آياتونو نه، او په دې کښې پنځه اتيا آياتونه دی.

**[اياتونه: ١-٩]**

بسم الله الرحمن الرحيم (حم) الله أعلم بمراده به (تنزيل الكتاب) القرآن مبتدأ (من الله) خبره (العزيز) في ملكه (العليم) بخلقه (غافر الذنب) للمؤمنين (وقابل التوب) لهم مصدر (شديد العقاب) للكافرين أي مشدده (ذي الطول) الإنعام الواسع وهو موصوف على الدوام بكل هذه الصفات فإضافة المشتق منها للتعريف كالأخيرة (لا إله إلا هو إليه المصير) المرجع (ما يجادل في آيات الله) القرآن (إلا الذين كفروا) من أهل مكة (فلا يغررك تقلبهم في البلاد) للمعاش سالمين فإن عاقبتهم النار (كذبت قبلهم قوم نوح والأحزاب) كعاد وثمود وغيرهما (من بعدهم وهمت كل أمة برسولهم ليأخذوه) يقتلوه (وجادلوا بالباطل ليدحضوا) يزيلوا (به الحق فأخذتهم) بالعقاب (فكيف كان عقاب) لهم أي هو واقع موقعه (وكذلك حقت كلمت ربك) أي (لأملأن جهنم) الآية (على الذين كفروا أنهم أصحاب النار) بدل من كلمة (الذين يحملون العرش) مبتدأ (ومن حوله) عطف عليه (يسبحون) خبره (بحمد ربهم) ملابسين للحمد أي يقولون سبحان الله وبحمده (ويؤمنون به) تعالى ببصائرهم أي يصدقون بوحدانيته (ويستغفرون للذين آمنوا) يقولون (ربنا وسعت كل شيء رحمة وعلما) أي وسعت رحمتك كل شيء وعلمك كل شيء (فاغفر للذين تابوا) من الشرك (واتبعوا سبيلك) دين الإسلام (وقهم عذاب الجحيم) النار (ربنا وأدخلهم جنات عدن) إقامة (التي وعدتهم ومن صلح) عطف على هم في وأدخلهم أو في وعدتهم (من آبائهم وأزواجهم وذرياتهم إنك أنت العزيز الحكيم) في صنعه (وقهم السيئات) أي عذابها (ومن تق السيئات يومئذ) يوم القيامة (فقد رحمته وذلك هو الفوز العظيم)

**ترجمه:** شروع کوم د الله په نوم سره چې ډير مهربانه او ډير رحم کوونکی والا دی، حم د الله ددې نه څه مراد دي،؟ الله ددې نه ښه خبردار دي، دا کتاب قرآن د هغه الله د طرف نه نازل شوي دي چې په خپل مُلک کښې غالب دي، او د خپل مخلوق نه خبردار دي، تنزيل الكتاب، مبتدأ ده، من الله، خبر، د مومنانو ګناهونو له معاف کونکي د هغوی توبه قبلونکي التوب مصدر دي، په کافرانو باندې سخت عذاب والا دي، شديد په معنی د مشدد، دي، ډير فراخه انعام کونکي دي، هغوی په دې صفتونو سره هميشه متصف دی، لهذا د دې درې صفاتو مشتقاتو اضافه به د تعريف د پاره وی، لکه چې اخری صفت (ذی الطول) دي، چې د هغه نه سوا بل څوک معبود نشته، هم هغه طرف ته تلل دی، د الله تعالی په آيتونو کښې يعنی په قرآن کښې

هغه خلق جهګړې کوي کوم چې کافران دي دمکې والو نه، لهذا ددوی په ښارونو کښې په امن سره د معاش د طلب د پاره تلل راتلل سفر کول تا په دهوکه کښې وانۀ چوي، ځکه چې د هغوی انجام جهنم دې، ددې نه مخکښې قوم نوح خپل نبی ﷺ دروغ اوګڼړلو، او ددوی نه پس نورو امتونو يعنی عاد و ثمود وغيره دروغ اوګڼړل، او هر يو امت د خپل رسول د ګرفتارولو (دقتل) اراده اوکړه، اوپه باطله ئې بحثونه اوکړل، چې په دې بې هوده طريقې سره حق باطل کړي، نو ما هغوی په خپل عذاب کښې ګرفتار کړل، نو ځما نيول ددوی په حق کښې څنګه وو.؟ يعنی هغه په ځائې وو، او دغه شان ستا د رب حکم د کافرانو په باره کښې ثابت شو، او هغه حکم (لأملأن جهنم) دې، چې هغوی دوزخيان دي، (أنهم أصحب النار) د کلمة نه بدل دې، د عرش اوچتونکې فرشتې، او هغه فرشتې چې د عرش نه ګير چاپيره دي، د حمد سره د الله پاکی بيانوی، يعنی سبحان الله وبحمده وائی، (الذين يحملون العرش) مبتدأ ده، يسبحون ددې خبر دې، او په الله تعالی باندې پوره بصيرت سره ايمان راوړی، يعنی دالله تعالی د وحدانيت تصديق کوی، او د ايمان والو د پاره استغفار کولو سره، وائی، اې ځمونږ پروردګاره تا په هر څيز باندې د خپل رحمت او علم سره احاطه کړې ده، يعنی ستا رحمت او ستا علم په هر څيز د حاوی دې، نو چې کومو خلقو د شرک نه توبه اوکړه او ستا په لار باندې په يعنی دين اسلام باندې ئې تلل اوکړل هغوی ته معاف کړې او د جهنم د اور ئې بچ کړی، اې زمونږ پروردګاره ته دوی لره د هميشوالی په جنت کښې داخل کړې د کوم چې تا دوی سره وعده کړې ده، او ددوی پلار نيکه ددوی ښځې او د اولاد نه چې څوک نيکان وی د (من صلح) عطف په (هم) باندې دې، کوم چې په (أدخلهم) کښې دې، يا په هغه (هم) باندې دې کوم چې په (وعدتهم) کښې دې، بې شکه ته په خپل کارونو کښې غالب او حکمت والا ئې، او ته دوی لره د ګناهونو نه يعنی د هغې د عذاب نه اوساته، او څوک چې تا د قيامت په ورځ د ګناهونو (عذاب) نه اوساتلو بې شکه تا په هغه باندې رحمت اوکړو او هم دغه لويه کاميابی ده.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله**: وقابل التوب:

**سوال**: دغافر الذنب او دقابل التوب مفهوم يو دې، نو بيا د قابل التوب د ذکر کولو څه فائده ده؟

**جواب**: وقابل التوب کښې واؤ راوړلو سره اشاره اوکړه چې په دواړو کښې فرق دې، ځکه چې د ګناهونو ختميدل بغير د توبې نه ممکن دی، او په بعضې ګناهونو کښې د توبې قبليدل ممکن دی، او په بعضو کښې نه، لهذا ددې په مينځ کښې څه ملازمت نشته، دغې مغائرت ته د اشارې کولو د پاره د واؤ اضافه اوکړې شوه، چې واؤ په مغائرت باندې دلالت اوکړی.

**قوله**: :مصدر: د لفظ مصدر د اضافه کولو مقصد په هغه خلقو باندې رد دې څوک چې دا وائی چې تَوب د تَوبَة جمع ده، مفسر علام د لفظ مصدر اضافه کولو سره اووئیل چې توب هم مصدر دې،

**قوله**: :مشددة:

**سوال**: د تشدید تفسیر په مشدد سره کولو کښې څه مصلحت دې،؟

**جواب**: شدید العقاب:اضافت الصفة المشبهة الی الفاعل د قبیلې نه دې، کوم ته چې اضافت لفظیه وائی دا په اتفاق سره د تعریف فائده نه ورکوی، اگر که ددې نه د استمرار او دوام اراده اوکړې شی، لهذا دې لره لفظ جلالهیعنی د لفظ الله صفت جوړول صحیح نه دی، ځکه چې لفظ الله أعرف المعارف دې، علامه محلی د شدید تفسیر په مشدد سره کولوکښې اشاره اوکړه چې شدید، د مشدد اسم فاعل په معنی کښې دې، او اسم فاعل نه که استمرار او دوام مراد وی نو د تعریف فائده ورکوی، لهذاد شدید العقاب د لفظ الله صفت جوړول صحیح دی، څنګه چې أذن بمعنی مؤذن دې،

**قوله**: :الطول : بمعنی فضل، یقال لفلان علی فلان طول أی فضل وزیادة د طول نسبت چې کله الله تعالی ته اوشی نو اجر او انعام مراد وی، هم په دې وجه مفسر علام د طول تفسیر دلته په الانعام الواسع سره کړې دې.

**قوله**: :وهوموصوف علی الدوام: ددې عبارت مقصد یو اعتراض دفع کول دی، چې هغې ته مخکښې اشاره شوې ده.

**سوال**: د سوال خلاصه دا ده چې په دې جمله کښې د لفظ الله څلور صفات واقع شوې دی، ①غافر، ②قابل ③شدید ④ذی الطول،
په دې کښې ړومبی درې صفاتو کښې اضافت لفظیه دې، کوم چې د تعریف فائده نه ورکوی، لهذا ددې درې واړو صفتونو د لفظ الله صفت جوړیدل صحیح نه دی؟

**جواب**: د جواب خلاصه داده چې اضافت لفظیه هغه وخت د تعریف فائده نه ورکوی چې کله د دې نه د استمرار او د دوام اراده اونکړې شی، او که د استمرار او د دوام ارده وی نو بیا اضافت لفظیه د تعریف فائده ورکوی، مفسر علام په دې عبارت سره اشاره اوکړه چې دلته استمرار او دوام مراد دې کوم چې د تعریف فائده ورکوی، لهذا ددې درې واړو د لفظ الله صفت جوړیدل صحیح دی، څنګه چې په مالک یوم الدین کښې صحیح دې،

**دویم جواب**: بعضې حضراتو دا جواب ورکړې دې چې دا درې واړه مشتقات د لفظ الله نه بدل دی، او په بدل کښې په تعریف کښې مطابقت ضروری نه وی.

**قوله**: :فلا يغررك: فاء په جواب شرط باندې راغلې ده او شرط محذوف دې، تقديرى عبارت داسې دې إذاعلمت أنهم كفار فلا يغررك إمهالهم فإنهم مأخوذون عن قريب.

**قوله**: :ليدحضوا: إدحاض جمع مذكر غائب منصوب بمعنى مصدر، باطل كول، زائله كول، (ف) دحض يدحض دحضا، دحوضا، مَدْحضاً خويدل، باطل كيدل.

**قوله**: :فكيف كان عقاب: دا په اصل كښې (عقابى) وو، د مصحف امام د رسم الخط په اتباع كښې (ى) حذف كړې شوه، كيف اسم استفهام، د كان د خبر مقدم كيدو د وجې نه محلا منصوب دې، او عقاب د كان اسم مرفوع دې، علامت رفع ماقبل (ى) متكلم محذوف باندې ضمه مقدره ده.

**قوله**: :بدل من الكلمة: كه د لفظ كلمه نه خاص إنهم أصحاب النار مراد وى نو دا به بدل الكل من الكل وى، او كه د كلمه نه لأملان جهنم مراد وى، څنګه چې علامه محلى مراد اخستې دې نو دا به بدل الاشتمال وى، ځكه چې په دې صورت كښې به كلمه أصحب النار ته هم شامل وى.

**قوله**: :فاغفر: فاء فصيحيه ده، اغفر صيغه د امر ده.

**قوله**: :وقهم: واؤ عاطفه دې، ددې عطف په فاغفر باندې دې، قهم، (ق) فعل امر په حذف د حرف علت باندې مبنى دې، (ها) مفعول به اول، او عذاب الجحيم مفعول ثانى دې.

**قوله**: :أي عذابها: په دې عبارت سره ئې اشاره اوكړه چې د السيئت مضاف محذوف دې.

[اياتونه: ١٠ - ٢٠]

(إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا يُنَادَوْنَ) مِنْ قِبَلِ الْمَلَائِكَةِ وَهُمْ يَمْقُتُونَ أَنْفُسَهُمْ عِنْدَ دُخُولِهِمُ النَّارَ (لَمَقْتُ اللهِ) إياكم (أكبر من مقتكم أنفسهم إذ تدعون) في الدنيا (إلى الإيمان فتكفرون) (قَالُوا رَبَّنَا أَمَتَّنَا اثْنَتَيْنِ) إِمَاتَتَيْنِ (وَأَحْيَيْتَنَا اثْنَتَيْنِ) إِحْيَاءَتَيْنِ لِأَنَّهُمْ نُطَفٌ أَمْوَاتٌ فَأُحْيُوا ثُمَّ أُمِيتُوا ثُمَّ أُحْيُوا لِلْبَعْثِ (فَاعْتَرَفْنَا بِذُنُوبِنَا) بِكُفْرِنَا بِالْبَعْثِ (فَهَلْ إِلَى خُرُوجٍ) مِنَ النَّارِ وَالرُّجُوعِ إِلَى الدُّنْيَا لِنُطِيعَ رَبَّنَا (مِنْ سَبِيلٍ) طَرِيقٍ وَجَوَابُهُمْ لَا (ذَلِكُمْ) أَيِ الْعَذَابُ الَّذِي أَنْتُمْ فِيهِ (بِأَنَّهُ) أَيْ بِسَبَبِ أَنَّهُ فِي الدُّنْيَا (إِذَا دُعِيَ اللَّهُ وَحْدَهُ كَفَرْتُمْ) بِتَوْحِيدِهِ (وَإِنْ يُشْرَكْ بِهِ) يُجْعَلْ لَهُ شَرِيكٌ (تُؤْمِنُوا) تُصَدِّقُوا بِالْإِشْرَاكِ (فَالْحُكْمُ) فِي تَعْذِيبِكُمْ (لِلَّهِ الْعَلِيِّ) عَلَى خَلْقِهِ (الْكَبِيرِ) العظيم (هُوَ الَّذِي يُرِيكُمْ آيَاتِهِ) دَلَائِلَ تَوْحِيدِهِ (وَيُنَزِّلُ لَكُمْ مِنَ السَّمَاءِ رِزْقًا) بِالْمَطَرِ (وَمَا يَتَذَكَّرُ) يَتَّعِظُ (إِلَّا مَنْ يُنِيبُ) يَرْجِعُ عَنِ الشِّرْكِ (فَادْعُوا اللَّهَ) اعْبُدُوهُ (مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ) مِنَ الشِّرْكِ (وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُونَ) إِخْلَاصَكُمْ مِنْهُ (رَفِيعُ الدَّرَجَاتِ) أَيِ اللَّهُ عَظِيمُ الصِّفَاتِ أَوْ رَافِعُ دَرَجَاتِ الْمُؤْمِنِينَ فِي الْجَنَّةِ (ذُو الْعَرْشِ) خَالِقُهُ (يُلْقِي الرُّوحَ) الْوَحْيَ (مِنْ أَمْرِهِ) أَيْ قَوْلِهِ (عَلَى مَنْ يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ لِيُنْذِرَ)

يُخَوِّفُ المُلقى عَلَيهِ النّاس ﴿يَوْمَ التَّلَاقِ﴾ بِحَذفِ اليَاء وَإِثبَاتِهَا يَوم القِيَامَة لِتَلَاقِي أَهل السَّمَاء وَالأَرضِ وَالعَابِد وَالمَعبُود وَالظَّالِم وَالمَظلُوم فِيهِ ﴿يَوْمَ هُم بَارِزُونَ﴾ خَارِجُونَ مِن قُبُورِهِم ﴿لَا يَخْفَىٰ عَلَى اللَّهِ مِنْهُمْ شَيْءٌ لِّمَنِ الْمُلْكُ الْيَوْمَ﴾ يَقُولُهُ تَعَالَى وَيُجِيب نَفسه ﴿لِلَّهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ﴾ أَي لِخَلقِهِ ﴿الْيَوْمَ تُجْزَىٰ كُلُّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ لَا ظُلْمَ الْيَوْمَ إِنَّ اللَّهَ سَرِيعُ الْحِسَابِ﴾ يُحَاسِب جَمِيع الخَلق فِي قَدر نِصف نَهَار مِن أَيَّام الدُّنيَا لِحَدِيثٍ بِذَلِكَ ﴿وَأَنذِرْهُمْ يَوْمَ الْآزِفَةِ﴾ يَوم القِيَامَة مِن أَزِفَ الرَّحِيل قَرُبَ ﴿إِذِ الْقُلُوبُ﴾ تَرتَفِع خَوفًا ﴿لَدَى﴾ عِند ﴿الْحَنَاجِرِ كَاظِمِينَ﴾ مُمتَلِئِينَ غَمًّا حَال مِنَ القُلُوب عُومِلَت بِالجَمعِ بِاليَاء وَالنُّون مُعَامَلَة أَصحَابِهَا ﴿مَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ حَمِيمٍ﴾ مُحِبّ ﴿وَلَا شَفِيعٍ يُطَاعُ﴾ لَا مَفهُوم لِلوَصفِ إِذ لَا شَفِيع لَهُم أَصلًا فَمَا لَنَا مِن شَافِعِين أَو لَه مَفهُوم بِنَاء عَلَى زَعمِهِم أَنَّ لَهُم شُفَعَاء أَي لَو شَفَعُوا فَرضًا لَم يُقبَلُوا ﴿يَعْلَمُ﴾ أَي اللّٰه ﴿خَائِنَةَ الْأَعْيُنِ﴾ بِمُسَارَقَتِهَا النَّظَر إِلَى مُحَرَّم ﴿وَمَا تُخْفِي الصُّدُورُ﴾ القُلُوب ﴿وَاللَّهُ يَقْضِي بِالْحَقِّ وَالَّذِينَ يَدْعُونَ﴾ يَعبُدُونَ أَي كُفَّار مَكَّة بِاليَاء وَالتَّاء ﴿مِن دُونِهِ﴾ وَهُم الأَصنَام ﴿لَا يَقْضُونَ بِشَيْءٍ﴾ فَكَيفَ يَكُونُونَ شُرَكَاء لِلّٰهِ ﴿إِنَّ اللَّهَ هُوَ السَّمِيعُ﴾ لِأَقوَالِهِم ﴿الْبَصِيرُ﴾ بِأَفعَالِهِم.

**ترجمه**: كافرانو ته به د فرشتو د طرف نه اواز اوكړې شي او دوى به جهنم ته د داخليدو په وخت په خپل ځان باندې غصه وى، چې يقينا د الله تعالى غصه په تاسو باندې ستاسو په خپل ځان باندې دغصه كيدلو نه زياتوو، كله چې تاسو په دنيا كښې د ايمان طرف ته راوبللې شوئ، نو تاسو به كفر كولو، نو هغه خلق به اووائى چې اې زمونږ پروردګاره تا مونږ ته دوه مرګونه راكړل او دوه دې پرې ژوندى كړل ځكه چې هغه بې ساه نطفې وې، د هغې نه پس ژوندى كړې شو بيا دوى په ته مرت وركړې شو بيا دوى د بعثت د پاره ژوندى كړې شو، نو مونږ د خپلو ګناهونو يعنى ددوباره ژوندى كيدو د انكار اقرار كوو، نو آيا د دوزخ نه د وتلو او د دنيا طرف ته د واپس تللو څه صورت شته؟ چې مونږ د خپل پروردګار تابعدارى اوكړو، نو دوى ته به جواب وركړې شى چې نا ، دا عذاب چې په كوم كښې تاسو مبتلا يئ ددې وجې نه چې كله به دنيا كښې يواځې د الله ذكر كيدلو نو تاسو به د هغه د توحيد نه انكار كولو او كه هغه سره به خوک شريكيدل يعنى د هغه د شريک خبرې به كيدې نو هغه به مو منله يعنى د شرک تصديق به مو كولو اوس تاسو د عذاب وركولو په باره كښې فيصله د الله ده، چې په خپل مخلوق باندې اوچت او عظيم دې، هم هغه دې چې تاسو ته خپلې نښې يعنى د خپل توحيد دليلونه ښكاره كوى او ستاسو د پاره د اسمان نه د باران په ذريعه روزى نازلوى، نصيحت خو هغه خلق حاصلوى چې د شرک نه رجوع كوى، تاسو الله رابلئ يعنى د هغه بندګى كوئ دين د هغه د پاره د شرک نه صفا كولو سره، اګرچې كافران ستا دين لره د شرک نه پاكول نه خوښوى، تاسو د هغوى پرواه مه كوئ ځكه چې الله اوچتې درجې والا دې، اوچت صفاتو والا دې، يا په جنت كښې د مومنانو درجو لره اوچتونكې دې، د عرش مالک يعنى د هغې خالق دې

هغه په خپلو بندګانو کښې چې په چا باندې اوغواړي د خپل کلام نه وحي نازلوي، چې هغه يعني وحي والا، په چا چې وحي نازليږي خلقو لره د ملاقات د ورځې نه اوويروي، تلاق کښې د (ی) په حذف او اثبات سره دې، او هغه د قيامت ورځ ده، چې په هغې کښې د اسمانونو او زمکو والو، عابد او د معبود او د ظالم او مظلوم د ملاويدلو د وجې په کومه ورځ چې خلق به ټول ښکاره شي، يعني د خپل قبرونو نه به راوځي، د هغوی څه څيز به د الله نه پټ نه وي، الله تعالی به اوفرمائي نن د چا بادشاهي ده؟ او خپله به جواب ورکړي صرف د الله کوم چې يواځې دې او په خپل مخلوق باندې غالب دې، نن به هر يو کس ته د هغه د ګټې بدله ورکولې شي، نن به څه قسم ظلم نه وي، الله تعالی ډير زر حساب اخستلو والا دې، دَ ټول مخلوق به د دنيا د نيمې ورځې په مقدار کښې حساب اوکړي، په حديث کښې د دغه شان د راتلو د وجې نه او دوی د نزدې راتلونکې ورځې د مصيبت يعني د قيامت د ورځ نه خبردار کړه، دا د لزف الرحيل بمعنی قرب نه ماخوذ دې، چې کله به زړونه د ويرې نه اوچتيدو سره حلق ته اورسي، يعني زړه به خُلې ته راورسي نيم به نه پاتې کيږي، يعني په غم کښې به ډوب وي، (کاظمين)د قلوب نه حال دې، (کاظمين) کښې ياء او نون جمع راوړلو سره د صاحب قلوب پشان معامله اوکړې شوه، (يعني د قلوب نه اصحاب القلوب مراد دې) د ظالمانو به نه څوک دوست وي نه به څوک سفارشي چې د هغه خبره به اومنلې شي، ذ وصف (يعني د يطاع) مفهوم مخالف مراد نه دې، ځکه چې د سر نه څوک شفارش کولو والا به نه وي، (نه مطاع او غير مطاع) ددوی قول فما لنا من شافعين (زمونږ څوک سفارشي نشته،) يا دَ وصف (يطاع) مفهوم مخالف دې، ددوی د ګمان مطابق چې ددوی سفارشيان دي، يعني فرض کړه که ددوی سفارش هم اوکړې شي نو ددوی سفارش به قبلولې نشي، هغه يعني الله د سترګو د خيانت نه يعني دحرام څيزونو طرف ته په ترڅ کتلو او د زړه په پټو خبرو باندې ښه خبردار دې، او الله به صحيح فيصله اوکړي، د هغه نه سوا کومو ته چې دا خلق اوازونه کوي يعني بندګی ئې کوي، او هغه بتان دي، (تدعون) په ياء او تاء سره دې، هغوی د هيڅ څيز هم فيصله کولې نشي، نو بيا دوی الله سره څنګه شريکان کيدې شي، بې شکه الله ددوی خبرو لره ډير ښه اوريدونکې او ددوی افعالو لره کتونکې دې.

### د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله**: ينادون: جمع مذکر حاضر مضارع مجهول مناداة، (مفاعلة) دوی ته اواز به اوکړې شي.

**قوله**: يمقتون أنفسهم: أي يمقتون أنفسهم (ن) معنا څوک د جرم کولو د وجه نه نهخوښول، دشمن ګڼړل.

**قوله**: تدعون: مضارع جمع مذکر حاضر مجهول (مصدر) دعاء

**قوله**: :أمتنا: تا مونږ ته مرګ راکړو، مصدر اماتة دې، (مرګ ورکول) ماضی واحد مذکر حاضر، (نا) ضمیر جمع متکلم

**قوله**: :أمتنا اثنتین احییتنا اثنتین: دواړه ځایونو کښې اثنتین د مصدر محذوف صفت دې، أی إماتتین اثنتین أو أحییتنا احیائتین، دواړه ځایونو کښې مصدر حذف کولو سره صفت ددې قائمقام کړې شوې دې، مفسر علام د إماتتین او إحییا ئتین اضافه کولو سره اشاره اوکړه چې دا دواړه مصدر محذوف دی، او اثنتین صفت،

**قوله**: :ذلکم بأنه: ذلکم اسم اشاره مبتدأ، مشار الیه، عذاب، بأنه د مبتدأ خبر.

**قوله**: :اي الله عظیم الصفات: په دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چې رفیع د صفت مشبه صیغه ده، او د مبتدأ محذوف خبر دې، أی هو ملزه فی صفاته عن کل نقص.

**قوله**: :او رافع: فعیل صیغه مبالغه بمعنی فاعل.

**قوله**: :من امره: جار مجرور د یلقی متعلق دې، (من) ابتداء غایت د پاره دې.

**قوله**: :یخوف الملقی علیه الناس: الملقی علیه د یخوف فاعل دې، الناس مفعول دې، او ملقی علیه نه مراد رسول یا نبی ﷺ دې.

**قوله**: :تلاق: یو بل سره ملاقات کول، یو بل سره یوځائ کیدل، دا په اصل کښې تلاقی وو، کوم چې د باب تفعل مصدر دې، د آخر نه (ی) حرف علت حذف شو، په دې کښې اثبات د (ی) او اسقاط د (ی) دواړه جائز دی.

**قوله**: :لتلاقی اهل السماء والارض: الخ: دا د قیامت د ورځې یوم التلاق نوم ایښودلو د علت بیان دې.

**قوله**: :یوم هم بارزون: دا د یوم التلاق نه بدل الکل دې، یوم جملې اسمیې طرف ته مضاف دې، هم مبتدأ بارزون خبر اول، لا یخفی خبر ثانی، لایخفی د بارزون د ضمیر نه حال هم کیدې شی، زمخشری حال ګرځولو ته راجح وئیلې دی.

**قوله**: :لمن الملك الیوم: دا د قیامت په ورځ واقع کیدونکې د سوال او جواب حکایت دې، یعنی الله تعالی به د قیامت په ورځ لمن الملك الیوم وئیلو سره سوال اوکړی، او په خپله به لله الواحد القهار وئیلو سره جواب ورکړی، لمن خبر مقدم دې، او الملک مبتدأ مؤخر.

**قوله**: :لله: د مبتدأ محذوف خبر دې، أی الملك لله زمخشری وئیلی دی چې د قیامت په

ورځ به يو اوازكونكې اواز اوكړي لمن الملك اليوم،نو حشر والا به جواب وركړي، لله الواحد القهار.

قوله: اليوم تجزي: اليوم تجزى ظرف مقدم دى، او كل نفس، د تجزى نائب فاعل دى.

قوله: الازفة: دا د قيامت د نومونو نه يو نوم دې، دا د أزف الرحيل نه مشتق دې، أي قرب قيامت چونكه ورځ تر ورځې رانژدې كيږي ځكه دې ته آزفة اووئيلې شول.

قوله: الحناجر: دا د حنجر جمع ده، په معنى د مرئى، (په مختار كښې دى) الحنجرة بالفتح والحنجور بالضم الحلقوم، وبالفارسية كلو.

قوله: كاظمين: داد كاظم جمع ده، دا د القلوب نه حال دې، د قاعدې مطابق كاظمة پكار وو، ځكه چې قلوب غير ذوى العقول دى، خو كاظمين چې د ذوى العقول صفت دې، ددې نسبت د قلوب طرف ته شوې دې، كوم چې غير ذوى العقول دې، نو ګويا چې غير ذوى العقول سره د ذوى العقول معامله اوكړې شوه، هم په دې مناسبت ئې د كاظمة په ځاې كاظمين راوړو، كظم معنى ده (د ډير غم او غصې په حالت كښې هوش بيلل، په داسې صورت كښې وئيلې شى د وينى ګوټ ځكل . دې ته په فارسئ كښې "خشم فروخوردن" وئيلې شى.

قوله: يعلم خائنة الأعين: د مخكښې ذكر شوى هوالذى يريكم،الخ كښې د (هو) مبتدأ خبر ثانى دې، الذى يريكم خبر اول، (دويم تركيب دا كيدې شى) چې يعلم خائنة الاعين د (هو) مبتدأ محذوف څلورم خبر دې، ①خبر اول رفيع الدرجات ②خبر ثاني ذوى العرش ③خبر ثالث يلقى الروح ④خبر رابع يعلم خائنة الاعين.

**[اياتو نه: ٢١ - ٢٧]**

(أولم يسيروا في الأرض فينظروا كيف كان عاقبة الذين كانوا من قبلهم كانوا هم أشد منهم) وفي قراءة منكم (قوة وآثارا في الأرض) من مصانع وقصور (فأخذهم الله) اهلكهم (بذنوبهم وما كان لهم من الله من واق) عذابه (ذلك بأنهم كانت تأتيهم رسلهم بالبينات) بالمعجزات الظاهرات (فكفروا فأخذهم الله إنه قوي شديد العقاب) (ولقد أرسلنا موسى بآياتنا وسلطان مبين) برهان بين ظاهر (إلى فرعون وهامان وقارون فقالوا) هو (ساحر كذاب) (فلما جاءهم بالحق) بالصدق (من عندنا قالوا اقتلوا أبناء الذين آمنوا معه واستحيوا) استبقوا (نساءهم وما كيد الكافرين إلا في ضلال) هلاك (وقال فرعون ذروني أقتل موسى) لأنهم كانوا يكفونه عن قتله (وليدع ربه) ليمنعه مني (إني أخاف أن يبدل دينكم) من عبادتكم اياي فتتبعوه (وأن يظهر في الأرض الفساد) من قتل وغيره وفي قراءة أو وفي أخرى بفتح الياء والهاء وضم الدال (وقال موسى) لقومه وقد سمع ذلك (إني عذت بربي وربكم من كل متكبر لا يؤمن بيوم الحساب)

**ترجمه:** آيا دا خلق په زمکه نه گرځي؟ چې اوگوري چې کوم خلق ددوی نه مخکښې وو د هغوی څه انجام شو، په اعتبار د قوت او طاقت، او په زمکې کښې د خپلو يادگارونو په اعتبار، ددوی نه ډير زيات وو، او هغه يادگارونه د اوبو لوئې لوئې حوضونه او محلونه وو، او په يو قرا ت کښې د منهم په ځائې منکم دې، نو الله تعالیٰ هغوی د هغوی د گناهونو په سبب اونيول، هلاک ئې کړل او څوک نه وو چې هغوی ئې د الله د عذاب نه بچ کړې وې، دا د دې وجه نه چې دوی ته ددوی پيغمبران په ښکاره معجزو سره راغلي وو، نو دوی به انکار کولو، نو الله تعالیٰ دوی اونيول، يقينا هغه طاقت ور او سخت عذاب والا دې، او مونږ موسى عليه السلام د خپل واضحه دلائلو او آيتونو سره فرعون، هامان او قارون طرف ته اوليږلو، نو هغوی اووئيل چې دا خو جادوگر او دروغژن دې، چې کله موسى عليه السلام زمونږ د طرف نه حق راوړو نو هغوی اووئيل چې څوک په دوی باندې ايمان راوړونکی دی د هغوی هلکان قتل کړئ او د هغوی جينکئ ژوندئ پريږدئ، او د کافرانو دا چال بې اثر شو، او فرعون اووئيل چې ما پريږدئ چې څه موسى عليه السلام قتل کړم، ځکه چې هغوی دې د موسى عليه السلام د قتل نه منع کولو، او هغه له پکار دی چې خپل رب ته اواز اوکړي، چې هغه دې ځما نه بچ کړي، ماته ويره ده چې چرته ستاسو دين بدل نه کړي، يعنى ستاسو ځما عبادت کولو لره، او تاسو د هغه تابعداری شروع کړئ، او په ملک کښې څه لوئې فساد خور نه کړئ مثلا قتل وغيره، په يو قراءت کښې د "واؤ" په ځائې "او" دې، او په دويم کښې د يُظهِر په ځاې يَظهَر د (ی او ها) په فتحې سره، او د (دال) په ضمې سره دې، او موسى عليه السلام خپل قوم ته اووئيل په داسې حال کښې چې موسى عليه السلام دې خبرې نه يعنى د خپل قتل د خبرې نه خبر شوې وو، څه د خپل او ستاسو د رب په پناه کښې راځم، د هر تکبر کونکی کس د لويوالی نه کوم چې په ورځ د حساب باندې ايمان نه راوړي.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** فكيف كان عاقبة الذين كانوا من قبلهم كانوا هم اشد منهم: کيف د کان خبر مقدم دې، عاقبة د کان اسم دې او بيا جمله د ينظر مفعول کيدو د وجه نه محلا منصوب دې، كانوا هم اشد منهم قوة وآثارا في الارض، كانوا فعل ناقص په دې کښې ضمير ددې اسم، اشد خبر، هم ضمير فصل، قوة تميز معطوف عليه، اثارا معطوف.

**سوال:** ضمير فصل د دوو معرفو په مينځ کښې واقع کيږي، نه چې د دوو نکرو يا د يو نکرې او يو معرفې په مينځ کښې، دلته د هم "معرفه"، او أشد "نکرې" په مينځ کښې واقع دې؟

**جواب:** نکره که مشابه بالمعرفه وی نو د ضمير فصل د نکرې او د معرفې په مينځ کښې راتلل صحيح دی، دلته اشد نکره ده خو مشابه بالمعرفه ده، ځکه چې په دې باندې د

الف لام داخليدل منع دی، ځکه چې اسم تفضيل چې کله مقرون بمن وی، نو په دې باندې الف لام نه داخليږی، اودا دمشابه بالمعرفه کيدوعلامه ده،لهذا اوس څه اعتراض نشته.

**قوله**: :مصانع:دا د مصنع جمع ده، مصنع په ډيرو معنو کښې استعماليږی، لوئې حوض چې په کوم کښې ډيرې اوبه جمع وی، دغه شان قلعو او محلاتو ته هم وائی، مفسر علام د اشارا تفسير په مصانع او قصور سره کړې دې، قصور د قصر جمع ده، محلاتو ته وائی، د مصانع نه قلعې او لوئې لوئې تالابونه او ډيم مراد اخستلې شی.

**قوله**: :عذابه:په دې کښې حذف د مضاف ته اشاره ده، من الله أی من عذاب الله.

**[ایاتونه:٢٨ - ٣٧]**

(وَقَالَ رَجُلٌ مُؤْمِنٌ مِنْ آلِ فِرْعَوْنَ) قِيلَ هو ابن عَمِّه (يَكْتُمُ إِيمَانَهُ أَتَقْتُلُونَ رَجُلًا أَنْ) أيْ لِأَنْ (يَقُولَ رَبِّيَ اللَّهُ وَقَدْ جَاءَكُمْ بِالْبَيِّنَاتِ) بِالْمُعْجِزَاتِ الظَّاهِرَات (مِنْ رَبِّكُمْ وَإِنْ يَكُ كَاذِبًا فَعَلَيْهِ كَذِبُهُ) أيْ ضَرَر كَذِبِه (وَإِنْ يَكُ صَادِقًا يُصِبْكُمْ بَعْضُ الَّذِي يَعِدُكُمْ) بِهِ مِنَ الْعَذَاب عَاجِلًا (إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي مَنْ هُوَ مُسْرِفٌ) مُشْرِك (كَذَّابٌ) مُفْتَرٍ (يَا قَوْمِ لَكُمُ الْمُلْكُ الْيَوْمَ ظَاهِرِينَ) غَالِبِينَ حَال (فِي الْأَرْضِ) أرْضِ مِصْر (فَمَنْ يَنْصُرُنَا مِنْ بَأْسِ اللَّهِ) عَذَابِه إنْ قَتَلْتُمْ أوْلِيَاءَهُ (إِنْ جَاءَنَا) أيْ لَا نَاصِر لَنَا (قَالَ فِرْعَوْنُ مَا أُرِيكُمْ إِلَّا مَا أَرَى) أيْ مَا أُشِير عَلَيْكُمْ إلَّا بِمَا أُشِير بِهِ عَلَى نَفْسِي وَهُوَ قَتْل مُوسَى (وَمَا أَهْدِيكُمْ إِلَّا سَبِيلَ الرَّشَادِ) طَرِيق الصَّوَاب (وَقَالَ الَّذِي آمَنَ يَا قَوْمِ إِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُمْ مِثْلَ يَوْمِ الْأَحْزَابِ) أيْ يَوْم حِزْب بعد حزب (مِثْلَ دَأْبِ قَوْمِ نُوحٍ وَعَادٍ وَثَمُودَ وَالَّذِينَ مِنْ بَعْدِهِمْ) مِثْل بَدَل مِنْ مِثْل قَبْله أيْ مِثْل جَزَاء عَادَة مَنْ كَفَرَ قَبْلكُمْ من تعذيبهم في الدنيا (وما الله يريد ظلما للعباد) (وَيَا قَوْمِ إِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُمْ يَوْمَ التَّنَادِ) بِحَذْفِ الْيَاء وَإِثْبَاتهَا أيْ يَوْم الْقِيَامَة يَكْثُر فِيهِ نِدَاء أَصْحَاب الْجَنَّة أَصْحَاب النَّار وَبِالْعَكْسِ وَالنِّدَاء بِالسَّعَادَةِ لِأَهْلِهَا وَبِالشَّقَاوَةِ لِأَهْلِهَا وَغَيْر ذَلِكَ (يَوْمَ تُوَلُّونَ مُدْبِرِينَ) عَنْ مَوْقِف الْحِسَاب إلَى النَّار (مَا لَكُمْ مِنَ اللَّهِ) أيْ مِنْ عذابه (من عاصم) مانع (ومن يضلل الله فما له من هاد) (وَلَقَدْ جَاءَكُمْ يُوسُفُ مِنْ قَبْلُ) أيْ قَبْل مُوسَى وَهُوَ يُوسُف بْن يَعْقُوب فِي قَوْل عَمَّرَ إلَى زَمَن مُوسَى أوْ يُوسُف بْن إبْرَاهِيم بْن يُوسُف بْن يَعْقُوب فِي قَوْل (بِالْبَيِّنَاتِ) بِالْمُعْجِزَاتِ الظَّاهِرَات (فَمَا زِلْتُمْ فِي شَكٍّ مِمَّا جَاءَكُمْ بِهِ حَتَّى إِذَا هَلَكَ قُلْتُمْ) مِنْ غَيْر بُرْهَان (لَنْ يَبْعَثَ اللَّهُ مِنْ بَعْدِهِ رَسُولًا) أيْ فَلَنْ تَزَالُوا كَافِرِينَ بِيُوسُف وَغَيْره (كَذَلِكَ) أيْ مِثْل إضْلَالكُمْ (يُضِلُّ اللَّهُ مَنْ هُوَ مُسْرِفٌ) مُشْرِك (مُرْتَابٌ) شَاكّ فِيمَا شَهِدَتْ بِهِ الْبَيِّنَات (الَّذِينَ يُجَادِلُونَ فِي آيَاتِ اللَّهِ) مُعْجِزَاته مبتدأ (بِغَيْرِ سُلْطَانٍ) بُرْهَان (أَتَاهُمْ كَبُرَ) جِدَالهمْ خَبَر المبتدأ (مَقْتًا عِنْدَ اللَّهِ وَعِنْدَ الَّذِينَ آمَنُوا كَذَلِكَ) مِثْل إضْلَالهمْ (يَطْبَعُ) يَخْتِم (اللَّهُ) بِالضَّلَالِ (عَلَى كُلِّ قَلْبِ مُتَكَبِّرٍ جَبَّارٍ) بِتَنْوِينِ قَلْب وَدُونه وَمَتَى تَكَبَّرَ الْقَلْب تَكَبَّرَ صَاحِبه وَبِالْعَكْسِ وَكُلّ عَلَى الْقِرَاءَتَيْنِ لِعُمُومِ الضَّلَال جَمِيع الْقَلْب لَا لِعُمُومِ الْقَلْب (وقال فرعون يا هامان ابن لي صرحا) بناء عاليا (لعلي أبلغ الأسباب) (أَسْبَابَ السَّمَاوَاتِ) طُرُقهَا الْمُوَصِّلَة إلَيْهَا (فَأَطَّلِعَ) بِالرَّفْعِ عَطْفًا عَلَى أَبْلُغ

وَبِالنَّصْبِ جَوَابًا لِابْنِ ﴿إِلَى إِلَٰهِ مُوسَىٰ وَإِنِّي لَأَظُنُّهُ﴾ أَيْ مُوسَى ﴿كَاذِبًا﴾ فِي أَنَّ لَهُ إِلَهًا غَيْرِي قَالَ فِرْعَوْنُ ذَٰلِكَ تَمْوِيهًا ﴿وَكَذَٰلِكَ زُيِّنَ لِفِرْعَوْنَ سُوءُ عَمَلِهِ وَصُدَّ عَنِ السَّبِيلِ﴾ طَرِيقِ الْهُدَى بِفَتْحِ الصَّادِ وَضَمِّهَا ﴿وَمَا كَيْدُ فِرْعَوْنَ إِلَّا فِي تَبَابٍ﴾ خَسَارٍ

**ترجمه** او يو مومن سړى چې د فرعون د خاندان نه وو، ونيلې شوې دى چې دا د هغه د تره خوئې وو، او خپل ايمان ئې پټ کړې وو هغه وئيل چې تاسو يو کس صرف ددې وجې قتلوئ چې وائى څما رب الله دې او ستاسو د رب د طرف نه په دليلونو يعنى ښکاره معجزو سره راغلې دې، که هغه دروغژن وى نو د هغه د دروغو گناه په هغه باندې ده،او که هغه رشتونې وى نو چې کوم د دنيا د عذاب هغه نه تاسو سره وعده کوى په هغې کښې به څه نه څه په تاسو باندې راشى، الله تعالى هغه کس ته لار نه ښائى چې شرک کولو سره د حد نه تجاوز کوى دروغژن وى، اې څما د قوم خلقو انن خو بادشاهى ستاسو ده چې تاسو په ملک مصر باندې غالب يئ د الله په عذاب کښې به زمونږ مدد څوک کوى، که د هغه د قتل په وجه مونږ باندې راغلو، يعنى زمونږ مددګار څوک به نه وى، فرعون اووئيل چې څه تاسو ته هغه رائې درکوم کومه چې څه ښه گنړم، يعنى څه تاسو ته هغه مشوره درکوم کومه چې څما په زړه کښې ده او هغه دا چې د موسى عليه السلام قتل کول مناسب دى، څه تاته هغه رائې درکوم کومه چې صحيح ده، هغه سړى اووئيل کوم چې مومن وو اې څما د قوم خلقو ماته ستاسو په باره کښې د نورو قومونو پشان د بدې ورځې ويره ده، يعنى يو بل پسې د نورو قومونو د ورځو پشان، لکه قوم نوح قوم عاد او ثمود او ددوى نه د روستو قومونو حال شو، روستنے مثل د اولنى مثل نه بدل دې، يعنى په دنيا کښې د هغه خلقو په شان سزا کومو چې تاسو نه مخکښې کفر کړې وو، الله تعالى په خپل بنديانو باندې څه قسم ظلم کول نه غواړى او اې څما د قوم خلقو ماته په تاسو باندې د چغو د ورځې ويره ده، (تناد) د ياء په حذف او اثبات سره، مراد ترې نه د قيامت ورځ ده، ځکه چې په دغه ورځ به د جنتيان دوزخيانو ته آوازونه وى او د دوزخيانو جنتيانو ته په کثرت آوازونه وى، او نيک بختو ته به د نيک بختئ او بدبختو ته به د بختئ اوازونه دير وى، په کومه ورځ چې د حساب د ځائې نه دوزخ طرف ته تاسو مخ اړولو سره واپس شئ تاسو لره د الله د عذاب نه بچ کولو والا به څوک نه وى، او څوک چې الله گمراه کړى هغه ته څوک هدايت ورکولو والا نشته، او ددې نه مخکښې تاسو ته يوسف عليه السلام دليلونو يعنى ښکاره معجزو سره راغلې وو، يعنى د موسى عليه السلام نه مخکښې او دا په يو قول کښې يوسف بن يعقوب دې، هغه ته د موسى عليه السلام زمانې پورې اوږد عمر ورکړې شوې وو، يا په يو قول کښې يوسف بن ابرهيم بن يوسف بن يعقوب دې، بيا هم تاسو د هغه راوړې شوې دليلونو په باره کښې په شک او شبه کښې وئ، تردې چې کله هغه وفات وشو، نو بغير د دليل نه تاسو اووئيل اوس به د دې نه پس هيڅ کله هم الله څوک رسول نه راليږى، يعنى تاسو هميشه د يوسف عليه السلام او د نورو رسولانو منکر

شوئ، دغه شان چې څنګه یې تاسو ګمراه کړئ، الله هر هغه کس ګمراه کوی چې شرک کولو سره د حد نه تجاوز کونکې وی او په دې خبره کښې شک کونکی وی، چې د هغې دلیلونه ګواهی ورکوی، کوم خلق چې د الله په آیتونو یعنی په معجزاتو کښې بغیر د څه دلیل نه کوم چې دوی ته راغلې وو جهګړې کوی الذین مبتدأ ده، کبرمقتا ددې خبر دې، د الله په نیز او د مومنانو په نیز دا ډیر د خفګان څیز دې، الله تعالی دغه شان د هر مغروره او سرکشه په زړه باندې د ګمراهئ مهر لګوی، قلب تنوین، او بغیر د تنوین نه صحیح دې، او چې کله زړه تکبر کوی نو زړه والا هم تکبر کوی، او ددې عکس هم، او کل د دواړو قراءتونو په صورت کښې د پورا زړه د ګمراه کیدو د بیان د پاره دې، نه چې د ټولو زړونو د ګمراهئ عموم بیانولو د پاره فرعون اووئیل چې اې هامان ته ځما د پاره یو اوچت عمارت جوړ کړه کیدې شی چې څه په دې لارو اوخیژم یعنی د اسمان په لارو باندې کوم چې اسمان ته رسیدونکې وی، او څه د موسی معبود ته لړ اوګورم، اطلع په رفع سره، په ابلغ باندې عطف دې، او په نصب سره، د ابن امر جواب کیدو د وجې نه، او څه خو موسی علیه السلام دروغژن ګنړم، چې دده ځما نه سوا بل معبود شته، دا خبره فرعون د تلبیس په توګه اووئیله، (یعنی خلق بیوقوف جوړولو د پاره) او دغه شان د فرعون غلط کارونه هغه ته ښه ښکاره کړې شو هغه د هدایت د لارې نه بند کړې شو، صدد صاد په فتحې او ضمې سره، او د فرعون هر یوه حیله ناکامه شوه،

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: قال رجل مؤمن من ال فرعون یکتم ایمانه: (الایة) دا کلام مستانف دې، که د رجل نه د ال فرعون رجل مراد وی څنګه چې د مفسر رائې ده نو رجل موصوف مومن صفت اول، من ال فرعون صفت ثانی، او یکتم ایمانه صفت ثالث، موصوف درې واړو صفاتو سره د قال فاعل کیدو سره قول، اتقتلون رجلا الخ مقوله، ان یقول ربی الله جمله د اتقتلون مفعول له دې، او که د رجل مومن نه مراد اسرائیلی وی څنګه چې د بعضې مفسرینو رائې ده نو من ال فرعون به د یکتم متعلق وی، او د یکتم د مفعول ثانی قائمقام به وی، ترجمه به دا وی هغه رجل مومن خپل ایمان د آل فرعون نه پټ کړې وو، (اول قول راجح دې)

**قوله**: ربی الله: ربی مبتدأ، الله ددې خبر، أو علی العکس

**قوله**: وقد جاءکم بالبینت: واؤ حالیه، قد حرف تحقیق الغ جمله د رجلا نه یا د یقول د ضمیر نه حال دې، خو د رجل نه په حال ګرځولو کښې اعتراض دې،

**قوله**: یك: کون مصدر دې، واحد مذکر غائب مضارع مجزوم، علامت جزم نون محذوفه

باندې سكون مقدر دې، په اصل كښې يكن وو، نون تخفيفاً حذف كړې شو، په يَک كښې هو ضمير ددې اسم، او كاذبا ددې خبر.

**قوله**: ان الله لا يهدي من هو مسرف كذاب: ددې كلام تعلق د موسى عليه السلام سره هم كيدې شي، او د فرعون عليه اللعنه سره هم كيدې شي، كه د موسى عليه السلام سره تعلق وي نو مطلب به داوي چې الله تعالى موسى عليه السلام ته د معجزاتو د ښكاره كولو توفيق او هدايت وركړو او د چا چې دا حال وي نو هغه مسرف كذاب نشي كيدې، لهذا موسى عليه السلام مسرف او كذاب نه دې، ګنى الله تعالى به هغه ته معجزات او بينات نه وركول، او كه ددې تعلق د فرعون سره وي، نو مطلب به دا وي چې فرعون د موسى عليه السلام د قتل په اراده كښې زياتى كونكې وو، او د الوهيت په دعوى كښې دروغژن دې، او د چا چې دا صفت وي الله تعالى هغه ته هدايت نه وركوي.

**قوله**: ظاهرين: دا د لكم د ضمير نه حال دې.

**قوله**: ما اشير عليكم الا بما اشير به على نفسي: دا د الله تعالى د قول ما اريكم الا ما ارى د حاصل معنى په ذريعې سره تفسير دې، ګنى د الفاظو په رعايت سره به دا تفسير وي، ما اعلمكم الا ما علمت من الصواب.

**قوله**: يوم حزب بعد حزب: دا د يوم الاحزاب تفسير دې، ددې مقصد دې خبرې ته اشاره كول دي، چې د يوم الاحزاب نه مراد ايام الاحزاب دي، ځكه چې په مخكښينى امتونو باندې عذاب په يو ورځ باندې نازل شوې نه وو، بلكه په مخلتفو ورځو او مختلفو زمانو كښې پرې نازل شوې وو،

**قوله**: مثل جزاء عادة من كفر قبلكم: لفظ جزاء محذوف ګڼړلو سره ئې مضاف د حذف طرف ته اشاره اوكړه.

**قوله**: عادة: د داب تفسير دې، او د من كفر نه مراد مخكښينى امتونه دي، چا چې د خپل رسولانو تكذيب كړې وو.

**قوله**: وغير ذلك: اى مثل نداء بالويل والثبور ونداء المؤمن هاؤم اقرءوا كتابيه وينادى الكافر ياليتني لم اوت كتابيه.

**قوله**: يوم تولون مدبرين مالكم من الله من عاصم: يوم تولون د يوم التناد نه بدل دې.

**قوله**: مالكم من الله من عاصم: (ما) نافيه حجازيه ده، لكم خبر مقدم، من الله جار مجرور د عاصم سره متعلق دې، په من عاصم كښې (من) زائد دې، عاصم د (ما) اسم مؤخر، جمله د تولون د ضمير نه حال دې،

**قوله**: الذين يجادلون: دا د (من هو مسرف) نه بدل دې.

**سوال**: الذين يجادلون جمع ده، او من هو مسرف واحد دې، د جمع د واحد نه بدل راتلل صحيح نه دی؟

**جواب**: من هو مسرف نه واحد مراد نه دې، بلکه کل واحد یعنی هر مسرف مراد دې، لهذا د جمع بدل راتلل صحیح دی،

**جواب**: د (من) نه په اعتبار د معنې سره بدل دې نه چې په اعتبار د لفظ سره.

**سوال**: د کَبُر فاعل څوک دې؟

**جواب**: په (کَبُر) کښې ضمیر (هو) کوم چه په اعتبار د لفظ سره د (من هو مسرف) طرف راجع دې.

**قوله**: الذين يجادلون: الخ: الذین حذف د مضاف سره مبتدأ، او کَبُر ددې خبر، په دې کښې ضیمر کوم چې مضاف محذوف طرف ته راجع دې، کوم چه د یجادلون نه معلومیږی، تقدیری عبارت دا دې، جدال الذین یجادلون کبر مقتاً: مقتاً تمیز دې، کوم چې د فاعل نه منقول دې، أی کبر مقت جدالهم،

**قوله**: وعند الذين آمنوا: ای کبر مقتاً ایضاً عند الذین آمنوا،

**قوله**: على كل قلب متكبر جبار: په قلب کښې دوه قراءتونه دی تنوین سره، او بغیر د تنوین نه، ابوعمرو او ذکوان په تنوین سره وئیلې دې، او تکبر او تجبر ئې د قلب صفت گرځولې دې، یعنی الله تعالی د هر متکبر او سرکش زړه باندې مهر لگوی، او نورو بغیر د تنوین نه په اضافت سره وئیلې دې، یعنی د هر متکبر او سرکش په زړه باندې مهر وهی، یعنی تکبر او تجبر ئې د صاحب قلب صفت گرځولې دې.

**قوله**: متى تكبر القلب تكبر صاحبه وبالعكس: ددې عبارت د اضافې مقصد په دواړو قراتونو کښې تطبیق کول دی،

د تطبیق خلاصه دا ده چې د تکبر او د سرکش نسبت که قلب ته اوشی او که قلب والا ته اوشی، نو د دواړو یو مطلب دې، ځکه چه د قلب تکبر د صاحب قلب د پاره او د صاحب قلب تکبر د قلب سره لازم دې.

**قوله**: وكل على القراءتين لعموم الضلال جميع القلب لا لعموم القلب: ددې عبارت مقصد دا وئیل دی چې کل قلب متکبر کښې د کل نه مراد کل مجموعی دې، نه چې کل إفرادی، قلب که په تنوین سره اووئیلې شی یا بغیر د تنوین نه اووئیلې شی په دواړو صورتونو کښې

کل مجموعی مراد دي، د کل مجموعی مطلب دادې چې الله تعالی د سرکش او د متکبر په پوره زړه باندې مهر وهی، د قلب يو جز بغير د مهر نه نه پريږدی، يعنی د قلب په هيڅ يو جزء کښې د هدايت قبلولو صلاحيت نه پاتې کيږی، او د کل افرادی مطلب دادې چې په هر يو قلب باندې مهر لګوی هيڅ يو زړه د مهر لګولو نه بغير پريږدی. يعنی د ټولو متکبرينو او سرکشو خلقو په زړه باندې د ګمراهئ مهر لګوی،

خو د مفسر په دواړو صورتونو کښې د کل نه کل مجموعی مراد اخستل د قاعدې معروفې خلاف دې، ځکه چې قاعده دا ده چې کل کله په نکره باندې داخل وی يا په جمع معرفه باندې داخل وی نو د عموم أفراد د پاره وی، مثلاً **کل قلب يا کل القلوب** د دواړو مطلب دې چې ټول زړونه، او چې کله په مفرد معرفه باندې داخل وی نو د اجزاؤ د عموم فائده ورکوی، يعنی د قلب هر هر جز مراد وی، مثلاً ونيلې شی **کلُّ رمانٍ حلوٌ** هر يو انار خوږ وی، يعنی چې خومره هم انار دی ټول خواږه دی، او که اوونيلې شی **کل الرمان حلو** ټول اناران خواږه دی، يعنی د هغې يو جز هم ترش نه دې.

**قوله**: اسباب السموات: د تکرار حکمت **تفصيل بعد الابهام** دې، کوم چې په تفخيم او تعظيم باندې دلالت کوی.

**قوله**: بالرفع: ددې عبارت مقصد د **فاطلع** داعراب وضاحت کول دی، که رفع اوونيلې شی نو په **ابلغ** باندې به عطف وی، او که نصب اوونيلې شی نو د (ابن) فعل امر د (ان) په تقدير سره به جواب وی.

**قوله**: بفتح الصاد وضمها: که د صدّ په صاد باندې فتتحه اوونيلې شی نو فاعل به ئې فرعون وی او که د صاد په ضمې سره اوونيلې شی لکه صُدّ نو نائب فاعل به فرعون وی يعنی فرعون د صحيح لارې نه بند کړې شو،

**قوله**: الافی تباب: تباب **تب يتب** (ض) مصدر دې، په معنی د هلاکت، نقصان.

**[ايات توله: ۳۸-۵۰]**

(وقال الذي آمن يا قوم اتبعون) بِالْيَاءِ وَحَذْفِهَا (أَهْدِكُمْ سَبِيلَ الرَّشَادِ) تَقَدَّمَ (يَا قَوْمِ إِنَّمَا هَٰذِهِ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا مَتَاعٌ) تمتع يزول (وإن الآخرة هي دار القرار) (مَنْ عَمِلَ سَيِّئَةً فَلَا يُجْزَىٰ إِلَّا مِثْلَهَا وَمَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِنْ ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَىٰ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَأُولَٰئِكَ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ) بِضَمِّ الْيَاءِ وَفَتْحِ الْخَاءِ وَبِالْعَكْسِ (يُرْزَقُونَ فِيهَا بِغَيْرِ حِسَابٍ) رزقا واسعا بلا تبعة (ويا قوم ما لي أدعوكم إلى النجاة وتدعونني إلى النار) (تَدْعُونَنِي لِأَكْفُرَ بِاللَّهِ وَأُشْرِكَ بِهِ مَا لَيْسَ لِي بِهِ عِلْمٌ وَأَنَا أَدْعُوكُمْ إِلَى الْعَزِيزِ) الْغَالِبِ عَلَى أَمْرِهِ (الْغَفَّارِ) لِمَنْ تَابَ (لَا جَرَمَ) حَقًّا (أَنَّمَا تَدْعُونَنِي إِلَيْهِ) لِأَعْبُدَهُ (لَيْسَ لَهُ دَعْوَةٌ) أَيْ اسْتِجَابَةُ دَعْوَةٍ (فِي الدُّنْيَا وَلَا فِي الْآخِرَةِ وَأَنَّ مَرَدَّنَا) مَرْجِعَنَا (إلى الله وأن

المسرفين) الكافرين (هم أصحاب النار (فستذكرون) إذا عاينتم العذاب (ما أقول لكم وأفوض أمري إلى الله إن الله بصير بالعباد) قال ذلك لما توعدوه بمخالفة دينهم (فوقاه الله سيئات ما مكروا) به من القتل (وحاق) نزل (بآل فرعون) قومه معه (سوء العذاب) الغرق ثم (النار يعرضون عليها) يحرقون بها (غدوا وعشيا) صباحا ومساء (ويوم تقوم الساعة) يقال (ادخلوا) يا (آل فرعون) وفي قراءة بفتح الهمزة وكسر الخاء امر للملائكة (أشد العذاب) عذاب جهنم (و) اذكر (إذ يتحاجون) يتخاصم الكفار (في النار فيقول الضعفاء للذين استكبروا إنا كنا لكم تبعا) جمع تابع (فهل أنتم مغنون) دافعون (عنا نصيبا) جزاء (من النار) (قال الذين استكبروا إنا كل فيها إن الله قد حكم بين العباد) فأدخل المؤمنين الجنة والكافرين النار (وقال الذين في النار لخزنة جهنم ادعوا ربكم يخفف عنا يوما) اي قدر يوم (من العذاب) (قالوا) اي الخزنة تهكما (أولم تك تأتيكم رسلكم بالبينات) بالمعجزات الظاهرات (قالوا بلى) اي فكفروا بهم (قالوا فادعوا) انتم فإنا لا نشفع للكافرين قال تعالى (وما دعاء الكافرين إلا في ضلال) انعدام

**ترجمه:** او هغه مومن سړی او وئیل چې اې ځما د قوم خلقو ځما تابعداری اوکړئ، اتبعون اثبات بالیاء والحذف بالیاء (د یاء اثبات او حذف د یاء) دواړه دی، ځه به تاسو ته نیغه لاره اوښایم، تقدم أی تقدم قریبا یعنی د الاسبیل الرشاد په ضمن کښې اوس تیر شوي دي، اې ځما قومه دا د دنیا ژوند ډیر لږ او ډیر زر ختمیدونکي فائده ده، یقین اوساتئ، چې د قرار او همیشه والې کور آخرت دې، چا چې گناه اوکړه نو هغه ته به برابر بدله ورکړې کیږی، او چا چې نیکی اوکړه که سړې وی او که ښځه، خو په داسې حال چې ایمان ئې راوړې وی نو دا خلق به جنت ته ځی، په یدخلون کښې یاء په ضمې سره، او خاء په فتحې سره، او ددې عکس هم، هلته به بې شمیره، سره د فراغت نه بغیر د معاوضې نه روزی حاصلوی، بغیر د احسان او بغیر د معاوضې نه، او اې ځما قومه دا څه خبره ده چې ځه تاسو نجات طرف ته رابلم او تاسو ما د دوزخ طرف ته رابلئ، تاسو ماته دعوت راکوئ چې ځه الله تعالی سره کفر اوکړم او هغه سره هغه ذات شریک کړم د څه چې ماته علم نشته، او ځه تاسو داسې ځیز طرف ته رابلم چې په خپل حکم کښې غالب دې، او توبه ویستونکو لره معاف کونکې دې، او دا خبره یقینی ده چې تاسو د کوم ځیز بندگۍ ته ما رابلئ هغه نه په دنیا کښې د رابللو قابل دې او نه په آخرت کښې، یعنی په هغوی کښې د دعا د قبلولو صلاحیت نشته، او دا هم یقینی خبره ده، چې زمونږ د ټولو واپس کیدل د الله طرف ته دی، او یقین اوساتئ چې د حد نه تجاوز کونکی یعنی کافران د دوزخیانو نه دی، او چې کله تاسو عذاب گورئ، نو ځما خبرې به ډیر زر درپه یاد شی، ځه خپله معامله الله ته په حواله کوم، یقینا الله تعالی د بندگانو نگران دې، دا خبره هغه رجل مومن هغه وخت اووئیله چې کله هغه ته د قتل دهمکی ورکړې شوه، د هغه د کافرانو د دین د مخالفت کولو د وجې نه، نو الله تعالی هغه د ټولو مکروهاتو نه یعنی مصیبتونو نه محفوظ اوساتلو، کوم چې هغوی د هغه د قتل تدبیرونه سوچ کړې وو، او فرعون

والو باندې یعنی د هغه په قوم باندې سره د فرعون د غرقیدو بدترین عذاب راغلو، ددې نه پس اور دې چې په هغې باندې به دوی سحر او مابنام پیش کیږی، یعنی په هغې کښې به سوزولې شی، او چې کله قیامت راشی، ارشاد به اوشی اې فرعونیانو اد سخت ترین جهنم عذاب کښې داخل شئ، په یو قراءت کښې (أدخلوا) د همزې په فتحې او د خاء په کسرې سره دې، یعنی فرشتو ته به حکم کیږی، چې (دوی د جهنم په عذاب کښې واچوئ)، د هغه وخت ذکر اوکړه چې کله کافران په دوزخ کښې یو بل سره جنګ کوی، کمزورې طبقې والا به تکبر کونکو ته اووایئ، چې مونږ ستاسو تابعداری کوله، تبع د تابع جمع ده، نو اوس تاسو زمونږ نه ددې اور څه حصه لرې کولې شئ، او هغه غټان متکبره خلق به جواب ورکړو، مونږ خو ټول په دې اور کښې یو، الله تعالی په خپل بندګانو کښې فیصله کړې ده، نو دغه شان هغه مومنانو لره په جنت کښې او کافرانو لره په دوزخ کښې داخل کړل، ټول جهنمیان به د دوزخ داروغه ته اووایئ، چې ته د خپل پروردګار ته دعا اوکړه چې هغه خو یو ورځ یعنی د یو ورځې په مقدار زمونږ په عذاب کښې سپکوالې اوکړی، نو د جهنم داروغه به د توقو په انداز سره جواب ورکړی چې آیا تاسو ته ستاسو رسولان په ښکاره معجزو سره نه وو راغلې؟ دوی به وائی چې ولې نه، ضرور راغلې وو، یعنی مونږ د هغوی انکار اوکړو هغه به اووائی چې بیا خو تاسو پخپله دعا اوکړئ، مونږ د هیڅ یو کافر سفارش نه کوو، الله تعالی به اوفرمائی، د کافرانو دعا بې اثره او کالعدم ده.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: وقال الذي آمن: الذی امن نه مراد د آل فرعون رجل مومن مراد دې، او بعضې مفسرینو وئیلی دی چې حضرت موسی علیه السلام ترې مراد دې،

**قوله**: بإثبات الياء وحذفها: د التعون په یاء کښې د حذف او اثبات او د وقف او وصل دواړه صورتونه جائز دی، خو دا حذف او اثبات د تلفظ حده پورې دې، په رسم الخط کښې حذف لازم دې، ځکه چې یاء زائده ده،

**قوله**: تمتع يزول: یعنی د دنیا ژوند سريع الزوال متاع قليل دې، متاع کښې تنوین د تقلیل د پاره دې.

**قوله**: بلا تبعة: یعنی ددې بې حسابه رزق به نه څه معاوضه وی او نه به په دې باندې احسان ضبادلې شی، په یو نسخه کښې د بلا تبعة په ځائې بلا تعبة دې، یعنی بغیر د مشقت نه،

**قوله**: تدعونني لاكفر الخ: دا د تدعوننی اول نه بدل دې.

**قوله**: لاجرم: د یقیناً او حقاً په شان معنی لری، په اصل کښې د لامحاله په معنی دې، د

دیر استعمال نه پس قسمًا حقًا فعل ماضی په معنی کښې استعمالیدل شروع شو، د سیبویه او د خلیل هم دا قول دې، او ابوالبقاء د حقا یعنی مصدری معنی کښې ګرځولې دې، او هم دې ته ئې د جمهورو مسلک وئیلې دې، په تفسیر ابوسعود کښې ئې لا نافیه او جرم فعل ماضی ئې په معنی د حقّ ګرځولې دې.

**قوله**: انما تدعوننی: (ما) اسم موصول په معنی د الذی، یعنی انما کښې (ما) موصوله ده، لهذا حق دا وو چې (ما)ئې د نون نه جدا لیکلې وې، یعنی (إن ما) څنګه چې قاعده ده، خو د امام په مصحف کښې ما ئې د نون سره یو ځائې لیکلې ده، لهذا ددې په اتباع کښې هم دا رسم الخط باقی پاتې شو، څنګه چې ابن جزری دې طرف ته اشاره کړې ده.

**قوله**: ثم النار یعرضون علیها: د (ثم) اضافه د کلام مستانف کیدو ته اشاره ده، النار مبتدأ او یعرضون علیها جمله د مبتدأ خبر دې، مطلب دادې چې د مرګ د وخت نه د قیامت د راتلو پورې به ددوی روحونه په اور پیش کولې شی.

**قوله**: یوم تقوم الساعة یا خو د (ادخلوا) معمول دې، یا د (یقال) فعل محذوف معمول دې، تقدیری عبارت دا دې، یقال لهم یوم تقوم الساعة ادخلوا

**قوله**: دافعون: د (مغنون) تفسیر په (دافعون) سره کولو کښې ئې اشاره اوکړه، چې نصیبا مغنون یعنی د دافعون معنې لره د متضمن کیدو د وجې نه منصوب دې، د نصیبا د نصب د پاره د فعل مقدر منلو ضرورت نشته.

**قوله**: فذرهم یوم: ددې اضافې مقصد دا وئیل دی چې د یوم نه مراد مقدار د یوم دې، ځکه چې په آخرت کښې شپه او ورځ نشته، چې د هغې د وجې نه د ورځې تعیین کیږی، ځکه د یوم نه مراد مقدار د یوم دې.

**[ایاتونه: ٥١-٦٠]**

(إِنَّا لَنَنْصُرُ رُسُلَنَا وَالَّذِينَ آمَنُوا فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَيَوْمَ يَقُومُ الْأَشْهَادُ) جَمْع شَاهِد وَهُمُ الْمَلَائِكَة يَشْهَدُونَ لِلرُّسُلِ بِالْبَلَاغِ وَعَلَى الْكُفَّار بِالتَّكْذِيبِ (يَوْمَ لَا يَنْفَعُ) بِالْيَاءِ وَالتَّاءِ (الظَّالِمِينَ مَعْذِرَتُهُمْ) عُذْرهمْ لَوْ اعْتَذَرُوا (وَلَهُمُ اللَّعْنَةُ) أَيْ الْبُعْد مِنَ الرَّحْمَة (وَلَهُمْ سُوءُ الدَّارِ) الْآخِرَة أَيْ شِدَّة عَذَابهَا (وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَى الْهُدَى) التَّوْرَاة وَالْمُعْجِزَات (وَأَوْرَثْنَا بَنِي إِسْرَائِيلَ) مِنْ بَعْد مُوسَى (الْكِتَابَ) التَّوْرَاة (هُدًى) هَادِيًا (وَذِكْرَى لِأُولِي الْأَلْبَابِ) تَذْكِرَة لِأَصْحَابِ الْعُقُول (فَاصْبِرْ) يَا مُحَمَّد (إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ) بِنَصْرِ أَوْلِيَائِهِ (حَقٌّ) وَأَنْتَ وَمَنْ تَبِعَك مِنْهُمْ (وَاسْتَغْفِرْ لِذَنْبِكَ) لِيُسْتَنَّ بِك (وَسَبِّحْ) صَلِّ مُتَلَبِّسًا (بِحَمْدِ رَبِّكَ بِالْعَشِيِّ) وَهُوَ مِنْ بَعْد الزَّوَال (وَالْإِبْكَارِ) الصَّلَوَات الْخَمْس (إِنَّ الَّذِينَ يُجَادِلُونَ فِي آيَاتِ اللَّهِ) الْقُرْآن (بِغَيْرِ سُلْطَانٍ) بُرْهَان (أَتَاهُمْ إِنْ) مَا (فِي صُدُورِهِمْ إِلَّا كِبْرٌ) تَكَبُّر وَطَمَع أَنْ يَعْلُوا عَلَيْك (مَا هُمْ بِبَالِغِيهِ فَاسْتَعِذْ) مِنْ شَرّهمْ (بِاللَّهِ إِنَّهُ هُوَ

السَّمِيع} لِأَقْوَالِهِمْ {الْبَصِير} بِأَحْوَالِهِمْ وَنَزَلَ فِي مُنْكِرِي الْبَعْث {لَخَلْقُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ} ابتداء {أَكْبَرُ مِنْ خَلْقِ النَّاس} مَرَّة ثَانِيَة وَهِيَ الْإِعَادَة {وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ} أَيْ كُفَّار مَكَّة {لَا يَعْلَمُونَ} ذَلِكَ فَهُمْ كَالْأَعْمَى وَمَنْ يَعْلَمهُ كَالْبَصِيرِ {وما يستوي الأعمى والبصير} و لا {الذين آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَات} وَهُوَ الْمُحْسِن {وَلَا الْمُسِيء} فيه زيادة لا {قليلا ما يتذكرون} يَتَّعِظُونَ بِالْيَاءِ وَالتَّاء أَيْ تَذَكُّرهمْ قَلِيل جِدًّا {إِنَّ السَّاعَةَ لَآتِيَةٌ لَا رَيْبَ} شَكّ {فِيهَا وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يُؤْمِنُونَ} بِهَا {وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ} أَيْ اُعْبُدُونِي أُثِبْكُمْ بِقَرِينَةِ مَا بَعْده {إِنَّ الَّذِينَ يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِي سَيَدْخُلُونَ} بِفَتْحِ الْيَاء وَضَمّ الْخَاء وَبِالْعَكْسِ {جَهَنَّمَ دَاخِرِينَ} صَاغِرِينَ

**ترجمه:** يقينا مونږ د خپلو رسولانواو د ايمان والو ددنيا په ژوند كښې هم مدد كوو، او په هغه ورځ به هم كوو، چې په كومه ورځ گواهي وركونكي والا گواهي وركړي.أشهاد د شاهد جمع ده، او هغه ملائک دي چې د رسولانود پيغام رسولو او د كافرانو دروغ گڼړلو گواهي به وركوي، په كومه ورځ چې به ظالمانو ته د هغوى عذر هيڅ فائده ورنكړي، ينفع په تاء او ياء سره، كه هغوى معذرت اوكړي، او د هغوى د پاره به لعنت وي يعنى د رحمت نه به لرې والې وي، او د هغوى د پاره د آخرت كور ډير خراب كور دې، يعنى د آخرت د كور د عذاب سختوالې او مونږ موسى عليه السلام ته هدايت نامه يعنى تورات او معجزې وركړې وې او د موسى عليه السلام نه پس مونږ بنى اسرائيل د كتاب يعنى د تورات وارثان جوړ كړل، چې هغه هدايت يعنى رهنماو د عقلمندو د پاره نصيحت وو، نو اې محمده ته صبر كوه، بې شكه د خپلو دوستانو د مدد د الله رشتونې وعده ده، او تاسو او ستاسو تابعدار په هغه دوستانو كښې شامل دى، تاسو د خپلې خطا معافى غواړئ، چې خلق ستا تابعدارى اوكړى، او سحر او مابنام په تعريف وئيلو سره د خپل رب تسبيح بيانوه، عشى د زوال نه پس وخت دې، مراد ترې نه پنځه وخته مونځونه دى، هغه كس چه بغير د څه سند (دليل) نه د الله په آيتونو يعنى په قرآن كښې جهګړې كوى د دوى په زړونو كښې سوا د تكبر نه او ددې خبرې د خواهش نه، چې په تاسو باندې غالب راشى، نور هيڅ هم نشته، دوى دا مقصد چرې هم حاصلولې نشى، نو تاسو ددوى د شر نه د الله پناه غواړئ، بې شكه هغه ددوى خبرو لره اوريدونكې او ددوى په حال باندې خبردار دې، دا راروان آيت د منكرين بعث په باره كښې نازل شو، د اول نه اسمان او زمكه پيدا كول د انسان د دوباره پيدا كولو نه يقينا ډير لوئې كار دې، او دوباره پيدا كول اعاده ، خو ډير خلق يعنى كافران د دې خبرې نه ناخبره دى، نو كفار د راندو په شان دى، او څوک چه د دې خبرې نه خبر دى هغوى د بينا په شان دى، او ړوند او بينا برابر نه دى، او كومو خلقو چې ايمان راوړلو او نيک عملونه ئې اوكړل په داسې حال چې مخلصان هم وو د بدكارانو برابر كيدې نشى، او په (لا المسئ) كښې لام زائد دې، هغوى ډير كم نصيحت حاصلوى، په ياء او تاء

سره، يعني د دوی نصيحت حاصلول ډير کم دی، **قيامت به شکه يقيني طور سره راتلونکې دی، دا بله خبره ده چې ډير خلق په دې باندې ايمان نه راوړی، او ستاسو رب اوفرمائيل چې ما نه دعا غواړئ، زه به ستاسو دعا قبلوم،** يعني تاسو زما بندګي اوکړئ زه به تاسو ته د هغې بدله درکړم، (دا ترجمه) د راتلونکې آيت د قرينې د وجې نه ده، **يقينا هغه کسان چې زما د عبادت نه مخ واړوی هغوی به ډير زر ذليل کيدو نه پس جهنم ته داخل شی،** د ياء په فتحې او د خاء په ضمې سره، او ددې عکس هم.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:: يوم يقوم الاشهاد:** ددې عطف في الحيوة الدنيا باندې دې، يعني مونږ به د هغوی د دنيا په ژوند کښې مدد اوکړو او د ګواهئ په ورځ به هم مدد اوکړو،

**قوله:: يوم لا ينفع:** دا د يوم يقوم الاشهاد نه بدل دې.

**قوله:: معذرتهم:** د تنفع فاعل دې، لهم خبر مقدم، او اللعنة مبتدأ مؤخر ده.

**قوله:: لهم سوء الدار:** ددې عطف په لهم اللعنة باندې دې.

**قوله:: لو اعتذروا:** ددې عبارت د اضافې مقصد د يوې شبهې جواب دې.

**شبه:** د يوم لا ينفع الظلمين معذرتهم مقتضی دا ده چې کافران به د قيامت په ورځ عذر پيش کړی خو ددوی دا عذر او معذرت به هيڅ فائده ورنکړی، او په يو بل آيت ولا يؤذن لهم فيعتذرون نه معلوميږی چې دوی ته به د عذر پيش کولو اجازت نه وی، په دې دواړو آيتونو کښې تضاد معلوميږی؟

**دفع:** مفسر علام د لو اعتذروا اضافه کولو سره دې شبه لره دفع کړې ده، د دفع خلاصه دا ده چې فرض کړه که کافران په دغه ورځ عذر هم اوکړی نو قبليږی به نه، لهذا اوس څه اعتراض پاتې نشو،

**قوله:: هاديا:** په دې سره ئې دې خبرې ته اشاره اوکړه چې هدی **بمعنی هاديا** د الکتاب نه حال دې، او دغه شان ذکری دا هم دتذکره په معنې د الکتاب نه حال دې، مفسر علام هم دې ترکيب ته اشاره کړې ده، او بعضې حضراتو هدی او ذکری د **اورثنا مفعول لاجله** ګرځولو سره محلا منصوب وئيلې دې، **ای اورثنا الکتاب لاجل الهدی والذکری.**

**قوله:: ليستن بك:** ددې کلمې د اضافه کولو مقصد د يوې شبهې جواب کول دی.

**شبه:** **واستغفر لذنبك** کښې حضور ﷺ ته حکم ورکړې شوې دې چې تاسو د خپلو ګناهونو معافی اوغواړئ، او د اهل السنة والجماعة عقيده دا ده چې نبيان د پيغمبرئ نه

مخکښې او روستو د ورو او غټو ګناهونو نه پاک وی، نو بیا د ګناهونو نه د معافی غوښتلو څه مقصد شو؟

①**اولنې جواب**:حضور ﷺ ته معصوم کیدو باوجود د مغفرت د طلب کولو حکم په اصل کښې د امت د تعلیم د پاره وو، چې د نبی ﷺ په اتباع کښې امتیان هم د خپلو ګناهونو نه توبه او استغفار اوکړی.

②**دویم جواب**: کلام د مضاف حذف سره دې، تقدیری عبارت دا دې **لستغفر لذنب امتك** حضور ﷺ چونکه د امت شفارش کونکې دې څکه د ذنب نسبت حضور ﷺ ته کړې شوې دې، ګنی مراد ترې نه د امت ګناهونه دی.

③**دریم جواب**: د ذنب نه مراد خلاف اولې دې، **حسنات الابرار سیئات المقربین** د قاعدې د وجې، لهذا خلاف اولی ئې ذنب سره تعبیر کړو.

**قوله**: **قليلاما يتذكرون**: **قليلا** د مفعول مطلق محذوف صفت دې، (ما) زائده دې، د قلت د تاکید د پاره، تقدیری عبارت دا دې، **يتذكرون تذكرا قليلا**.

**قوله**: **تذكرهم قليل**: د **قليل** په رفع سره، تذکرهم د مبتدأ د خبر کیدو د وجې نه مرفوع دې، او په بعضې نسخو کښې قلیلا په نصب سره دې، د نصب دا صورت کیدې شی چې قلیلا حال اوګرځولې شی، او د تذکرهم خبر محذوف اومنلې شی، تقدیری عبارت به دا وی **تذكرهم يحصل حال كونه قليلا**، قلیل باندې رفع اولی ده، څنګه چې مفسر علام اختیار کړې ده.

**قوله**: **بالياء والتاء**: **يتذكرون** کښې دواړه قراءتونه دی، نافع او ابن کثیر وغیره په یاء سره وئیلې دې، ماقبل یعنی **ان الذين يجادلون** د موافقت د پاره، او نورو په توګه د التفات په خطاب سره، تتذکرون وئیلې دې، مقصد په انکار او توبیخ کښې اضافه کول دی.

**قوله**: **اعبدوني**: د **ادعوني** دوه تفسیرونه دی، یو حقیقت او بل مجاز، د حقیقت مطلب دادې چې ادعونی په خپله حقیقی یعنی د دعاء په معنې کښې واخستلې شی، د مجاز مطلب دا دې چې دعاء په معنی د عبادت واخستلې شی، عبادت چونکه دعاء ته شامل وی او دعاء د عبادت جز دې، او د قرینې د وجې نه مجازا د جزء نه کل مراد اخستلې شی، شارح رحمه الله دویم تفسیر خوښ کړې دې، او دعاء په معنې ئې د عبادت اخستې ده، او قرینه روستو والا آیت **ان الذين يستكبرون عن عبادتي (الاية)** دې.

**[ایاتونه: ٦١ - ٦٨]**

{اللَّهُ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ اللَّيْلَ لِتَسْكُنُوا فِيهِ وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا} إسْنَادُ الإِبْصَارِ إِلَيْهِ مَجَازِيٌّ لِأَنَّهُ يُبْصَرُ فِيهِ {إِنَّ اللَّهَ لَذُو فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَشْكُرُونَ} الله فلا يؤمنون {ذَلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمْ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ فَأَنَّى تُؤْفَكُونَ} فَكَيْفَ تُصْرَفُونَ عَنِ الإِيمَانِ مَعَ قِيَامِ الْبُرْهَانِ {كَذَلِكَ يُؤْفَكُ} أَيْ مِثْلَ إِفْكِ هٰؤُلَاءِ إِفْكُ {الَّذِينَ كَانُوا بِآيَاتِ اللَّهِ} مُعْجِزَاتِهِ {يَجْحَدُونَ} {اللَّهُ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ قَرَارًا وَالسَّمَاءَ بِنَاءً} سقفا {وصوركم فأحسن صوركم ورزقكم من الطيبات ذلكم الله ربكم فتبارك الله رب العالمين} {هُوَ الْحَيُّ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ فَادْعُوهُ} اعبدوه {مخلصين له الدين} من الشرك {الحمد لله رب العالمين} {قُلْ إِنِّي نُهِيتُ أَنْ أَعْبُدَ الَّذِينَ تَدْعُونَ} تَعْبُدُونَ {مِنْ دُونِ اللَّهِ لَمَّا جَاءَنِيَ الْبَيِّنَاتُ} دلائل التوحيد {من ربي وأمرت أن أسلم لرب العالمين} {هُوَ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ تُرَابٍ} بِخَلْقِ أَبِيكُمْ آدَمَ مِنْهُ {ثُمَّ مِنْ نُطْفَةٍ} مَنِيٍّ {ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ} دَمٍ غَلِيظٍ {ثُمَّ يُخْرِجُكُمْ طِفْلًا} بِمَعْنَى أَطْفَالًا {ثُمَّ} يُبْقِيكُمْ {لِتَبْلُغُوا أَشُدَّكُمْ} تَكَامُلَ قُوَّتِكُمْ مِنَ الثَّلَاثِينَ سَنَةً إِلَى الْأَرْبَعِينَ {ثُمَّ لِتَكُونُوا شُيُوخًا} بِضَمِّ الشِّينِ وَكَسْرِهَا {وَمِنْكُمْ مَنْ يُتَوَفَّى مِنْ قَبْلُ} أَيْ قَبْلَ الْأَشُدِّ وَالشَّيْخُوخَةِ فَعَلَ ذٰلِكَ بِكُمْ لِتَعِيشُوا {وَلِتَبْلُغُوا أَجَلًا مُسَمًّى} وَقْتًا مَحْدُودًا {وَلَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ} دَلَائِلَ التَّوْحِيدِ فَتُؤْمِنُونَ {هُوَ الَّذِي يُحْيِي وَيُمِيتُ فَإِذَا قَضَى أَمْرًا} أَرَادَ إِيجَادَ شَيْءٍ {فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُ كُنْ فَيَكُونُ} بِضَمِّ النُّونِ وَفَتْحِهَا بِتَقْدِيرِ أَنْ أَيْ يُوجَدُ عَقِبَ الْإِرَادَةِ الَّتِي هِيَ مَعْنَى الْقَوْلِ الْمَذْكُورِ

---

**ترجمه**: الله تعالی ستاسو د پاره شپه جوړه کړه، چې تاسو په دې کښې ارام حاصل کړئ، او ورځ ئې کتلو والا روښانه جوړه کړه، مبصراً اسناد د نهار طرف ته مجازی دې، ځکه چې په دې کښې کتلې شی، بې شکه الله تعالی په خلقو باندې فضل او کرم کولو والا دې، خو ډیر خلق شکر نه کوی، چې د هغې د وجې نه ایمان نه راوړی، هم دغه الله ستاسو د ټولو رب، د هر څیز خالق د هغه نه سوا بل معبود نشته نو بیا تاسو د دلیل نه باوجود چرته اوړته روان یئ؟ دغه شان یعنی د دې خلقو د اوړته تللو پشان هغه خلق هم اوړته روان وو چې کومو د الله د آیتونو نه یعنی د معجزاتو نه انکار کولو، هم الله دې چا چې ستاسو د پاره زمکې لره د استوګنې ځائې اوګرځولو، او اسمان ئې چهت جوړ کړو، او ستاسو صورتونه ئې جوړ کړل، او ډیر ښه ئې جوړ کړل او تاسو ته ئې ښه ښه څیزونه د خوراک د پاره درکړل، هم دغه الله ستاسو پروردګار دې، ډیر برکتونو والا دې، د ټولو جهانونو رب دې، هغه ژوندې دې دهغه نه سوا هیڅوک معبود نشته دشرک نه دین خالص کړئ خاص دهغه بندګی کوئ ټول صفتونه دالله دپاره دی چه دټولو جهانونو رب دې، تاسو ورته اووایئ چې زه د هغه چا د عبادت نه منع کړې شوې یم کوم چې تاسو د الله نه بغیر رابلئ، یعنی دهغوی بندګی کوئ کله چه ما ته د رب نښې یعنی د توحید دلائل راغلی دی، او ما ته حکم راکړې شوې دې چې څه د دوارو د جهانونو درب تابعدار اوسم، هم هغه دې چا چې تاسو د خاورې نه پیدا کړئ، ستاسو پلار آدم علیه السلام ئې د خاورې نه پیدا کړې وو بیا ئې تاسو د نطفې نه (د منی) نه پیدا

کړئ، بیا ئې تاسو د کلکې وینې نه پیدا کړئ، او بیا تاسو د ماشوم په شکل کښې بهر کړی، طفلا په معنی د اطفال دې، بیا تاسو باقی ساتی چې تاسو خپل پوره طاقت ته اورسئ، یعنی ستاسو طاقت مکمل شی، د دیرش کالو نه تر د څلویښت کالو پورې، بیا بوډهاګان شئ د شین په ضمې او کسرې سره او په تاسو کښې بعضې خوانئ او بوډها والې ته د رسیدلو نه مخکښې وفات شی، هغه تاسو سره هم داسې کوی چې تاسو ژوندی پاتې یئ، او یو خاص وخت پورې اورسئ او چې تاسو د توحید دلیلونه اوپیژنئ، او ایمان راوړنی، هم هغه الله دې کوم چې ژوندی کول کوی او مړه کول کوی، بیا چې کله هغه د یو کار د کولو یعنی د موجود کولو اراده اوکړی نو هغې ته صرف دا وائی چې (شه) نو هغه شی، د نون په ضمې سره، او د أن د تقدیر د وجې نه په فتحې سره، یعنی هغه څیز ددې ارادې نه پس موجود شی، په معنې کښې د قول مذکور دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: :الله الذی جعل لکم اللیل لتسکنوا فیه والنهار مبصرا: لفظ الله مبتدأ، الذی اسم موصول، جعل فعل ماضی په معنی د خلق، لکم متعلق د جعل، اللیل مفعول به، لتسکنوا معتلق د جعل، (فیه) متعلق د تسکنوا، واؤ عاطفه، النهار ذوالحال، مبصرا حال، حال سره د ذوالحال معطوف په اللیل باندې، معطوف معطوف الیه د جعل مفعول به، جعل جمله صله د الذی، الذی جمله خبر شو د لفظ الله مبتدأ د پاره.

**قوله**: :والنهار مبصرا: د مبصر اد النهار طرف ته اسناد مجازی دې، یعنی ورځ یې دومره روښانه جوړه کړه، ګویا چې هغه پخپله مبصرا شوه، هم په دې وجه ئې د تعلیل نه حال طرف ته عدول کړې دې، یعنی مبصرا ئې د علت په ځائې حال جوړ کړو.

**قوله**: :لانه یبصر فیه: سره ئې اشاره اوکړه چې د اسناد مجازی وجه علاقه د ظرفیت ده، اسناد مجازی د یو ربط یا د تعلق د وجې نه غیر ماهو له طرف ته نسبت کولو ته وائی، چې څنګه په آیت کښې ونیلې شوی دی چې مونږ ورځ لره کتونکې جوړه کړه، حالانکه ورځ کتونکې نه وی، بلکه ورځ د کتلو زمانه یا وخت دې، یعنی په ورځ کښې کتل کیږی، ددې ظرفیت تعلق د وجې نه د کتلو نسبت ورځ طرف ته اوشو، دا د نهرجار د قبیلې نه دې، نهر چونکه د ماء د پاره ظرف دې، ځکه د جریان نسبت نهر طرف ته شوې دې.

**قوله**: :ذلکم الله: ذلکم مبتدأ، د دې څلور خبرونه دی،

(١) الله (٢) ربکم (٣) خالق کل شئ (٤) لااله الاهو.

**قوله**: :الحمد لله رب العالمین (الآیة): په دې کښې دوه احتمالات دی:

(١) د بندگانو كلام وى (٣) د رب العالمين كلام وى، كه د بندگانو كلام وى، نو قائلين به د محذوف مقوله كيدو سره حال وى، او كه د الله تعالى كلام وى نو كلام به مستانف وى، او بندگانو ته به د حمد طريقه ښودلو د پاره وى.

**قوله**: كذلك اول كاف حرف تشبيه دې ذا اسم اشاره (ل) علامت د اشارې بعيد، آخرى كاف حرف خطاب، د كذلک نه مذكوره سابق طرف ته اشاره كيږي، په معنى د (هم دغه شان) (هم داسې)

**قوله**: يوفك: (ك س) إفكا، أفكا، افوكا، اوړيدل، افكا الزام لګول، يوفک مضارع واحد مذكر غائب په معنى د ماضى مجهول،

**قوله**: افك الذين كانوا: افک فعل ماضى مجهول راوړلو سره ئې اشاره اوكړه چې يوفک د مضارع مجهول په معنى باندې دې،

**قوله**: بمعنى اطفالا: په دې كښې اشاره ده چې طفل اسم جنس په معنى د جمع دې، يا يخرجكم كل واحد په تاويل كښې دې، ګنى په (كُم) ذوالحال جمع، او په طفلا نه حال مفرده كښې به مطابقت نه وى.

**قوله**: يخلق ابيكم آدم منه: د دې عبارت نه د يوې شبهې دفع كول مقصود دى.

**شبه**: خلقكم من تراب نه معلومه دى چې انسان د خاورې نه جوړ دې، حالانكه د انسان تخليق د نطفې نه شوې دې.

**دفع**: مضاف محذوف دې، تقديرى عبارت دا دې خلقكم اى خلق لكم ابيكم آدم من تراب شبه دفع شوه، او كلام بغير د مضاف د حذف كولو نه په خپل اصل هم ايښودلې شى، ځكه چې انسان د نطفې نه او نطفه د غذا نه، او غذا د خاورې نه پيدا كيږي، نو داسې شوه چې انسان د خاورې نه پيدا كيږي.

**قوله**: امرت ان اسلم: اسلم يا خو د الاسلام بمعنى الانقياد نه ماخوذ دې، يا بعنى د خلوص نه ماخوذ دې، په هر صورت كښې مفعول محذوف دې، په اول صورت كښې به تقدير دا وى اسلم امرى له تعالى او په دويم صورت كښې به تقدير دا وى خلص قلبى من عبادة غيره تعالى.

**قوله**: يبقيكم: يبقيكم محذوف ګرځولو مقصد دې خبرې ته اشاره كول دى چې لتبلغوا، د لتعيشوا محذوف متعلق دې، او لتبلغوا د دې علت دې.

**قوله**: لتبلغوا اجلا مسمى: لام د تعليل د پاره دې، كوم چې په علتِ مقدره باندې معطوف دې، او شارح لتعيشوا ئيلو سره ښكاره كړو.

**قوله** :فعل ذلك بكم: ددې عبارت مقدر منلو مقصد دې خبرې ته اشاره شوې ده چې لتبلغوا په ليعيشوا محذوف باندې عطف دې، او هغه محذوف مخکښې ذکر شوې د الله تعالى د افعالو علت دې،دغه شان د مذکوره افعالو دباری تعالى دوه علتونه به وی، يعيشوا او يبلغوا، يعنى الله هغه ذات دې چا چې تاسو د خاورې نه پيدا کړې يئ، او تاسونې دماشوم په شکل کښې بهرکړئ،چې تاسو ژوندی يئ اويووخت مقرر ته اورسئ.

**قوله** :فيکون : د رفع په صورت کښې به د مبتدأ محذوف خبر وی، **ای فهو يکون** او دنصب په صورت کښې به د (ان) مقدره د وجې نه منصوب وی، **ای فان يکون**.

**قوله** :اذاقضى امرافانما يقول له کن فيکون : د دې تشريح مفسر علام د خپل قول **علب لارادة التى هى معنى القول المذکور**سره کړې ده، ددې مقتضى دا ده چې د آيت تحليل داسې وی **ای اذا اراد ايجاد شئ فانما يريد ايجاده فيوجده** او ددې تحليل هيڅ معنى نشته، ځکه چې ددې تحليل په صورت کښې به مطلب دا وی چې کله الله تعالى د يو څيز د ايجادولو اراده اوکړی نو هغه څيز موجود شی، يعنى څيز سره د ارادې د تعلق دوه مرتبې وی، او دا صحيح نه ده، لهذا ښه او صحيح صورت به دا وی چې **يقول کن فيکون د سرعة ايجاده کنايه** واخستلې شی، نو په دې صورت کښې به د عبارت تحليل دا وی، **ان اراد ايجاد شئ وجد سريعا من غير توقف على شئ** مفسر علام ای يوجد وئيلو سره اوونيل چې په کن فيکون کښې امر نه مراد حقيقة امر نه دې، ځکه که حقيقة امر مراد وی نو د دوو حالونو نه به خالى نه وی يا خو د (کن) وئيلو په وخت هغه څيز د کوم چې د ايجاد کولو اراده کړې وی موجود به وی يا نه وی، که موجود وی نو د کن وئيلو څه معنى؟ ځکه چې دا خو تحصيل د حاصل شو، او که هغه څيز د کن کلمه وئيلو په وخت موجود نه وی نو بيا معدوم ته خطاب راځی،، کوم چې ظاهر البطلان دې، ځکه چې معدوم څيز مخاطب کيدې نشی، لهذا د الله تعالى قول **کن فيکون** دې د سرعة ايجاد نه دې کنايه واخستلې شی، اوس به مطلب دا وی چې الله تعالى هر کله د يو څيز د ايجاد کولو اراده اوکړی نو هغه څيز د ارادې سره متعلق کيدو نه پس فورا بغير د تاخير نه موجود شی.

**[اياتونه:٦٩-٧٨]**

﴿أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يُجَادِلُونَ فِي آيَاتِ اللَّهِ﴾ القرآن ﴿أَنَّى﴾ كَيْفَ ﴿يُصْرَفُونَ﴾ عَنِ الْإِيمَانِ﴿الذين كذبوا بالكتاب﴾ بالقرآن ﴿وَبِمَا أَرْسَلْنَا بِهِ رُسُلَنَا﴾ مِنَ التَّوْحِيدِ وَالْبَعْثِ وهم كفار مكة ﴿فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ﴾ عُقُوبَةَ تَكْذِيبِهِمْ﴿إِذِ الْأَغْلَالُ فِي أَعْنَاقِهِمْ﴾ إذْ بِمَعْنَى إذَا ﴿وَالسَّلَاسِلُ﴾ عُطِفَ عَلَى الْأَغْلَالِ فَتَكُونُ فِي الْأَعْنَاقِ أَوْ مبتدأ خَبَره مَحْذُوف أَيْ فِي أَرْجُلهمْ أَوْ خَبَره ﴿يُسْحَبُونَ﴾ أَيْ يُجَرُّونَ بِهَا﴿فِي الْحَمِيمِ﴾ أَيْ جَهَنَّم ﴿ثُمَّ فِي النَّارِ

يسحبون) يوقدون (ثم قيل لهم) تبكيتا (أين ما كنتم تشركون (من دون الله) معه وهي الأصنام (قالوا ضلّوا) غابوا (عنّا) فلا نراهم (بل لم نكن ندعوا من قبل شيئًا) أنكروا عبادتهم إيّاها ثم أحضرت قال تعالى (إنّكم وما تعبدون من دون الله حصب جهنم) أي وقودها (كذلك) أي مثل إضلال هؤلاء المكذبين (يضل الله الكافرين) ويقال لهم أيضا (ذلكم) العذاب (بما كنتم تفرحون في الأرض بغير الحق) من الإشراك وإنكار البعث (وبما كنتم تمرحون) تتوسعون في الفرح (أدخلوا أبواب جهنم خالدين فيها فبئس مثوى) مأوى (المتكبرين) (فاصبر إنّ وعد الله) بعذابهم (حق فإمّا نرينك) فيه إن الشرطية مدغمة وما زائدة تؤكد معنى الشرط أول الفعل والنون تؤكد آخره (بعض الذي نعدهم) به من العذاب في حياتك وجواب الشرط محذوف أي فذاك (أو نتوفينك) أي قبل تعذيبهم (فإلينا يرجعون) فنعذبهم أشد العذاب فالجواب المذكور للمعطوف فقط (ولقد أرسلنا رسلا من قبلك منهم من قصصنا عليك ومنهم من لم نقصص عليك) روي أنه تعالى بعث ثمانية آلاف نبي أربعة آلاف نبي من بني إسرائيل وأربعة آلاف من سائر الناس (وما كان لرسول) منهم (أن يأتي بآية إلا بإذن الله) لأنهم عبيد مربوبون (فإذا جاء أمر الله) بنزول العذاب على الكفار (قضي) بين الرسل ومكذبيها (بالحق وخسر هنالك المبطلون) أي ظهر القضاء والخسران للناس وهم خاسرون في كل وقت قبل ذلك

---

**ترجمه:** آيا تاسو هغه خلق ليدلي نه دي چې په الله د آيتونو يعنى په قرآن كښې جګړې كوى، د ايمان نه چرته منډې وهى، كومو خلقو چې كتاب يعنى قرآن لره او توحيد او بعث الموت لره هم په څه سره چه مونږ خپل رسولان ليږلي وو، دروغ اوګڼړل او هغه كفار مكه دى، نو دوى ته به د دوى د تكذيب سزا (حقيقت) اوس معلوم شى، چې كله د دوى په څټونو كښې طوقونه وى، إذ په معنى د إذا، او زنځيرونه به وى، والسلاسل عطف په الاغلال باندې دې، هغه زنځيرونه به په څټونو كښې وى، يا السلاسل مبتدأ، او ددې خبر محذوف دې، يعنى د دوى په خپو كښې به زنځيرونه وى، يا يسبحون ددې خبر دې، يعنى د دې زنځيرونو په ذريعې سره به هغوى جهنم ته راكاږلې شى، بيا به هغوى د جهنم په اور كښې سوزولې شى، بيا به د دوى نه د لاجواب كولو د پاره تپوس اوكړې شى، چې كوم بتان تاسو هغه سره شريكول كوم چې د الله نه سوا وو، هغوى چرته دى، نو هغوى به جواب وركړى چې هغوى ځمونږ نه غائب شول، مونږ ته هغوى په نظر نه راځى، بلكه رشتيا خو دا دى، چې مونږ خو ددې نه مخكښې د چا هم عبادت نه دې كړې يعنى كافران به د بتانو د عبادت نه انكار اوكړى، بيا به هغه بتان راوستلې شى، الله تعالى به اوفرمائى تاسو او د چا چې تاسو د الله نه سوا بندګى كوله، د جهنم خشاک دئ الله تعالى دغه شان يعنى ددې مكذبينو د ګمراه كولو په شان كافرانو لره ګمراه كوى، او دوى ته به دا هم اووئيلې شى دا عذاب د هغه څه بدله ده، چې تاسو به په دنيا كښې خوشحالى كوله په ناحقه په شرک كولو سره او د بعث نه په انكار كولو سره، او بې ځايه به

مو تکبر کولو، یعنی د حد نه به مو زیات د خوشحالئ اظهار کولو، (اوچتې خبرې به مو کولې) اوس راشئ په جهنم کښې همیشه د پاره، او د هغې په دروازو کښې داخل شئ، څومره خراب ځائې دې د تکبر کونکو، نو تاسو لږ صبر اوکړئ، د الله وعده بالکل رشتیا ده، دوی سره چه مونږ د عذاب کومې وعدې کړې وې په هغې کښې څه تاسو ته ستاسو په ژوند مبارک کښې اوښایو، په دې کښې (إن) شرطیه مدغم دې، او د فعل په شروع کښې د فعل تاکید د پاره (ما) زائده ده، او په آخر کښې د تاکید د پاره نون دې، او جواب شرط محذوف دې، او هغه فذاک دې، یا دوی ته عذاب ورکولو نه مخکښې تاسو وفات کړو، نو دوی به زمونږ طرف واپس کړې شی، نو مونږ به دوی ته سختو نه سخت عذاب ورکړو، په جواب مذکور به (فإلينا يرجعون) فقط د معطوف (یعنی نتوفینک) دې، یقینا مونږ ستا نه مخکښې هم رسولان لیږلې دی، چې په هغوی کښې د بعضو قصې مونږ تاته بیان کړې، او په هغوی کښې د بعضو قصې مونږ ته نه دی اورولې، روایت کړې شوې دې چې الله تعالی اته زره پیغمبران رالیږلې دی، په هغې کښې څلور زره بنی اسرائیل کښې، او باقی څلور زره په نورِ خلقو کښې، په دې کښې د هیڅ یو رسول دا طاقت نه وو چې یو معجزه د الله د اجازت نه بغیر راوړی، څکه چې دوی د هغه تابعدار بندګان وو بیا چې کله په کافرانو باندې د عذاب د نازلیدو حکم راشی نو د رسولانو او دوی لره دروغژن ویوونکو په مینځ کښې به په حق سره فیصله اوکړی شی، په هغه وخت کښې به باطل والا په تاوان کښې پاتې شی یعنی د قضاء او تاوان ښکاره کیدل به د خلقو په مخکښې هغه وخت اوشی، ګنی دوی خو ددې نه مخکښې هر وخت په تاوان کښې وو.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: :ألم تر:همزه د استفهام تقریری تعجبی ده.

**قوله**: :الذين كذبوا:الذين د اول الذين نه بدل دې.

**قوله**: :فسوف يعلمون : فاء استنافیه ده، سوف حرف استقبال، يعلمون فعل مضارع مرفوع، جمله استفهامیه د تردید د پاره ده، او دا هم کیدې شی، چې الذين اسم موصول صله مبتدأ، او فسوف يعلمون ددې خبر وی.

**قوله**: :إذ:بمعنى إذا:دا د یو سوال مقدر جواب دې.

**سوال** : سوف حرف استقبال دې، او (اذ) د ماضی د پاره دې، د دوارو په مقتضی کښې تعارض دې، دا خو داسې ده لکه چې څوک اووایی سوف أصوم أمس؟

**جواب**:د جواب حاصل دادې چې إذ، د اذا په معنی کښې دې، د (اذا) په ځائې (اذ) راوړلو مصلحت دا دې چې کله امور مستقبله د الله په اخبار کښې واقع کیږی نو هغه

يقيني او قطعي الوقوع وي، څنګه چې ماضي قطعي الوقوع وي، لهذا دا به داسې الفاظو سره تعبير کولې شي چې په ماضي باندې دلالت اوکړي.

**قوله: فتكون في الاعناق:** ددې عبارت مقصد دا وئيل دي چې د السلاسل عطف په اغلال باندې وي نو مطلب به دا وي چې اغلال او سلاسل دواړه به په څټونو کښې وي، او که سلاسل مبتدأ اومنلې شي نو ددې خبر به محذوف وي، او هغه **في ارجلهم** دې، اى **تكون في ارجلهم** اوس به مطلب دا وي چې طوقونه به په څټونو او زنځيرونه به په خپو کښې وي، او خبر **يسحبون** وئيلو سره دريم ترکيب ته ئې اشاره اوکړه يعنې السلاسل مبتدأ، او يسحبون جمله ددې خبر، او خبر چې کله جمله وي نو د عائد راوړل ضروري وي کوم چې مبتدأ ته راجع وي، بها مقدر منلو سره د عائد طرف ته ئې اشاره کړې ده.

**قوله: يسحبون:** سحب (ف) جمع مذکر غائب مجهول. راخکلې به شي.

**قوله: يسجرون:** **سجر** (ن) نه مضارع جمع مذکر غائب، وهلې به شي، ورخکته کولې به شئ، يسجرون، د سجر التنور نه مستق دې، **اذا ملأ بالوقود**

**قوله: ثم قيل لهم اى يقال لهم:** قيل د ماضي په ذريعې سره تعبير متحقق الوقوع کيدو د وجه نه دې.

**قوله: ثم احضرت:** ددې عبارت مقصد د يو اعتراض جواب کول دي

**سوال:** مفسر علام د **ضلوا عنا (الاية)** چې کوم تفسير بيان کړې دې چې الله تعالى کله مشرکينو ته اوفرمائي چې هغه شريکان کوم ځاى دي څوک چې به تاسو ځما شريکان جوړول.؟

نو مشرکين به جواب ورکړي چې هغوى خو زمونږ نه غائب شول، او مونږ په دنيا کښې د هغوى تابعداری نه کوله، دا تفسير د يو بل آيت **انكم وما تعبدون من دون الله حصب جهنم انتم لها واردون** خلاف دې، څکه چې ددې آيت نه معلوميږي چې باطل معبودان به هلته موجود وي، نه چې غائب، څنګه چې مخکښني آيتونو نه معلوميږي،

جواب: **ثم احضرت** وئيلو سره ئې جواب ورکړو چې په شروع کښې به معبودان باطله غائب وي او عابدين به د هغوى د عبادت نه انکار اوکړي، خو روستو بهٔ هغوى حاضر شي، او عابدين به د هغوى د عبادت اقرار اوکړي.

**قوله: تمرحون:** مرح (ف) نه مرحا، د حد نه زيات د خوشحاليدو اظهار کول، غرور کول.

**قوله: فيه:** خبر مقدم دې، ان الشرطية مبتدأ مؤخر، مدغمة د ان شرطيه نه حال دې، مدغم فيه يعنې د ما زائده ذکر ئې اونکړو، يعنې **اما نرينك** کښې د فعل په اول کښې (ما) زائدې په

ذریعه د تعلیقِ فعل تاکید دې، او د نون ثقیله په ذریعه د فعل په آخر کښې تاکید دې.

**قوله:** :**فالجواب المذكور للمعطوف فقط**: د **نتوفینك** عطف په **اما نرینك** باندې دې، په معطوف علیه باندې چونکه حرف شرط او ما زائده داخل دې، لهذا په معطوف باندې به هم داخل وی، معطوف او معطوف علیه دواړو ته د جواب شرط ضرورت دې، او جواب شرط صرف یو دې، او هغه **فالینا یرجعون** دې، مذکوره جوابِ شرط ئې معطوف یعنی **نتوفینك** ته ورکړو، اوس معطوف علیه یعنی **نرینك** بغیر د جواب شرط نه پاتې شو، د هغې د پاره جواب شرط محذوف اومنلې شو، کوم چې شارح ﷺ په **فذاك** وئیلو سره ښکاره کړو، مطلب به دا وی چې کافرانو سره مونږ دعذاب کومې وعدې کړې وې، په هغې کښې که څه مونږ تاسو ته د دنیا په ژوند کښې اوخایو کړو، نو دا هم کیدې شی، او که مونږ تاسو دوی ته د عذاب ورکولو نه مخکښې وفات کړو نو بیا به هم تول څما طرف ته راځی، نو هلته به مونږ دوی ته سخت عذاب ورکړو، اولنې خط کشیده جمله **اما نرینك** شرط جواب دې، او دویمه خط کشیده جمله د **نتوفینك** شرط جواب دې.

او بعضې مفسرینو حضراتو وئیلې دی چې **فالینا یرجعون** د دواړو شرطونو جواب هم کیدې شی، په دې صورت کښې به عبارت دا وی ان **نعذبهم فی حیاتك او لم نعذبهم فانما نعذبهم فی الاخرة اشد العذاب فانما نعذبهم** الغرد دواړو شرطونو جواب دې.

**قوله:** :**هنالك**:دا ظرف مکان دې، خو دلته د ظرف زمان د پاره استعمال شوې دې.

**[اياتونه:٨٩-٨٥]**

{اللَّهُ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَنْعَامَ} قِيلَ الإبل خاصة هنا والظاهر والبقر والغنم {لتركبوا منها ومنها تأكلون} {وَلَكُمْ فِيهَا مَنَافِعُ} مِنَ الدَّرِّ وَالنَّسْلِ وَالْوَبَرِ وَالصُّوفِ {وَلِتَبْلُغُوا عَلَيْهَا حَاجَةً فِي صُدُورِكُمْ} هِيَ حَمْلُ الْأَثْقَالِ إلَى الْبِلَادِ {وَعَلَيْهَا} فِي الْبَرِّ {وعلى الفلك} السفن في البحر {تحملون} {ويريكم آياته فأي آيات الله} اي الدالة على وحدانيته {تُنْكِرُونَ} اسْتِفْهَام تَوْبِيخ وَتَذْكِير اِيْ اَشْهَر مِنْ تَانِيْثه {أَفَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَيَنْظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ كَانُوا أَكْثَرَ مِنْهُمْ وَأَشَدَّ قُوَّةً وَآثَارًا فِي الْأَرْضِ} مِنْ مَصَانِع وقصور {فما أغنى عنهم ما كانوا يكسبون} {فَلَمَّا جَاءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ} الْمُعْجِزَات الظَّاهِرَات {فَرِحُوا} اي الكفار {بما عندهم} اي الرسل {من العلم} فرح استهزاء وضحك مُنْكِرِينَ لَهُ {وَحَاقَ} نَزَلَ {بِهِمْ مَا كَانُوا به يستهزءون} اي العذاب {فلما رأوا بأسنا} اي شدة عذابنا {قالوا آمنا بالله وحده وكفرنا بما كنا به مشركين} {فَلَمْ يَكُ يَنْفَعُهُمْ إِيمَانُهُمْ لَمَّا رَأَوْا بَأْسَنَا سنت الله} نَصْبه عَلَى الْمَصْدَر بِفِعْلٍ مُقَدَّر مِنْ لَفْظه {الَّتِي قَدْ خَلَتْ فِي عِبَادِهِ} فِي الْأُمَم أَنْ لَا يَنْفَعهُمْ الْإِيمَان وَقْت نُزُول الْعَذَاب {وَخَسِرَ هُنَالِكَ الْكَافِرُونَ} تَبَيَّنَ خُسْرَانهمْ لِكُلِّ أَحَد وَهُمْ خَاسِرُونَ فِي كُلّ وَقْت قَبْل ذَلِكَ

**ترجمه**: الله هغه دې چا چې ستاسو د پاره څلور خپو والا څناور پيدا کړل وئيلې شوي دي چه دلته د أنعام نه په خاص توګه باندې اوښ مراد دې، او ښکاره هم دا ده او غوا چيلۍ ترې هم مراد کيدې شي چې په دوی کښې په بعضو باندې تاسو سورلی اوکړئ او بعضې تاسو په دوی کښې خورئې، او ستاسو د پاره په دې کښې نورې هم ډيرې فائدې دي مثلا پې، نسل، د اوښ ويخته، او ورئی چې تاسو په دوی باندې سوريدو سره خپل د زړه مراد پوره کړئ، او هغه مختلف ځايونو ته بوجونه اوړل دی، او په دې سورلو باندې په اوچه او په کشتو باندې په سيند کښې ګرځئ، او هغه تاسو ته د خپل قدرت نښې ښائی، نو تاسو په وحدانيت باندې دلالت کونکی د کومو کومو نښو نه انکار کوئ، استفهام توبيخی دې، او د (أيّ) مذکر استعمال په نسبت د (أية) زيات مشهور دې، آيا دې خلقو په زمکه کښې ګرځيدو سره اونه کتل چې ددوی نه د مخکښې خلقو څه انجام شو، حالانکه هغوی ددوی نه په تعداد او قوت او يادګارونو مثلا قلعو او محلونو کښې زيات وو، د هغوی کټه د هغوی په کار رانغله، نو بيا چې کله رسولان دوی ته په ښکاره معجزو سره راغلو نو کافران د استهزاء او منکرين د خندا په طور باندې په دې علم نه خوشحاله شو کوم چه رسولانو سره وو په آخر کښې چې کوم عذاب دوی د توقې ګڼړلو هغه عذاب په دوی باندې واپس شو، چنانچه چې کله هغوی زمونږ د عذاب سختوالي اوکتلو نو وې وئيل چې مونږ په يو الله باندې ايمان راوړې دې، او څوک څوک چې مونږ د هغه شريک جوړول د هغوی ټولو مو انکار اوکړو، خو زمونږ عذاب کتلو نه پس هغوی ته د هغوی ايمان فائده ورنکړه، الله هم دا طريقه ساتلې ده، (سنت) نصب د مصدريت په وجه دې، هم ددې مصدر د لفظ نه د فعل مقدر د وجې نه، کوم چې په امتونو کښې د هغه په بندګانو کښې برابر راروان دې، دا چې د عذاب د نازليدو نه پس ايمان فائده نه ورکوی او هغه وخت کافران په تاوان کښې پاتې شول، يعنی د هغوی تاوان په هر يو باندې ښکاره شو، حالانکه دوی ددې نه مخکښې هم هر وخت تاوانيان وو

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله**: :الانعام: څناور، دا د (نعم) جمع ده، ددې اصل معنی خو د اوښ ده، خو په چيلې، ګډې، غوا ميخې باندې هم ددې اطلاق کيږي، په شرط ددې چې دې کښې اوښ هم وی، اوښ چونکه د عربو په نيز ډير لوئې نعمت وو، څکه ددې نوم (نعم) په معنی د نعمت کيخودلې شو.

**قوله**: :در: پې

**قوله**: :الوبر: د اوښ او د اوسې ويخته، (ج) اوبار

**قوله**: :وعلى الفلك:

**سوال**: فی فلک، ئې ولې اونه وئيل؟ ځنګه ئې چې د نوح ﷺ په واقعه کښې وئيلې وو قلنا احمل فيها من كل زوجين؟
**جواب**: چې د عليها احمله تقابل صحيح شي، دې ته صنعت ازدواج وئيلې شي.
**قوله**: اي آيت الله: أى د تنكرون مفعول مقدم کيدو د وجې نه منصوب دې، أىّ مقدم کول واجب دی، ځکه چې دا صدارت د کلام غواړی.
**قوله**: تذكيراي اشهرمن تانيثه: ددې اضافې مقصد د يو سوال جواب دې.
**سوال**: ايةآيت الله ئې ولې اونه وئيل، او د مضاف اليه (آيت الله) مقتضی هم دا وه چې د (ای) په ځاې (اية) وو.
**جواب**: په اسماء جامده کښې د مذکر و مؤنث تفريق غريب دې، ځنګه چې حمار او حمارة کښې تفريق غريب دې، دويمه وجه دا ده چې د أىّ استعمال په نسبت د اية اکثر او مشهور دې، وقدجاءت على اللغة المستفيضه يعنى د اي استعمال کثير دې،
**قوله**: افلم يسيروا: الخ، دلته نه توبيخی مضمون شروع کوی، فاء عاطفه ده، همزه مخذوف باندې داخل ده، تقديری عبارت دا دې أعجزوا فلم يسيروا الخ
**قوله**: كيف كان عاقبة الذين من قبلهم، کيف د کان خبر مقدم دې، او عاقبة اسم مؤخر دې.
**قوله**: مصانع: د زمکې لاندې د اوبو جمع کولو د پاره لوئې لوئې حوضونه، ديم، قلعه ګانې،
**قوله**: فما اغنى عنهم ما كانوا يكسبون: اولنې (ما) نافيه او استفهام انکاری دواړه کيدې شی، يعنی د هغوی ګټه د هغوی په کار رانغله، د استفهام په صورت کښې به ترجمه دا وی چې د هغوی ګټه د هغوی څه په کار راغله؟ ما كانوا يكسبون کښې (ما) مصدريه او موصوله دواړه جائز ده، اولنې فما اغنى د ما اغنى مفعول کيدو د وجې نه منصوب دې.
**قوله**: فرحوا اى كفار بما عندهم اى الرسل من العلم: د علم نه هغه علم وحی مراد دې، کوم چې پيغمبرانو سره وو، او په دې علم باندې د کافرانو د خوشحاليدو مطلب دا دې چې کافرانو د ټوقو او خندا په توګه د خوشحالئ اظهار کړې وو، او دليل ددې، ددوی د وحی نه اعراض او نه قبلول دی، مفسر علام هم دا معنی مراد اخستې ده، او هم دا معنی د الله قول وحاق بهم ما كانوا به يستهزءون مطابق ده، بعضې مفسرينو د عندهم ضمير کفار طرف ته راجع کړې دې، او دعلم نه مراد بزعم خويش لا بعث ولا حساب علم مراد دې، يا د علم نه مراد د دنيا علمونه مراد دی، ځنګه چې الله تعالی دکافرانو په باره کښې فرمائی يعلمون ظاهرا من الحيوة الدنيا وهم عن الاخرة هم غافلون.

**قوله**: :سنت الله مصدر من لفظه: سنت د فعل مقدر د وجې نه منصوب دې، او فعل مقدر د مصدر هم لفظ دې. أي سن الله ذلك سنة ماضية في العباد.

**قوله**: :هنالك: اى عند رؤيتهم العذاب، دا اسم مكان دې، د زمان د پاره مستعار اخستې شوې دې.

**قوله**: :تبين خسرانهم: دا د يو سوال مقدر جواب دې،

**سوال**: د خسر هنالک نه معلومیږی چې کافران اومشرکین په هغه وخت تاوانیان شو ددې نه مخکښې دوی تاوانیان نه وو؟

**جواب**: د جواب خلاصه دا ده چې کفار هر وخت برباد او تاوانیان دی، خو ددوی د تاوان ښکاره کیدل اوس اوشول، په خپله دوی ته او نورو ته هم پته اولیګیده چې د آخرت تاوان او محرومیدل حقیقی تاوان او نقصان دې.

## [٤١] سورة فصلت (حم السجدة)

## سورة فصلت مكية ثلاث وخمسون اية

سورة فصّلت مکی دې، په دې کښې درې پنځوس آیاتونه دی.

### [ایاتونه: ١-٨]

بسم الله الرحمن الرحيم (حم) الله اعلم بمراده به (تنزيل من الرحمن الرحيم) مبتدأ (كتاب) خبره (فصلت آياته) بينت بالأحكام والقصص والمواعظ (قرآنا عربيا) حال من كتاب بصفته (لقوم) متعلق بفصلت (يعلمون) يفهمون ذلك وهم العرب (بشيرا) صفة قرآنا (ونذيرا فأعرض أكثرهم فهم لا يسمعون) سماع قبول (وقالوا) للنبي (قلوبنا في أكنة) اغطية (مما تدعونا إليه وفي آذاننا وقر) ثقل (ومن بيننا وبينك حجاب) خلاف في الدين (فاعمل) على دينك (إننا عاملون) على ديننا (قل إنما أنا بشر مثلكم يوحى إلي أنما إلهكم إله واحد فاستقيموا إليه) بالإيمان والطاعة (واستغفروه وويل) كلمة عذاب (للمشركين) (الذين لا يؤتون الزكاة وهم بالآخرة هم) تاكيد (كافرون) (إن الذين آمنوا وعملوا الصالحات لهم أجر غير ممنون) مقطوع

**ترجمه**: شروع کوم د الله په نوم سره چې ډیر مهربانه او ډیر رحم کولو والا دې، حم ددې مراد الله ته ښه پته ده، دا کلام د رحمن او رحیم د طرف نه نازل شوې دې، تنزیل مبتدا ده، کتاب ددې خبر، یعنی دا داسې کتاب دې، چې د هغې ایتونه خه واضحه بیان شوې دی، یعنی احکامات، قصې، نصیحتونه ښه بیل بیل بیان کړې شوی دی، حال دا دې چې قرآن په عربئ ژبه کښې دې، قرآنا د کتاب نه په سبب د صفت حال دې، لقوم د فصلت متعلق دې، د هغه قوم د پاره چې پوهیږی، او هغه قوم عربیان دی خوشخبری اورولو والا او ویرولو والا، بشیرا د قرآن صفت

دي، بيا هم ددوی نه زياتو مخ وارولو، او هغوی د قبلولو د پاره اوری هم نه، او دوی نبی ﷺ ته اووئيل چې ته مونږ د څه طرف ته رابلې، زمونږ زړونه د هغې نه په پردو کښې دی، او زمونږ په غوږونو کښې کوڼوالې لګيدلې دې، يعنی په غوږونو کښې درونډوالې دې او زمونږ او ستا په مينځ کښې يوه پرده ده، يعنی دينی اختلاف دې، خهٔ نو ته په خپل دين باندې عمل کوه او مونږ به خپل دين باندې عمل کوو، ته ورته اووايه چې څه خو ستاسو په شان انسان يم، په ما باندې وحی نازليږی، چې ستاسو د ټولو معبود يو الله دې، نو تاسو په ايمان او تابعدارئ سره د هغه طرف ته متوجه شئ، او د هغه نه معافی اوغوارئ، او د مشرکانو د پاره ډيره خرابی ده، ويل کلمه د عذاب ده هغه خلق چې زکواة نه ورکوی او د آخرت هم منکر دی هم تاکيد دې بې شکه کوم خلق چې ايمان راوړی او نيک عمل اوکړی د هغوی د پاره نه ختميدونکې اجر دې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: تنزيل: مصدر بمعنی اسم مفعول مبتدا كتاب خبر

**شبه**: تنزيل نکره ده نو ددې مبتدأ کيدل څنګه صحيح شو؟

**دفع**: من الرحمن الرحيم د تنزيل صفت دې، چې د هغې وجې نه تخصيص کيدو سره مبتدأ جوړيدل صحيح شو، تقديری عبارت دا دې المنزل من الرحمن الرحيم كتاب

**قوله**: فصلت آياته: دا د کتاب صفت دې،

**قوله**: حال من كتاب بصفته: يعنی قرآنا د کتاب نه حال دې،

**شبه**: کتاب نکره ده دا ذوالحال نه واقع کيږی، څکه چې د ذوالحال د پاره معرفه کيدل ضروری دی؟

**جواب**: فصلت آياته چونکه د کتاب صفت دې لهذا د کتاب ذوالحال واقع کيدل صحيح دی، د حال من الكتاب بصفته هم دا مطلب دې، بصفته کښې باء سببيه ده،

**قوله**: لقوم متعلق بفصلت: دا هم د يوې شبهې جواب دې،

**شبه**: د قرآن کريم آيتونه خو د ټولو د پاره مفصل او واضح دی بيا قوم عاقل د پاره د خاص کولو څه مطلب دې؟

**دفع**: اګرچې قرآنی ايتونه فی نفسه د ټولو د پاره مفصل او واضح دی خو چونکه عقل او فهم والا د دې نه فائده اخلی څکه د عقلمندو او هوښيارو سره تخصيص اوکړې شو.

**قوله**: بشيرا: صفة قرآن، بشيرا د قرآن صفت دې، او دا هم صحيح ده چې بشيرا ونذيرا دواړه د کتاب نه حال يا صفت واقع وی، او د عرب تخصيص څکه اوشو چې عرب په قرآن باندې

بغیر د واسطې نه پوهیدونکی، او رومبی مخاطب دی بخلاف د غیر عرب.

**قوله**: وقالوا: ددې عطف په اعرض باندې دې.

**قوله**: ثقل: دا د (وقر) د اصلی معنی بیان دې، مراد ددې نه (غوږونه درونیدل) کونړوالی دې.

**قوله**: وهم بالآخرة هم كافرون: ددې عطف په لا يؤتون باندې دې، او د الذين لاندې داخل دې، (هم) ضمير فصل د حصر د پاره راوړې شوې دې.

**قوله**: تأكيد: ددې يو مطلب خو دا دې چې (هم) اول د (هم) ثانی تاکید دې، او په ترويح الارواح کښې ليکلي دی چې كافرون د مشركين تاكيد دې، گويا چې دا ددې اعتراض جواب دې، چې کله ددوی صفت شرک بیانولو سره مشركين اووئیلي شول، نو بیا د هم كافرون وئیلو څه ضرورت وو؟

د جواب حاصل دا دې، چې کافرون د مشرکین تاکید دې، لهذا بې فائدې نه دې.

**قوله**: ممنون: اسم مفعول (من) نه واحد مذکر غائب دې، (ن کم کړې شوې، کټ کړې شوې.

**[اياتونه: ٩-١٨]**

(قل أئنكم) بِتَحْقِيقِ الْهَمْزَةِ الثَّانِيَةِ وَتَسْهِيلِهَا وَإِدْخَالِ أَلِفٍ بَيْنَهَا بوجهيها وبين الأولى (لتكفرون بالذي خلق الأرض في يومين) الأحد والاثنين (وتجعلون له أندادا) شركاء (ذلك رب) اي مالك (العالمين) جمع عالم وهو ما سوى الله وجمع لاختلاف انواعه بالياء والنون تغليبا للعقلاء (وجعل) مستأنف ولا يجوز عطفه على صلة الذي للفاصل الأجنبي (فيها رواسي) جبالا ثوابت (من فوقها وبارك فيها) بكثرة المياه والزروع والضروع (وقدر) قسم (فيها أقواتها) للناس والبهائم (في) تمام (أربعة أيام) اي الجعل وما ذكر معه في يوم الثلاثاء والأربعاء (سواء) منصوب على المصدر اي استوت الأربعة استواء لا تزيد ولا تنقص (للسائلين) عن خلق الأرض بما فيها (ثم استوى) قصد (إلى السماء وهي دخان) بخار مرتفع (فقال لها وللأرض ائتيا) إلى مرادي منكما (طوعا أو كرها) في موضع الحال اي طائعتين او مكرهتين (قالتا أتينا) بمن فينا (طائعين) فيه تغليب المذكر العاقل أو نزلتا لخطابهما منزلته (فقضاهن) الضَّمِيرُ يَرْجِعُ إِلَى السَّمَاءِ لِأَنَّهَا فِي مَعْنَى الجمع الآيلة إليه اي صيرها (سبع سماوات في يومين) الخميس والجمعة فرغ منها في آخر ساعة منه وفيها خلق آدم ولذلك لم يقل هنا سواء ووافق ما هنا آيات خلق السماوات والأرض في ستة ايام (وأوحى في كل سماء أمرها) الذي امر به من فيها من الطاعة والعبادة (وزينا السماء الدنيا بمصابيح) بنجوم (وحفظا) منصوب بفعله المقدر اي حفظناها من استراق الشياطين السمع بالشهب (ذلك تقدير العزيز) في ملكه (العليم) بخلقه (فإن أعرضوا) اي كفار مكة عن الإيمان بعد هذا البيان

﴿فقل أنذرتكم﴾ خوفتكم ﴿صاعقة مثل صاعقة عاد وثمود﴾ عذابا يهلككم مثل الذي اهلكهم ﴿إذ جاءتهم الرسل من بين أيديهم ومن خلفهم﴾ اي مقبلين عليهم ومدبرين عنهم فكفروا كما سيأتي والإهلاك في زمنه فقط ﴿أ﴾ اي بان ﴿لا تعبدوا إلا الله قالوا لو شاء ربنا لأنزل﴾ علينا ﴿ملائكة فإنا بما أرسلتم به﴾ على زعمكم ﴿كافرون﴾ ﴿فأما عاد فاستكبروا في الأرض بغير الحق وقالوا﴾ لما خوفوا بالعذاب ﴿من أشد منا قوة﴾ اي لا احد كان واحدهم يقلع الصخرة العظيمة من الجبل يجعلها حيث يشاء ﴿أولم يروا﴾ يعلموا ﴿أن الله الذي خلقهم هو أشد منهم قوة وكانوا بآياتنا﴾ المعجزات ﴿يجحدون﴾ ﴿فأرسلنا عليهم ريحا صرصرا﴾ باردة شديدة الصوت بلا مطر ﴿في أيام نحسات﴾ بكسر الحاء وسكونها مشئومات عليهم ﴿لنذيقهم عذاب الخزي﴾ الذل ﴿في الحياة الدنيا ولعذاب الآخرة أخزى﴾ اشد ﴿وهم لا ينصرون﴾ بمنعه عنهم ﴿وأما ثمود فهديناهم﴾ بينا لهم طريق الهدى ﴿فاستحبوا العمى﴾ اختاروا الكفر ﴿على الهدى فأخذتهم صاعقة العذاب الهون﴾ المهين ﴿بما كانوا يكسبون﴾ ﴿ونجينا﴾ منها ﴿الذين آمنوا وكانوا يتقون﴾ الله

---

**ترجمه**: تاسو ورته اووایئ چې آیا تاسو د هغه الله نه انکار کوئ؟ او د هغه سره شریک جوړوئ، چا چې زمکه په دوؤ ورځو کښې جوړه کړې ده، یعنی د اتوار او ګل په ورځ. **ائنکم** کښې د دویمې همزې تحقیق وتسهیل سره، او په دواړو صورتونو کښې ددوی په مینځ کښې الف داخلولو سره، د ټولو جهانونو مالک هم هغه دې، عالمین د عالم جمع ده، او هغه د الله نه علاوه دې، **عالمین عالم** د مختلف انواع کیدو د وجې نه جمع او ذوی العقول ته، په غیر ذوی العقول باندې، غلبه ورکولو د وجې نه په یاء او نون سره راوړې شوې دې او هغه په زمکه کښې ددې د پاسه کلک غرونه کیخودل، دا جمله مستانفه ده، ددې عطف په الذی صله باندې فصل بالاجنبی د وجې نه جائز دې، او په دې کښې ئې د اوبو او د پټی، پئ ورکولو والا څناورو په ذریعه برکت ورکړو، او په دې کښې د اوسیدونکو انسانانو او څناورو روزی تجویز هم په دې زمکې کښې اوکړو، مکمل څلور ورځو کښې یعنی **جعل جبال وتقدیر أقواته** ټول په څلورو ورځو کښې، او جعل سره چې کوم مذکور دې یعنی تقدیر اقوات هغه په دوؤ ورځو کښې، او هغه د نهې او چارشنبې ورځې دی، (دغه شان جعل او تقدیر ملاویدو سره څلور ورځې پورا شوې) **سواء** د مصدریت د وجې نه منصوب دې، یعنی څلور ورځې پوره، نه کمې او نه زیاتې، د **أرض وما فیها** د تخلیق په باره کښې حصر معلومونکو د پاره ییا اسمان طرف ته متوجه شو، او هغه لوږې یعنی اوچت براس وو، الله دې ته یعنی اسمان او زمکې ته اوفرمائیل چې تاسو دواړه تابعدارې اوکړئ، خما د مراد کوم چې ستاسو نه دې، په خوشحالئ سره یا په زبردستی سره، په محل کښې د حال دې، یعنی حال دا دې چې تاسو دواړه په خوشحالئ سره راشئ، یا نا خوښئ سره، دواړو اووئیل سره

د هغه ځیزونو نه چې په مونږ کښې دی، مونږه په خوشحالئ سره حاضر یو، په دې کښې مذکر ذوی العقول ته غلبه ورکړې شوې ده، یا دې دوارو لره د خطاب د وجې نه د ذوی العقول په درجه کښې اچولې شوی دی، نو په دوؤ ورځو کښې ئې اووه اسمانونه جوړ کړل، د زیارت او د جمعې په ورځ باندې، د جمعې په آخری وخت ددې د تخلیق نه فارغ شو، او هم په هغه ورځ ئې آدم علیه السلام پیدا کړو، او هم دې وجه نه ئې دلته مکمل ورځ اونه فرمائیله، **فقضهن** کښې ضمیر **السماء** طرف ته راجع دې، ځکه چې سماء د ما یؤل په اعتبار سره جمع ده، یعنی اسمان ئې (اووه اسمانونه) جوړ کړل، ددې تاویل نه پس کوم چې دلته دې، هغه د هغه آیتونو مطابق شو چې په هغې کښې د زمکې او د اسمان په شپږ ورځو کښې د پیدا کولو ذکر دې، او په هر اسمان کښې ئې د هغې مناسب حکم اولیږلو هغه حکم چې د هغې په دې کښې اوسیدونکو خلقو ته حکم اوشو، او هغه حکم تابعداری او عبادت دې، او مونږ د دنیا اسمان ته په ستورو باندې ښائست ورکړو، او حفاظت مو اوکړو، حفظاً د فعل مقدر د وجې نه منصوب دې، تقدیری عبارت دا دې **حفظناها حفظاً من استراق الشیاطین السمع بالشهب** یعنی مونږ د شهاب په ذریعه د اسمانونو د شیطانانو په پټه د خبرو د اوریدو نه حفاظت اوکړو، دا منصوبه جوړول په خپل ملک کښې د غالب او د خپل مخلوق نه د خبردار ذات ده، اوس که ددې بیان نه پس هم کفار مکه دایمان نه مخ اړوی نو ورته اووایه چې ځه تاسو د هغه سخت عذاب (د اسمانی عذاب) نه یروم، کوم به چه د عادیانو او ثمودیانو د سکت عذاب په شان وی یعنی د هغه عذاب نه مو یروم، چې تاسو به هلاک کړی، او هغه به د هغه عذاب په شان وی کوم چې هغوی هلاک کړې وو، کله چه دوی ته د مخکښې او روستو نه هم پیغمبران راغلل، یعنی یو بل پسې، نو دې خلقو انکار اوکړو، کوم چې به زر راشی، (او په عذاب سره) هلاکت د حضور ﷺ په زمانه کښې اوشو، نه چه د هغوی ﷺ نه پس، چې تاسو د الله نه سوا د بل چا بندگی مه کوئ، نو هغوی جواب ورکړو چې که ځمونږ پروردگار غوښتله، نو فرشتې به ئې رالیږلې وې، مونږ خو ستاسو د رسالت نه (چه ستاسو په خیال کښې تاسو ته رسالت ملاوو دې) انکار کوو، نو عادیانو په ناحقه سره په زمکه کښې سرکشی شروع کړه، او چې کله دوی اویرولې شول، نو خبرې ئې شروع کړې چې زمونږ نه زیات طاقت ور ځوک دې؟ یعنی څوک هم نشته، او په دوی کښې به یو کس د غر یو غټ کاڼړې په یواځې اوچتولو، او کوم طرف ته چې به ئې غوښتل هلته به ئې کیخودو، آیا دوی ته دا پته نشته، چې کوم الله دوی پیدا کړې دی هغه ددوی نه زیات طاقت ور دې، او هغوی آخر پورې زمونږ د آیتونو یعنی د معجزو انکار کولو، نو په آخر کښې مونږه په دوی باندې یو تیز یخ او سخت اواز بغیر د باران نه، طوفان په ورځو منحوسو کښې اولیږلو د حاء په کسرې او سکون سره، یعنی ددوی د پاره په نا مبارکه ورځو کښې چې دوی ته ددنیا په ژوند کښې د ذلیله عذاب مزه

اوڅکوو، او يقين اوساته چې دآخرت عذاب ددې نه زيات شرمونکې دې، او ددوی دې عذاب نه بچ کولو سره به مدد نه کیږی، پاتې شو ثمود، نو مونږ هم هغوی ته لار اوښودله، يعنی د هدایت لار مو د هغوی د پاره واضحه کړه، بيا هم هغوی ړوندوالې يعنی کفر د هدايت په مقابله کښې خوښ کړو، چې د هغې د وجې نه دوی د ذلت سختې چغې عذاب ددوی د عملونو د وجې اونيول، او مونږ ددې اواز نه ايمان والا او د الله نه ويريدونکو لره بچ کړل.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: ائنکم : په دې کښې څلور قراءتونه دی، خو د مفسر علام ددې عبارت نه دوه معلوميږی، اولنې همزه خو هميشه محقق وی، البته په دويمه کښې تحقيق وتسهيل دواړه جائز دی، په دواړو صورتونو کښې د دواړو همزو په مينځ کښې الف داخلولو سره، دا دوه قراءتونه شول، حالانکه د ترکِ ادخال په صورت کښې دوه قراءتونه نور هم دی، دغه شان څلور قراتونه دی، مفسر علام که د وترکه اضافه کړې وه نو مذکوره څلور واړه صورتونو ته به اشاره شوې وه، اصل عبارت داسې پکار دې، وادخال الف وترکه (ای ادخال) بينها وبين الاولی بوجهيها

**قوله**: أئنكم لتكفرون: همزه د استفهام انکاريه ده، (ان) او لام د تاکيد د پاره دی، همزه د صدارت د کلام د مطالبې د وجې نه مقدم کړې شوې ده، (کم) د (ان) اسم دې، لام د تاکيد د پاره دې، لتكفرون جمله د (ان) خبر دې، او تجعلون په تکفرون باندې عطف دې.

**قوله**: له: د تجعلون مفعول ثانی کيدو د وجې نه محلاً منصوب دې، او أنداداً مفعول اول دې، (ذلک) مبتدأ ده، ددې مشاراليه الذی دې، د خپلې صلې سره د متصف کيدو په اعتبار سره، (مراد ترې الله تعالی دې)

**قوله**: وجعل فيها رواسى: د صحيح قول مطابق واؤ عاطفه دې، او د جعل عطف په خلق باندې دې، خو ابوالبقاء وغيره د واؤ د عاطفه کيدو نه انکار کړې دې، او واؤ استينافيه منلو سره ئې کلام ته مستانف وئيلې دې، د انکار وجه نه دا بيان شوې ده، چه که د جعل په خلق باندې عطف اوکړې شی نو الذی د اسم موصول لاندې راتلو د وجه نه د صله جزء شی، او دا جائز نه ده، ځکه چې ويجعلون له، الخ جمله معترضه ده، او د صلې د تام کيدو نه مخکښې په مينځ د صلې کښې فصل بالاجنبی جائز نه دې، بعضې حضراتو د جعل عطف په خلق باندې جائز وئيلې دې، او د ابو البقاء د انکار جواب ئې دا ورکړې دې چې د دوؤ عطف شوې جملو په مينځ کښې راتلونکې جمله معترضې پشان ده، او د دوؤ معطوف جملو په مينځ کښې د جملې معترضې راتلل کثير الوقوع دی، لهذا صحيح خبره دا ده چې په خلق باندې د جعل په عطف څه اعتراض نشته، (اعراب القرآن)

**قوله**: :في يومين: اي في مقدار يومين ځکه چې د يوم وجود د نمر د طلوع او غروب سره راځي، او د نمر هغه وخت وجود نه وو، نو د يوم وجود به څنګه وو.

**قوله**: :جمع لاختلاف انواعه:

**فائده**: د مذکوره عبارت د اضافي مقصد د يو سوال جواب ورکول دی.

**سوال**: عالم اسم جنس دې، چې د هغې اطلاق ماسوا د الله نه په هر څيز باندې کيږي، او د جمع د پاره کم ازکم درې افراد ضروری دی، حالانکه عالم يو دې؟

**جواب**: د عالم چونکه انواع مختلف دی مثلا عالم ملائکه، عالم دنيا ، عالم آخرت، عالم انس، عالم جن، وغيره اختلاف د انواعو په اعتبار سره العالمين ئې جمع راوړو.

**قوله**: :تغليباً للعقلاء: ددې عبارت نه هم د يوې شبهې جواب کول مقصود دی.

**شبه** : عالم د ذوی العقول او غير ذوی العقول دواړو مجموعه ده او په عالم کښې اکثريت د غير ذوی العقول دی، لهذا ددې جمع په ياء او نون سره راتلل نه دی پکار، ځکه چه په ياء او نون سره د ذوی العقول جمع راځي.

**جواب**: په عالم کښې اګرچې د ذوی العقول په مقابله کښې د غير ذوی العقول تعداد زيات دې، خو عقل يو داسې قيمتی څيز دې چې په ټولو صفاتو باندې غالب او اوچت دې، ددې صفت په مقابله کښې ټول صفتونه بې کاره دی، په دې وجه د ذوی العقول د کم والی باوجود په غير ذوی العقول باندې غلبه ورکړې شوه او ياء او نون سره ئې جمع راوړې ده.

**قوله**: :وجمل مستأنف ولا يجوز عطفه: ددې تحقيق بره تير شوې دې.

**قوله**: :في تمام اربعة ايام: دوه ورځې مخکښې، چې په هغې کښې د زمکې د تخليق ذکر وو، او دوه ورځې روستو چې په هغې کښې د تقدير اقوات «رزق» ذکر دې، دغه شان د دواړو په شريکه څلور ورځې شوې، نه چې صرف د اقواتو يعنی د رزق د تقدير څلور ورځې، ځکه چې مخکښې تخليق د سبع سموات ذکر راروان دې، او د هغې د تخليق وخت هم دوه ورځې وئيلې شوی دی، که د تقدير اقوات وخت څلور ورځې اومنلې شی څنګه چې په ظاهره معلوميږي، نو د ورځو د تخليق ټول تعداد به اته ورځې شی، حالانکه په نورو ايتونو کښې شپږ ورځو کښې د ټول کائنات د تخليق صراحت دې، مثلاً خلق السموات والارض في ستة ايام،

**قوله**: :سواء: منصوب على المصدرية سواء د فعل محذوف استوت مصدر بلفظه کيدو د وجه نه منصوب دې، او جمله د ايام صفت دې،

**قوله**: للسائلين: ددې تعلق سواء سره دې، اى مستوية للسائلين اى جواب السائلين فيها سواء لا يتغير بسائل بزيادة ولا نقص، (صاوى) بعضې حضراتو د للسائلين تعلق محذوف سره ګرځولې دې، تقديرى عبارت دا دې هذا الحصر للسائلين (تنوير الأرواح)

**قوله**: ثم استوى إلى السماء:

**سوال**: ددې نه معلوميږى چې د اسمان تخليق د زمکې د تخليق نه پس دې، او د الله تعالى قول والارض بعد ذلك دحٰها نه ددې عکس معلوميږى، چې د زمکې د تخليق نه د اسمان تخليق مخکښې دې؟

**جواب**: د الله تعالى قول والارض بعد ذلك دحها نه مراد د زمکې خورول دى، يعنى د زمکې د مادې تخليق د اسمان د تخليق نه مخکښې دى، خو د زمکې خورول روستو دى، لهذا هيڅ اعتراض نشته،

**قوله**: مرادي: يعني تأتي في السماء وتأتي في الارض، کوم چه ځما مراددې دهغې پورا والې اوکړئ

**قوله**: طائعين: فيه تغليب المذكر العاقل الخ

**فائده**: ددې عبارت مقصد د يوې شبهې جواب کول دى،

**شبه**: ارض او سماء د لايعقل کيدو د وجې نه د واحد مؤنث په حکم کښې دى. لهذا طائعتن وئيل پکار وو؟

**جواب**: ارض او سماء اګر چې مؤنث دى، خو دا دواړه په ذوى العقول او غير ذوى العقول دواړو باندې مشتمل دى، لهذا د ذوى العقول د فضيلت د وجې نه په غير ذوى العقول باندې غلبه ورکولو سره جمع مذکر راوړې شوې دې.

**قوله**: اونزلتا: د مذکوره اعتراض دويم جواب دې،

ددې جواب خلاصه داده چې ائتيا وئيلو سره چې کله زمکه او اسمان مخاطب جوړ کړې شو نو ګويا چې هغه د ذوى العقول په درجې ته راغلل، ځکه ددې جمع په ياء او نون سره راغلې ده، دغه مطلب دې د مفسر رحمه الله د قول اونزلتا لخطابهما منزلته.

**قوله**: لانها في معنى الجمع: ددې عبارت د زياتولو مقصد د يوې شبهې جواب کول دى.

**شبه**: فقضهن ددې ضمير السماء طرف ته راجع دې کوم چې د واحدمونث په حکم کښې دې، لهذا ددې مقتضى دا وه چې فقضاهائي وئيلې وې؟

**جواب**: د دفع خلاصه داده چې سماء د قضا او تصيير نه پس اووه جوړ شول لهذا د مايؤل په اعتبار سره جمع منلو سره فقضهن د جمع مؤنث صيغه راوړې ده.

**قوله**: الآئلة اليه: دا د آل يؤل نه اسم فاعل صيغه ده، واپس کيدونکې.

قوله: وافق: وافق فعل ماضي، د (ماهنا) ددې فاعل، آيات د وافق مفعول.

قوله: امرها الذي امر به من فيها من الطاعة والعبادة: امرها په تركيب اضافي سره، موصوف الذي، موصول امر فعل ماضي مجهول، به د امر متعلق، من موصوله، فيها د موجود سره متعلق صله، موصول صله د امر نائب فاعل، فعل خپل د فاعل او نائب فاعل مبين من بيانيه والعبادة معطوف معطوف عليه د الذي مبين بيان، مبين د خپل بيان سره د امرها صفت، موصوف صفت جمله، او د لوحي مفعول به.

قوله: شهب: د شهاب جمع ده، د اور شعله، روښانه ستورې.

قوله: ان: په دې کښې درې وجې کيدې شي، ①مخففه عن المثقله، په دې صورت کښې ضمير شان به اسم محذوف وي، اي انه لا تعبدوا ②مصدريه ناصب للمضارع، لا ناهيه ③مفسره ځکه چې مجيء الرسل د قول احتمال لري، ځکه چې ان مفسره د پاره ضروري ده چې ددې نه مخکښې قول يا د قول هم معنى يا په قول باندې دلالت کونکې يو لفظ وي، که د مجيء الرسل دلالت په قول باندې اونه منلې شي، نو ان تفسريه منل به صحيح نه وي.

قوله: وكانوا بآيتنا: ددې عطف په فاستكبروا باندې دې.

قوله: صرصرا، صر: ګرمه هوا، زهريله هوا، علامه خازن بغدادي ليکي چې په صر کښې دوه جهتونه دي ①د اکثر مفسرينو او د اهل لغت قول دادې چې صر سختې يخنۍ ته وائي، حضرت ابن عباس او قتاده رضي الله عنهما وغيره هم دا وئيلي دي، ②ګرم هوا کومه چې هلاک کونکې وي، د ابن عباس رضي الله عنه نه يو روايت داسې هم دې، په اهل لغت کښې د ابن انباري هم دا قول دې، قاضي بيضاوي وئيلې دي چې ددې اطلاق د يخې هوا د پاره شائع (عام) دې، لکه صر صر، دا په اصل کښې مصدر وو، کوم چې د صفت په توګه باندې مستعمل دې، (لغات القرآن ملخصا) مفسر علام باردة شديد الصوت وئيلو سره دواړو معنو لره جمع کړې.

قوله: مشئوم: دا د سعيد ضد دې. منحوس، نامبارک

قوله: ولعذاب الاخرة اخزى: اخزى په اصل کښې د معذب صفت دې، عذاب طرف ته د مبالغې په توګه اسناد مجازي دې، ځکه چې عذاب د رسوائي سبب دې، نه چې پخپله رسوائي، ذکر د سبب او مسبب مراد دې.

قوله: بينا لهم طريق الهدى: دا د جملې فهديناهم تفسير دې، ددې مقصد دې خبرې ته اشاره کول دي، چې دلته د هدايت نه مراد اراءة الطريق دې، نه چې ايصال الى المطلوب.

قوله: منها: اي من الصاعقة التي نزلت بثمود

[اياتونه: ١٩ - ٢٥]

(و) اذكر (يوم يحشر) بالياء والنون المفتوحة وضم الشين وفتح الهمزة (أعداء الله إلى النار فهم يوزعون) يساقون (حتى إذا ما) زائدة (جاءوها شهد عليهم سمعهم وأبصارهم وجلودهم بما كانوا يعملون) (وقالوا لجلودهم لم شهدتم علينا قالوا أنطقنا الله الذي أنطق كل شيء) اي اراد نطقه (وهو خلقكم أول مرة وإليه ترجعون) قيل هو من كلام الجلود وقيل هو من كلام الله تعالى كالذي بعده وموقعه قريب مما قبله بان القادر على إنشائكم ابتداء وإعادتكم بعد الموت أحياء قادر على إنطاق جلودكم واعضائكم (وما كنتم تستترون) عن ارتكابكم الفواحش من (أن يشهد عليكم سمعكم ولا أبصاركم ولا جلودكم) لانكم لم توقنوا بالبعث (ولكن ظننتم) عند استتاركم (أن الله لا يعلم كثيرا مما تعملون) (وذلكم) مبتدأ (ظنكم) بدل منه (الذي ظننتم بربكم) نعت والخبر (أرداكم) اي اهلككم (فأصبحتم من الخاسرين) (فإن يصبروا) على العذاب (فالنار مثوى) ماوى (لهم وإن يستعتبوا) يطلبوا العتبى اي الرضا (فما هم من المعتبين) المرضيين (وقيضنا) سببنا (لهم قرناء) من الشياطين (فزينوا لهم ما بين أيديهم) من امر الدنيا واتباع الشهوات (وما خلفهم) من امر الآخرة بقولهم لا بعث ولا حساب (وحق عليهم القول) بالعذاب وهو (لأملأن جهنم) الآية (في) جملة (أمم قد خلت) هلكت (من قبلهم من الجن والإنس إنهم كانوا خاسرين)

**ترجمه**: او هغه ورځ ياده كړه چې كله به د الله دشمنان جهنم طرف ته راجمع كړې شي، په يحشر كښې ياء او نون مفتوح، او د شين په ضمې سره، او د (اعداء) د آخرى همزې په فتحې سره نو هغوى به جمع كړې شي، تر دې چې كله هغوى جهنم ته نزدې راشي، ددوى خلاف به ددوى غوږونه او ددوى سترګې او ددوى څرمنې ددوى د بد عملونو ګواهي وركړي، دا خلق به خپلو څرمنو ته وائي چې تاسو زمونږ خلاف ولې ګواهي وركړه، هغوى به جواب وركړي چې مونږ ته هغه الله د خبرو طاقت راكړې دې، چا چې هر څيز ته چا ته چې ئې اوغوستل د وئيلو طاقت وركړو، هغه تاسو په اول ځل باندې پيدا كړئ، او هم د هغه طرف ته به وابس كيږئ، وئيلى شوى دى، چې دا (وهو خلقكم اول مرة الخ) د څرمنو كلام دې، او وئيلې شوى دى چې د الله تعالى كلام دې، څنګه چې راروان آيت (وما كنتم تستترون الخ) د الله كلام دې،، او د الله د كلام دا موقع ماقبل (يعنى انطقنا الله الخ) لره قريب الفهم كولو د پاره، په داسې طريقه چې كوم ذات تاسو لره په اول ځل پيدا كولو او د مرګ نه پس په دوباره ژوندى كولو باندې قادر دې هغه ستاسو څرمنو او اعضاؤ ته د خبرو طاقت وركولو باندې هم قدرت لرونكې دې، او تاسو د ګناهونو كولو په وخت د هغه نه د پټيدو ضرورت نه ګڼړلو ځكه چې تاسو به په دې خبره باندې يقين نه ساتلو، چې په تاسو باندې ستاسو غوږونه ستاسو سترګې او ستاسو څرمنې ستاسو خلاف ګواهي وركوى، خو تاسو ګناهونه د خلقو نه د پټولو په وخت دا ګڼړله چې تاسو څه كوئ په هغې كښې د ډيرو كارونو نه الله نه خبريږى، ستاسو هم دغې بدګمانئ كومه چې تاسو د خپل رب نه

کوله، تاسو هلاک کړئ، ذلکم مبتدأ، ظنکم ددې نه بدل دې، د بدل صفت او د مبتدأ خبر اردکم دې، اردکم ای أهلککم او په آخر کښې تاسو د تاوانیانو نه شوئ، اوس که دوی په عذاب باندې صبر اوکړي، نو بیا هم ددوی ځاې جهنم دې، او که دوی خوشحالي حاصلول اوغواړي، نو دوی به د خوشحالئ حاصلونکي نه وي یعني خوشحالي حاصلولې نشي،او د شیطانانو نه مونږ ددوی څه ملګري مقرر کړي دي چې هغوي ددوی مخکښې او روستو عملونه یعني د دنیا عملونه او د خوهشاتو تابعداري، او د آخرت په باره کښې یعني ددوی قول (عقیده) لابعث ولا حساب ددوی په نظرونو کښې ښائسته کړي دي، دداسې خلقو په حق کښې د الله قول یعني د عذاب وعده، او هغه لاملئن جهنم (الآیة) ده پوره شوه، حال دا چې کوم امتونه ددوی نه مخکښې جنات او انسانان هلاک شوي دي، بې شکه هغوی هم په تاوان کښې وو.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

قوله: نحشر: جمع متکلم، د نون په فتحې او د شین په ضمې سره، په دې صورت کښې به د اعداء آخري همزه مفعول کیدو د وجې نه منصوب وي، دویم قراءت کوم چې مفسر علام د شهرت د وجې نه پریښې دې، هغه د یحشر د یاء په ضمې او د شین په فتحې سره، مضارع واحد مذکر غائب مجهول، په دې صورت کښې به د اعداء آخري همزه د نائب فاعل کیدو د وجې نه مرفوع وي.

قوله: الی النار: ای الی موقف الحساب

قوله: یساقون: قاضي بیضاوي د یوزعون تفسیر په یحبس اولهم علی اٰخرهم سره کړې دې، خو مقصد د دواړو یو دې.

قوله: یوزعون: وزع (ف) نه جمع مذکر غائب مضارع مجهول، دوی به جمع کړې شي، یعني مخکښې والا به ایسار شي چې ټول یو ځاې لاړ شي، په دې سره د کثرت طرف ته هم اشاره ده.

قوله: یستعتبوا: جمع مذکر غائب مضارع مجزوم، استعتاب (استفعال) نه د صاحب کشاف تفسیر زیات واضح دې، علامه محلی هم دا اختیار کړې دې، یعني که دوی د الله د رضامندئ طلب اوکړي یعني په دې ځاې کښې استعتاب د عتبی نه ماخوذ دې، نه چې د اعتاب نه، ځکه چې دا خلق د الله د رضامندئ طلب د بل چا نه نه، بلکه خپله د الله نه به ئې کوي.

قوله: قیضنا: ای هیأنا وقدرنا ماضي متکلم معروف، مصدر تقییض (تفعیل) ماده قیض قیض په معنی د (اندې پوستکې) ، چونکه د اندې پوستکې د اندې سره یو ځاې

لګيدلې وي، نو دغه مناسبت سره دتقيض معنى يو ځائې لګول، مسلط کول.

**قوله**: في امم: في بمعنى مع هم کيدې شي، د عليهم د ضميرِ مجرور نه حا ل دې، اى كائنين مع جملة امم

**قوله**: من ان يشهد عليكم: دا دې خبرې ته اشاره ده، چه يشهد د نزع خافض د وجې نه منصوب دې، او هغه خافض من دې، ځکه چې تستترون متعدى بنفسه نه دې.

**قوله**: عند استتاركم: اى من الناس اى مع عدم استتاركم من اعضائكم، د اعضاؤ نه د استتار صرف هم يو صورت دې چې دې فعل لره پرينښودلې شي.

**قوله**: فان يصبروا:

**سوال**: هر کله چې د مشرکينو د پاره خلود فى النار په هر حالت کښې دائمى او لازمى دې، که دوى صبر کوى او که نه کوى، نو بيا د ان يصبروا سره د مقيد کولو څه وجه ده؟

**جواب**: په آيت کښې حذف دې، تقديرى عبارت دا دې فان يصبروا اولا يصبروا فالنار مثوى لهم د علم او شهرت د وجې نه مقابل حذف کړې شو، ځکه چې کله د صبر په صورت کښې جهنم ځائې وى نو د نه صبر کولو په صورت کښې به خامخا وى.

**قوله**: قيضنا لهم: اى للقريش لهذا فى امم وثيل صحيح شول.

[اياتونه: ٣٦-٣٢]

(وقال الذين كفروا) عند قراءة النبي صلى الله عليه وسلم (لا تسمعوا لهذا القرآن والغوا فيه) ائتوا باللغط ونحوه وصيحوا في زمن قراءته (لعلكم تغلبون) فيسكت عن القراءة قال الله تعالى فيهم (فلنذيقن الذين كفروا عذابا شديدا ولنجزينهم أسوأ الذي كانوا يعملون) اي اقبح جزاء عملهم (ذلك) العذاب الشديد واسوأ الجزاء (جزاء أعداء الله) بتحقيق الهمزة الثانية وإبدالها واوا (النار) عطف بيان للجزاء المخبر به عن ذلك (لهم فيها دار الخلد) اي إقامة لا انتقال منها (جزاء) منصوب على المصدر بفعله المقدر (بما كانوا بآياتنا) القرآن (يجحدون) (وقال الذين كفروا) في النار (ربنا أرنا اللذين أضلانا من الجن والإنس) اي إبليس وقابيل سنا الكفر والقتل (نجعلهما تحت أقدامنا) في النار (ليكونا من الأسفلين) اي اشد عذابا منا (إن الذين قالوا ربنا الله ثم استقاموا) على التوحيد وغيره مما وجب عليهم (تتنزل عليهم الملائكة) عند الموت (أ) بأن (لا تخافوا) من الموت وما بعده (ولا تحزنوا) على ما خلفتم من اهل وولد فنحن نخلفكم فيه (وأبشروا بالجنة التي كنتم توعدون) (نحن أولياؤكم في الحياة الدنيا) اي نحفظكم فيها (وفي الآخرة) اي نكون معكم فيها حتى تدخلوا الجنة (ولكم فيها ما تشتهي أنفسكم ولكم فيها ما تدعون) تطلبون (نزلا) رزقا مهيئا منصوب بجعل مقدرا (من غفور رحيم) اي الله

**ترجمه:** او کافرانو ستاسو د قرامت په وخت کښې اووئیل چې دې قرآن لره مه اورئی، او شور کوئ، او ددوی ﷺ قرامت په صورت کښې شور جوړوئی، کیدې شی چې تاسو غالب راشئ، او پیغمبر بیللو نه پس چپ شی، الله تعالی ددې خلقو په باره کښې اوفرمائیل مونږ به دې کافرانو ته یقینا سخت عذاب ورکړو، او دوی ته به ددوی د خرابو عملونو بدله خامخا ضرور ورکوو، یعنی د دوی د عمل بدترینه بدله، (ضرور به ورکړو) هغه یعنی سخت عذاب او بدترینه بدله د الله د دشمنانو سزا هم دا ددوزخ اور دې، د دویمې همزې تحقیق او هغه په واؤ بدلولو سره، النار د الجزاء عطف بیان دې، کوم چې د ذلک مخبر به (خبر) دې، په هغې کښې ددوی همیشگیر کور دې، یعنی د همیشه اوسیدلو دهغې نه بدلیدل نشته، دوی ته به دا بدله زمونږ د آیتونو انکار د وجې نه ورکولې شی، جزاء د خپل فعل مقدر د وجې نه منصوب دې او کافران خلق به په جهنم کښې وائی چې اې زمونږه ربه، مونږ ته د جناتو او انسانو هغه دواړه ډلې اوښایه، چا چې مونږ گمراه کړو یعنی ابلیس او قابیل، چې دې دواړو د کفر او د قتل طریقه ایجاد کړه، چې مونږ هغوی د خپلو قدمونو لاندې چخنړې کړو، چې هغوی په جهنم کښې د ټولو نه لاندې زمونږ په اعتبار سره په سخت ترین عذاب کښې شی، واقعی کومو خلقو چې اووئیل چې زمونږ پروردگار الله دې، بیا توحید وغیره باندې کوم چې په دوی باندې واجب شو، کلک وو، دوی ته فرشتې د مرگ په وخت کښې دې وئیلو سره راځی، چې د مرگ نه او د مرگ نه پس حالاتو نه مه ویرېږئ، او کوم خاندان چه تاسو پرېښې دې په هغوی باندې غم مه کوئ، ځکه چې په دې معامله کښې مونږ ستاسو خلیفه یو، بلکه د هغه جنت زیرې واورئی، د کوم چه تاسو سره وعده کړې شوې ده، ستاسو د دنیا په ژوند کښې هم مونږ ستاسو دوستان وو، یعنی د دنیا په ژوند کښې مونږ ستاسو حفاظت اوکړو او په آخرت کښې هم، یعنی په آخرت کښې به هم تاسو سره یو، تر دې چې تاسو جنت ته داخل شئ، او کوم څیز چې تاسو غواړئ او کوم څیز چې تاسو طلب کوئ (ټول) به ستاسو د پاره د میلمستیا په توگه د غفور او رحیم یعنی د الله د طرف نه تیار ملاوېږی، رزقاً، د جعل مقدر د وجې نه منصوب دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** :عند قراءة النبی ﷺ: دا د قال ظرف دې، ای عند قراءة النبی قال

**قوله:** :والغوا: الغوا د لغو نه امر جمع مذکر حاضر (ن س ف) عبث او بې هوده خبرې کول، بک بک کول.

**قوله:** :اللغط: شور کول، بیهوده خبرې کول، دا د لغو هم معنی دې.

**قوله:** :ای اقبح جزاء عملهم: ددې عبارت د زیاتولو مقصد د یوې شبهې جواب کول دی،

**شبه**: د الله تعالی قول لنجزينهم اسوا الذی كانوا يعملون ددې نه په ظاهره دا شبه پيدا کيږی چې کافر ته به د دوی د نفس عمل د قسم بدترينه بدله ورکولې شی، مثلا کومو مشرکانو چې حضور ﷺ پورې توقې کړې وی نو په آخرت کښې به هغوی پورې بدترينې توقې کولې شی. حالانکه مقصد دا نه دی؟

**جواب**: په کلام حذف د مضاف سره دې، تقديری عبارت دا دې لنجزينهم اقبح جزاء عملهم

**قوله**: العذاب الشديد الخ: ددې اضافې مقصدد ذلک مشاراليه متعين کول دی، او مشاراليه فلنذيقنهم اوولنجزينهم دې، ذلک مبتدأ، اعداء الله ددې خبر، او النار د جزاء نه بدل، يا عطف بيان دې، دا هم کيدې شی، چې ذلک الامر د مبتدأ محذوف خبر وی، جزاء اعداء الله النار به د مخکښې د پاره بيان وی، اول اولی دې.

**سوال**: النار د جزاء نه بدل گرځول صحيح نه دی، ځکه چې د بدل د صحيح کيدو علامت دا دې چې بدل د مبدل منه په ځاې کيخودې شی نو معنی به صحيح وی، خو دلته داسې نه ده، ځکه چې بدل د مبدل منه په ځائې باندې ايخودلو نه پس تقدير د عبارت به دا وی ذلك النار اعداء الله او دا صحيح نه ده، لهذا ضرروی ده چې د مرجوح اعراب نه راجع طرف ته رجوع اوکړې شی، او النار د هی مبتدأ محذوف خبر جوړ کړې شی، يا النار مبتدأ اوگرځولې شی، او ددې نه پس يعنی ولهم فيها دار الخلد ددې خبر.

**نکته**: **سوال**: لهم فيها دار الخلد کښې د فيها د ضمير مرجع النار ده، او د اور نه مراد د جهنم اور دې، او جهنم موصوف په صفت د هميشوالی دې، اوس د فيها دار الخلد مطلب دا شو چې د دار الخلد په مينځ کښې دار الخلد دې، دا ظرفية الشئ لنفسه دې، کوم چې جائز نه دې؟

**جواب**: په کلام کښې تجريد دې، تجريد وائی د يو امر ذی صفت نه د هغې مطابق د مبالغې په توگه د دويم امر ذی صفت انتزاع کول، ځکه چې دلته د النار نه د دارآخرت انتزاع اوکړې شو ددې نوم دار الخلد کيخودلې شو، لهذا دا صحيح ده.

**قوله**: جزاء: د فعل محذوف د مصدر کيدو د وجې نه منصوب دې، ای يجزون جزاء

**قوله**: بايتنا يجحدون:

**سوال**: بايتنا کښې باء کومه ده؟

**جواب**: يا خو باء زائده ده، يا يجحدون د يکفرون معنی لره متضمن دې په دې صورت کښې باء تعديه د پاره راوړلې شوې ده.

**قوله**: فی النار: دا د قال فاعل د الذين نه حال دې، ای کائنين فی النار

قوله: ارنا: لرامر واحد مذكر، نا، ضمير متكلم ارنا، مراد تري نه رؤيت بصري دى، همزه د تعديه، الى مفعول ثانى د پاره ده، ضمير د نا مفعول اول دي الذين مفعول ثانى دي، د ارنا اصل ارئينا وو، اى صيرنا رائين باهمارنا، ياء حرف علت كومه چې لام كلمه ده، د فعل په حرف علت باندې مبنى كيدو د وجې نه حذف شو، دويمه همزه كومه چې عين كلمه ده ددې كسره ددې د ماقبل راء ته مو وركړه، كومه چې فاء كلمه ده، اوس ددې وزن ارنا شو، موجوده همزه د كلمې نه ده بلكه د تعديه د پاره ده.

## په خوف او حزن كښې فرق

قوله: لاتخافوا ولاتحزنوا: د راروان تكليف د وجه نه انسان ته چې كوم كيفيت لاحق كيږي، هغې ته خوف وئيلې شى او تير شوې زمانه كښې د يو مفيد څيز فوت كيدو د وجه نه چې كوم كيفيت راځى، هغې ته حزن وائى.

قوله: ان اي بأن: ان مصدريه دې، باء مقدر ده، تخافوا په معنى د خوف دې، اى تتنزل عليهم الملائكة قائلين لهم لاخوف عليكم ولاحزن.

قوله: ابشروا: دابشارنه امر جمع مذكر حاضر، تاسو ته دې خوشخبرى وى.

قوله: نحن اولياكم: په دې كښې دوه احتماله دى، د الله تعالى كلام هم كيدې شى او د ملائكو هم.

قوله: نزلا: د تدعون د ضمير نه حال دې، نزل هغه خوراك ته وائى كوم چې د ميلمه د پاره د ميلمستيا په توګه تياريږى.

[آيات توله: ٣٣ - ٤٤]

{ومن أحسن قولا} اي لا احد احسن قولا {ممن دعا إلى الله} بالتوحيد {وعمل صالحا وقال إنني من المسلمين} {ولاتستوي الحسنة ولا السيئة} في جزئياتهما لأن بعضهما فوق بعض {ادفع} السيئة {بالتي} اي بالخصلة التي {هي أحسن} كالغضب بالصبر والجهل بالحلم والإساءة بالعفو {فإذا الذي بينك وبينه عداوة كأنه ولي حميم} اي فيصير عدوك كالصديق القريب في محبته إذا فعلت ذلك فالذي مبتدأ وكأنه الخبر وإذا ظرف لمعنى التشبيه {وما يلقاها} اي يؤتي الخصلة التي هي أحسن {إلا الذين صبروا وما يلقاها إلا ذو حظ} ثواب {عظيم {وإما} فِيهِ إدْغَام نُون إنْ الشَّرْطِيَّة فِي مَا الزائدة {ينزغنك من الشيطان نزغ} اي يصرفك عن الخصلة وغيرها من الخير صارف {فاستعذ بالله} جَوَاب الشَّرْط وَجَوَاب الأَمْر محذوف اي يدفعه عنك {إنه هو السميع} للقول {العليم} بالفعل {ومن آياته الليل والنهار والشمس والقمر لا تسجدوا للشمس ولا للقمر واسجدوا لله الذي خلقهن} اي الآيات الأربع {إن كنتم إياه تعبدون} {فإن استكبروا} عن السجود لله وحده {فالذين عند ربك} اي فالملائكة {يسبحون} يصلون {له بالليل والنهار وهم لا

يسأمون﴾ لا يملون ﴿ومن آياته أنك ترى الأرض خاشعة﴾ يابسة لا نبات فيها ﴿فإذا أنزلنا عليها الماء اهتزت﴾ تحركت ﴿وربت﴾ انتفخت وعلت ﴿إن الذي أحياها لمحيي الموتى إنه على كل شيء قدير﴾ ﴿إن الذين يلحدون﴾ من ألحد ولحد ﴿في آياتنا﴾ القرآن بالتكذيب ﴿لا يخفون علينا﴾ فنجازيهم ﴿أفمن يلقى في النار خير أم من يأتي آمنا يوم القيامة اعملوا ما شئتم إنه بما تعملون بصير﴾ تهديد لهم ﴿إن الذين كفروا بالذكر﴾ القرآن ﴿لما جاءهم﴾ نجازيهم ﴿وإنه لكتاب عزيز﴾ منيع ﴿لا يأتيه الباطل من بين يديه ولا من خلفه﴾ أي ليس قبله كتاب يكذبه ولا بعده ﴿تنزيل من حكيم حميد﴾ أي الله المحمود في أمره ﴿ما يقال لك﴾ من التكذيب ﴿إلا﴾ مثل ﴿ما قد قيل للرسل من قبلك إن ربك لذو مغفرة﴾ للمؤمنين ﴿وذو عقاب أليم﴾ للكافرين ﴿ولو جعلناه﴾ أي الذكر ﴿قرآنا أعجميا لقالوا لولا﴾ هلا ﴿فصلت﴾ بينت ﴿آياته﴾ حتى نفهمها ﴿أ﴾ قرآن ﴿أعجمي و﴾ نبي ﴿عربي﴾ استفهام إنكار منهم بتحقيق الهمزة الثانية وقلبها ألف بإشباع ودونه ﴿قل هو للذين آمنوا هدى﴾ من الضلالة ﴿وشفاء﴾ من الجهل ﴿والذين لا يؤمنون في آذانهم وقر﴾ ثقل فلا يسمعونه ﴿وهو عليهم عمى﴾ فلا يفهمونه ﴿أولئك ينادون من مكان بعيد﴾ أي هم كالمنادى من مكان بعيد لا يسمع ولا يفهم ما ينادى به

**ترجمه:** او د هغه کس نه د چا خبره ښه کیدې شي چې د توحید په ذریعه د الله طرف ته رابلل کوي، او وائي چې څه د فرمانبردارو نه یم، نه تولې نیکئ په خپل مینځ کښې برابر کیدې شي او نه تولې بدئ د خپلو افرادو په اعتبار سره څکه چې بعضې د بعضو نه غټې وی، تاسو بدئ لره په ښه اخلاقو سره لرې کړئ لکه غصه د صبر په ذریعه، او جهالت په بردبائ سره، او بې ادبی په بخښنې سره، بیا هغه کس چې د هغه او ستا په مینځ کښې دشمنی ده، داسې به شي څنګه چې د زړه ملګرې، چې کله تاسو په دې باندې عمل اوکړئ، نو ستاسو دشمن به په خپل محبت کښې ستا نزدې دوست جوړ شي، الذی مبتدأ، کأنّه ددې خبر، او اذا د معنی تشبیه د پاره ظرف دې، او دا بهترین عادت هغه خلقو ته ملاوېږي څوک چې صبر کوي، او دا لوئې نصیب والا حاصلولې شي، او په اما کښې د ان شرطیه په ما زائده کښې ادغام دې که تاته د شیطان د طرفه څه وسوسه راشي که څوک تالره اړونکي (دښه) خصلت او خیر وغیره نه اړوی نو د الله پناه طلب کړه، فاستعذ بالله جواب شرط دې، او جواب امر محذوف دې، او هغه یدفعه عنك دې، یقینا هغه خبرو لره اوریدونکې او هر کار باندې پوهیدونکې دې، او د شپه ورځ نمر سپوږمې د هغه د قدرت د نښو نه دی، تاسو نمر ته سجده مه کوئ، او نه سپوږمئ ته، بلکه الله ته سجده کوئ، چا چې دا ذکر شوی څلور واړه نښو لره پیدا کړې دی، که تاسو د هغه عبادت کوئ نو بیا هم که دوی د الله وحده د سجدې نه تکبر او غرور اوکړی، نو هغه فرشتې کومې چې ستا رب سره دی، هغوی شپه او ورځ تسبیح بیانوی، مونځ کوی او هغوی یو وخت هم ستړې کیږی نه، او د هغه د قدرت د نښو نه دا هم ده چې ته زمکې لره اوچه کرسه بغیر د اوبو او ګیاه ګورې، بیا

چې كله مونږ په دې باندې باران نازل كړو، نو هغه تازه شي او حركت شروع كړي او اوپړسيږي او غټيږي، چا چې دا ژوندئ كړه يقينا هغه مړو لره هم ژوندی كونكې دې، بې شكه هغه په هر څيز باندې قدرت لرونكې دې، بې شكه كوم خلق چې زمونږ په آيتونو كښې په قرآن كښې كوږوالې كوی دا د اَلحَد او لَحَد نه مشتق دې، زمونږ نه پټ نه دی، نو مونږ به هغوی ته بدله وركړه (نو اووايه)چې څوک په اور كښې واچولې شي هغه ښه دې يا چې هغه څوک په امن او آمان سره د قيامت په ورځ باندې راشي،؟ چې څه مو زړه غواړي كوئ هغه ستاسو ټول كارونو لره ګوری، دا هغوی ته دهمكی ده، كوم خلقو ته چې قرآن راورسيدو بيا ئې هم كفر اوكړو مونږ به هغوی ته بدله وركړو، دا ډير عزت والابې مثاله كتاب دې، چې دې ته باطل نشي راتلې، نه ددې د مخكښې نه او نه د روستو نه، نه ددې نه مخكښې يو كتاب شته چې ددې تكذيب اوكړي او نه ددې نه پس نازل كړې شوې دې، د حكمتونو والا خوبيانو والا د طرف نه يعنی د الله د طرف نه چې قابل د ستاينې دې تاسو ته د تكذيب وغيره هم هغه خبرې كولې شی كومې چې ستاسو نه مخكښې رسولانو ته شوې وې، يقينا ستا رب مومنانو د پاره معاف كونكې او كافرانو لره دردناک عذاب وركونكې دې، او كه مونږ دې قرآن لره په عجمی ژبه كښې جوړ كړې وو نو بيا به ئې وئيل چې ددې ايتونه صفا صفا ولې بيان شوې نه دی،؟ چې مونږ په دې باندې پوهيدلې، دا څه دی چې عجمی كتاب او عربی پيغمبر؟ دا د هغوی د طرف نه استفهام انكاری دې، د ثانی همزې په تحقيق سره او هغه په الف بدلولو سره، لهمأ يعنی الف داخلولو سره، او نه داخلولو سره، تاسو ورته اووايئ چې دا خو دايمان والا د پاره د ګمراهئ نه هدايت او د جهل نه شفا ده، او كوم خلق چې ايمان نه راوړی د هغوی په غوږونو كښې دروندوالې دې، يعنی بوج دې، چې د هغې د وجې نه هغوی نه اوری، او دا په هغوی باندې روندوالې دې، چې د هغې د وجې نه هغوی په دې باندې نه پوهيږی، دا هغه خلق دی چې د ډير لرې نه دوی ته اواز كيږی يعنی دا خلق دهغه كس په شان دی چاته چې د لرې نه اواز كيږی خو نه هغه اوری او نه پوهيږی، چې ده ته څه وئيلې شی؟

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله**: ومن احسن قولا: الاية، من استفهام انكاری دې، مبتدأ مفسر علام لااحد وئيلو سره اشاره اوكړه چې من استفهاميه انكاری دې، احسن خبر، قولا تميز كيدو د وجې نه منصوب دې، **عمل صالحا** جمله حاليه ده،

**قوله**: في جزئياتهما لان بعضها فوق بعض: ددې عبارت نه د مفسر علام مقصد په جزئيات او اجزاؤ كښې فرق بيانول دی، او د فرق بيانولو مقصد په **ولا تستوی الحسنة ولا السيئة** كښې دا خودل دی چې لا ثانيه د تاسيس د پاره ده، نه چې د تاكيد د پاره، او دا

خبره منلې شوې ده چې تاسيس د تاكيد نه بهتر دې، ځكه چې په تاكيد سره د مضمون سابق تاكيد كيږي كوم چې يو نوې علم نه دې، او په تاسيس سره نوې علم نوې فائده حاصليږي، او نوې خبره معلوميدل د زړې خبرې د تاكيد په مقابله كښې بهرحال افضل او بهتر دې.

**قوله**: انني من المسلمين: د جمهورو په نيز انني دوه نونو سره دې، او ابن ابى عليه په يو نون سره انى وئيلې دې، يعنى هغه په فخر او خوشحالئ سره وائي چې مسلمان يم.

**قوله**: كانه ولي حميم: حميم گرمو اوبو ته وئيلې شي، استعمراى اغتسل بالحميم په گرمو اوبو سره ئې غسل اوكړو اوس مطلقا غسل كولو ته استحمام وائى، كه په گرمو اوبو سره وى او كه په يخو، حميم گرم جوش او د زړه ملگرى ته هم وائى،

**قوله**: فاستعذ بالله: دادا اما ينزغنك د شرط جواب دې، او د فاستعذ (امر) جواب محذوف دې، كوم چې علامه محلي يدفعه وئيلو سره ښكاره كړو،

**قوله**: ينزغنك: مضارع واحد مذكر غائب بانون تاكيد ثقيله، دا د نزغ نه دې، (ك) ضمير مفعول دې، تاته وسوسه راشى،

**قوله**: خلقهن: اى الايات الاربعة

**شبه**: د خلقهن په ځاې خلقهما ډير ظاهر وو، ځكه چې د چا د پاره د سجدې ذكر دې، هغه دوه دى يعنى نمر او سپوږمئ، لهذا خلقهما وئيل پكار وو؟

**جواب**: نمر او سپوږمئ ته د سجده د نه جائز كيدو او په دوى كښې د معبود جوړيدو صلاحيت نه كيدو د علت دذوى مخلوق كيدل دى، ځكه چې يو مخلوق كه هغه هم څومره هم مفيد او څومره لوې ولې نه وى خو د عبادت مستحق كيدې نشى، په خلقهن كښې د جمع ضمير راوړلو سره ئې دا اووئيل چې شمس او قمر هم د ورځ او شپې په شان مخلوق او د خلق د اثر لاندې دى.

**قوله**: ومن اياته الليل والنهار: الخ: من اياته خبر مقدم دې، او الليل والنهار وما عطف عليه مبتدا مؤخر ده.

**قوله**: ومن اياته انك ترى الارض: من اياته خبر مقدم دې، (ان) سره د مدخول نه په تاويل د مصدر مبتدا مؤخر دې.

**قوله**: تهديد لهم: په دې كښې اشاره ده چې اعملوا ما شئتم كښې امر د تخيير د پاره نه دې بلكه د تهديد او دهمكئ د پاره دې، ددې قرينه بما تعملون بصير ده.

**قوله:** :لیجازیهم: ددې تقدیر مقصد دا وئیل دی چې د ان خبر محذوف دې، الذین کفروا د (ان) اسم دې.

**قوله:** :منهم: منهم یرون فصل عمعنی فاعل، ای ممتنع عن قبول الابطال والتحریف

**قوله:** :ااعجمی: دا د مبتدأ محذوف خبر دې، کوم چې مفسر علام (رح) قرآن وئیلو سره ښکاره کړې دې.

**قوله:** :اعجمی : کښې یاء مبالغه فی الوصف د پاره ده، لکه څنګه احمری کښې کلام اعجمی هغه کلام ته وائی کوم چې په پوهه کښې نه راځی، په ااعجمی کښې اوله همزه استفهام انکاری ده، په دویمې همزې کښې دوه قراءتونه دی، چې هغې طرف ته علامه محلی ﷺ بتحقیق الهمزة الثانیة وقلبها الفا بالاشباع، وئیلو سره اشاره کړې ده، اولنې قراءت خو واضح دې، چې دواړه همزې محقق اووئیلې شی، دویم قراءت دا دې چې دویمې همزې لره په الف سره بدل کړی، او اشباع یعنی مدطویل لازم سره اووائی، اعجمی دودونه لفظ سبقت قلم دې، یا د (دونه) تعلق قلب سره دې، ای دون قلب الف په دې صورت کښې به دا د نورو قراءتونو بیان وی، ځکه چې د قلب په صورت کښې مدلازم راځی، نو بیا بغیر د مد نه څنګه کیدې شی؟

پنځه قراءتونه په ترتیب سره دا دی (١)تسهیل همزه ثانیه مع ادخال الف بین الهمزتین، (٢)ابدال همزه ثانیه بالالف مع المد الطویل، (٣)تسهیل ثانیه بلا ادخال الف بین الهمزتین (۴)بهمزة واحدة خبریة (اعجمی) (۵)بهمزتین محققتین بلا ادخال الف

پاره نمبر-٢٥ [اِلَيْهِ يُرَدُّ]

[آیاتونه:٤٥-٥٢]

(وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَى الْكِتَابَ) التوراة (فَاخْتُلِفَ فِيهِ) بالتصديق والتكذيب كالقرآن (وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ رَبِّكَ) بتأخير الحساب والجزاء للخلائق إلى يوم القيامة (لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ) في الدنيا فيما اختلفوا فيه (وَإِنَّهُمْ) أي المكذبين به (لَفِي شَكٍّ مِنْهُ مُرِيبٍ) موقع في الريبة (مَنْ عَمِلَ صَالِحًا فَلِنَفْسِهِ) عمل (وَمَنْ أَسَاءَ فَعَلَيْهَا) أي فضرر إساءته على نفسه (وَمَا رَبُّكَ بِظَلَّامٍ لِلْعَبِيدِ) أي بذي ظلم لقوله تعالى إن الله لا يظلم مثقال ذرة (إِلَيْهِ يُرَدُّ عِلْمُ السَّاعَةِ) متى تكون لا يعلمها غيره (وَمَا تَخْرُجُ مِنْ ثَمَرَةٍ) وفي قراءة ثمرات (مِنْ أَكْمَامِهَا) أوعيتها جمع كم بكسر الكاف إلا بعلمه (وَمَا تَحْمِلُ مِنْ أُنْثَى وَلَا تَضَعُ إِلَّا بِعِلْمِهِ وَيَوْمَ يُنَادِيهِمْ أَيْنَ شُرَكَائِي قَالُوا آذَنَّاكَ) أعلمناك الآن (مَا مِنَّا مِنْ شَهِيدٍ) أي شاهد بأن لك شريكا (وَضَلَّ) غاب (عَنْهُمْ مَا كَانُوا يَدْعُونَ) يعبدون (مِنْ قَبْلُ) في الدنيا من الأصنام (وَظَنُّوا) أيقنوا (مَا لَهُمْ مِنْ مَحِيصٍ) مهرب من العذاب والنفي في الموضعين معلق عن العمل وجملة النفي سدت مسد المفعولين (لَا يَسْأَمُ الْإِنْسَانُ مِنْ

دعاء الخير} اي لا يزال يسال ربه المال والصحة وغيرهما {وإن مسه الشر} الفقر والشدة {فيؤس قنوط} من رحمة الله وهذا وما بعده في الكافرين {ولئن} لام قسم {أذقناه} آتيناه {رحمة} غنى وصحة {منا من بعد ضراء} شدة وبلاء {مسته ليقولن هذا لي} اي بعملي {وما أظن الساعة قائمة ولئن} لام قسم {رَجِعْتُ إِلَىٰ رَبِّي إِنَّ لِي عِنْدَهُ لَلْحُسْنَىٰ} اي الجنة {فلننبئن الذين كفروا بما عملوا ولنذيقنهم من عذاب غليظ} شديد واللام في الفعلين لام قسم {وإذا أنعمنا على الإنسان} الجنس {أعرض} عن الشكر {ونأى بجانبه} ثنى عطفه متبخترا وفي قراءة بتقديم الهمزة {وإذا مسه الشر فذو دعاء عريض} كثير {قل أرأيتم إن كان} اي القرآن {من عند الله} كما قال النبي {ثم كفرتم به من} اي لا احد {أضل ممن هو في شقاق} خلاف {بعيد} عن الحق اوقع هذا موقع منكم بيانا لحالهم {سنريهم آياتنا في الآفاق} اقطار السماوات والأرض من النيرات والنبات والأشجار {وفي أنفسهم} من لطيف الصنعة وبديع الحكمة {حتى يتبين لهم أنه} اي القرآن {الحق} المنزل من الله بالبعث والحساب والعقاب فيعاقبون على كفرهم به وبالجائي به {أولم يكف بربك} فاعل يكف {أنه على كل شيء شهيد} بدل منه اي او لم يكفهم في صدقك ان ربك لا يغيب عنه شيء ما {ألا إنهم في مرية} شك {من لقاء ربهم} لإنكارهم البعث {ألا إنه} تعالى {بكل شيء محيط} علما وقدرة فيجازيهم بكفرهم

---

**ترجمه:** يقينا مونږ موسى عليه السلام ته كتاب "تورات" وركړې وو، نو په هغې كښې هم د قرآن په شان تصديق او تكذيب كولو سره اختلاف اوكړې شو، او كه هغه خبره نه وه كومه چې ستا د رب د طرف نه د مخلوق د حساب او د بدلې د قيامت د ورځې پورې روستوالى په باره د مخكښې نه مقرر شوې ده، نو په دنيا كښې به د دوى په مينځ كښې فيصله شوې وه، د هغه څيز په باره كښې دوى اختلاف كوى، دا تكذيب كونكى خلق ددې باره كښې سخت بې چينه كونكى شک كښې دى، كوم كس چې نيک عمل كوى هغه د ځان د پاره كوى او كوم كس چې گناه كوى نو د هغې وبال به هم په هغه وى، يعنى د گناهونو نقصان به هم د هغه په ذات باندې راځى، او ستا رب په بندگانو باندې ظلم كولو والا نه دې، يعنى ظالم نه دې، د الله تعالى قول ان الله لا يظلم مثقال ذرة د وجې نه، د قيامت علم هم هغه طرف ته واپس كيږى، چې كله به وى، د هغه نه سوا بل چا ته پته نشته، او كومه ميوه چې د خپلو شگوفو يعنى د غلافونو نه راوځى، په يو قراءت كښې ثمرات دې، اكمام د كم جمع ده، د كاف كسرې سره، او كومه ماده چې حمل اخلى او كوم بچې چه هغه زيگوى، نو د ټولو علم هغه ته دې، او په كومه ورځ چې الله دې مشركانو لره را اوغواړى او تپوس بهترې اوكړى چې ځما شريكان چرته دى؟ نو هغوى به جواب وركړى چې اوس مونږ تا ته عرض كوو چې په مونږ كښې څوک هم ددې دعوى كولو والا نشته، يعنى ددې دعوى كونكې چې ستا څوک شريک شته، او د كومو بتانو چې دې خلقو په دنيا كښې عبادت كولو هغه ټول به د هغوى نه غائب شى، دې صورتِ حال لره كتلو سره به دا خلق پوهه شى

چې ددوی د خلاصی هیڅ صورت نشته، یعنی د عذاب نه د تیختې هیڅ یو ځای نشته، او حرف نفی په دوارو ځایونو کښې ①ما لهم من محیص ②ما لهم من محیص کښې د عمل نه موقوف دې، او وئیلې شوې دی چې جمله منفیه د دوو مفعولو قائم مقام کړې شوې ده، د خیګړې غوښتلو نه انسان ستړې کیږی نه، یعنی د خپل رب نه مال او صحت غواړی، که څه تکلیف ورته ورسی، نو د رحمت نه مایوسه او نا امیده شی، او کوم چې ددې نه پس دی هغه د کافر په باره کښې دی، او قسم دې که مونږ دوی ته د یو تکلیف د سختئ او مصیبت نه پس کوم چې دوی ته رسیدلې وی، د خپل رحمت یعنی د په مالدارئ او د صحت مزه اوڅکوو، نو وائی چې څه ددې حقدار ووم، یعنی دا څما د تدبیر په وجه دی، او څه ګمان نه کوم چې قیامت راتلونکې دې، او قسم دې فرض کړه که څه خپل رب ته واپس هم کړې شوم نو د هغه سره هم څما د پاره ښه دې، یعنی جنت دې، مونږ به یقینا دې کافرانو لره ددوی د عملونو نه خبر کړو، او دوی ته به د سخت عذاب مزه اوڅکوو، یعنی د سخت قسم، په دوارو فعلونو کښې لام قسمیه دې، او چې کله مونږ په جنس انسان باندې انعام کوو نو د شکر نه مخ اړوی، او طرف کوی، یعنی تکبر کولو سره یو طرف ته روان شی، او په یو قراءت کښې په نون باندې د همزې تقدیم سره دې، او چې کله په دوی باندې مصیبت راشی نو اوږدې اوږدې دعاګانې کوی، ته ورته اووایه چې تاسو اووایئ چه که دا قرآن د الله د طرف نه وی څنګه چې محمد ﷺ فرمائی او بیا تاسو انکار اوکړئ نو د داسې کس نه څوک به زیات غلطې باندې وی، چې په مخالفت کښې د حق نه لرې لاړ شی؟ یعنی څوک هم نشته، دا (یعنی من اضل) د منکم په ځائې باندې راغلې دې، او ددوی حالت (د ګمراهئ) ښودلو د پاره ډیر زر به مونږ خپلې نښې په آفاق عالم یعنی د زمکې او اسمان په طرفونو کښې اوښایو، او هغه نښې ستوری، بوټی، او اونې وغیره دی، او په خپله ددوی په ذات کښې اوښایو، کوم چې لطیف صفت، او عجیب حکمت دې، تردې چې په خپله په دوی باندې واضح شی، چې دا قرآن حق دې، د بعث، حساب او عقاب سره، نازل شوې دې لهذا ددې قرآن او ددې راوړونکی نه د انکار د وجې به دوی ته سزا ورکولې شی آیا ستا د رب د هر څیز نه خبردار کیدل کافی نه دی، بربک د یکف فاعل دې، (انه علی کل شیء شهید) دربك نه بدل دې، یعنی ددوی د پاره ستا د رشتنوالې باره کښې دا کافی نه ده چې ستا د رب نه یو معمولی څیز هم پټ نه دې، خو یاد ساتئ چې دوی د خپل رب مخې ته تللو په باره کښې د دوباره ژوندی کیدو نه د انکار په وجه په شک کښې پراته دی، یاد ساتئ الله تعالی په هر څیز د علم او قدرت په اعتبار سره احاطه کړې ده، نو ددوی د کفر به دوی ته سزا ورکړی.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** عمل: عمل فعل مقدر راويستو سره ئې اشاره اوكړه چې فلنفسه د فعل محذوف متعلق دې، او دا هم صحيح ده چې لنفسه د مبتدأ محذوف خبر وي، تقديري عبارت به دا وي، فالعمل الصالح لنفسه.

**قوله:** بذي ظلم: د يوې شبهې جواب كول دي،

**شبه:** دالله تعالى قول وماربك بظلام للعبيد نه كثرت ظلم نفي خو كيږي خود نفس ظلم نفي نه كيږي.

**دفع:** ظلام صيغه د نسبت ده، نه چې صيغه مبالغه، مطلب دا دې چې د الله تعالى ظلم منسوب نه دې، څنګه تمار او خباز، كښې تمار كجهورې خرڅولو والا ته وائي، نه چې ډير خرڅولو والا، او دغه شان خباز روټى پخولو والا ته وائي، نه چې ډير زيات روټې پخولو والا ته، مفسر بذى ظلم سره دې جواب ته اشاره كړې ده،

**قوله:** لا يعلم غيره: په دې سره ئې حصر ته اشاره اوكړه، كوم چې د اليه يرد د تقديم نه مستفاد دې، ګنې يرد اليه به وو،

**قوله:** ما تخرج من اكمامها: من په فاعل باندې زائد دې، په ثمرة كښې دوه قراءتونه دي، او دواړه سبعيه دي، افراد په اعتبار د جنس، او جمع په اعتبار د انواعو، اكمام د كم جمع ده، كهجور وغيره غلاف ته وائي.

**قوله:** والنفى فى الموضعين معلق عن العمل: د موضعين نه مراد اذنك ما منا من شهيد او وظنوا مالهم من محيص دې، مذكوره ذواړو ځايونو كښې نفي فعل لره د لفظي عمل نه منع كوي، نه چې محلا، او دواړه فعلونه اذنك او ظنوا دي، اذنك په معنى د اعلمناك، لهذا دا د افعال قلوب نه دې، او ظنوا هم د افعال قلوب نه دې، او په افعال قلوب كښې د تعليق عمل مطلب وى په لفظونو كښې د عمل باطلول نه چې په معنى كښې، او دا ابطال د عمل هغه وخت وى چې كله دا افعال، د استفهام يا د نفي يا د لام ابتداء نه ماقبل واقع شى، مفسر علام د اذنك تفسير اعلمنك سره كولو كښې اشاره اوكړه چې اذنك د افعال قلوب نه دې.

**قوله:** وقيل: مفسر علام دا وقيل غواړى چې كه مذكوره افعال معلق عن العمل او نه منلې شى نو په دواړه ځايونو كښې جمله منفيه قائمقام د دوو مفعولو به اومنلې شى، د ظنوا د مفعول اول، او د مفعول ثانى قائمقام، او د اذنك د مفعول ثانى او دثالث قائمقام به وى، او اولنې مفعول په اذنك كښې كاف ضمير دې،

قوله: محيص: حيص نه ظرف مكان دې، د پناه ځائې، حاص يحيص حيصا الى الفرار والهرب.

قوله: من دعاء الخير: په دعاء الخير كښې اضافت اضافت مصدر الى المفعول ده، جار مجرور د يسأم متعلق دې.

قوله: هذالي: كښې لام استحقاق د پاره دې، بعملي وئيلو سره مفسر علام رحمه الله هم دې طرف ته اشاره كړې ده.

قوله: فلننبئن: جمع متكلم مضارع بانون تاكيد ثقيله، (تفعيل) مونږ به خامخا خبر كړو، مونږ به خامخا اوخايو په دوارو فعلونو كښې لام د قسم دې.

قوله: ونأى: الف په همزه باندې مقدم كولو سره اى نأوروان قال او په دويم قراءت كښې همزه په الف مقدم كولو سره اى نأروان رمى.

قوله: نأى: ماضى واحد مذكر غائب، (ناى) (ف) لرې شو، مخ ئې وارولو، په ډډه شو، چونكه آيت متعدى بالباء دې نو ددې ترجمه به داسې وى (هغه ډډه وارولو) په بعض قراءتونو كښې ناء بجانبه راغلې دې، ددې ماده (نوء) دې، ـن په تكبر سره ډډه وارولو

قوله: عطفه: عطف: ډډه طرف، ج اعطاف وعطاف وعطوف يقال ثنى على عطفه هغه خپل نه طرف بدل كړو.

قوله: لاأحد: دا اشاره ده چې په من اصل كښې من استفهام انكارى دې.

قوله: اوقعهذا: اى ممن هو فى شقاق بعيد د اعراض كونكو د حالت بيانولو د پاره د منكم په ځائې واقع دې، ګنى من اضل وئيل كافى وو، خو چونكه په منكم سره د هغوى په حالت باندې دلالت نه كيدې څكه ئې ممن هو فى شقاق بعيد ئې راوړو

شبه: قوله: سنريهم: كښې سين فعل زمانه مستقبل سره خاص كړو ددې نه معلوميږى چې په زمانه مستقبل كښې به الله تعالى خپل قدرتونه ښكاره كړى، حالانكه د قدرت ايتونه فى الحال موجود دى، او په نظر راځى؟

جواب: په كلام كښې مضاف محذوف دې، اى سنريهم عواقب آياتنا

قوله: اولم يكف بربك: په همزه محذوف باندې داخل ده، او واؤ عاطفه ده، تقديرى عبارت داده اتحزن على انكارهم ومعارضتهم لك ولم يكفك ربك استفهام انكارى دې، باء په فاعل باندې زائد ده، مفعول محذوف دې، اى يكفيك.

## [٤٢] سورة الشورى

### سورة الشورى مكية إلا قل لا أسألكم الآيات الأربع، ثلث وخمسون آية

سورة شورى مكي دې، سوا د: قل لا أسألكم خلور آياتونو نه، په دې كښې درې پنځوس آياتونه دي.

### [آياتونه: ١-٩]

بسم الله الرحمن الرحيم {حم} {عسق} الله أعلم بمراده {كذلك} أي مثل ذلك الإيحاء {يوحي إليك و} اوحى {إلى الذين من قبلك الله} فاعل الإيحاء {العزيز} في ملكه {الحكيم} في صنعه {له ما في السماوات وما في الأرض} ملكا وخلقا وعبيدا {وهو العلي} على خلقه {العظيم} الكبير {تكاد} بالتاء والياء {السماوات ينفطرن} بالنون وفي قراءة بالتاء والتشديد {من فوقهن} أي تنشق كل واحدة فوق التي تليها من عظمة الله تعالى {والملائكة يسبحون بحمد ربهم} أي ملابسين للحمد {ويستغفرون لمن في الأرض} من المؤمنين {ألا إن الله هو الغفور} لأوليائه {الرحيم} بهم {والذين اتخذوا من دونه} أي الأصنام {أولياء الله حفيظ} محص {عليهم} ليجازيهم {وما أنت عليهم بوكيل} تحصل المطلوب منهم وما عليك إلا البلاغ {وكذلك} مثل ذلك الإيحاء {أوحينا إليك قرآنا عربيا لتنذر} تخوف {أم القرى ومن حولها} أي أهل مكة وسائر الناس {وتنذر} الناس {يوم الجمع} يوم القيامة تجمع فيه الخلائق {لا ريب} شك {فيه فريق} منهم {في الجنة وفريق في السعير} النار {ولو شاء الله لجعلهم أمة واحدة} أي على دين واحد وهو الإسلام {ولكن يدخل من يشاء في رحمته والظالمون} الكافرون {ما لهم من ولي ولا نصير} يدفع عنهم العذاب {أم اتخذوا من دونه} أي الأصنام {أولياء} أم منقطعة بمعنى بل التي للانتقال والهمزة للإنكار أي ليس المتخذون أولياء {فالله هو الولي} أي الناصر للمؤمنين والفاء لمجرد العطف {وهو يحيي الموتى وهو على كل شيء قدير}

**ترجمه:** شروع كوم د الله په نوم سره چې ډير مهربانه او ډير رحم كولو والا دې، حم، عسق، ددې نه الله خپل مراد ښه پيژني، دغه شان، يعنى ددې وحى د راليږلو په شان الله چې كوم زبردست ذات دې، په خپل ملك كښې حكمت والا دې، په خپل صنعت كښې، ستا طرف ته او ستا نه مخكښې (پيغمبرانو) ته وحى راليږي، الله د ايحاء فاعل دې، په اسمانونو او زمكه كښې چې څه دي ټول د هغه دي، د ملكيت په اعتبار سره او د تخليق په اعتبار سره، او د مملوكيت په اعتبار سره، هغه په خپل مخلوق باندې اوچت او اوچت شان والا دې، نزدې ده چې اسمان د بره نه اوشليږي تكاد په تاء او ياء سره دې، {ينفطرن} نون سره دې، په يو قراءت كښې د نون په ځائې تاء مع تشديد طاء سره دې، {تتطرن} يعنى په بر نوع اسمان، چې د هغې لاندې اسمان وى، د الله د عظمت د وجې نه اوشليږي، او ټولې فرشتې د خپل رب د پاكې حمد سره

بیانوي، یعنی تسبح او تحمید دواړه یوځائې کولو سره (سبحان الله وبحمده) وائی، او په زمکه باندې چې کوم مومنان دی د هغوی د پاره استغفار کوی، خه یاد اوساتئ الله تعالی خپلو دوستانو لره معاف کولو والا او په دوی رحم کولو والا دې، او کومو خلقو چې د هغه نه سوا بتان لره کارساز جوړ کړی دی الله تعالی په هغوی باندې نگران دې یقینا هغوی ته به سزا ورکړی، او تاسو د هغوی ذمه دار نه یئ چې د هغوی نه مطلوب حاصل کړئ، ستا ذمه داری خو صرف رسول دی او د هغه وحی په شان مونږ تاله په عربی قرآن کښې وحی کړې ده، چې تاسو مکې والا او د هغې نه گیرچاپیره خلقو لره خبردار کړئ، یعنی اهل مکه او نورو خلقو لره او تاسو خلقو لره د جمع کیدو والا یعنی دقیامت ورځې نه ویروئ، چې په هغې کښې به ټول مخلوق جمع کیږی، چې د هغې په راتلو کښې هیڅ شک نشته، په دوی کښې یوه ډله به په جنت کښې وی، او یوه ډله به په دوزخ کښې او که الله تعالی غوښتلے نو دوی ټول به ئې یوامت جوړ کړې وو یعنی یو دین باندې او هغه اسلام دې، خو هغه چې چاله غواړی په خپل رحمت کښې ئې داخل کړی او د ظالمانو کافرانو حامی او مددگار څوک نشته، چې د دوی نه عذاب لرې کړی آیا دې خلقو د الله نه سوا بتانو لره کارساز جوړ کړې دې، ام منقطعه په معنی د بل دې، کوم چې د انتقال د پاره راځی، او همزه د انکار د پاره ده، یعنی چې څوک ئې کارساز جوړ کړې دې هغه کارساز نه دې، په حقیقت کښې الله تعالی دوست دې، یعنی د مومنانو مددگار دې، او فاء صرف د عطف د پاره ده، هم هغه مړو لره به ژوندی کړی، او هم هغه په هر څیز باندې قادر دې،

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: حم: عسق، بعضې مفسرینو وئیلې دی چې دا د سورهٔ شوری نور دوه نومونه دی، ځکه ئې دا جدا جدا دوه ایتونه شمیر کړې دی، او بعضې حضراتو وئیلې دی چې دواړه په یو ځائې یو نوم دې، خو دنورو حوامیمو موافقت او مماثلت د پاره ئې جدا جدا لیکلی دی.

**قوله**: مثل ذلك الایحاء: ای مثل ما فی هذه السور امن المعانی، په دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چې د کذلک کاف د مفعول مطلق کیدو د وجې نه په محل د نصب کښې دې، ای یوحی ایحاء مثل ذلك الایحاء یعنی ددې سورت د ایحاء په شان ستا طرف ته دې وخت کښې وحی رالیږی، او ستا نه مخکښې طرف ته ئې هم دغه شان وحی لیږله،

**سوال**: د مخکښې پیغمبرانو طرف ته وحی لیږلو د پاره اوحی د ماضی صیغې استعمال پکار وو، نه چې یوحی د مضارع صیغه؟

**جواب**: د مضارع صیغه د حال ماضی د حکایت په توگه په استمرار د وحی باندې دلالت کولو د پاره استعمال شوې ده، او مضارع بمعنی ماضی ده، ځنګه چې مفسر علام اوحی

محذوف منلو سره اشاره کړې ده.

**قوله:** فريق منهم: فريق مبتدأ، او في الجنة ددې خبر.

**سوال:** فريق نكره ده، د هغې مبتدأ كيدل څنګه صحيح دي؟

**جواب:** مفسر علام منهم محذوف منلو سره اشاره اوكړه چې فريق موصوف دې، او ددې صفت محذوف دې تقدير دا دې فريق كائن منهم في الجنة لهذا اوس ددې مبتدأ جوړيدل صحيح شو، هم دا تركيب په فريق في السعير كښې دې.

**[اياتوله:١٠-١٩]**

﴿وَمَا اخْتَلَفْتُمْ﴾ مَعَ الْكُفَّارِ ﴿فِيهِ مِنْ شَيْءٍ﴾ مِنَ الدِّينِ وَغَيْرِهِ ﴿فَحُكْمُهُ﴾ مَرْدُودٌ ﴿إِلَى اللَّهِ﴾ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَفْصِلُ بَيْنَكُمْ قُلْ لَهُمْ ﴿ذَلِكُمُ اللَّهُ رَبِّي عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ أُنِيبُ﴾ ارجع ﴿فَاطِرُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾ مُبْدِعُهُمَا ﴿جَعَلَ لَكُمْ مِنْ أَنْفُسِكُمْ أَزْوَاجًا﴾ حَيْثُ خَلَقَ حَوَّاءَ مِنْ ضِلْعِ آدَمَ ﴿وَمِنَ الْأَنْعَامِ أَزْوَاجًا﴾ ذُكُورًا وَإِنَاثًا ﴿يَذْرَؤُكُمْ﴾ بِالْمُعْجَمَةِ يَخْلُقُكُمْ ﴿فِيهِ﴾ فِي الْجَعْلِ الْمَذْكُورِ أَيْ يُكَثِّرُكُمْ بِسَبَبِهِ بِالتَّوَالُدِ وَالضَّمِيرُ لِلْأَنَاسِيِّ وَالْأَنْعَامِ بِالتَّغْلِيبِ ﴿لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ﴾ الْكَافُ زَائِدَةٌ لِأَنَّهُ تَعَالَى لَا مِثْلَ لَهُ ﴿وَهُوَ السَّمِيعُ﴾ لِمَا يُقَالُ ﴿الْبَصِيرُ﴾ لِمَا يُفْعَلُ ﴿لَهُ مَقَالِيدُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾ أَيْ مَفَاتِيحُ خَزَائِنِهِمَا مِنَ الْمَطَرِ وَالنَّبَاتِ وَغَيْرِهِمَا ﴿يَبْسُطُ الرِّزْقَ﴾ يُوَسِّعُهُ ﴿لِمَنْ يَشَاءُ﴾ امْتِحَانًا ﴿وَيَقْدِرُ﴾ يُضَيِّقُهُ لِمَنْ يَشَاءُ ابتلاء ﴿إنه بكل شيء عليم﴾ ﴿شَرَعَ لَكُمْ مِنَ الدِّينِ مَا وَصَّى بِهِ نُوحًا﴾ هُوَ أَوَّلُ أَنْبِيَاءِ الشَّرِيعَةِ ﴿وَالَّذِي أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ وَمَا وَصَّيْنَا بِهِ إِبْرَاهِيمَ وَمُوسَى وَعِيسَى أَنْ أَقِيمُوا الدِّينَ وَلَا تَتَفَرَّقُوا فِيهِ﴾ هَذَا هُوَ الْمَشْرُوعُ الْمُوصَى بِهِ وَالْمُوحَى إِلَى مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ التَّوْحِيدُ ﴿كَبُرَ﴾ عَظُمَ ﴿عَلَى الْمُشْرِكِينَ مَا تَدْعُوهُمْ إِلَيْهِ﴾ مِنَ التَّوْحِيدِ ﴿اللَّهُ يَجْتَبِي إِلَيْهِ﴾ إِلَى التَّوْحِيدِ ﴿مَنْ يَشَاءُ وَيَهْدِي إِلَيْهِ مَنْ يُنِيبُ﴾ يُقْبِلُ إِلَى طَاعَتِهِ ﴿وَمَا تَفَرَّقُوا﴾ أَيْ أَهْلُ الْأَدْيَانِ فِي الدِّينِ بِأَنْ وَحَّدَ بَعْضٌ وَكَفَرَ بَعْضٌ ﴿إِلَّا مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْعِلْمُ﴾ بِالتَّوْحِيدِ ﴿بَغْيًا﴾ مِنَ الْكَافِرِينَ ﴿بَيْنَهُمْ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ رَبِّكَ﴾ بِتَأْخِيرِ الْجَزَاءِ ﴿إِلَى أَجَلٍ مُسَمًّى﴾ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ﴿لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ﴾ بِتَعْذِيبِ الْكَافِرِينَ فِي الدُّنْيَا ﴿وَإِنَّ الَّذِينَ أُورِثُوا الْكِتَابَ مِنْ بَعْدِهِمْ﴾ وَهُمُ الْيَهُودُ وَالنَّصَارَى ﴿لَفِي شَكٍّ مِنْهُ﴾ مِنْ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ﴿مُرِيبٍ﴾ مُوقِعٍ فِي الرِّيبَةِ ﴿فَلِذَلِكَ﴾ التَّوْحِيدِ ﴿فَادْعُ﴾ يَا مُحَمَّدُ النَّاسَ ﴿وَاسْتَقِمْ﴾ عَلَيْهِ ﴿كَمَا أُمِرْتَ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَهُمْ﴾ فِي تَرْكِهِ ﴿وَقُلْ آمَنْتُ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ مِنْ كِتَابٍ وَأُمِرْتُ لِأَعْدِلَ﴾ أَيْ بِأَنْ أَعْدِلَ ﴿بَيْنَكُمْ﴾ فِي الْحُكْمِ ﴿اللَّهُ رَبُّنَا وَرَبُّكُمْ لَنَا أَعْمَالُنَا وَلَكُمْ أَعْمَالُكُمْ﴾ فَكُلٌّ يُجَازَى بِعَمَلِهِ ﴿لَا حُجَّةَ﴾ خُصُومَةَ ﴿بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ﴾ هَذَا قَبْلَ أَنْ يُؤْمَرَ بِالْجِهَادِ ﴿اللَّهُ يَجْمَعُ بَيْنَنَا﴾ فِي الْمَعَادِ لِفَصْلِ الْقَضَاءِ ﴿وَإِلَيْهِ الْمَصِيرُ﴾ الْمَرْجِعُ ﴿وَالَّذِينَ يُحَاجُّونَ فِي﴾ دِينِ ﴿اللَّهِ﴾ نَبِيِّهِ ﴿مِنْ بَعْدِ مَا اسْتُجِيبَ لَهُ﴾ بِالْإِيمَانِ لِظُهُورِ مُعْجِزَتِهِ وهم اليهود ﴿حجتهم داحضة﴾ باطلة ﴿عند ربهم وعليهم غضب ولهم عذاب شديد﴾ ﴿اللَّهُ الَّذِي أَنْزَلَ الْكِتَابَ﴾ القرآن ﴿بِالْحَقِّ﴾ مُتَعَلِّقٌ بِأَنْزَلَ

﴿وَالْمِيزَانَ﴾ العدل ﴿وَمَا يُدْرِيكَ﴾ يعلمك ﴿لَعَلَّ السَّاعَةَ﴾ اي اتيانها ﴿قَرِيبٌ﴾ ولعل معلق للفعل عن العمل وما بعده سد مسد المفعولين ﴿يَسْتَعْجِلُ بِهَا الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِهَا﴾ يقولون متى تاتي ظنا منهم انها غير آتية ﴿وَالَّذِينَ آمَنُوا مُشْفِقُونَ﴾ خائفون ﴿مِنْهَا وَيَعْلَمُونَ أَنَّهَا الْحَقُّ أَلَا إِنَّ الَّذِينَ يُمَارُونَ﴾ يجادلون ﴿فِي السَّاعَةِ لَفِي ضَلَالٍ بَعِيدٍ﴾ ﴿اللَّهُ لَطِيفٌ بِعِبَادِهِ﴾ برهم وفاجرهم حيث لم يهلكهم جوعا بمعاصيهم ﴿يَرْزُقُ مَنْ يَشَاءُ﴾ من كل منهم ما يشاء ﴿وَهُوَ الْقَوِيُّ﴾ على مراده ﴿الْعَزِيزُ﴾ الغالب على امره

**ترجمه**: او كوم څيز (يعنى) دين وغيره كښې چه كافرانو سره ستاسو اختلاف راغلې دې، دهغې فيصله به د قيامت په ورځ هم د الله طرف ته واپس كيږى . هغه به ستاسو په مينځ كښې فيصله اوكړى، تاسو دوى ته اووايه هم دغه الله څما رب دې، چې په هغه باندې ما اعتماد كړې دې، او هم د دهٔ طرف ته څه رجوع كوم، او هغه داسمانونو او زمكې پيدا كولو والا دې، هغه ستاسو د پاره ستاسو د جنس نه جوړې جوړې كړې دى، په داسې طريقه چې حضرت حواء عليها السلام ئې د آدم عليه السلام د پختئ نه پيدا كړه، او د څناورو نر او ماده جوړې جوړې ئې كړې، يذرئكم په ذال معجمه سره (يعنى په ذال سره دې نه چې دال سره) او يذرئكم بمعنى يخلقكم دې، يعنى په دې ذكر شوې طريقه ئې تاسو پيدا كړئ، او هم دې طريقې د تولد سره ستاسو تعداد زياتوى، او (كم) ضمير انسانانو او څناورو ته تغليبا راجع دې، د هغه په مثل څه څيز نشته، كاف زائد دې، څكه چې د الله تعالى څوك مثال نشته، هغه دهر خبرې اوريدلو والا او دهر كار كتونكې دې، د اسمانونو او د زمكې كنجيانې د هغه په قبضهٔ قدرت كښې دى، يعنى ددې دوارو (د اسمانانو او د زمكې) د خزانو يعنى د باران او د غلې وغيره چابيانې د هغه په قبضه تصرف كښې دى، او هغه چې چاته اوغواړى د امتحان په توګه روزى فراخه كړى، او چاته چې اوغواړى نو د امتحان دپاره روزى تنګه كړى، يقينا هغه په هر څيز باندې پوهيدونكې دې الله تعالى ستاسو د پاره هغه دين مقرر كړې دې چې د هغې د قائمولو حكم هغه نوح عليه السلام ته كړې وو او هغه نوح عليه السلام په پيغمبرانو د شريعت كښې اول نبى وو او كوم دين چې مونږ تاته د وحى په ذريعه راليږلې دې، او چې د هغې تاكيدى حكم مونږ ابرهيم عليه السلام موسى عليه السلام او عيسى عليه السلام ته كړې وو، چې دې دين لره قائم كړئ، او په دې دين كښې اختلاف مه كوئ، او هم دا هغه مشروع دې چې د هغې تاكيدى حكم وركړې شوې دې او د څه چې محمد ﷺ ته وحى شوې ده، او هغه توحيد دې، او كوم څيز طرف ته چې ته دوى رابلې، هغه توحيد دې هغه په دې مشركانو باندې ګران لګى، الله تعالى چې چا ته اوغواړى د توحيد د پاره ئې خوښ كړى، او كوم كس چې دهغه اطاعت طرف ته رجوع كوى الله تعالى د هغه څان طرف ته رهنمائى كوى، او اهل اديان په دين هم هغه وخت اختلاف اوكړو په داسې طريقه چې بعضو توحيد اختيار كړو بعضو كفر اوكړو او چې كله دوى ته د توحيد علم راغلو

او هغه هم د کافرانو په خپل مينځ کښې د ضد نه، او که ستا د پروردګار د طرف نه يو وخت مقرر يعنى قيامت پورې د عذاب د روستو الى فيصله شوې نه وه، نو يقينا په دنيا کښې کافرانو ته عذاب ورکولو سره ددوى د اختلاف فيصله به شوې وه، او کومو خلقو ته چې ددې نه پس کتاب ورکړې شو او هغه يهوديان او عيسائيان دى، هغوى هم ستا په باره کښې په سخت شک کښې پراته دى، نو اې محمد ﷺ تاسو خلقو لره دې توحيد طرف ته رابلئ، او څه چې تاسو ته وئيلې شى تاسو په خپله هم په هغې باندې قائم اوسئ، او د هغې په پرينښودلو کښې د هغوى د خواهشاتو تابعدارى مه کوئ، او اووايه چې الله تعالى څومره کتابونه نازل کړې دى څما په هغې باندې ايمان دې، او ماته حکم راکړې شوې دې چې څه په تاسو کښې انصاف اوکړم، زمونږ او ستاسو د ټول رب الله دې.. زمونږ عملونه زمونږ دپاره دى او ستاسو عملونه ستاسو د پاره دى، لهذا هر يو ته په د هغه د عمل مطابق بدله ملاويږى، زمونږ او ستاسو په مينځ کښې هيڅ جهګړه نشته، دا حکم د جهاد د حکم نه مخکښې وو الله تعالى به د فيصلې کولو د پاره مونږ ټول د قيامت په ورځ جمع کړى، او هم هغه طرف ته تلل دى، او کوم خلق چې د الله د دين په باره کښې د هغه نبى ﷺ سره دليل بازى کوى پس ددې نه چې هغه د معجزو د ښکاره کيدو د وجې نه اومنلې شو، او هغه يهود دى، او ددوى دليل بازى د دوى د رب په نيزد باطل ده، او په دوى باندې غضب دې او ددوى د پاره سخت عذاب دې، الله تعالى په حق سره کتاب (قرآن نازل کړې دې، بالحق د أنزل متعلق دې، او ميزان (انصاف) ئې نازل کړې دې،او تاسو ته څۀ پته ده کيدې شى چه قيامت يعنى د هغې راتلل نزدې وى، او لعل فعل دعمل نه بندولو والا دې، يا ددې مابعد قائم مقام د دوؤ مفعولو دې، د دې ټندى هغه خلقو ته ده څوک چې دا نه منى، سوال کوى چې قيامت به کله راځى؟ دې يقين کولو سره چې هغه راتلونکې نه دې او څوک چې د هغې د راتلو يقين ساتى، هغه ددې نه ويريږى، هغوى ته ددې د حق کيدو پورا پورا يقين دې، ياد ساتئ، کوم خلق چې د قيامت په باره کښې جهګړې کوى هغوى په لرې ګمراهئ کښې پراته دى، الله تعالى خپلو بندګانو باندې که نيک وى او که بد ډير مهربانى کولو والا دې، په داسې طريقه چې د هغوى د ګناه د وجې نه دوى د لوږې نه مره کوى، په دې ټولو کښې ئې چاته چې خوښه شى څومره ئې چې خوښه شى، روزى ورکوى، او هغه په خپل مراد کښې ډير طاقت والا دې، او په خپل کار کښې ډير غلبې والا دې،

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله: ذلكم الله ربى : (الاية):** ذلكم مبتدأ أى ذلكم الحاكم العظيم الشأن، الله د ذلكم مبتدأ يو ولس خبرونه دى،

① الله، ② ربى، ③ عليه توكلت، ④ واليه انيب، ⑤ فاطر السموات والارض، ⑥ جعل لكم، ⑦ ليس كمثله شىء، ⑧ وهو السميع البصير، ⑨ له مقاليد السموات الخ. ⑩ يبسط الرزق، ⑪ شرع لكم الخ،

**قوله**: يذرئكم: ذَرْءٌ نه مضارع واحد مذكر غائب، تاسو پيدا كوى، خوروى، زياتوى. (ف)

**قوله**: فيه: ضمير مجرور مرجع، جعل مذكور دې، اى فى ذلك الخلق على هذه الصفة، يعنى د توالد اوتناسل په طريقې سره هغه تاسو لره د ابتداء نه پيدا كوى، يا د فيه ضمير مرجع د مور رحم دې، يا فى په معنى د باء ده، يعنى ستاسو جوړې جوړولو د پاره تاسو پيدا كوى، خوروى، ځكه چې دا زوجيت د نسل د زياتوالى سبب دې. (فتح القدير وابن كثير ملخصاً)

**قوله**: يذرئكم: كښې د (كم) ضمير مرجع انسان دې، ځناورو لره تغليبا په (كم) ضمير كښې شامل كړې شوې دى، ګنى يذرءها پكار وو،

**قوله**: الكاف زائدة: ددې عبارت مقصد د يو اعتراض جواب وركول دى.

**اعتراض**: د ظاهر آيت نه دا شبه پيدا كيږى چې د الله تعالى مثل شته، ځكه چه د آيت ترجمه دا ده چې د هغه د مثل څه مثل نشته، يعنى مثل خو شته مګر د هغه مثل پشان مثل نشته، حالانكه د الله مثل بالكل شته نه؟

**جواب**: په كمثله كښې كاف زائد محض د تاكيد د پاره دې، او تقديرى عبارت داسې دې، ليس مثله شيء

**قوله**: مقاليد: دا د مِقلاد يا مِقليد جمع ده، په معنى د كنجى.

**قوله**: شرع لكم من الدين ما وصى به نوحا: شرع بمعنى سنّ اى جعل لكم طريقا واضحا وبالفارسية راه روشن كرد شمارا ازدين.

**قوله**: شرع لكم من الدين: دا د هغه اجمال تفصيل دې چې د هغې ذكر په كذلك يوحى اليك والى الذين من قبلك كښې اجمالا دې، او د لكم نه خطاب امت محمديه ته دې.

**قوله**: من التوحيد:

**سوال**: مفسر علام د ما تدعوهم اليه تفسير په من التوحيد سره كړې دې حالانكه په دې كښې ټول اصول او فروغ داخل دى؟

**جواب**: توحيد چونكه عماد الدين او اصل الاصول دې، كوم چې ټولو اصولو او فروغو ته شامل دې، ځكه ئې په دې باندې اكتفاء كړې ده.

**قوله**: يجتبى: دا د اجتباء نه ماخوذ دې، ددې معنى منتخب كول او خوښول ده، هم په دې مناسبت سره د توفيق وركولو په معنى كښې هم مستعمل دې.

**قوله** بغيا: دالفرقوا د فعلِ مثبت مفعول له دې، کوم چې د استثناء نه مفهوم دې.

**قوله** لفی شك منه مريب: يعنی بې چينه کونکې شک، په غم کښې اچونکې شک.

**قوله** ريبة: يعنی تحير واضطراب.

**قوله** والذين يحاجون: مبتدأ اول ده، او حُجّتهم مبتدأ ثانی ده، او داحضَة د مبتدأ ثانی خبر دې، مبتدأ ثانی د خپل خبر سره د مبتدأ اول خبر.

**قوله** ای اتيانها: دا د يو سوال مقدر جواب دې.

**سوال**: قريب ئې ولې مذکر راوړې دې؟ حالانکه دا د ساعة مؤنث صفت دې، لهذا قريبة پکار وو؟

**جواب**: کلام د مضاف په حذف سره دې، ای مجیئ الساعة لهذا د قريب نه مراد مجيئ دې.

**قوله** وما يدريك لعل الساعة قريب: واؤ عاطفه دې، ما استفهاميه مبتدأ محلا مرفوع ده، او يدريک جمله ددې خبر دې.

**قوله**: لعل معلق للفعل عن العمل اوما بعده سد مسد المفعولين: تعليق لفظا د عمل باطلولو ته وائی، ددې وجه دا ده چې دا سې حرف په مينځ کښې وی کوم چې صدارت د کلام غواړی، دلته هغه حرف لعل دې، د يدريک مفعول اول (ک) ضمير دې، يا د فعل مابعد قائم مقام د دوؤ مفعولو دې.

**[اياتونه: ۲۰ - ۲۹]**

﴿مَنْ كَانَ يُرِيدُ﴾ بِعَمَلِهِ ﴿حَرْثَ الْآخِرَةِ﴾ أَيْ كَسْبَهَا وَهُوَ الثَّوَاب ﴿نَزِدْ لَهُ فِي حَرْثِهِ﴾ بالتضعيف فيه بالحسنة إِلَى الْعَشْرَة وَأَكْثَر ﴿وَمَنْ كَانَ يُرِيدُ حَرْثَ الدُّنْيَا نُؤْتِهِ مِنْهَا﴾ بِلَا تَضْعِيف مَا قُسِمَ لَه ﴿وما له في الآخرة من نصيب﴾ ﴿أَمْ﴾ بَلْ ﴿لَهُمْ﴾ لِكُفَّارِ مَكَّة ﴿شُرَكَاءُ﴾ هُمْ شَيَاطِينهمْ ﴿شَرَعُوا﴾ أَيْ الشُّرَكَاء ﴿لَهُمْ﴾ لِلْكُفَّارِ ﴿مِنَ الدِّينِ﴾ الْفَاسِد ﴿مَا لَمْ يَأْذَنْ بِهِ اللَّهُ﴾ كَالشِّرْكِ وَإِنْكَار الْبَعْث ﴿وَلَوْلَا كَلِمَةُ الْفَصْلِ﴾ أَيْ الْقَضَاء السَّابِق بِأَنَّ الْجَزَاء فِي يَوْم الْقِيَامَة ﴿لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ﴾ وَبَيْن الْمُؤْمِنِينَ بِالتَّعْذِيبِ لَهُمْ فِي الدُّنْيَا ﴿وَإِنَّ الظَّالِمِينَ﴾ الْكَافِرِينَ ﴿لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ مؤلم ﴿تَرَى الظَّالِمِينَ﴾ يَوْم الْقِيَامَة ﴿مُشْفِقِينَ﴾ خَائِفِينَ ﴿مِمَّا كَسَبُوا﴾ فِي الدُّنْيَا مِنْ السَّيِّئَات أَنْ يُجَازَوْا عَلَيْهَا ﴿وَهُوَ﴾ أَيْ الْجَزَاء عَلَيْهَا ﴿وَاقِعٌ بِهِمْ﴾ يَوْم الْقِيَامَة لَا مَحَالَة ﴿وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ فِي رَوْضَاتِ الْجَنَّاتِ﴾ أَنْزَهَهَا بِالنِّسْبَةِ إِلَى مَنْ دونهم ﴿لهم ما يشاءون عند ربهم ذلك هو الفضل الكبير﴾ ﴿ذَلِكَ الَّذِي يُبَشِّرُ﴾ مِنْ الْبِشَارَة مُخَفَّفًا وَمُثَقَّلًا بِهِ ﴿اللَّهُ عِبَادَهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ قُلْ لَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ﴾ عَلَى تَبْلِيغ الرِّسَالَة ﴿أَجْرًا إِلَّا الْمَوَدَّةَ فِي الْقُرْبَى﴾ اسْتِثْنَاء مُنْقَطِع أَيْ لَكِنْ أَسْأَلكُمْ أَنْ تَوَدُّوا قَرَابَتِي الَّتِي هِيَ قَرَابَتكُمْ أَيْضًا فَإِنَّ لَهُ فِي كُلّ بَطْن مِنْ قُرَيْش قَرَابَة ﴿وَمَنْ يَقْتَرِفْ﴾ يَكْتَسِب ﴿حَسَنَةً﴾ طَاعَة

﴿نَزِدْ لَهُ فِيهَا حُسْنًا﴾ بِتَضْعِيفِهَا ﴿إِنَّ اللّٰهَ غَفُورٌ﴾ لِلذُّنُوبِ ﴿شَكُورٌ﴾ لِلْقَلِيلِ فَيُضَاعِفُهُ ﴿أَمْ﴾ بَلْ ﴿يَقُولُونَ افْتَرَى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا﴾ بِنِسْبَةِ الْقُرآنِ إِلَى اللّٰهِ تَعَالَى ﴿فَإِنْ يَشَإِ اللّٰهُ يَخْتِمْ﴾ يَرْبِطْ ﴿عَلَى قَلْبِكَ﴾ بِالصَّبْرِ عَلَى أَذَاهُمْ بِهٰذَا الْقَوْلِ وَغَيْرِهِ وَقَدْ فَعَلَ ﴿وَيَمْحُ اللّٰهُ الْبَاطِلَ﴾ الَّذِي قَالُوهُ ﴿وَيُحِقُّ الْحَقَّ﴾ يُثْبِتُهُ ﴿بِكَلِمَاتِهِ﴾ الْمُنَزَّلَةِ عَلَى نَبِيِّهِ ﴿إِنَّهُ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ﴾ بِمَا فِي الْقُلُوبِ ﴿وَهُوَ الَّذِي يَقْبَلُ التَّوْبَةَ عَنْ عِبَادِهِ﴾ مِنْهُمْ ﴿وَيَعْفُو عَنِ السَّيِّئَاتِ﴾ الْمُتَابِ عَنْهَا ﴿وَيَعْلَمُ مَا تَفْعَلُونَ﴾ بِالْيَاءِ وَالتَّاءِ ﴿وَيَسْتَجِيبُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ﴾ يُجِيبُهُمْ إِلَى مَا يَسْأَلُونَ ﴿وَيَزِيدُهُمْ مِنْ فَضْلِهِ وَالْكَافِرُونَ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌ وَلَوْ بَسَطَ اللّٰهُ الرِّزْقَ لِعِبَادِهِ﴾ جَمِيعِهِمْ ﴿لَبَغَوْا﴾ جَمِيعُهُمْ أَيْ طَغَوْا ﴿فِي الْأَرْضِ وَلٰكِنْ يُنَزِّلُ﴾ بِالتَّخْفِيفِ وَضِدِّهِ مِنَ الْأَرْزَاقِ ﴿بِقَدَرٍ مَا يَشَاءُ﴾ فَيَبْسُطُهَا لِبَعْضِ عِبَادِهِ دُونَ بَعْضٍ وَيَنْشَأُ عَنِ الْبَسْطِ الْبَغْيُ ﴿إِنَّهُ بِعِبَادِهِ خَبِيرٌ بَصِيرٌ وَهُوَ الَّذِي يُنَزِّلُ الْغَيْثَ﴾ الْمَطَرَ ﴿مِنْ بَعْدِ مَا قَنَطُوا﴾ يَئِسُوا مِنْ نُزُولِهِ ﴿وَيَنْشُرُ رَحْمَتَهُ﴾ يَبْسُطُ مَطَرَهُ ﴿وَهُوَ الْوَلِيُّ﴾ الْمُحْسِنُ لِلْمُؤْمِنِينَ ﴿الْحَمِيدُ﴾ الْمَحْمُودُ عِنْدَهُمْ ﴿وَمِنْ آيَاتِهِ خَلْقُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَ﴾ خَلْقُ ﴿مَا بَثَّ﴾ فَرَّقَ وَنَشَرَ ﴿فِيهِمَا مِنْ دَابَّةٍ﴾ هِيَ مَا يَدِبُّ عَلَى الْأَرْضِ مِنَ النَّاسِ وَغَيْرِهِمْ ﴿وَهُوَ عَلَى جَمْعِهِمْ﴾ لِلْحَشْرِ ﴿إِذَا يَشَاءُ قَدِيرٌ﴾ فِي الضَّمِيرِ تَغْلِيبُ الْعَاقِلِ عَلَى غَيْرِهِ

**ترجمه**: چې د چا مقصد د خپل عمل نه د آخرت پټې وی، يعنی د آخرت گټه وی، او هغه ثواب دې، نو مونږ به د هغه په پټی کښې يعنی په نيکو کښې لس چنده پورې بلکه ددې نه هم زياته اضافه کولو سره ترقی ورکړو، او څوک چې د دنيا د پټی طلب کوی نو مونږ به هغه ته ددې نه بغير د اضافې نه په قدر د نصيب ورکړو، د داسې کس په آخرت کښې هيڅ حصه نشته. د مکې دې کافرانو شرکاء مقرر کړی دی، او هغه شيطانان دی، چې دې شريکانو د دې کافرانو د پاره فاسد دين مقرر کړې دې، چې د هغې الله تعالی اجازت ورکړې نه دې او هغه دين فاسد شرک او د بعث نه انکار کول دی، او که د فيصلې د ورځې وعده نه وه کړې شوې يعنی د مخکښې نه فيصله نه وه کړې شوې چې بدله به په قيامت کښې ورکولې شی، نو ددوی او د مومنانو په مينځ کښې به په دنيا کښې عذاب ورکولو سره اوس فيصله کړې شوې وه، او د ظالمانو کافرانو د پاره دردناک عذاب دې، تاسو به ظالمان او گورئ، چې د قيامت په ورځ به په دنيا کښې د خراب عملونو کولو د وجې نه ويرېږی، دا چې دوی ته به د اعمالو بدله ورکولې شی، او هغه يعنی ددوی د عملونو وبال د قيامت په ورځ په دوی باندې خامخا واقع کيدونکې دې، او کومو خلقو چې ايمان راوړو او هغوی نيک عملونه اوکړل، هغوی به د جنت په باغونو کښې وی، او هغه باغونه د نورو په نسبت به ډير پاکيزه وی، او هغوی چې کوم خواهش کوی ځان سره به ئې موجود وينی، هم دغه دې لوئې فضل، هم دا هغه څه دی چې د هغې زيرې الله تعالی مومنانو ته ورکوی، چا چې نيک عملونه اوکړل، بشارة مخفف او مثقل دواړه قراءتونو سره جائز دې، ته ورته اووايا چې څه په دې باندې يعنی تبليغ رسالت باندې تاسو نه څه بدله نه غوارم، خو د رشته دارئ محبت غوارم، دا مستثنی منقطع ده، يعنی ليکن څه

غوارم چې تاسو ځما د رشته دارئ حق ادا کړئ، کومه چې ستاسو هم رشته داری ده. ځکه چې د قریشو هر خاندان سره د حضور ﷺ رشته داری وه او کوم کس چې یوه نیکی اوکړی مونږ به د هغه د پاره په دې نیکۍ کښې اضافه کولو سره نورې نیکۍ زیاتې کړو، بې شکه الله تعالی د ګناهونو ډیر بخښونکې او د لږو نیکو هم قدردان دې، چې هغه زیاتوی، بلکه دا خلق وائی، چې پیغمبر ﷺ الله باندې، یعنی د قرآن الله طرف ته نسبت کولو سره د دروغو بهتان تړلې دې، نو که الله تعالی اوغواړی نو ستا په زړه به د دوی د تکلیفونو رسولو نه په صبر کولو سره د دې قول وغیره په ذریعه مضبوط کړی، او الله هم داسې اوکړل، او الله تعالی د دوی باطل خبرو لره ختموی، او په خپل نبی ﷺ باندې نازل شوې د خپلې خبرې حق ثابتوی، بې شکه هغه د زړه د خبرو باندې عالم دې، کوم چې د خپلو بندګانو توبه قبلوی، او هغې ګناهونو لره د کومو نه ئې چې توبه کړې وی معاف کوی، او څه چې تاسو کوئ تولو باندې خبردار دې، یفعلون په یاء او تاء سره دې د ایمان والو او نیکانو خلقو اوری، کوم چې هغوی سوال کوی، او په خپل فضل سره هغوی ته نور هم زیات ورکوی، او د کافرانو د پاره سخت عذاب دې، او که الله تعالی د خپلو بندګانو روزی فراخه کړې وه نو به تولو زمکه باندې به فساد خور شوې وو، خو هغه په اندازې سره څومره چې غواړی رزق نازلوی، ینزل په تخفیف او تشدید سره دې، لهذا هغه د خپل بعضې بندګانو روزی فراخه کوی نه چې د بعضو د پاره، او فراخئ رزق سره سرکشی پیدا کیږی، او هغه د خپل بندګانو نه پورا خبردار، او کتونکې دې، او هغه داسې ذات دې، چې د خلقو د باران نه د ناامیده کیدو نه پس باران نازلوی، او خپل رحمت خوروی، یعنی دې باران لره خوروی، او هغه مومنانو د پاره محسن (کارساز) دې او د بندګانو په نیز د حمد قابل دې، او د هغه د قدرت په نښو کښې د زمکې او د اسمان پیدا کول دی، او هغه ځناور پیدا کیدل دی چې په زمکه او اسمانونو کښې خواره دی، او دا ته هغې ته وائی چې په زمکه باندې ګرځی، مثلا انسان وغیره او چه کله هغه اوغواړی نو دوی لره په جمع کولو باندې قادر دې، د (جمعهم) په ضمیر کښې ذوی العقول ته په غیر ذوی العقول باندې غلبه ورکړې شوې ده، که د غیر ذوی العقول غلبه وه نو بیا به علی جمعها وئیلې شو.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله: من کان یرید بعمله حرث الاخرة:** دا کلام مستانف دې، د دنیا او د آخرت د پاره د عمل کونکو د عمل فرق بیانولو د پاره راوړې شوې دې، یعنی کوم کس چې خالص د آخرت د پاره عمل کوی نو د هغه په عمل کښې به دوچنده اضافه کیږی، او د چا عمل چې صرف د دنیا د پاره وی نو هغه ته به هم د دنیا نه څه حصه کومه چې د هغه په نصیب کښې ده، ورکړې شی، خو د داسې کس به په آخرت کښې هیڅ حصه به نه وی.

**قوله** من: اسم شرط محلاً مرفوع مبتدأ ده، او نزدله جواب شرط دې.

**قوله** هو الثواب: د آخرت د پاره عمل ته د حرث(پټي) سره مشابه کړې دې، عمل مشبه او حرث مشبه به دې، بیا مشبه حذف کړې شو او مشبه به باقي پاتې شوه، دا استعاره تصریحیه ده، د حرث اصل معنی إلقاء البذر في الأرض ده، مجازاً پیداوار ته حرث وئیلې شي، د استعارې په توګه د ثواب یعنی د عمل په نتیجه باندې هم اطلاق کیږي.

**قوله** الحسنة: دا د تضعیف مفعول به کیدو د وجې نه منصوب دې.

**قوله** ام لهم شرکاء: مفسر علام (ام)د (بل) په معنی کښې اخستې دې، کوم چې د شرع لکم من الدین الخ نه د انتقال د پاره دې، او نورو مفسرینو "بل" او "همزې" سره مقدر ګرځولې دې، کوم چې د توبیخ د پاره دې، او قرطبی أم لهم شرکاء په معنی د ألهم شرکاء وئیلې دې، په ام کښې میم صله ده، او همزه تقریع د پاره ده.

**قوله** شرعوا: د دې اسناد شیاطین طرف ته اسناد مجازی دې، شیاطین چونکه د کافرانو د ګمراهئ سبب دې، لهذا د مسبب اسناد سبب طرف ته دې.

**قوله** ان یجازوا: په دې کښې اشاره ده چې په کلام کښې مضاف محذوف دې، ای یخافون من جزاء ما کسبوا

**قوله** یبشر الله: من البشارة مخففا او مثقلا ماده بشارة ده، مخفف کیدو په صورت کښې ابشار(باب افعال)نه دې، او د مشدد کیدو په صورت کښې (باب تفعیل) نه دې.

**قوله** المودة: مصدر منصوب(س) دوستی، محبت، دوست جوړول.

**قوله** القربی: د زلفی او بشری په وزن باندې، اسم مصدر، رشته داری، (ن) مصدر قرابة.

**قوله** الا المودة في القربی: په دې کښې دوه قوله دی،① استثناء منقطع وی څکه چه مستثنی منه اجرًا دې او المؤدة مستثنی ده،اومستثنی د مستثنی منه د جنس څخه نه دې، أی لا أسئلکم اجرًا قط ②مستثنی متصل وی، ای لا اسئلکم علیه اجرا الا هذا وهو ان تودوا اهل قرابتی الذین هم قرابتکم، اوفی القربی، جار مجرور،د محذوف متعلق کیدو سره حال دې، ای ثابتة في القربی.

**قوله** یقترف: اصله القرف ای الکسب وئیل ی شی، فلان یقرف لعیاله کسبا، (ض) ددې آیت د مصداق په تعین کښې ډیر اختلاف دې، په دې کښې ډیر خه هغه دې کوم چې مجاهد او قتادة ذکر کړې دې، چې د هغې خلاصه دا ده انکم قومی واحق من اجابنی واطاعنی فاذ قد ابیتم ذلك فاحفظوا حق القربی وصلوا رحمی ولا تؤذونی یعنی تاسو څما قوم یئ، او کومو خلقو چې زما په دعوت باندې لبیک وئیلې دې، او زما اطاعت ئې قبول کړې دې د هغوی نه تاسو زیات

حقدار يئ، اوس چونكه تاسو انكار اوكړو نو كم ازكم زما د رشته دارئ خيال اوساتئ، او ما سره دصله رحمئ معامله اوكړئ، او ماته تكليف مه راكوئ.

**قوله**: بجيبهم: مفسر علام د يستجيب تفسير په يجيب سره كولو سره اشاره اوكړه چې سين د تاكيد د پاره زائد دې، لكه استعظم په معنى د تعظم

**[ايات توله: ٢٠-٤٣]**

﴿وَمَا أَصَابَكُمْ﴾ خِطاب لِلْمُؤْمِنِينَ ﴿مِنْ مُصِيبَةٍ﴾ بَلِيَّة وَشِدَّة ﴿فَبِمَا كَسَبَتْ أَيْدِيكُمْ﴾ اي كَسَبْتُمْ مِنَ الذُّنوب وَعَبَّرَ بِالأَيْدِي لِأَنَّ أَكْثَر الأَفْعَال تُزَاوَل بِهَا ﴿وَيَعْفُوا عَنْ كَثِيرٍ﴾ مِنْهَا فَلَا يُجَازِي عَلَيْهِ وَهُوَ تَعَالَى أَكْرَم مِن أَنْ يُثَنِّي الْجَزَاء فِي الآخِرَة وَأَمَّا غَيْر الْمُذْنِبِينَ فَمَا يُصِيبهُمْ فِي الدُّنْيَا لِرَفْعِ دَرَجَاتهمْ فِي الآخِرَة ﴿وَمَا أَنْتُمْ﴾ يَا مُشْرِكُونَ ﴿بِمُعْجِزِينَ﴾ اللّٰه هَرَبًا ﴿فِي الْأَرْضِ﴾ فَتَفُوتُوهُ ﴿وَمَا لَكُمْ مِنْ دُونِ اللّٰهِ﴾ أَيْ غَيْره ﴿مِنْ وَلِيٍّ وَلَا نَصِيرٍ﴾ يَدْفَع عَذَابه عَنْكُمْ ﴿وَمِنْ آيَاتِهِ الْجَوَارِ﴾ السُّفُن ﴿فِي الْبَحْرِ كَالْأَعْلَامِ﴾ كَالْجِبَالِ فِي الْعِظَم ﴿إِنْ يَشَأْ يُسْكِنِ الرِّيحَ فَيَظْلَلْنَ﴾ يَصِرْنَ ﴿رَوَاكِدَ﴾ ثَوَابِت لَا تَجْرِي ﴿عَلَى ظَهْرِهِ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِكُلِّ صَبَّارٍ شَكُورٍ﴾ هُوَ الْمُؤْمِن يَصْبِر فِي الشِّدَّة وَيَشْكُر فِي الرَّخَاء ﴿أَوْ يُوبِقْهُنَّ﴾ عُطِفَ عَلَى يُسْكِن، أَيْ يُغْرِقهُنَّ بِعَصْفِ الرِّيح بِأَهْلِهِنَّ ﴿بِمَا كَسَبُوا﴾ أَيْ أَهْلهنَّ مِنَ الذُّنُوب ﴿وَيَعْفُ عَنْ كَثِيرٍ﴾ مِنْهَا فَلَا يُغرق اهله ﴿وَيَعْلَمُ﴾ بِالرَّفْعِ مُسْتَأْنَف وَبِالنَّصْبِ مَعْطُوف عَلَى تَعْلِيل مُقَدَّر أَيْ يُغْرِقهُمْ لِيَنْتَقِم مِنْهُمْ وَيَعْلَم ﴿الَّذِينَ يُجَادِلُونَ فِي آيَاتِنَا مَا لَهُمْ مِنْ مَحِيصٍ﴾ مَهْرَب مِنَ الْعَذَاب وَجُمْلَة النَّفْي سَدَّتْ مَسَدّ مَفْعُولَيْ يَعْلَم وَالنَّفْي مُعَلِّق عَنِ الْعَمَل ﴿فَمَا أُوتِيتُمْ﴾ خِطَاب لِلْمُؤْمِنِينَ وَغَيْرهمْ ﴿مِنْ شَيْءٍ﴾ مِنْ أَثَاث الدُّنْيَا ﴿فَمَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا﴾ يُتَمَتَّع بِهِ فِيهَا ثُمَّ يَزُول ﴿وَمَا عِنْدَ اللّٰهِ﴾ مِنَ الثَّوَاب ﴿خَيْرٌ وَأَبْقَىٰ لِلَّذِينَ آمَنُوا وَعَلَىٰ رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ﴾ وَيُعْطَف عَلَيْهِ ﴿وَالَّذِينَ يَجْتَنِبُونَ كَبَائِرَ الْإِثْمِ وَالْفَوَاحِشَ﴾ مُوجِبَات الْحُدُود مِنْ عَطْف الْبَعْض عَلَى الْكُلّ ﴿وَإِذَا مَا غَضِبُوا هُمْ يَغْفِرُونَ﴾ يَتَجَاوَزُونَ ﴿وَالَّذِينَ اسْتَجَابُوا لِرَبِّهِمْ﴾ أَجَابُوهُ إِلَى مَا دَعَاهُمْ إِلَيْهِ مِنَ التَّوْحِيد وَالْعِبَادَة ﴿وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ﴾ أَدَامُوهَا ﴿وَأَمْرُهُمْ﴾ الَّذِي يَبْدُو لَهُمْ ﴿شُورَىٰ بَيْنَهُمْ﴾ يَتَشَاوَرُونَ فِيهِ وَلَا يَعْجَلُونَ ﴿وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ﴾ أَعْطَيْنَاهُمْ ﴿يُنْفِقُونَ﴾ فِي طَاعَة اللّٰه وَمَنْ ذُكِرَ صِنْف ﴿وَالَّذِينَ إِذَا أَصَابَهُمُ الْبَغْيُ﴾ الظُّلْم ﴿هُمْ يَنْتَصِرُونَ﴾ صِنْف أَيْ يَنْتَقِمُونَ مِمَّنْ ظَلَمَهُمْ بِمِثْلِ ظُلْمه كما قال تعالى ﴿وَجَزَاءُ سَيِّئَةٍ سَيِّئَةٌ مِثْلُهَا﴾ سُمِّيَتْ الثَّانِيَة سَيِّئَة لِمُشَابَهَتِهَا لِلْأُولَى فِي الصُّورَة وَهَذَا ظَاهِر فِيمَا يُقْتَصّ فِيهِ مِنَ الْجِرَاحَات قَالَ بَعْضهمْ وَإِذَا قَالَ لَهُ أَخْزَاك اللّٰه فَيُجِيبهُ أَخْزَاك اللّٰه ﴿فَمَنْ عَفَا﴾ عَنْ ظَالِمه ﴿وَأَصْلَحَ﴾ الْوُدّ بَيْنه وَبَيْن الْمَعْفُوّ عَنْهُ ﴿فَأَجْرُهُ عَلَى اللّٰهِ﴾ أَيْ إِنَّ اللّٰه يَأْجُرهُ لَا مَحَالَة ﴿إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الظَّالِمِينَ﴾ أَيْ الْبَادِئِينَ بِالظُّلْمِ فَيَتَرَتَّب عَلَيْهِمْ عِقَابه ﴿وَلَمَنِ انْتَصَرَ بَعْدَ ظُلْمِهِ﴾ أَيْ ظُلْم الظَّالِم إِيَّاهُ ﴿فَأُولَٰئِكَ مَا عَلَيْهِمْ مِنْ سَبِيلٍ﴾ مُؤَاخَذَة ﴿إِنَّمَا السَّبِيلُ عَلَى الَّذِينَ يَظْلِمُونَ النَّاسَ وَيَبْغُونَ﴾ يَعْمَلُونَ ﴿فِي الْأَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ﴾ بِالْمَعَاصِي ﴿أُولَٰئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ مُؤْلِم ﴿وَلَمَنْ صَبَرَ﴾ فَلَمْ يَنْتَصِر ﴿وَغَفَرَ﴾ تَجَاوَزَ ﴿إِنَّ ذَٰلِكَ﴾ الصَّبْر وَالتَّجَاوُز ﴿لَمِنْ عَزْمِ الْأُمُورِ﴾ أَيْ مَعْزُومَاتهَا بِمَعْنَى الْمَطْلُوبَات شَرْعًا

ترجمه او کوم چې تاسو ته مصیبت او سختی در رسیږي، خطاب مومنانو ته دې هغه ستاسو د عملونو د وجې دې، یعنی د کړې شوی ګناهونو د وجې نه، ګناهونه ئې د لاسونو په عمل سره تعبیر کړل، ځکه چې د اکثر عملونو په وجود کښې د لاسونو کوشش شامل وی، او ډیرو ګناهونو لره هغه معاف کوی، چې د هغې سزا نه ورکوی، الله تعالی ډیر رحم والا دې، د دې نه چې په آخرت کښې به د یو جرم سزا دوباره ورکړی، او پاتې شول بې قصوره، نو چې په دنیا کښې دوی ته کوم مصیبت رسی هغه په آخرت کښې ددوی درجو داوچتولو د پاره دی، او اې مشرکانو !تاسو په تیختې سره، الله په زمکه کښې عاجزه کولې نشئ، چې د هغه نه بچ او خلاص شئ، او ستاسو د پاره د الله نه سوا نه بل کارساز شته او نه څوک مددګار، چې د هغه عذاب ستاسو نه لرې کړی، او د هغه د قدرت د نښو نه په سمندرونو کښې د غر پشان لوئې کشتئ دی، که هغه اوغواړی نو هوا به بند کړی، چې دا کشتئ د سمندر په سطح باندې ولاړې پاتې شی، یقینا په دې کښې د هر صبر کونکو او شکر کونکو د پاره نښې دی، او هغه مومنان دی چې په تکلیف کښې صبر کوی، او په خوشحالئ کښې شکر کوی، یا دې کشتو والا لره ددوی د خراب عمل په وجه هلاک کړی، ددې عطف په یسکن باندې دې، یعنې دې کشتو لره سره د سورلو نه په تیزه هوا (طوفان) سره غرق کړی. او هغه ډیر خطاګانو لره معاف کوی، چې د هغې د وجې نه په کشتئ کښې سواره خلق نه غرق کوی، او چې پوهه شی هغه خلق کوم چې زمونږ په آیتونو کښې جهګړې کوی، چې ددوی د پاره د عذاب نه د تختیدو ځائې تشته او جمله منفیه د یعلم د دوو مفعولو قائم مقام ده، یا نفی د عمل نه د بندونکې ده، او څه چې تاسو ته د دنیا سامان درکړې شوې ده نو هغه د دنیا د حد پورې ده ددې نه په دنیا کښې فائده اخستلې شی بیا به هغه فنا شی، او کوم اجر چې الله سره دې، هغه ډیر بهتر او پائیدار دې، دا د هغه خلقو د پاره دی چې ایمان ئې راوړې وی او صرف په خپل رب باندې بهروسه کوی، او د والذین عطف په للذین آمنوا باندې دې، او هغوی د غټ ګناهونو نه او د بې حیایئ کارونو نه ځان بچ کوی، یعنی د حدودو د موجباتو نه پرهیز کوی، دا عطف علی الکل د قبیلې نه دې، او د غصې په وخت کښې هم معاف کوی، معافی کوی،او د خپل رب د توحید او د عبادت حکم قبلوی، یعنی د توحید او د عبادت دعوت کوم طرف ته چې دوی رابللې شی هغه قبلوی، او د مونځ پابندی کوی، او راپیښیدونکې د دوی هرکار کښې په خپلو مشورې سره کیږی، او هغوی تندی نه کوی، او چې کوم مال مونږ دوی ته ورکړې دې په هغې کښې د الله په اطاعت کښې خرچ کوی، دا کوم چې ذکر شو دا د مومنانو یو قسم دې، او چې کله هغوی باندې ظلم اوشی نو هغوی صرف بدله اخلی، دا دویم قسم دې، یعنی د هغه خلقو نه چا چې په دوی باندې ظلم کړې دې ددې ظلم برابر صرف انتقام اخلی، ځنګه چې

الله تعالى فرمائي جزاؤسيئة سيئة مثلها، اودبدو بدله دغه شان بد وي، ثاني (يعني انتقام) د نوم سيئه صورةً د اولى سره د مشابه كيدو د وجې نه ايخودې شوې دې، او دا مشابهت صوري په هغه زخمونو كښې ښكاره دې، چې د كوم قصاص (بدله) اخستلې شي، او بعضې حضراتو د مثال په توګه وئيلي دي چې چا اووئيل چې الله دې تا ذليله كړي، نو د هغې جواب وركړي چې الله دې تا ذليله كړي، او څوک چې په خپل ځان باندې ظلم كونكې معاف كړي، او ځان او د ظالم په مينځ كښې د (محبت) تعلقاتو اصلاح اوكړي، نو ددې اجر په الله باندې دې، يعنى الله تعالى به هغه ته يقينا اجر وركړي، الله تعالى ظالمانو لره نه خوښوي، يعنى د ظلم ابتدا كونكې نه خوښوي، په دوى باندې به د الله عذاب نازليږي.
او كوم كس چې د مظلوم كيدو نه پس يعنى د ظالم په هغه باندې د ظلم نه پس بدله واخلي نو د داسې خلقو د مواخذې هيڅ صورت نشته، دا د مؤاخذې صورت صرف په هغه خلقو دې څوک چه (په خپله په خلقو باندې ظلم كوي او په زمكه كښې په ناحقه د نافرمانئ په ذريعه فساد كونكي ګرځي هم دغه خلق دي چې د چا د پاره دردناک عذاب دې، او كوم كس چې صبر اوكړو چه بدله ئې وانخستله او معاف ئې كړو يقينا دا صبر او بخښنه د اوچتو همتونو د كارونو نه ده، او "معزومات" د مطلوب شرعى په معنى كښې دې، (يعنى افضل دى)

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله: خطاب للمومنين:** ددې عبارت مقصد د مااصابكم د خطاب نه كافرانو لره خارجول دي، ځكه چې كافرانو ته كوم مصيبتونه راځي، هغه د بعضې عذابونو د تعجيل په توګه راځي، او مومنانو ته چې كوم مصيبتونه راځي نو هغه دګناهونو د كفارې په توګه راځي، يا د درجاتو د پورته كولو د پاره.

**قوله: وما اصابكم من مصيبة:** من مصيبة "ما" بيان دې،

**قوله: فبما كسبت ايديكم:** كه ما اصابكم كښې (ما) شرطيه اوګرځولې شي نو **فبما كسبت** به جواب شرط وي، او كه ما موصوله اوګرځولې شي نو مبتدأ متضمن په معنى د شرط لره وي، او **فبما كسبت** به د مبتدأ خبر وي، او چونكه مبتدأ متضمن معنى د شرط لره ده، ځكه به ئې په خبر باندې فاء داخله وي، په يو قرأت كښې **بما كسبت ايديكم** بغير د فاء څخه ده، په دې صورت كښې د مبتداء خبر تركيب غوره دې، په دې صورت كښې شرط او جزاء ګرځول او فاء لره محذوف منل شاذ دى

**قوله: اي كسبتم من الذنوب:** د (**فبما كسبت ايديكم**) تفسير په (كسبتم) كولو كښې ئې اشاره اوكړه چې د فعل كاسب ذات وي، خو چونكه د فعل په كسب كښې زيات تر حصه او دخل د لاسونو وي، ځكه د فعل نسبت مجازا لاسونو طرف ته كيږي،

د ذنوب دوه قسمونه دی، یو قسم هغه دي چې د هغې سزا په دنیا کښې د تکلیف او مصیبت په ذریعه ورکولې شی، او دویم قسم هغه دې، چې هغه معاف کولې شی، نه په هغې باندې په دنیا کښې څه مواخذه وی، او نه په آخرت کښې، او کومو گناهونو لره چې معاف کولې شی، د هغې تعداد په نسبت د هغه گناهونو چې کوم معاف کولې نه شی، زیات دې، او الله تعالی چونکه اکرم الاکرمین دې، لهذا د کومې گناه سزا چې په دنیا کښې د تکلیف په صورت کښې ورکړی، د هغې سزا به دوباره نه ورکوی، او به په هغه گناهونو سزا ورکوی کوم گناهونه ئې چه معاف کړې دی، حضرت علی ﷺ فرمائی، چې د قرآن دا آیت ډیره حوصله اوچتونکې دې،

**قوله: هوتعالٰی**: ددې تعلق **فماأکسبت ایدیکم** سره دې، لهذا مناسب دا وه چې دا په **یعفوا عن کثیر** باندې مقدم کولو سره د **فماأکسبت ایدیکم** سره متصل راوړې وې.

**قوله: یامشرکین**: په دې نسخه کښې یا مشرکین دې، خو صحیح یا مشرکون دې، څنگه چې د جُمل په نسخه کښې یا مشرکون دې، ځکه چه منادی مبنی بررفع وی، لهذا د مرفوع بالواو په صورت کښې یا مشرکون پکار وو،

**قوله: معجزین: ای فائتین من عذابه.**

**قوله: الجوار**: د یاء په حذف سره د رسم الخط په اعتبار سره، ځکه چې دا یاء زائده ده، **جوار** د **جاریة** جمع ده، په معنی د جاری کیدونکې، کشتئ،

**شبه**: په ظاهره معلومیږی چې الجوار د السفن محذوف صفت دې، څنگه چې علامه محلی السفن محذوف منلو سره د موصوف حذف ته اشاره کړې ده، تقدیر د عبارت دا دې **السفن الجوار**، خو دلته السفن موصوف حذف کول جائز نه دی، ځکه چې موصوف هغه وخت پورې حذف کول جائز نه دی، تر څو چې موصوف د صفت سره خاص شوې نه وی، هم دغه وجه ده چې مررت بماش وئیل صحیح نه دی، ځکه چې ماش صفت عام دې د یو موصوف سره خاص نه دې، البته مررت بمهندس، ومررت بکاتب وئیلې شی، حالانکه مهندس او کاتب هم صفت دې، خو ددې موصوف محذوف دې، ځکه چې دا د صفات خاصۀ نه دې، ددې بر خلاف **الجری السفن** سره خاص نه دې، لهذا السفن حذف کول جائز کیدل پکار نه دی؟

**جواب**: د موصوف د حذف عدم جواز په هغه صورت کښې دی چې کله په صفت باندې اسمیت غالب نه وی او چې کله اسمیت غالب شی لکه چې ابرق، دا صفت دې، ډیر زیات پرقیدونکی څیز ته وائی، خو اوس د یو مخصوص څیز نوم ایخودې شوې دې، کوم چې

پرقیدونکې کانړیز خیز دې، لهذا اوس ددې موصوف حذف کول جائز دی، دغه شان أبطح، ددې معنی، فراخه او کانړو والا کیدل، خو اوس په دې باندې اسمیت غالب کیدو سره د یو مخصوص وادی (کندې) معنې دې، لهذا ددې موصوف حذف کول جائز دی، دغه شان مُنَقی، ددې معنی صفا کړې شوې، دا صفت دې خو په دې باندې اسمیت غالب شوې دې، ددې موصوف اوسکې دې، پوره نوم مویز مُنَقی دې، کوم چې عام طور سره په دوایانو کښې استعمالیږي، خو اوس موصوف حذف کولو سره مُنَقی وئیلې شی، تردې چې ددې موصوف اکثر خلق پیژنی هم نه، دغه شان اَلجَوار، چې د جارية جمع ده، ددې معنی ده جاری کیدونکې، تلونکې، خو اوس په دې باندې اسمیت غالب شوې دې، چې د هغې د وجې نه جاریه کشتئ ته وائی، لهذا اوس ددې موصوف حذف کولې شی، څنګه چې مفسر علام السفن مقدر منلو سره د موصوف د حذف طرف ته اشاره کړې ده

**قوله**: يظللن: ديصرن ظل،نه مضارع جمع مؤنث غائب فعل ناقص هغه به شی، د يظللن تفسیر په یصرن سره اشاره کولو کښې ئې اوکړه چې ظلّ دلته مطلقا د صار په معنی کښې دې، ګنی د ظل خو خپله معنی په ورځ کښې د یو کار د کیدو خبر ورکول دی، څنګه چې د بَاتَ معنی د ه د شپې د یو کار کیدو خبر ورکول.

**قوله**: صبار شکور: د دې تفسیر ئې په هو المؤمن سره کولو کښې اشاره اوکړه چې په چا کښې دا دواړه صفتونه وی هغه به پوره مومن وی، ګویا چې د ایمان دوه حصې دی، یو صبر او دویم شکر، د صبر مطلب دا دې چې په ګناهونو باندې صبر اوکړې شی، او د شکر مطلب دا دې چې واجبات ادا کړی شی .

**قوله**: بأهلهن: باء په معنی د مع، یعنی که هغه اوغواړی نو کشتئ به سره د سورلو غرقې کړې او هلاک به ئې کړی.

**قوله**: اي اهلهن: دا د کسبوا د واؤ تفسیر دې، چې د هغې نه کشتئ والا مراد دی، کوم چې د سباق نه معلومیږی، يوبقهن ايباق (اهلاك)نه مضارع واحد مذکر غائب، هن ضمیر مفعول، هغه به دوی هلاک کړی، تباه به ئې کړی.

**قوله**: يعف عن كثيرمنها: عفونه مضارع واحد مذکر مجزوم، جمهورو يعف لره جواب شرط باندې عطف کیدو د وجې نه مجزوم وئیلې دې،

**قوله**: منها: اى السفن او الذنوب يعنی بعضې کشتو لره نه غرق کوی، یا د بعضې سورلو ګناهونه معاف کوی،

**قوله**: يعلم: په دې کښې رفع او نصب دواړه قراتونه دی، رفع جمله د مستانفه کیدو د

وجې نه اى هو يعلم، او نصب د غرق په علت باندې عطف كيدو د وجې نه، اى ليغرقهم لينتقم منهم وليعلم يعنى، كه اوغواړى. نو دوى به غرق كړى، چې هغه ددوى نه بدله واخلى، او هغه خلقو له ښكاره كړى كوم چې زمونږ په آيتونو كښې جهګړې كوى.

قوله: مالهم من محيص: مالهم خبر مقدم، او من محيص مبتدأ مؤخر، من زائده.

قوله: معلق عن العمل: تعليق، د افعال قلوب د خصوصياتو نه دې، تعليق د لفظى عمل باطلولو ته وائى، د عمل تعليق د پاره شرط دا دې، چې فعل قلب د استفهام يا د نفى يا لام د ابتدا نه مخكښې واقع وى، څنګه چې دلته فعل قلب يعلم دې، يعلم دوه مفعول غواړى،

قوله: فما اوتيتم: (ما) شرطيه، د اوتيتم مفعول ثانى د صدارت كلام د وجې نه مقدم دې، په اوتيتم كښې ضمير د مخاطب مفعول اول، كوم چې نائب فاعل دې،

قوله: من شئ: دا د ما بيان دې، ځكه چې په دې كښې ابهام دې،

قوله: فمتاع الحياة الدنيا: فاء جواب شرط باندې داخله ده، او متاع د مبتدأ محذوف خبر دې، اى فهو متاع.

قوله: وما عند الله خير: ما عند الله موصول صله سره مبتدأ، او خير ددې خبر، او للذين الخ د ابقى متعلق.

قوله: والذين يجتنبون: ددې عطف په الذين آمنوا باندې دې، جمله د لام جار لاندې راتلو د وجې نه محلاً مجرور ده.

قوله: كبٰئر الاثم والفواحش: د كبائر نه هر قسم لوې ګناهونه مراد دى، او د فواحش نه مخصوص لوئې ګناهونه مراد دى، چې په هغې باندې حدود او قصاص جارى كيږى،

قوله: من عطف البعض على الكل: دا د يوې شبهې جواب دې.

شبه: كبائر هر قسم غټو ګناهونو ته وائى چې په هغې كښې فواحش هم دى، نو بيا د فواحش دوباره ذكر كولو څه ضرورت؟

جواب: دا د عطف الخاص على العام د قبيلې نه دې، دا د معطوف د اهميت د وجې نه كيږى، دې ته عطف البعض على الكل هم وئيلې شى، لكه حافظوا على الصلوات والصلوة الوسطى.

قوله: واذا ما غضبوا هم يغفرون: ما زائده ده، په فارسى كښې وائى، (چون بخشم آيند ايشان مى آمرزند) چې كله غصه شى نو معافى كوى، اذا د يغفرون ظرف كيدو د وجې نه منصوب دې، ما زائده دې، او يغفرون د (هم) خبر دې، جمله په يجتنبون باندې معطوف

ده، کوم چې د الذين صله ده، تقديري عبارت دا دې والذين يعلمون وهم يغفرون په دې صورت کښې عطف د جمله اسميې په جملې فعليې باندې لازميږي، دويم ترکيب دا هم کيدې شي چې د هم د غضبوا کښې د ضمير فاعل تاکيد دې، په دې صورت کښې به فيغفرون جواب شرط وي،
ابو البقاء رحمه الله فرمائي چې هم مبتدأ او يغفرون خبر دې، او جمله جواب شرط دې، خو دا صحيح نه ده، ځکه چه کله چرې د (اذا) جواب وي نو بيا د فاء داخليدل ضروري دي، مثلا نه اووائې اذا جاء زيد فعمرو ينطلق، عمرو ينطلق جائز نه دې، (جمل)

**قوله**: والذين استجابوا: ددې عطف په تيرشوي موصول الذين باندې دې، مفسر علام د استجابوا تفسير په أجابوا سره کړې دې، اشاره ئې کړې ده چه په استجابوا کښې س او ت زائد دي، يعني د الله تعالى سره نعمتونه دهغه چا دپاره دي ځوک چه دالله تعالى په حکم باندې لبيک وائي.

**قوله**: امرهم شوري بينهم: امرهم ترکيب اضافي مبتدأ، شوري ددې خبر، بينهم ظرف دې.

**قوله**: شوري: داشاورته باب مفاعله مصدر دې، په وزن د بشرى وذكرى، مشوره کول.

**قوله**: يبغون: يعملون مفسر علام د يبغون تفسير په يعملون سره کولو کښې اشاره اوکړه چې بغير الحق تاسيس د پاره دې، نه چې تاکيد د پاره، ځکه چې بغى هسې هم ناحق وي، بيا ددې نه پس بغير الحق وئيل دا به د مخکښې مضمون تاکيد وي، او که يبغون د يعملون په معنى کښې واخستلې شي، نو بغير الحق به تاسيس وي، او تاسيس د تاکيد نه بهتر وي.

**قوله**: لمن عزم الامور: دادعزيمة نه ماخوذ دې، کوم چې د رخصت ضد دې، يعني صبر او معافي کول مندوب او مستحب دي، اګر چې مساوي توګه باندې انتقام اغستل هم جائز دي

**[اياتوله: ٤٤ - ٥٢]**

{وَمَنْ يُضْلِلِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِنْ وَلِيٍّ مِنْ بَعْدِهِ} أي أحد يلي هدايته بعد إضلال الله إياه {وَتَرَى الظَّالِمِينَ لَمَّا رَأَوُا الْعَذَابَ يَقُولُونَ هَلْ إِلَى مَرَدٍّ} إلى الدنيا {مِنْ سَبِيلٍ} طريق {وَتَرَاهُمْ يُعْرَضُونَ عَلَيْهَا} أي النار {خَاشِعِينَ} خائفين متواضعين {مِنَ الذُّلِّ يَنْظُرُونَ} إليها {مِنْ طَرْفٍ خَفِيٍّ} ضعيف النظر مسارقة ومن ابتدائية أو بمعنى الباء {وَقَالَ الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّ الْخَاسِرِينَ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنْفُسَهُمْ وَأَهْلِيهِمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ} بتخليدهم في النار وعدم وصولهم إلى الحور المعدة لهم في الجنة لو آمنوا والموصول خبر إن {أَلَا إِنَّ الظَّالِمِينَ} الكافرين {فِي عَذَابٍ مُقِيمٍ} دائم هو من مقول الله تعالى {وَمَا كَانَ لَهُمْ مِنْ أَوْلِيَاءَ يَنْصُرُونَهُمْ مِنْ دُونِ اللَّهِ} أي غيره يدفع عذابه عنهم {وَمَنْ يُضْلِلِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِنْ سَبِيلٍ} طريق إلى الحق في الدنيا

وَإِلَى الْجَنَّة فِي الآخرة {اسْتَجِيبُوا لِرَبِّكُمْ} اجيبوهُ بِالتَّوحِيدِ وَالعِبَادَة {مِنْ قَبْلِ أَنْ يَأْتِيَ يَوْمٌ} هُوَ يَوْم القِيَامَة {لَا مَرَدَّ لَهُ مِنَ اللَّهِ} أي أَنَّهُ إِذَا أتى بِهِ لَا يَرُدّهُ {مَا لَكُمْ مِنْ مَلْجَإٍ} تلجاون إِلَيْهِ {يَوْمَئِذٍ وَمَا لَكُمْ مِنْ نَكِيرٍ} إنكار لذنوبكم {فَإِنْ أَعْرَضُوا} عَنِ الإِجَابَة {فَمَا أَرْسَلْنَاكَ عَلَيْهِمْ حَفِيظًا} تحفظ اعمَالهِمْ بِأَنْ تُوَافِق المَطلوب مِنهُمْ {إِنْ} مَا {عَلَيْكَ إِلَّا الْبَلَاغُ} وَهٰذَا قَبل الأمر بِالجِهَادِ {وَإِنَّا إِذَا أَذَقْنَا الْإِنْسَانَ مِنَّا رَحْمَةً} نِعْمَة كَالغِنَى وَالصِّحَّة {فَرِحَ بِهَا وَإِنْ تُصِبْهُمْ} الضَّمِير لِلإِنسَانِ بِاعتِبَارِ الجِنس {سَيِّئَةٌ} بَلاء {بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ} أي قَدَّمُوهُ وَعَبَّرَ بِالأَيدِي لِأَنَّ أكثَر الأَفعَال تُزَاوَل بِهَا {فَإِنَّ الْإِنْسَانَ كَفُورٌ} للنعمة {لِلَّهِ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ يَخْلُقُ مَا يَشَاءُ يَهَبُ لِمَنْ يَشَاءُ} من الاولاد {إِنَاثًا وَيَهَبُ لِمَنْ يَشَاءُ الذُّكُورَ} {أَوْ يُزَوِّجُهُمْ} أي يَجْعَلهُمْ {ذُكْرَانًا وَإِنَاثًا وَيَجْعَلُ مَنْ يَشَاءُ عَقِيمًا} فَلا يَلِد وَلا يُولد لَهُ {إِنَّهُ عَلِيمٌ} بِمَا يَخْلُق {قَدِيرٌ} عَلَى ما يشاء {وَمَا كَانَ لِبَشَرٍ أَنْ يُكَلِّمَهُ اللَّهُ إِلَّا} أَنْ يُوحِيَ إِلَيْهِ {وَحْيًا} فِي المَنَام أو بِإلهَامٍ {أَوْ} إلا {مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ} بِأَنْ يُسْمِعهُ كَلَامه وَلَا يَرَاهُ كَمَا وَقَعَ لِمُوسَى عَلَيْهِ السَّلام {أَوْ} إِلا أن {يُرْسِلَ رَسُولًا} مَلَكًا كَجِبرِيل {فَيُوحِيَ} الرَّسُول إلَى المُرسَل إِلَيْهِ أي يُكَلِّمهُ {بِإِذْنِهِ} أي الله {مَا يَشَاءُ} الله {إِنَّهُ عَلِيٌّ} عَن صِفَات المُحْدَثِينَ {حَكِيمٌ} في صنعه {وَكَذَٰلِكَ} أي مِثل إِيحَائِنَا إِلَى غَيرِك مِن الرُّسُل {أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ} يَا مُحَمَّد {رُوحًا} هُوَ القرآن بِهِ تَحيَا القُلُوب {مِنْ أَمْرِنَا} الَّذِي نُوحِيهِ إِلَيْك {مَا كُنْتَ تَدْرِي} تَعرِف قَبل الوَحْي إِلَيْك {مَا الْكِتَابُ} القرآن {وَلَا الْإِيمَانُ} أي شَرَائِعه وَمَعَالِمه وَالنَّفي مُعَلِّق لِلفِعْلِ عَنِ العَمَل وَمَا بَعده سَدَّ مَسَدَّ المَفعُولَيْنِ {وَلَٰكِنْ جَعَلْنَاهُ} أي الرُّوح أوِ الكِتَاب {نُورًا نَهْدِي بِهِ مَنْ نَشَاءُ مِنْ عِبَادِنَا وَإِنَّكَ لَتَهْدِي} تَدعُو بِالوَحْيِ إِلَيْك {إِلَىٰ صِرَاطٍ} طَرِيق {مُسْتَقِيمٍ} دين الإسلام {صِرَاطِ اللَّهِ الَّذِي لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ} مُلْكًا وَخَلقًا وَعَبِيدًا {أَلَا إِلَى اللَّهِ تَصِيرُ الْأُمُورُ} تَرجع

---

**ترجمه:** او الله چې چاله ګمراه کړي ددې نه پس د هغه څوک کارساز نشته، يعنې د الله تعالی ده لره د ګمراه کولو نه پس دده د هدايت څوک ولی نشته، او اې مخاطبه ته به اوګورې چې ظالمان کله عذاب اوينی نو وائی به چې آيا دنيا ته د واپس کيدو څه صورت نشته؟ او اې مخاطبه ته اوګورې چې هغوی به د جهنم نه مخکښې راوستلې شی ادرولې به شی، د ويرې او د ذلت په وجه به ټيټ شوې وی، او د سترګو په ګټ باندې به هغه (جهنم) ته ګوری، من ابتدائيه دې، يا په معنی د بآء دې، مومنان به اوائی چې رشتونې تاوانيان هغه دی، چا چې نن د قيامت په ورځ خپل ځان او خپل خاندان والا په دائمی عذاب کښې مبتلا کولو سره او هغه حورو ته رسائی نه حاصلولو سره کومې چې ددوی د پاره تيارې شوې دی نقصان کښې واچول، که دوی ايمان راوړې وو، او موصول د ان خبر دې، ياد ساتئ چې يقينا ظالم کافر په هميشه عذاب کښې وی، دا د الله تعالی مقوله ده، ددوی څوک مددګار چې د الله نه سوا دده مدد اوکړی يعنې د الله نه سوا د هغوی څوک هم نشته، چې ددوی نه عذاب لرې کړی، او الله چې چاله

گمراه کول او غواړي د هغوی د پاره نه په دنیا کښې د حق طرف ته لارشته او نه په آخرت کښې د جنت طرف ته، د خپل رب توحید او د عبادت حکم اومنئ، مخکښې د دې نه چې هغه ورځ راشي او هغه د قیامت ورځ ده، چې د هغې به د الله د طرف نه واپس کیدل نه وي، یعنی کله چې الله دا ورځ راولي، نو بیا به هغه نه واپس کوي، تاسو ته به نه په هغه ورځ څه د پناه ځائې ملاویږي چې په هغې کښې تاسو پناه واخلئ، او نه به تاسو ته ستاسو د گناهونو نه د انکار څه صورت، که چرې دوی د قبلولو نه مخ واړوي نو ما ته په دوی باندې نگهبان نه ئې جوړ کړې، چې تاسو د هغوی د عملونو نگرانی اوکړئ، چې د هغوی عملونه د هغه عملونو برابر شي کوم چې د دوی نه غوښتلې شي، ستا سو په ذمه صرف پیغام رسول دی، دا حکم د جهاد د حکم نه مخکښې دې، او مونږ چې کله انسان ته د خپل رحمت د نعمت مثلاً غنا او صحت مزا اوڅکوو، نو دې په هغې باندې فخر شروع کړي، او که دوی ته د دوی د عملونو په وجه څه مصیبت اورسي نو انسان د الله د نعمت ناشکري کوي، تصبهم، کښې ضمیر د جنس په اعتبار سره انسان ته راجع دې، د قدمت ایدیهم مطلب دا دې چې قدموه او ذات ئې ایدی سره تعبیر څکه کړو چې اکثر عملونه د لاسونو نه کیږي، د اسمانونو او د زمکې سلطنت د الله دې، هغه چې څه غواړي پیدا کوي ئې او چا ته چې غواړي د اولاد نه لور ورکړي، او چا ته چې اوغواړي نو څوئې ورکړي، یا دواړه جمع کړي، یعنی هغوی ته لور او څوې دواړه ورکړي، او چا ته چې اوغواړي شنډ ئې کړي، او هغه چې څه پیدا کوي د هغې په باره کښې لوئې علم والا دې، او څه چې اوغواړي په هغې باندې کامل قدرت والا دې، او د هیڅ یو انسان دا شان نه دې چې الله یو بنده سره خبرې اوکړي، خو د هغه طرف ته وحی لیږلو سره که په خوب کښې وي او د الهام په ذریعه یا د پردې نه شا ته په دا سې طریقه چې بنده ته خپل کلام واوري، او بنده هغه اونه ویني، څنگه چې موسی ﷺ سره شوي وو یا یو قاصد یعنی فرشته راولیږي، لکه جبرائیل ﷺ چې هغه فرشته د الله په اجازت سره پیغمبر ته وحی اوکړي، په دا سې توگه چې هغه سره خبرې اوکړي څومره ئې خوښه وي، بې شکه هغه د محدثین د صفات نه اوچت دې، په خپل صنعت کښې حکمت والا دې، او دغه شان یعنی د رسولانو په شان اې محمد ﷺ مونږ ستا طرف ته خپل حکم روح راولیږلو، یعنی هغه حکم د کوم چې مونږ ستا طرف ته وحی رالیږو، او هغه قرآن دې چې په هغې سره زړونه ژوندي کیږي، او تاسو ته د وحی د رالیږلو نه مخکښې تاسو ته دا هم پته نه وه چې کتاب (قرآن) څه څیز دې، او نه دې ایمان پیژندلو یعنی د ایمان او د اسلام احکامات او شریعتونه دې نه پیژندل، او استفهام فعل د عمل کولو نه منع کړې دې، یا د استفهام مابعد د دوؤ مفعولو قائم مقام دې، خو مونږ دې لره یعنی روح یا کتاب لره نور جوړ کړو چې د هغې په ذریعه مونږ په خپلو بندگانو کښې چا ته اوغواړو د هغې په ذریعه هدایت ورکړو، بې شکه تاسو د راتلونکی وحی په ذریعه د صراط

مستقیم یعنی د دین اسلام طرف ته رهنمائي کوئ، د هغه الله لارې طرف ته چې د هغه په ملکیت کښې د زمکې او اسمان ټول څیزونه دي، د ملک په اعتبار سره او د تخلیق په اعتبار سره، او د مملوک کیدو په اعتبار سره، خبردار، ټول کارونه هم د الله طرف ته واپس کیږي.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله** أحد يلي: د من ولي تفسير دې، اى ليس له ولي يلي هدايته بعد اضلاله په دې صورت کښې به د من بعده ضمير د اضلال طرف ته راجع وي، او دا هم ممکن ده، چې د بعده ضمير الله طرف ته راجع وي، او بعدالله د سوى الله په معنى کښې وي، په دې صورت کښې به معنى دا وي چې د الله نه سوا د هغه څوک ولي نه وي.

**قوله** وترى الظلمين: جمله حاليه ده، او د رويت نه مراد رؤيت بصرى دې، او مخاطب هر هغه کس دې، چې په هغه کښې د رؤيت صلاحيت وي،

**قوله** مرد: دردنه ظرف زمان او مکان، د واپس کيدو وخت، د واپس کيدو ځائې

**قوله** عليها: دا د يو سوال جواب دې.

**سوال**: عليها د ها ضمير مرجع څه ده؟ که ماقبل کښې مذکور نه وي نو اضمار قبل الذکر لازميږي، او که ماقبل کښې مذکور د العذاب طرف ته راجع وي، نو په ضمير او مرجع کښې مطابقت نشته، ځکه چې عذاب مذکر دې، او ها ضمير مؤنث دې؟

**جواب**: د ها ضمير مرجع نار دې، څنګه چې شارح اشاره کړې ده، چې په هغې باندې العذاب دلالت کوي، لهذا اوس هيڅ اعتراض نشته.

**قوله** تراهم: دترى سره رويت بصرى مراد دې، يعرضون وخاشعين دواړه د (هم) ضمير نه جمله کيدو سره حال دي.

**قوله** من الذل: دخاشعين نه متعلق دې.

**قوله** من الطرف: د طرف نه مراد سترګه ده، بعضې حضراتو مصدرى معنى يعنى کتل هم مراد اخستې ده، د شارح د عبارت مناسب اول معنى ده طرف خفي، د سترګو لاندې کتل، شرمنده نظر ته هم وائي، کمزورې سترګه، بيماره سترګه، تقريبا يو معنى لرى.

بمژکان سياه کردى هزارا رخنه در دينم
بياکز (چشم بيمارت) هزارا درد بر چينم　　　　(حافظ)

شاعر شرمنده نظر سره تعبير د بيمار د سترګې نه کړې دې د قيامت په ورځ چې کله مجرمان د دوزخ مخامخ اودرولې شي، نو د ډير شرم نه به سترګې هم کولاولې نشى، بلکه د سترګو په ګوټ باندې به د ويرې په نظر سره کتل کوي.

**قوله** ينظرون اليها: د اليها ضمير هم د العذاب نه مفهوم، النار طرف ته راجع دي، من طرف کښي من ابتدائيه دی، يا په معنی د باء دی، دويم صورت ډير واضح دی.

**قوله** الذين خسروا: د (ان) خبر دی، او الخسرين د (ان) اسم دی.

**قوله** بتخليدهم في النار وعدم وصولهم الى الحور: په دې کښي لف ونشر مرتب دی، د بتخليد انفسهم تعلق (الذين خسروا انفسهم) سره دی، او د عدم وصولهم تعلق (اهليهم) سره دی، او د اهل په باره کښي د نقصان مطب دا دی چي کومي حوري او غلمان د دوی د پاره د ايمان راوړلو په صورت کښي تيار کړي شوي وي، اوس به دوی د هغي نه محروم وی، او بعضي حضراتو دا هم احتمال ظاهر کړي دی، چي ممکن ده چي د اهل نه مراد د دنيا اهل مراد وی، ددوی باره کښي به د نقصان صورت دا وی چي دوی به په جنت کښي د نورو په حواله کړي شی.

مفسر علام هومن مقول الله تعالى ونيلو سره اشاره اوکړه چي الاان الظلمين في عذاب مقيم، د الله تعالى مقوله ده، او د مومنينو د قول تصديق دی، او بعضي حضراتو دې کلام لره د مومنانو د کلام تتمه ګرځولي ده.

**قوله** لايرده: په دې کښي دې خبري ته اشاره ده چي من الله د مرد متعلق دی، ددې تعلق د ياتی سره هم جائز دی.

**قوله** انکار لذنوبکم: په دې عبارت کښي دې طرف ته اشاره ده چي نکير خلاف القياس د انکر مصدر دی، يعنی مجرمين به دخپلو ګناهونو انکار کولي نشی، ځکه چي د اعمالو په صحيفه کښي به د هغوی عملونه محفوظ وی، او د مجرمينو اعضاء او جوارح به د هغوی خلاف ګواهی ورکوی.

**قوله** فما ارسلنك عليهم حفيظا: دا جمله د شرط د جواب محذوف علت دی، يعنی ان اعرضوا شرط دی، او فلاتحزن جواب د شرط محذوف دی، لانا ما ارسلناك عليهم حفيظا يعنی د مشرکينو په اعراض باندې مه خفه کيږئ، ځکه چه مونږ ته په دوی باندې نګران نه ئي جوړ کړي، ستاسو ذمه داری تبليغ ده، بې ځايه ددې فکر مه کوه، چي ددوی عملونه ددوی نه د غوښتونکو عملونو مطابق دی يا نه دی،

**قوله** الضمير للانسان باعتبار الجنس: دا د يو اعتراض جواب دی

**اعتراض**: د تُصبهم ضمير انسان ته راجع دی، په ضمير او مرجع کښي مطابقت نشته، ضمير جمع ده او مرجع واحد ده؟

**جواب**: انسان د لفظ په اعتبار سره اگرچې واحد دې، خو د جنس په اعتبار سره جمع دې، لهذا د جمع ضمير راوړل صحيح دی، او فرح مفرد راوړلې شوې دې، د انسان د لفظ اعتبار کولو سره.

**قوله**: فان الانسان كفور: د اسم ضمير په ځائې اسم ظاهر راوړلې شوې دې، اصل کښې فانه كفور دې، کرخی وئيلې دی چې دا جمله جواب د شرط دې، خو حقيقت دا دې چې دا د جواب محذوف علت دې، تقديرى عبارت دا دې **وان تصبهم سيئة نسى النعمة راسا فان الانسان كفور نسى النعمة راسا**، جواب د شرط محذوف دې، **فان الانسان كفور**، د جواب شرط علت دې.

**قوله**: فلا يلد ولا يولد له. د فلا يلد تعلق د امراة سره دې، يعنى كه شنډه ښځه وى، نو لايلد به وئيلې شى، خو په دې صورت کښې تلد په تاء سره وئيلې شى، البته وئيلې شى چې د (من) د لفظ د رعايت د وجې يلد مذكر راوړل صحيح دى، په بعضې نسخو کښې تلد هم دې، كوم چې زيات مناسب دې، او د **لا يولد له** تعلق د هغه صورت سره دې، چې كله شنډ والې په سړى کښې وى، او په مصباح کښې دى چې **لا يولد له** په دواړه صورتونو کښې وئيلې شى، عقم (شنډ) كه سړې وى او كه ښځه،

**قوله**: ولا يراه: په دې عبارت سره دې خبرې ته اشاره شوې ده چې دلته د حجاب لازم معنى يعنى عدم رويت مراد دې، ځكه چې د الله دپاره حجاب ممكن نه دې، بلكه حجاب د بنده صفت دې.

**قوله**: ما الكتاب: ما استفهاميه مبتدأ ده، الكتاب ددې خبر دې، كلام د مضاف په حذف سره دې، **اى ما كنت تدرى جواب ما الكتاب** يعنى تا ته ددې سوال د جواب هم پته نه وه چې كتاب څه څيز دې،؟

**قوله**: اى شرائعه ومعالمه: ددې عبارت د اضافې مقصد د يو سوال مقدر جواب وركول دى،

**سوال**: حضور ﷺ د نبوت نه مخکښې د توحيد اقرار كوونكې وو، او د الله دتوحيد نه خبردار وو، په عارحراء کښې به ئې د الله تعالى عبادت كولو، نو بيا د حضور ﷺ په باره کښې دا اووئيل چې هغوى د ايمان نه خبر نه وو، ددې څه مطلب دې؟

**جواب**: د ايمان نه مراد احكام او شرائع دى، او د هغې تفاصيل دى، چې د هغې نه حضور ﷺ د نزول وحى نه مخکښې واقف نه وو،

## [٤٣] سورة الزخرف

**سورة الزخرف مكية وقيل الا واسئل من أرسلنا الآية، تسع وثمانون آية.**

سورة زخرف مکی دې او وئیلی شوی دی چه بغیر د **واسئل من أرسلنا** آیت نه، په دې کښې نهه اتیا آیاتونه دی.

**[ایاتونه: ١ - ١٥]**

بسم الله الرحمن الرحيم (حمٓ) الله أعلم بمراده به (وَالْكِتَابِ) القرآن (الْمُبِينِ) المظهر طريق الهدى وما يحتاج إليه من الشريعة (إِنَّا جَعَلْنَاهُ) أوجدنا الكتاب (قرآنا عربيا) بلغة العرب (لَعَلَّكُمْ) يا أهل مكة (تَعْقِلُونَ) تفهمون معانيه (وَإِنَّهُ) مثبت (فِي أُمِّ الْكِتَابِ) أصل الكتب أي اللوح المحفوظ (لَدَيْنَا) بدل عندنا (لَعَلِيٌّ) على الكتب قبله (حَكِيمٌ) ذو حكمة بالغة (أَفَنَضْرِبُ) نمسك (عَنْكُمُ الذِّكْرَ) القرآن (صَفْحًا) إمساكا فلا تؤمرون ولا تنهون لأجل (أَنْ كُنْتُمْ قوما مسرفين) مشركين لا (وكم أرسلنا من نبي في الأولين) (وَمَا) كان (يَأْتِيهِمْ) أتاهم (مِنْ نَبِيٍّ إِلَّا كانوا به يستهزءون) كاستهزاء قومك بك وهذا تسلية له صلى الله عليه وسلم (فَأَهْلَكْنَا أَشَدَّ مِنْهُمْ) من قومك (بَطْشًا) قوة (وَمَضَى) سبق في آيات (مَثَلُ الْأَوَّلِينَ) صفتهم في الإهلاك فعاقبة قومك كذلك (ولئن) لام قسم (سألتهم من خلق السماوات والأرض ليقولن) حذف منه نون الرفع لتوالي النونات وواو الضمير لالتقاء الساكنين (خَلَقَهُنَّ الْعَزِيزُ الْعَلِيمُ) آخر جوابهم أي الله ذو العزة والعلم زاد تعالى (الذي جعل لكم الأرض مهادا) فراشا كالمهد للصبي (وَجَعَلَ لَكُمْ فِيهَا سُبُلًا) طرقا (لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ) إلى مقاصدكم في أسفاركم (وَالَّذِي نَزَّلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً بِقَدَرٍ) أي بقدر حاجتكم إليه ولم ينزله طوفانا (فَأَنْشَرْنَا) أحيينا (بِهِ بَلْدَةً مَيْتًا كَذَلِكَ) أي مثل هذا الإحياء (تُخْرَجُونَ) من قبوركم أحياء (وَالَّذِي خَلَقَ الْأَزْوَاجَ) الأصناف (كُلَّهَا وَجَعَلَ لَكُمْ مِنَ الْفُلْكِ) السفن (وَالْأَنْعَامِ) كالإبل (مَا تَرْكَبُونَ) حذف العائد اختصارا وهو مجرور في الأول أي فيه منصوب في الثاني (لِتَسْتَوُوا) لتستقروا (عَلَى ظُهُورِهِ) ذكر الضمير وجمع الظهر نظرا للفظ ما ومعناها (ثُمَّ تَذْكُرُوا نِعْمَةَ رَبِّكُمْ إِذَا اسْتَوَيْتُمْ عَلَيْهِ وَتَقُولُوا سُبْحَانَ الَّذِي سَخَّرَ لَنَا هَذَا وَمَا كُنَّا لَهُ مقرنين) مطيقين (وَإِنَّا إِلَى رَبِّنَا لَمُنْقَلِبُونَ) لمنصرفون (وَجَعَلُوا لَهُ مِنْ عِبَادِهِ جُزْءًا) حيث قالوا الملائكة بنات الله لأن الولد جزء من الوالد والملائكة من عباده تعالى (إِنَّ الْإِنْسَانَ) القائل ما تقدم (لَكَفُورٌ مُبِينٌ) بين ظاهر الكفر

**ترجمه:** شروع کوم د الله په نوم سره چې ډیر مهربانه او ډیر رحم کولو والا دې، حم د دې نه الله خپل مراد ښه پیژني، قسم دې په هغه کتاب باندې چې د هدایت لار او ضروری د شریعت قوانینو لره ښکاره کونکې دې، او مونږ دې کتاب لره د عربۍ ژبې کښې قرآن جوړ کړې دې، چې تاسو اې مکې والو د دې معانی باندې پوهه شئ، او هغه په اصل کتاب یعنی په لوح محفوظ کښې موجود دې، زمونږ په نیز د مخکښې کتابونو په مقابله کښې د اوچتې مرتبې

والا او لوئي حکمت والا کتاب دې، لدينا (في الکتاب) نه بدل دې، (لدينا) په معنى د عند دې، (صاوى) آيا مونږ دا نصيحت نامه يعنى قرآن تاسو نه بند کړو، چې تاسو ته نه حکم کولې شى او نه منع کولې شئ، په دې بناء باندې چې تاسو د حد نه تجاوز کونکې يئ، او مونږ په مخکنيو خلقو کښې ځومره نبيان اوليږل، دوى ته څوک داسې نبى ﷺ رانغلو چې په هغه پسې دوى ټوقې کړې نه وى، څنګه چې ستا قوم په تا پسې ټوقې کوى، او دا د حضور ﷺ تسلى ده، نو مونږ د دوى نه يعنى ستا د قوم نه زيات طاقت ورو لره هلاک کړل، او په آيتونو کښې د مخکنيو خلقو مثالونه تير شوې دى، يعنى په هلاکت کښې د هغوى کيفيت تير شوې دې، ستا د قوم انجام به هم داسې وى، او که تاسو د دوى نه تپوس اوکړئ، چې اسمانونو او زمکې لره چا پيدا کړې دى،؟ نو يقينا دا جواب به درکړى چې هغه غالب او پوهه الله پيدا کړې دى، ليقولن کښې نون د ډيرو نونونو جمع کيدو د وجې نه حذف کړې شوې دې، او واؤ ضمير د التقاء ساکنين د وجې نه حذف کړې شو، اوخوالعزة والعلم يعنى العزيز العليم باندې د مشرکينو کلام (جواب) پوره شو، او په دې کلام باندې الله تعالى الذى جعل لکم، نه (وانا الى ربنا لمنقلبون) پورې زيادت کړو، چا چې ستاسو د پاره زمکه فرش جوړه کړه، څنګه چې د ماشوم د پاره زانګو، او په دې کښې ئې ستاسو د پاره لارې جوړې کړې، چې تاسو په سفر کښې خپل مقصد ته اورسيږئ، او هم هغه په يو اندازه سره اوبه نازلې کړې، يعنى ستاسو د ضرورت مطابق، او هغه ئې د طوفان په شکل کښې نازلې نه کړې، نو مونږ دې په ذريعه مړ ښار يعنى اوچه زمکه ژوندئ کړه، دغه شان يعنى د دې ژوندى کولو په شان په تاسو د قبرونو نه ژوندى راويستلې شئ، چې په هغې کښې ئې په هر يو څيز کښې جوړې جوړې کړې، او ستاسو د پاره ئې کشتئ جوړې کړې، او ځناور مثلا اوښ ئې پيدا کړو چې په هغې باندې تاسو سورلى کوئ، ضمير (عائد) اختصاراً حذف کړې شو، او هغه عائد اول (يعنى من الفلك) کښې مجرور دې، يعنى ترکبون فيه او ثانى يعنى والانعام کښې منصوب دې، (يعنى ترکبوها) چې تاسو د هغې په شاګانو باندې برابر شئ اوسورلى په اوکړئ، په (ظهوره) کښې (ه) ضمير مذکر مفرد راوړو او ظهور ئې د جمع د وجې ما د لفظ او د معنى رعايت کولو د وجې بيا تاسو د خپل رب نعمت ياد کړئ، چې کله تاسو په هغې بالکل صحيح کينئ، او وائئ چې پاک ذات دې، د هغه چا، چا چې دا زمونږ په تابع کړل، حالانکه په مونږ کښې ددې د قابو کولو هيڅ طاقت نه وو، او يقينا مونږ خپل رب ته واپس کيدونکې يو، او هغوى د الله د بعضې بندګانو لره د هغه جز اوګرځول، چې کله هغوى اووئيل چې ملائکې د الله لونړه دى، څکه چې ولد د والد جز وى، حالانکه فرشتې د الله لونړه دى، يقينا ددې خبرې قائل انسان په ښکاره کفر کونکې دې،

.......

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**سورة الزخرف**: زخرف نقش كړې شوې، مزين، ښكلې، زينت، د زخرف استعمال چې كله د قول سره اوشي، نو دروغ، دهوكې وغيره په معنى كښې استعماليږي، ارشاد دې **زخرف القول غرورا** ځائسته كړې شوې د دهوكې خبرې.

**قوله والكتاب المبين**: واو قسميه جاره دې، **الكتاب المبين** موصوف د صفت سره مجرور دې، جار مجرور متعلق دې د **اقسم** فعل محذوف، فعل د خپل فاعل او متعلق سره قسم، او انا جعلناه جواب قسم دې،

**قوله اوجدنا الكتاب**: مفسر علام د جعلناه تفسير اوجدنا الكتاب سره كولو كښې د يو اعتراض جواب وركړې دې،

**اعتراض**: جعل د قرآن په مجعول كيدو باندې دلالت كوي، او مجعول مخلوق وي، لهذا ددې نه د قرآن مخلوق كيدل لازميږي، كومه چې د معتزلو عقيده نظريه ده، او څنگه چې الله تعالى اوفرمائيل **وجعل الظلمات والنور** الله تعالى نور او تياره پيدا كړه، حالانكه دا د اهل السنت والجماعت د عقيدې نه خلاف ده، د اهل سنت او والجماعت په نيز كلام نفسي د صفت خداوندى كيدو د وجې نه غير مخلوق او قديم دې،

**جواب**: د جواب ماحصل دا دې چې جعل د خلق سره خاص نه دې، بلكه په قرآن كريم كښې هم د نورو معانو د پاره استعمال شوې دې، مثلا د بعث په معنى كښې استعمال شوې دې، لكه د الله تعالى قول **وجعلنا معه اخاه هارون وزيرا** او جعل په معنى د قال هم مستعمل دې، لكه د الله تعالى قول دې، **وجعلوا له من عباده جزءا** يعنى مشركانو د هغه په بندگانو كښې بعضو ته د هغه جز وئيلې دې، يا د جزء كيدو عقيده ئې ساتلې ده، او جعل په معنى د صير هم مستعمل دې، **كقوله تعالى وجعلنا على قلوبهم اكنة** مونږ د هغوى په زړونو باندې پردې واچولې، دلته د جعلنا تفسير د صيرناه په ځاې په اوجدناه سره كولو كښې ئې اشاره اوكړه، چې جعل متعدى په يو مفعول سره دې، او هغه د جعلناه مفعولى ضمير دې چې د هغې مرجع كتاب دې، او كتابا عربيا موصوف صفت د جعلناه د مفعولى ضمير نه حال دې، بعضې مفسرينو جعل د صير په معنى كښې اخستلو سره (ه) ضمير مفعول به اول، او قرآنا عربيا موصوف صفت مفعول به ثانى گرځولې دې،

البته زمخشرى جعل په معنى د خلق جائز گرځولې دې، او دا د قرآن د مخلوق كيدو د معتزلو د عقيدې مطابق دې، (اعراب القرآن)

**قوله وانه في ام الكتاب**: ددې عطف په جواب قسم باندې دې، دغه شان دا دويم جواب

قسم دې، علامه محلی مثبت محذوف منلو سره اشاره اوکړه چې في ام الکتاب جارمحرور سره ملاویدو سره د (ان) خبر دې، او لدينا دفي ام الكتاب نه بدل دې، او په معنی د عند دې، او لعلي حكيم د ان خبر ثاني دې، او ام الکتاب په معنی د اصل کتاب، یعنی لوح محفوظ دې،

**قوله**: افنضرب: همزه محذوف باندې داخله ده، او فاء عاطفه ده، تقدیری عبارت دا دې امهلكم فنضرب الخ، استفهام انكاري دې، چې د هغې طرف ته مفسر علام د کلام په آخر کنبې (لا) محذوف منلو سره اشاره کړې ده، یعنی د قرآن نه ستاسو د اعراض کولو د وجې نه مونږ د قرآن د نزول سلسله موقوف کوو نه، بلکه د نزول سلسله به جاري ساتو د قرآن نزول به مکمل کوو، چې په تاسو باندې حجت پوره شي،

**قوله**: نمسك: مفسر علام د نضرب تفسیر په نمسک سره کولو کنبې ئې اشاره اوکړه چې صفحا دنضرب مفعول مطلق دې، اوصفحا، د امساکا په معنی کنبې دې، اى نمسك امساكا

**قوله**: ان كنتم قوما مسرفين: نافع ان شرطيه ګرځولو سره د همزې په کسرې سره وئیلې دې.

**سوال**: ان شرطیه غیر محقق باندې داخل ده، حالانکه د مشرکینو شرک محقق دې، نو دلته به ان شرطيه څنګه صحیح وی؟

**جواب**: ان شرطیه کله په امر محقق باندې هم داخلیږی، مخاطب ته دا تاثر ورکولو د پاره چې متکلم ته د شرط د وقوع یقین نشته، بلکه هغه د شرط د وقوع په باره کنبې په شک کنبې دې، دا ظاهرولو د پاره چې د داسې قسم فعل صدور د عقل او پوهې والا خلقو نه بعید خبره ده.

او نورو قاریانو ان كنتم د همزې په فتحې سره وئیلې دې، او لام تعلیلیه ئې مقدر ګرځولې دې، تقدیری عبارت دا دې اى لان كنتم قوما مسرفين یعنی آیا مونږ ددې وجې نه چې تاسو د حد نه تجاوز کونکې خلق یئ، د قرآن نازلیدل بند کړو؟ مونږ به داسې او نه کړو.

**قوله**: كم ارسلنا: کم خبریه، د ارسلنا مفعول مقدم دې.

**قوله**: اتاهم: د ياتيهم تفسير په اتاهم سره کولو کنبې ئې اشاره اوکړه چې مضارع په معنی د ماضی ده، د صورت عجیبه په استحضار باندې دلالت کولو د پاره ماضی ئې په مضارع سره تعبیر کړه.

**قوله**: اشدامنهم: دا د موصوف محذوف صفت دې، او موصوف د اهلکنا مفعول دې، او بطشا تمیز دې، تقدیری عبارت دا دې، اهلكنا اشد من قومك من جهة البطش

**قوله** ولئن سألتهم: كښې واؤ عاطفه او قسميه دې، او ان شرطيه دې، ليقولن جواب قسم دې، او جواب شرط محذوف دې، جواب قسم په جواب شرط باندې دلالت كوى. قسم او شرط چې كله يوځائ راشى، نو د اول جواب مذكور وى، هم د دغه مشهورې قاعدې په وجه دلته جواب قسم مذكور او جواب شرط محذوف دې، د جواب شرط د محذوف كيدلو دويمه قرينه دلته دا هم ده چې مفسر علام په ليقولن كښې د نونِ رفع د حذف علت اجتماع د نوناتو گرځولې ده، كه ليقولن جواب د شرط وو نو مفسر علام به حذفت النون للجازم فرمائيلو.

**قوله** زاد تعالى الذى جعل لكم الارض: د زاد تعالى په اضافې سره د مفسر علام مقصد دا خبره ښكاره كول دى چې د مشركينو كلام په العزيز العليم باندې ختم شو، د الذى جعل نه د بارى تعالى كلام شروع شو، ځكه چه كه چرې دا كلام هم دمشركانو وو نو جعل لنا الارض مهدا الخ، به ئې وئيلو.

**قوله** الاصناف: ددې لفظ د اضافې مقصد د الازواج د معنې تعيين كول دى، ځكه چې الازواج دلته په مشهور معنى (جوړا) كښې استعمال شوې نه دې، بلكه مطلقا د انواعو او اقسامو په معنى كښې دې.

**قوله** افأنشرنا: په دې كښې التفات عن الغيبت الى التكلم دې.

**قوله** حذف العائد: الخ، ماتركبون، ماموصول، تركبون جمله صله، قاعده دا ده چې كله صله جمله وى، نو په دې كښې يو ضمير خامخا وى، كوم چې د موصول طرف ته راجع وى، دلته هغه د اختصار په توگه باندې حذف كړې شوې دې. د ماتركبون تعلق چونكه فلك او انعام دواړو سره دې، په دې وجه چې كله د ماتركبون تعلق د الفلك سره وى، نو عائد به فيه محذوف وى، ځكه چه ركبت فى الفلك وئيلې شى نه چه ركبت الفلك، او كله چه ددې تعلق د انعام سره وى نو عائدبه منصوب وى، ځكه چه ركبت الابل مستعمل دې، نه چې ركبت على الابل.

**قوله** ذكر الضمير: مفسر علام د ظهوره په باره كښې وئيل غواړى چې ظهوره كښې ئې (ه) ضمير مذكر او ظهور جمع راوړې دې، ظهور د ظهر جمع ده، په معنى د (شا) د انعام شا مراد ده، او د (ه) ضمير نه هم د انعام مراد دې، په دواړو كښې مطابقت نشته، حالانكه مراد د دواړو نه يو دې، ددې جواب مفسر علام دا وركړې دې چې دا فرق د (ما) د لفظ او د معنى د فرق د وجې نه دې، لفظ (ما) جونكه مفرد دې ځكه ضمير ئې مفرد مذكر راوړو، او معنىٰ چونكه جمع ده ځكه ئې ظهور جمع راوړو.

**تنبيه** مفسر علام كه د ذكر الضمير په ځائې افرد الضمير فرمائيلې وو نو ډيره به ښه وه، ځكه

چې د جمع په مقابله کښې مفرد راځي نه چې مذکر، او که په دواړو کښې د ما د معنې رعایت وی وو نو علی ظهورها به وو، او که په دواړه ځایونو کښې د لفظ رعایت شوي وو نو ظهره به وو.

**قوله**: مقرنین: ای مطیقین ماخوذ من اقرن الشیء اذا اطاقه

**[اياتونه: ١٨ - ٢٥]**

{أَمْ} بِمَعْنَى هَمْزَة الْإِنْكَار وَالْقَوْل مُقَدَّر أَيْ أَتَقُولُونَ {اتَّخَذَ مِمَّا يَخْلُقُ بَنَاتٍ} لِنَفْسِهِ {وَأَصْفَاكُمْ} أَخْلَصَكُمْ {بِالْبَنِينَ} اللَّازِم مِنْ قَوْلِكُمْ السَّابِق فَهُوَ مِنْ جُمْلَة الْمُنْكَر {وَإِذَا بُشِّرَ أَحَدُهُمْ بِمَا ضَرَبَ لِلرَّحْمَٰنِ مَثَلًا} جَعَلَ لَهُ شَبَهًا بِنِسْبَةِ الْبَنَات إِلَيْهِ لِأَنَّ الْوَلَد يُشْبِه الْوَالِد الْمَعْنَى إِذَا أُخْبِرَ أَحَدهمْ بِالْبِنْتِ تُولَد لَهُ {ظَلَّ} صَارَ {وَجْهُهُ مُسْوَدًّا} مُتَغَيِّرًا تَغَيُّر مُغْتَمّ {وَهُوَ كَظِيمٌ} مُمْتَلِئ غَمًّا فَكَيْفَ يَنْسُب الْبَنَات إِلَيْهِ تَعَالَى عَنْ ذَلِكَ {أَوَ} هَمْزَة الْإِنْكَار وَاو الْعَطْف بِجُمْلَةٍ أَيْ يَجْعَلُونَ لِلَّهِ {مَنْ يُنَشَّأُ فِي الْحِلْيَةِ} الزِّينَة {وَهُوَ فِي الْخِصَامِ غَيْرُ مُبِينٍ} مُظْهِر الْحُجَّة لِضَعْفِهِ عَنْهَا بِالْأُنُوثَةِ {وَجَعَلُوا الْمَلَائِكَةَ الَّذِينَ هُمْ عِبَادُ الرَّحْمَٰنِ إِنَاثًا أَشَهِدُوا} حَضَرُوا {خَلْقَهُمْ سَتُكْتَبُ شَهَادَتُهُمْ} بِأَنَّهُمْ إِنَاث {وَيُسْأَلُونَ} عَنْهَا فِي الْآخِرَة فَيَتَرَتَّب عَلَيْهِمْ الْعِقَاب {وَقَالُوا لَوْ شَاءَ الرَّحْمَٰنُ مَا عَبَدْنَاهُمْ} أَيْ الْمَلَائِكَة فَعِبَادَتنَا إِيَّاهُمْ بِمَشِيئَتِهِ فَهُوَ رَاضٍ بِهَا قال تعالى {مَا لَهُمْ بِذَٰلِكَ} الْمَقُول مِنْ الرِّضَا بِعِبَادَتِهَا {مِنْ عِلْمٍ إِنْ} مَا {هُمْ إِلَّا يَخْرُصُونَ} يَكْذِبُونَ فِيهِ فَيَتَرَتَّب عَلَيْهِمْ الْعِقَاب بِهِ {أَمْ آتَيْنَاهُمْ كِتَابًا مِنْ قَبْلِهِ} أَيْ الْقُرْآن بِعِبَادَةِ غَيْر اللَّه {فَهُمْ بِهِ مُسْتَمْسِكُونَ} أَيْ لَمْ يَقَع ذَلِكَ {بَلْ قَالُوا إِنَّا وَجَدْنَا آبَاءَنَا عَلَىٰ أُمَّةٍ} مِلَّة {وَإِنَّا} مَاشُونَ {عَلَىٰ آثَارِهِمْ مُهْتَدُونَ} بِهِمْ وَكَانُوا يَعْبُدُونَ غَيْر اللَّه {وَكَذَٰلِكَ مَا أَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ فِي قَرْيَةٍ مِنْ نَذِيرٍ إِلَّا قَالَ مُتْرَفُوهَا} مُتَنَعِّمُوهَا مِثْل قَوْل قَوْمك {إِنَّا وَجَدْنَا آبَاءَنَا عَلَىٰ أُمَّةٍ} ملة {وإنا على آثارهم مقتدون} متبعون {قل} لهم {أ} تتبعون ذلك {ولو جِئْتُكُمْ بِأَهْدَىٰ مِمَّا وَجَدْتُمْ عَلَيْهِ آبَاءَكُمْ قَالُوا إِنَّا بِمَا أُرْسِلْتُمْ بِهِ} أَنْتَ وَمَنْ قَبْلك {كافرون} قَالَ تَعَالَى تَخْوِيفًا لَهُمْ {فَانْتَقَمْنَا مِنْهُمْ} أَيْ مِنْ الْمُكَذِّبِينَ لِلرُّسُلِ قَبْلك {فانظر كيف كان عاقبة المكذبين}

**ترجمه**: آیا الله تعالی د خپل مخلوق نه لورياني د ځان د پاره نيولي دی او تاسو ئې په ځامنو سره غوره کړئ؟ دا خبره ستاسو د مخکښيني قول نه لازميږی، په {ام} کښې همزه د استفهام د پاره ده، او قول مقدر دے، ای اتقولون، واصفاكم بالبنين عطف په اتخذ باندې کيدو د وجې نه تول منکر او مذموم دے، حالانکه په دوی کښې چه يو کس ته ددې ځيز (لور) خبر ورکړې شی، چې د هغه تشبيه هغوی الله رحمن د پاره بيان کړې ده، د لوريانو د هغه طرف ته په نسبت کولو سره د هغه تشبيه ئې اوګرځولو، ځکه چې ولد د والد په شان وی، معنی دا ده چې کله ددوی په کور کښې د پيدا شوې جينئ خبر ورکړې شی نو د هغه مخ د پريشانه کس په شان بدل شی او تور شی، په داسې حال چې هغه د غم نه ډک وی، نو بيا هغه د لوريانو

نسبت د الله طرف ته ولې کوی،؟ الله تعالى خو ددې نه اوچت دې، او همزه د انکار د پاره، او واو عاطفه د حملې د عطف د پاره دې، يعنى آيا دا خلق هغوى لره د چا پرورش په کالو، زينت کښې شوې دې، او د جهګړې په وخت خپله خبره ښکاره نه کړې شى، د الله د پاره ثابتوى، يعنى د ښځه کيدو په وجه او د کمزورې کيدو په وجه خپل دعوى ښکاره کولې نشى، او دوى فرشتو لره کومې چې د رحمان بندګانې دى ښځې ګرځولى دى، آيا ددوى د پيدائش په وخت دوى موجود وو، ددوى دا ګواهى چې هغوى ښځې دى او به ليکلې شى، او دې باره کښې ددوى نه د آخرت په ورځ تپوس کولې شى، او په دې ګواهئ باندې به سزا ورکولې شى او دوى به وائى چې که الله غوښتله نو مونږ به ددوى (فرشتو) عبادت نه کولو، نو زمونږ د فرشتو عبادت کول د الله د خوښې مطابق دى، او هغه په دې راضى دې، الله تعالى اوفرمائيل دوى ته ددې يعنى ددوى په عبادت د الله رضامندئ باره کښې هيڅ خبر نشته، دوى خو صرف د اټکل خبرې کوى، يعنى دروغ وائى، ددې دروغو په وجه به دوى ته سزا ورکولې شى، آيا مونږ دوى ته ددې قرآن نه مخکښې بل کتاب ورکړې دې چې د غير الله د عبادت د جواز باره کښې وى، چې هغې لره دوى په مضبوطئ سره نيولې دې، يعنى داسې شوې نه ده، بلکه دوى خو وائى چې مونږ خپل پلار نيکه په يو مذهب باندې موندلې دى، او مونږ خو بې شکه د هغوى په نقش قدم باندې ځو، هم د هغه په وجه مو هدايت موندلې دې، حالانکه هغوى د غير الله بندګى کوله، دغه شان ستا نه مخکښې مونږ چې کوم کلى والاته يو ويرونکې ليږلو، نو د هغه ځائې مالدارو خلقو د ستاسو د قوم په شان جواب ورکړو، چې مونږ خپل پلار نيکه په يو دين باندې موندلى دى، او مونږ د هغوى په نقش قدم باندې روان يو، اې نبى ﷺ تاسو دوى نه اووائې، چې آيا تاسو د خپل قوم ددې خبرې تابعدارى کوئ، اګرچې ما تاسو ته ددې نه ښه طريقه راوړې ده، په کوم باندې چې تاسو خپل پلار نيکه موندلې دې، نو هغوى جواب ورکړو چې مونږ ددې منکر يو، په کوم سره چې تاسو او ستاسو نه مخکښې رالېږلې شوې وو، الله تعالى ددوى د ويرولو د پاره اووئيل مونږ ددوى نه يعنى ستا نه مخکښې د رسولانو تکذيب کونکو نه انتقام واخستلو، اوګوره د نه منونکو خلقو څنګه انجام شو؟

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله**: اللازم من قولكم السابق: د قول سابق نه مراد د مشرکين مکه قول الملائكة بنات الله دې، يعنى فرشتې ئې چې کله د الله لوريانې اوګرځولې نو دې نه دا خبره خپله لازم شوه چې خامن ددې وويونکو د پاره مخصوص دى، لهذا د مشرکين مکه قول واصفاكم بالبنين هم، کوم چې ددوى د مخکښې قول د پاره لازم دې، منکر او مذموم کيدل ثابت شول.

**قوله**: بما ضرب: ما موصوله نه بنات مراد دى، او ضرب په معنى د جعل دې، څنګه چې

شارح جعل مقدر گرځولو سره اشاره کړې ده، چې د جعل مفعول اول (ه) ضمير محذوف دې کوم چې د موصول عائد هم دې، اى ضربه او مثلا مفعول ثانى دې، په معنى د شبها دې، تقديرى عبارت دا دې اى جعل البنات له شبها يعنى د بناتو د الله طرف ته نسبت کولو و وجې ئې بنات د الله سره مشابه اوګرځولې، ځکه چې اولاد د والد په مشابه وى.

قوله: او: همزه دانکار دپاره ده، او واؤ د عطف جملې على الجمله دې، بجملة کښې باء په معنى دلام ده، بجملة د عطف سره متعلق دې، او د معطوف محذوف دې، او معطوف عليه هم محذوف دې، او هغه يجترؤن دې، تقديرى عبارت دا دې ويجترئون ويجعلون لله من ينشأ فى الحلية

قوله: ينشوأ: واحد مذکر غائب فعل مضارع مجهول، مصدر تنشئة، پرورش موندل، (تفعيل) هغه پرورش حاصلوى، دا ترجمه د (من) د لفظ د اعتبار کولو په صورت کښې ده، او د معنى اعتبار کولو په صورت کښې (هغوى پرورش حاصلوى) ترجمه وى.

قوله: غير مبين: مظهر الحجة د مبين تفسير په مظهر سره کولو کښې ئې اشاره اوکړه چې مبين دلته د أبان (متعدى) نه دې.

قوله: وجعلوا الملائكة: دلته جعل په معنى د قال او حکم دې، وئيلې شى جعلت زيدا اعلم الناس د زيد په باره کښې ما د اعلم الناس حکم اولګولو.

قوله: لو شاء الرحمن: د شاء مفعول محذوف دې، اى لو شاء الرحمن عدم عبادة الملائكة ما عبدناهم،

قوله: انا ماشون على اثارهم: ماشون مقدر منلو سره ئې اشاره اوکړه چې على اثارهم، د ماشون محذوف متعلق کيدو سره د انا خبر دې،

قوله: كذلك: اى الامر كما ذكر، يعنى ښځې عام طور سره په حجت کښې عاجزې او کمزورې وى، ما ارسلنا جمله مستانفه ده، اتتبعون ده دې خبرې طرف ته اشاره ده چې همزه په فعل محذوف باندې داخل ده، او واؤ حاليه ده، اى اتقتدون باباءكم، ولو جئتكم باهدى الخ، اى بدين اهدى واصوب مما وجدتم الخ، د اسم تفضيل استعمال ارخاء عنان او د مخاطب خبرې له زياتولو په طور ده، ګنى ددوى په دين او طريقه کښې د سر نه هدايت بالکل نشته.

[اياتونه: ۲٦-۲٥]

(و) اذكر (اذ قال ابراهيم لابيه وقومه انني براء) اي بريء (مما تعبدون) (الا الذي فطرني) خلقني (فانه سيهدين) يرشدني لدينه (وجعلها) أيْ كَلِمَة التَّوْحِيد الْمَفْهُومَة مِنْ قَوْله إنِّي ذَاهِب إلَى رَبِّي سَيَهْدِينِ (كَلِمَة بَاقِيَة فِي عَقِبه) ذُرِّيَّته فَلَا يَزَال فِيهِمْ مَنْ يُوَحِّد اللّه (لَعَلَّهُمْ) أيْ أهْل مَكَّة (يَرْجِعُونَ) عَمَّا هُمْ عَلَيْهِ إلَى

دِين إِبْرَاهِيم أَبِيهِمْ (بَلْ مَتَّعْت هَؤُلَاءِ) الْمُشْرِكِينَ (وَآبَاءَهُمْ) وَلَمْ أُعَاجِلهُمْ بِالْعُقُوبَةِ (حتى جاءهم الحق) الْقُرْآن (وَرَسُول مُبِين) مُظْهِر لَهُمْ الْأَحْكَام الشَّرْعِيَّة وَهُوَ مُحَمَّد صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (ولما جاءهم الحق) القرآن (قالوا هذا سحر وإنا به كافرون) (وَقَالُوا لَوْلَا) هَلَّا (نُزِّلَ هَذَا الْقُرْآن عَلَى رَجُل مِنْ) أَهْل (الْقَرْيَتَيْنِ) مِنْ أَيَّة مِنْهُمَا (عَظِيم) أَيْ الْوَلِيد بْن الْمُغِيرَة بِمَكَّة أَوْ عُرْوَة بْن مَسْعُود الثَّقَفِيّ بِالطَّائِفِ (أَهُمْ يَقْسِمُونَ رَحْمَةَ رَبِّك) النُّبُوَّة (نَحْنُ قَسَمْنَا بَيْنهمْ مَعِيشَتهمْ فِي الْحَيَاة الدُّنْيَا) فَجَعَلْنَا بَعْضهمْ غَنِيًّا وَبَعْضهمْ فَقِيرًا (وَرَفَعْنَا بَعْضهمْ) بِالْغِنَى (فَوْق بَعْض دَرَجَات لِيَتَّخِذ بَعْضهمْ) الْغَنِيّ (بَعْضًا) الْفَقِير (سُخْرِيًّا) مُسَخَّرًا فِي الْعَمَل لَهُ بِالْأُجْرَةِ وَالْيَاء لِلنَّسَبِ وَقُرِئَ بِكَسْرِ السِّين (وَرَحْمَة رَبّك) أَيْ الْجَنَّة (خَيْر مِمَّا يَجْمَعُونَ) فِي الدُّنْيَا (وَلَوْلَا أَنْ يَكُون النَّاس أُمَّة وَاحِدَة) عَلَى الْكُفْر (لَجَعَلْنَا لِمَنْ يَكْفُر بِالرَّحْمَنِ لِبُيُوتِهِمْ) بَدَل مِنْ لِمَنْ (سُقُفًا) بِفَتْحِ السِّين وَسُكُون الْقَاف وَبِضَمِّهِمَا جَمْعًا (مِنْ فِضَّة وَمَعَارِج) كَالدَّرَجِ مِنْ فِضَّة (عَلَيْهَا يَظْهَرُونَ) يَعْلُونَ إِلَى السَّطْح (ولبيوتهم أبوابا) من فضة (و) جَعَلْنَا لَهُمْ (سُرُرًا) مِنْ فِضَّة جَمْع سَرِير (عليها يتكئون) (وَزُخْرُفًا) ذَهَبًا الْمَعْنَى لَوْلَا خَوْف الْكُفْر عَلَى الْمُؤْمِن مِنْ إِعْطَاء الْكَافِر مَا ذُكِرَ لَأَعْطَيْنَاهُ ذَلِكَ لِقِلَّةِ خَطَر الدُّنْيَا عِنْدنَا وَعَدَم حَظّه فِي الْآخِرَة فِي النَّعِيم (وَإِنْ) مُخَفَّفَة مِنْ الثَّقِيلَة (كُلّ ذَلِكَ لَمَا) بِالتَّخْفِيفِ فَمَا زَائِدَة وَبِالتَّشْدِيدِ بِمَعْنَى إِلَّا فَإِنْ نَافِيَة (مَتَاع الْحَيَاة الدُّنْيَا) يَتَمَتَّع بِهِ فِيهَا ثُمَّ يَزُول (وَالْآخِرَة) الجنة (عند ربك للمتقين)

**ترجمه:** او د هغه وخت تذکره اوکړه چې کله ابراهیم علیه السلام خپل پلار او خپل قوم ته اووئیل چې څه د هغه څیزونو نه بیزاره یم د څه چې تاسو عبادت کوئ، سوا د هغه ذات نه چا چې څه پیدا کړم، او هم هغه به ماته د خپل دین هدایت راکوی، او هغې لره یعنی کلمۀ توحید لره کومه چې د هغه د قول انني براء مما تعبدون نه معلومیږی، په خپل اولاد کښې د باقی پاتې کیدو خبره ئې اوکړه، چنانچه همیشه به په هغوی کښې توحید پرست خلق وی، چې اهل مکه خپل موجوده دین پریږدی او د خپل پلار نیکه ابراهیم علیه السلام دین طرف ته راشی، بلکه ما دې مشرکانو او ددوی پلارانو ته د راحت سامان ورکړو، او د دوی په سزا کښې مو جلدی اونکړه تردې چې دوی ته حق یعنی قرآن او احکام شرعیه ښکاره کولو والا رسول او هغه محمد صلی الله علیه وسلم دې راغلو او دوی ته حق قرآن رارسیدو سره دوی اووئیل چې دا خو جادو دې، او مونږ ددې نه انکار کونکې یو، او وئې وئیل چې دا قرآن په دې دواړو کلو کښې د یو کلی په یو لوئې سړی یعنی مکه کښې په ولید بن مغیره او په طائف کښې عروه بن مسعود ثقفی باندې ولې نازل نه کړې شو؟ آیا ستا د رب رحمت نبوت دوی تقسیموی،؟ حالانکه ددوی د دنیا د ژوند رزق په خپله مونږ ددوی په مینځ کښې تقسیم کړو، نو مونږ په دوی کښې بعضو لره مالداره او بعضو لره فقیران کړل، او مونږ بعضو لره په بعضو باندې په مالداری کښې درجه په درجه اوچتوالې ورکړو چې ددوی بعض یعنی مالدار د بعضو نه یعنی غریبانو نه په اجرت باندې کار اخلی، او په سخریا کښې یاء نسبتی ده، او په یو قراءت کښې د سین په کسرې سره دې، او ستا د رب رحمت

يعنى جنت هغه څه نه ډير بهتر دي، څه دوى په دنيا كښې راجمع كوى، او كه دا خبره نه وه چې ټول خلق به په يو طريقه باندې يعنى په كفر باندې شي، نو د رحمن باندې كفر كولو والا خلقو د كورونو چتونو لره او زينونو لره هم چې د هغې په ذريعه دوى چهتونو ته خيژى، د سپينو به مو جوړې كړې وې، لبيوتهم د (من) نه بدل دې، او سقفا د سين په فتحې سره، او د قاف سكون، او دواړو په ضمو سره، او ددوى د كورونو دروازې د سپينو او ددوى تختونه هم د شپينو به مو كړې وى، سرره د سرير جمع ده، چې په څه دوى ډډه وهى، او د سرو زرو هم، مطلب دا چې دا ذكر شوى خيزونه كافرو ته وركولو كښې د مومن په باره كښې د كفر ويره نه وه نو دا ټول هر څه به مونږ هغوى ته وركړى وى، او دا به زمونږ په نيز د دنيا د قدر كولو د وجې، او د كافرو د آخرت په نعمتونو كښې د څه حصه نه لرلو په وجه وو، او دا ټول د دنيا معمولى شان فائده وه، چې د هغې په دنيا كښې فائده اخستلې شى بيا ختم شى، ان ثقيله نه مخففه ده، او په لما تخفيف او تشديد سره د الا په معنى كښې دې، لهذا (ان) نافيه ده، او آخرت (جنت) ستا د رب په نيز د متقيانو خلقو د پاره دې.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله**: براء: مصدر، بيزاره كيدل، نفرت كول، مفسر علام په برى سره تفسير كولو كښې اشاره اوكړه چې براء برئ صيغه د صفت بروزن فعيل ده. د بيزارئ اظهار كولو والا، مصدر چې كله صفت واقع شى، نو واحد، تثنيه، جمع مذكر مؤنث ټول برابر وى.

**قوله**: الا الذي فطرني: په دې كښې درې صورتونه كيدې شى، ① مشتثنى منقطع، اى لكن الذي فطرني، دا به په هغه صورت كښې وى چې دوى صرف د بتانو بندگى كوى، ② مستثنى متصل، په دې صورت كښې كله چې دوى بتانو لره د الله شريكان جوړوى، ③ الا صفتى په معنى د غير، دا د زمخشرى قول دې.

**قوله**: جعلها: اى كلمة التوحيد المفهوم الخ

**سوال**: اى كلمة التوحيد اضافه كولو مقصد دا دې چې د جعلها د ضمير مرجع څه ده؟ كه كلمة وى نو دا په ماقبل كښې ذكر نه ده؟

**جواب**: كلمة په ماقبل كښې اگرچې مذكور نه ده، خو دابراهيم عليه السلام د قول انني براء مما تعبدون نه مفهوم ده.

**قوله**: بل هؤلاء المشركين: بل اضراب انتقالى د دوى په عدم اتباع باندې د توبيخ او تقريع (رټنې) د پاره دې، هؤلاء اسم اشاره، ددې مشار اليه مشركين دى، كوم چې د حضور ﷺ په زمانه كښې موجود وو.

**قوله**: حتى جاءهم الحق: دا د محذوف غايت دي، تقديرى عبارت دادي بل متعت هؤلاء فاشتغلوا بذلك التمتع حتى جاءهم الحق

**قوله**: معارج، معرج، د ميم په فتحې او كسرې سره، جمع ده، سيړۍ (اندرپايه) د معارج وئيلو وجه دا ده چې په سيړهو باندې د گوډ په شان ختل كيږي، او گوډ ته هم اعرج وئيلې شي.

**قوله**: سررا: دا د فعل محذوف مفعول دي، څنګه چه مفسر جعلناه محذوف منلو سره اشاره اوكړه، ددې عطف په جعلنا لمن يكفر باندې دې.

**قوله**: زخرفا: دا د جعلنا فعل مقدر د وجې نه منصوب دې، اى جعلنا لهم مع ذلك زخرفا، يا د نزع خافض د وجې نه منصوب دې، تقديرى عبارت دا دې، اى ابوابا وسررا من فضة ومن ذهب د من حذف كيدو د وجې نه زخرفا منصوب شو.

**قوله**: وان كل ذلك: ان نافيه دې، او كل ذلک مبتدأ، او لمّا په تشديد سره په معنى د الا، او متاع الحيوة الدنيا ددې خبر، لما تخفيف سره وئيلې شوې دې، په دې وخت كښې به ان مخففه عن الثقيله مهمله وى، او لام به د ان مخففه او نافيه په مينځ كښې فارقه وى، او (ما) به دلته زائده وى،

**قوله**: والاخرة: واؤ حاليه دې، اخره مبتدأ، عند ربك متقين د محذوف متعلق د مبتدأ خبر دې،

[اياتونه: ٣٦-٤٥]

(وَمَنْ يَعْشُ) يَعْرِض (عَنْ ذِكْرِ الرَّحْمَٰنِ) أَيِ الْقرآن (نُقَيِّضْ) نُسَبِّب (لَهُ شَيْطَانًا فَهُوَ لَهُ قَرِينٌ) لَا يُفَارِقُهُ (وَإِنَّهُمْ) أَيِ الشَّيَاطِين (لَيَصُدُّونَهُمْ) أَيِ الْعَاشِينَ (عَنِ السَّبِيلِ) اَيْ طَرِيق الْهُدَى (وَيَحْسَبُونَ أَنَّهُمْ مُهْتَدُونَ) فِي الْجَمْع رِعَايَة مَعْنَى مَنْ (حَتَّىٰ إِذَا جَاءَنَا) الْعَاشِي بِقَرِينِهِ يَوْم الْقِيَامَة (قَالَ) له (يَا) للتنبيه (ليت بَيْنِي وَبَيْنَك بُعْدَ الْمَشْرِقَيْنِ) أَيْ مِثْل بُعْد مَا بَيْن الْمَشْرِق وَالْمَغْرِب (فَبِئْسَ الْقَرِينُ) أَنْتَ لِي قال تعالى (وَلَنْ يَنْفَعَكُمُ) أَيِ الْعَاشِينَ تَمَنِّيكُمْ وَنَدَمكُمْ (الْيَوْمَ إِذْ ظَلَمْتُمْ) أَيْ تَبَيَّنَ لَكُمْ ظُلْمكُمْ بِالْإِشْرَاكِ فِي الدُّنْيَا (أَنَّكُمْ) مَعَ قُرَنَائِكُمْ (فِي الْعَذَابِ مُشْتَرِكُونَ) عِلَّة بِتَقْدِيرِ اللَّام لِعَدَمِ النَّفْع وَإِذْ بَدَل مِنَ الْيَوْم (أَفَأَنْتَ تُسْمِعُ الصُّمَّ أَوْ تَهْدِي الْعُمْيَ وَمَنْ كَانَ فِي ضَلَالٍ مُبِينٍ) بَيِّن أَيْ فَهُمْ لَا يؤمنون (فَإِمَّا) فِيهِ إِدْغَام نُون إِنْ الشَّرْطِيَّة فِي مَا الزَّائِدَة (نَذْهَبَنَّ بِكَ) بِأَنْ نُمِيتك قَبْل تَعْذِيبهمْ (فَإِنَّا مِنْهُمْ مُنْتَقِمُونَ) فِي الْآخِرَة (أَوْ نُرِيَنَّكَ) فِي حَيَاتك (الَّذِي وَعَدْنَاهُمْ) بِهِ مِنَ الْعَذَاب (فَإِنَّا عَلَيْهِمْ) عَلَى عَذَابهمْ (مُقْتَدِرُونَ) قادرون (فَاسْتَمْسِكْ بِالَّذِي أُوحِيَ إِلَيْكَ) اي القرآن (إِنَّكَ عَلَىٰ صِرَاطٍ) طريق (مُسْتَقِيمٍ) (وَإِنَّهُ لَذِكْرٌ) لَشَرَف (لَكَ وَلِقَوْمِكَ) لِنُزُولِهِ بِلُغَتِهِمْ (وَسَوْفَ تُسْأَلُونَ) عَنِ الْقِيَام بِحَقِّهِ (وَاسْأَلْ مَنْ أَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رُسُلِنَا

أَجَعَلْنَا مِنْ دُونِ الرَّحْمَنِ} أَيْ غَيْرِه {آلِهَةً يعبدون} قيل هُوَ عَلَى ظَاهِرِه بِأَنْ جَمَعَ لَهُ الرُّسُلَ لَيْلَةَ الْإِسْرَاءِ وَقِيلَ الْمُرَادُ أُمَمٌ مِنْ أَيْ أَهْلِ الْكِتَابَيْنِ وَلَمْ يَسْأَلْ عَلَى وَاحِدٍ مِنَ الْقَوْلَيْنِ لِأَنَّ الْمُرَادَ مِنَ الْأَمْرِ بِالسُّؤَالِ التَّقْرِيرُ لِمُشْرِكِي قُرَيْشٍ أَنَّهُ لَمْ يَأْتِ رَسُولٌ مِنَ اللهِ وَلَا كِتَابٌ بِعِبَادَةِ غَيْرِ اللهِ

**ترجمه**: او كوم كس چې د رحمن د ذكر يعنى د قرآن نه اعراض اوكړى نو مونږ په هغه باندې يو شيطان مقرر كوو، نو هغه هر وخت هغه سره وى، د هغه نه جدا كيږى نه. او بې شكه هغه شيطانان دې اعراض كونكو لره د هدايت د لارې نه بندوى، او دا خلق داګڼرى چې دوى هدايت والا دى، په جمع راوړلو كښې د (من) د معنى رعايت دې، تر دې چې كله به هغه اعراض كونكې د خپل ملګرى سره د قيامت په ورځ زمونږ مخې ته راشى، نو خپل ملګرى ته به اووائى چې كاش زما او ستا په مينځ كښې د مشرق او مغرب لرې والې وى، يعنى خومره چې د مشرق او مغرب په مينځ كښې لرې والې دې، ياء د تنبيه د پاره ده، ته زما ډير خراب ملګرې يې، اې اعراض كونكو نن به هيڅ كله تاسو ته ستاسو خواهش او پشيمانى فائده ورنكړى، حالانكه تاسو ظالمان ګرځولى شوى يئ يعنى په دنيا كښې شرك كولو سره ستاسو ظلم ښكاره شو ځكه چه تاسو به دخپلو ملګرو سره په عذاب كښې شريك يئ دا په تقدير د لام سره د عدم نفع علت دې، او (اذ) د اليوم نه بدل دې، آيا ته كڼړو ته اورولې شې، يا ړندو ته لار خودلې شې، او هغه چاته چې په ښكاره ګمراهئ كښې وى، يعنى هغوى ايمان نه راوړى، پس كه چرې مونږ تاسو د دې ځائې نه (دنيا نه) وفات كولو سره دوى ته د عذاب وركولو نه مخكښې بوځو، نو بيا هم مونږ په آخرت كښې ددوى نه بدله اخستونكى يو، يا چې د كوم عذاب وعده مونږ دوى سره كړې ده، هغه تاسو ته ستاسو په ژوند كښې اوښايو، مونږ په دې باندې هم قادر يو، نو چې كله وحى قرآن ستاسو طرف ته رالېږلې شوې دې نو تاسو دا په مضبوطئ سره اونيسئ، بې شكه تاسو په صحيح لارې باندې يئ، او يقينا دا ستاسو د پاره او ستاسو د قوم د پاره د شرف باعث دې، ددې كتاب ددوى په ژبه كښې د نازليدو په وجه او ډير زر به تاسو نه د دې د حق ادا كولو په باره كښې سوال اوكړې شى، او زمونږ هغه رسولانو نه تپوس اوكړه كوم چې مونږ تاسو نه مخكښې لېږلې وو، آيا مونږ سوا د رحمن نه بل څوك معبود مقرر كړې دې؟ وئيلې شوى دى چې دا په خپل ظاهر باندې دې، په داسې توګه چې تول رسولان په ليلة الاسراء كښې جمع كړې شوى وو، او وئيلې شوې دى چې مراد د دواړو اهل كتابو نه يو امت دې، او دواړو قولونو كښې د يو قول مطابق هغوى سوال نه وو كړې، ځكه چې د سوال حكم كولو نه مراد د مشركينو د قريش نه اقرار اخستل دى دا چې د الله د طرف نه څوك رسول راغلې دې او نه څه كتاب، چې د غير الله دَ عبادت حكم ئې راوړې وى،

......

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله** يعش: عَشَا يَعْشُو اكدعا يدعو اعَشا وعَشوانه واحد مذكر غائب، اعراض كول، من يعش، څوک چې اعراض اوكړي، (ن) عشوا، اعراض كول، نظر پټول، او فارسۍ كښې چشم پوشيدن، وغافل شدن،

**قوله** نقيض: جواب شرط دې، يعش، فعل شرط مجزوم، بحذف الواو، دواؤ په حذف باندې ضمه دلالت كوى، او من حرف شرط دې،

**قوله** نقيض: نقعل، مضارع جمع متكلم، مونږ مقرركوو، مونږ سبب جوړ وو

**قوله** انهم: د (هم) ضمير مرجع شيطان دې، شيطان چونكه جنس دې څكه ضمير د جمع راوړې شوې دې، او كوم ځائې چې ضمير دمفرد راوړى، هلته د شيطان د لفظ رعايت كړې شوې دې.

**قوله** ويحسبون انهم مهتدون: جمله حاليه ده، د (من) د معنى د رعايت د پاره درې واړه ځايونو كښې د جمع صيغه راوړې شوې ده.

**قوله** بقرينه: اى معقرينه.

**قوله** يا للتنبيه: يا، د تنبيه د پاره هم كيدې شى، ځنګه چې شارح اشاره كړې ده، او يا، ندائيه هم كيدې شى، منادى به محذوف وى، اى يا قرين ليت بينى وبينك الخ

**قوله** تمنيكم وندمكم: معطوف او معطوف عليه د ينفعكم فاعل دې.

**قوله** تبين لكم ظلمكم: ددې عبارت مقصد د يوې شبهې جواب كول دى،

**شبه** ظلم يعنى كفر او شرک په دنيا كښې راغلې دې، ځكه چې (اذ) د ماضى د پاره ظرف دې، او د اليوم نه مراد د قيامت ورځ ده، كوم چې د (اذ) نه بدل دې، لهذا ماضى د حال نه ځنګه بدل راتلې شى،؟

**جواب**: د تبين نه مراد د ظلم ښكاره كيدل دى، او دا به د قيامت په ورځ وى

**[اياتونه: ٤٦ - ٥٦]**

{وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مُوسَى بِآيَاتِنَا إِلَى فِرْعَوْنَ وَمَلَئِهِ} أي القبط {فقال إني رسول رب العالمين} {فلما جاءهم بآياتنا} الدالة على رسالته {إذا هم منها يضحكون} {وَمَا نُرِيهِمْ مِنْ آيَةٍ} مِنْ آيات الْعَذَاب كَالطُّوفَانِ وَهُوَ مَاء دَخَلَ بُيُوتهمْ وَوَصَلَ إِلَى حُلُوق الْجَالِسِينَ سَبْعَة أَيَّام وَالْجَرَاد {إِلَّا هِيَ أَكْبَرُ مِنْ أُخْتِهَا} قَرِينَتهَا الَّتِي قَبْلهَا {وَأَخَذْنَاهُمْ بِالْعَذَابِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ} عَنْ الْكُفْر {وَقَالُوا} لِمُوسَى لَمَّا رَأَوْا الْعَذَاب {يَا أَيُّهَا السَّاحِر} أَيْ الْعَالِم الْكَامِل لِأَنَّ السِّحْر عِنْدهمْ عِلْم عَظِيم {ادْعُ لَنَا رَبَّكَ بِمَا عَهِدَ عِنْدَكَ} مِنْ كَشْف الْعَذَاب عَنَّا إِنْ آمَنَّا

﴿إِنَّنَا لَمُهْتَدُونَ﴾ أي مؤمنون ﴿فَلَمَّا كَشَفْنَا﴾ بدعاء موسى ﴿عَنْهُمُ الْعَذَابَ إِذَا هُمْ يَنْكُثُونَ﴾ ينقضون عهدهم ويصرون على كفرهم ﴿وَنَادَىٰ فِرْعَوْنُ﴾ افتخارًا ﴿فِي قَوْمِهِ قَالَ يَا قَوْمِ أَلَيْسَ لِي مُلْكُ مِصْرَ وَهَٰذِهِ الْأَنْهَارُ﴾ من النيل ﴿تَجْرِي مِنْ تَحْتِي﴾ أي تحت قصوري ﴿أَفَلَا تُبْصِرُونَ﴾ عظمتي ﴿أَمْ﴾ تبصرون وحينئذ ﴿أَنَا خَيْرٌ مِنْ هَٰذَا﴾ أي موسى ﴿الَّذِي هُوَ مَهِينٌ﴾ ضعيف حقير ﴿وَلَا يَكَادُ يُبِينُ﴾ يظهر كلامه للثغة بالجمرة التي تناولها في صغره ﴿فَلَوْلَا﴾ هلا ﴿أُلْقِيَ عَلَيْهِ﴾ إن كان صادقًا ﴿أَسْوِرَةٌ مِنْ ذَهَبٍ﴾ جمع أسورة كأغربة جمع سوار كعادتهم فيمن يسودونه أن يلبسوه أسورة ذهب ويطوقونه طوق ذهب ﴿أَوْ جَاءَ مَعَهُ الْمَلَائِكَةُ مُقْتَرِنِينَ﴾ متتابعين يشهدون بصدقه ﴿فَاسْتَخَفَّ﴾ استفز فرعون ﴿قَوْمَهُ فَأَطَاعُوهُ﴾ فيما يريد من تكذيب موسى ﴿إِنَّهُمْ كَانُوا قَوْمًا فَاسِقِينَ﴾ ﴿فَلَمَّا آسَفُونَا﴾ أغضبونا ﴿انْتَقَمْنَا مِنْهُمْ فَأَغْرَقْنَاهُمْ أَجْمَعِينَ﴾ ﴿فَجَعَلْنَاهُمْ سَلَفًا﴾ جمع سالف كخادم وخدم أي سابقين عبرة ﴿وَمَثَلًا لِلْآخِرِينَ﴾ بعدهم يتمثلون بحالهم فلا يقدمون على مثل أفعالهم

**ترجمه**: او مونږ موسی علیه السلام ته خپلې نښې ورکولو سره فرعون او د هغه سردارانو یعنی قبطیانو ته اولیږلو، نو موسی علیه السلام تلو سره اووئیل چې زه د ټول جهان د پیدا کونکی رسول یم، نو کله چې په خپل رسالت باندې دلالت کونکی زمونږ نښو سره هغوی ته راغې، نو هغوی بې اختیاره په خندا شول، او مونږ چې کومې د عذاب نښې هغوی ته ښودلې، مثلاً د طوفان نښې، او هغه اوبه وې، کومې چې د هغوی په کورونو کښې داخلې شوې وې، او هغه د ناستو خلقو مرو ته اورسیدلې، او دا اووه ورځې وو، او د ملخانو نښې نو هغه به د مخکښنو نورو نښو نه لوئې وې، او مونږ هغوی په عذاب کښې اونیول، چې هغوی د خپل کفر نه منع شی، چې کله هغوی عذاب اولیدلو نو وې وئیل ای کامل عالمه، ځکه چې جادو د هغوی په نیز یو لوئې علم وو ته زمونږ د پاره د هغه څیز دعا اوکړه د څه چې تاسره وعده کړې شوې ده، یعنی د عذاب دلرې کولو، چې مونږ ایمان راورو، یقین اوساته، که مونږ به په نیغه لار روان شو، یعنی ایمان به راورو بیا چې کله مونږ د موسی علیه السلام د دعا په برکت هغه عذاب د هغوی نه لرې کړو نو هغوی به هغه وخت خپل قول او لوظ مات کړو او په خپل کفر باندې به کلک پاتې شول، او فرعون په خپل قوم کښې د فخر په توګه دا اواز اوکړو او وې وئیل چې ای زما قومه آیا د مصر مُلک ځما نه دې؟ او دا نهرونه د نیل د نهر شاخونه ځما د محلونو لاندې بهیږی، تاسو زما عظمت وینئ یا نه وینئ؟ او په دې حالت کښې ځه د دې موسی علیه السلام نه کوم چې ضعیف او سپک دې، ښه یم، او صفا خبرې هم کولې نشی، یعنی ښکاره کلام کولې نشی، د هغه لکنت دو جې کوم چې سکروټې د وجه پیدا شوې وو، کومه چې هغه په ماشوم والی کښې په خله کښې اچولې وه، ځا نو دده په لاسونو کښې د سرو زرو کړئ ولې اچولې شوې نه دی؟ که دې د نبوت په دعوی کښې رشتونې وی، أسارو د أسورة جمع ده، لکه أغربة او أسورة سوار جمع ده، ځکه چې د هغوی طریقه وه، چې کوم کس به هغوی سردار جوړولو، هغه ته به ئې د سرو زرو

کړئ او سروزرو هار اچولو يا ده سره فرشتې مسلسل راغلی وی چه دده گواهی ورکوله، ده خپل قوم لره بيوقوف جوړ کړو، اودوی د هغه خبره اومنله، کومه چې هغه ددوی نه غوښتله، يعنی د موسی علیه السلام تکذيب، يقينا دا ټول خلق نافرمان وو، بيا دوی مونږ ته غصه راوستله، نو مونږ ددوی نه بدله واخستله، او ټول مو غرق کړل، نو مونږ دوی يو تيره شوې قصې پشان جوړ کړل، او نمونهٔ عبرت د روستو خلقو د پاره چې روستو خلق ددوی حالت د مثال په توګه بيانولو، چې د دوی په شان دعملونو د کولو جرات اونکړی.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: فقال انی رسول رب العالمين: په قصې کښې اختصار دی، تفصيل په سورة طه، او سورة القصص کښې دی، د آيت معنی دا ده، فقال انی رسول رب العالمين لتؤمن به وترسل معی بنی اسرائيل

**قوله**: فلما جاءهم بأيتنا: فاء عاطفه ده، ددې په مقدر باندې عطف دی، ای فطلبوا منه آية تدل علی صدقه.

**قوله**: ينكثون: نكثه (ن) جمع مذكر غائب، ماتوی،

**قوله**: سلفاً: مفسر علام جمع سالف وئيلو سره اشاره اوکړه، چې سلفا مصدر نه دی، چې دلته د تاويل ضرورت راشی، بلکه سلفا د سالف جمع ده، څنګه چې خدم د خادم جمع ده.

**[اياتونه: ٥٧ - ٦٧]**

{ولما ضرب} جعل {ابن مريم مثلا} حين نزل قوله تعالى {إنكم وما تعبدون من دون الله حصب جهنم} فقال المشركون رضينا أن تكون آلهتنا مع عيسى لأنه عبد من دون الله {إذا قومك} أي المشركون {منه} من المثل {يصدون} يضحكون فرحا بما سمعوا {وقالوا أآلهتنا خير أم هو} أي عيسى فنرضى أن تكون آلهتنا معه {ما ضربوه} أي المثل {لك إلا جدلا} خصومة بالباطل لعلمهم أن ما لغير العاقل فلا يتناول عيسى عليه السلام {بل هم قوم خصمون} شديدو الخصومة {إن} ما {هو} عيسى {إلا عبد أنعمنا عليه} بالنبوة {وجعلناه} بوجوده من غير أب {مثلا لبني إسرائيل} أي كالمثل لغرابته يستدل به على قدرة الله تعالى على ما يشاء {ولو نشاء لجعلنا منكم} بدلكم {ملائكة في الأرض يخلفون} بأن نهلككم {وإنه} أي عيسى {لعلم للساعة} تعلم بنزوله {فلا تمترن بها} أي تشكن فيها حذف منه نون الرفع للجزم واو الضمير لالتقاء الساكنين {و} قل لهم {اتبعون} على التوحيد {هذا} الذي آمركم به {صراط} طريق {مستقيم} {ولا يصدنكم} يصرفنكم عن دين الله {الشيطان إنه لكم عدو مبين} بين العداوة {ولما جاء عيسى بالبينات} بالمعجزات والشرائع {قال قد جئتكم بالحكمة} بالنبوة وشرائع الإنجيل {ولأبين لكم بعض الذي تختلفون فيه} من أحكام التوراة من أمر الدين وغيره فبين لهم امر الدين {فاتقوا الله

وأطيعون) (إِنَّ اللّٰهَ هُوَ رَبِّي وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوهُ هٰذَا صِرَاطٌ) طريق (مُسْتَقِيمٌ) (فَاخْتَلَفَ الْأَحْزَابُ مِنْ بَيْنِهِمْ) في عيسى اهو الله او ابن الله أو ثالث ثلاثة (فَوَيْلٌ) كلمة عذاب (لِلَّذِينَ ظَلَمُوا) كفروا بما قالوه في عيسى (مِنْ عَذَابِ يَوْمٍ أَلِيمٍ) مؤلم (هَلْ يَنْظُرُونَ) اي كفار مكة اي ما ينتظرون (إِلَّا السَّاعَةَ أَنْ تَأْتِيَهُمْ) بدل من الساعة (بَغْتَةً) فجاة (وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ) بوقت مجيئها قبله (الْأَخِلَّاءُ) على المعصية في الدنيا (يَوْمَئِذٍ) يوم القيامة متعلق بقوله (بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ إِلَّا الْمُتَّقِينَ) المتحابين في الله على طاعته فانهم اصدقاء

**ترجمه**: او چې کله د ابن مریم مثال بیان کړې شو، یعنی چې کله د الله تعالی قول انکم وما تعبدون من دون الله حصب جهنم نازل شو، نو مشرکانو اووئیل چې مونږ په دې خبره باندې راضی یو، چې زمونږ معبود به هم د عیسی علیه السلام سره په جهنم کښې وی، ځکه چې د الله نه علاوه دده هم عبادت کړې شوې دې، نو اې محمد ﷺ ستا مشرک قوم د دې مثال اوریدو سره د خوشحالئ نه چغې کړې، او هغوی اووئیل چې زمونږ معبود بهتر دې یا هغه؛ یعنی عیسی علیه السلام مونږ په دې خبره باندې راضی یو چې زمونږ معبود به د عیسی علیه السلام سره په جهنم کښې وی، په تا باندې ددوی دا اعتراض کول صرف په باطله طریقه باندې د جهګړې کولو په غرض سره دی، ددوی ددې خبرې نه د واقف کیدو د وجې نه، چې (ما) د غیر ذوی العقول د پاره راځی، لهذا په دې کښې عیسی علیه السلام شامل نه دې، بلکه دا خلق دی جهګړمار، سخت جهګړې کونکی دی، عیسی علیه السلام صرف د الله بنده وو، چې په هغه باندې مونږ د نبوت په ذریعه احسان اوکړو، او مونږ هغه بغیر د پلار پیدا کیدو د وجې نه د بنی اسرائیلو پاره د نشان (قدرت) جوړ کړو، یعنی د مثال په شان، په عجیبه طریقې سره د پیدا کیدو د وجې نه، ددې نه د الله په قدرت باندې استدلال کیږی، چې د څه هغه اراده اوکړی، او که مونږ غوښتلو نو ستاسو نه به مو فرشتې پیدا کړې وې، چې ستاسو په ځائې به وې، په داسې توګه چې مونږ به تاسو هلاک کړې وئ، او هغه یعنی عیسی علیه السلام دقیامت د علاماتو نه دې ددوی په نزول سره به د قیامت علم حاصلیږی، لهذا تاسو د قیامت په ورځ کښې شک مه کوئ، نون د رفع د جازم د وجې حذف شو، او واؤ ضمیر د التقاء ساکنین د وجه نه حذف کړې شو، تَمتَرن په معنی د شکن دې، او دوی ته اووایه چې د توحید په باره کښې زما اتباع اوکړئ، هم دغه د څه چې زه تاسو ته حکم درکوم، نیغه لاره ده، او شیطان تاسو د الله د دین نه منع نه کړی، یقینا هغه ستاسو ښکاره دشمن دې، یعنی ښکاره دشمنئ والا دې، او چې کله عیسی علیه السلام معجزې او احکام راوړل، نو وې فرمائیل چې ما تاسو ته نبوت او د انجیل احکام راوړی دی، چې په کومو بعضې څیزونو کښې تاسو اختلاف کوئ هغه ښکاره کړم، مثلاً د تورات دینی احکام، وغیره، نو دغه شان دوی ﷺ هغوی ته د دین معامله ښکاره کړه، نو تاسو د الله نه اویریږئ، او زما خبره اومنئ، بې شکه زما او ستاسو رب هم الله دې، نو تاسو ټول د

الله بندګی اوکړئ، نیغه لار هم دغه ده، نو ډلو په خپل مینځ کښې د عیسی علیه السلام اختلاف اوکړو، آیا هغه الله دې یا د الله ځوی دې، یا د دریو نه دریم دې، نو ظالمانو یعنی د کافرانو د پاره خرابی ده، په وجه د هغه څه چې هغوی د عیسی علیه السلام په باره کښې وئیلې وو، د تکلیف والا ورځې د عذاب نه ویل کلمه د عذاب ده، دا کفار مکه صرف د قیامت په انتظار کښې دی، چې په دوی باندې ناګهانه راشی، (تاتیهم)د ساعة نه بدل دې، او دوی ته به ددې د راتلو د مخکښې نه خبر هم نه وی ددې معصیت په بنیاد باندې په دنیا کښې دوستی کونکی به د یوبل دشمنان جوړشی د یومئذ تعلق بعضهم لبعض عدو سره دې، خو متقیان په به خپل مینځ کښې د یو بل دشمنان نه وی، یعنی د چا دوستی چې د الله د پاره وی هم د هغه په اطاعت به دوی په خپل مینځ کښې دوستان وی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: ضرب ابن مریم مثلا: ای هبه ابن مریم بالاصنام، مفسر علام د ضرب تفسیر په جعل سره کولو اشاره اوکړه چې ضرب په معنی د جعل متعدی په دوو مفعولو سره دې، اولنې مفعول (ابن مریم) دې، کوم چې نائب فاعل دې، او دویم مفعول مثلاً دې، (اذا) مفاجاتیه ده، او قومك مبتدا منه دیصدون متعلق دی،او یصدون جمله خبر دې.

**قوله**: یصدون: د صاد په کسرې سره، مضارع جمع مذکر غائب، (ض) هغوی چغې وهی، د خوشحالئ نه شور کوی، او بعضې حضراتو یصدون د صاد په ضمې سره وئیلې دې، بیا به د صدودنه مشتق وی، یعنی هغوی اعراض کوی.

**قوله**: الاجدلا: ماضربوا مفعول له دې.

**قوله**: هوالله: دا قول د نصارو نه د فرقې یعقوبیې دې، اوابن الله دا قول د نصارو نه د فرقه مرقوسیه دې، اوثالث ثلاثة دا قول د نصارو د دریمې فرقې ملکانیه دې.

**قوله**: الاخلاء: دا د خلیل جمع ده، په معنی د دوست،

**قوله**: علی المعصیة: که اخلاء په معصیت سره مقید کړې شی، ځنګه چې مفسر علام کړې دی، نو الاالمتقین به مستثنی منقطع وی، ځکه چې د متقیانو دوستی د ګناه د وجه نه نه وی، په دې صورت کښې به مستثنی، د مستثنی منه د جنس نه نه وی، او بعضې حضراتو اخلاء نه مطلقا دوست مراد اخستې دې، په دې صورت کښې به متقین هم په مستثنی منه کښې داخل وی، چې د هغې د وجې نه مستثنی متصل وی.

**قوله**: متعلق بقوله بعضهم لبعض عدو: یعنی د یومئذ تعلق په عدو سره دې ځکه چې یومئذ د عدو ظرف مقدم دې.

**سوال:** عدو د صيغه صفت د وجې نه کمزورې عامل دې، دا هغه وخت عمل کوی، چې کله د دې معمول په ترتيب سره يعنی د هغې نه پس واقع وی، حالانکه يومئذ کوم چې د عدوظرف دې، مقدم واقع شوې دې، لهذا عدو به د عامل ضعيف کيدو د وجې نه په يومئذ کښې عمل نه کوی؟

**جواب:** په ظروف کښې چونکه توسع ده، لهذا په دې کښې د تقديم باوجود عاملِ ضعيف هم عمل کولې شي.

**شبه:** د ظرف مقدم کولو نه علاوه د عامل او معمول په مينځ کښې مبتدأ ثاني يعنی بعضهم لبعض،فصل هم راغلې دې؟

**جواب:** د مبتدأ فصل هم د عمل نه مانع نه دې.

**[اياتونه:٦٨-٨٩]**

وَيُقَال لَهُمْ {يَا عِبَادِ لَا خَوْفٌ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ وَلَا أَنتم تحزنون} {الذين آمنوا} نعت لعبادي {بِآيَاتِنَا} القرآن {وكانوا مسلمين} {ادْخُلُوا الْجَنَّةَ أَنتُمْ} مبتدا {وَأَزْوَاجُكُمْ} زَوْجَاتكُمْ {تُحْبَرُونَ} تُسَرُّونَ وَتُكْرَمُونَ خبر المبتدا {يُطَافُ عَلَيْهِم بِصِحَافٍ} بِقِصَاعٍ {مِّن ذَهَبٍ وَأَكْوَابٍ} جَمع كُوب وَهُوَ إِنَاء لَا عُرْوَة لَهُ لِيَشْرَب الشَّارِب مِنْ حَيْثُ شَاءَ {وَفِيهَا مَا تشتهيه الأنفس} تلذذا {وتلذ الأعين} نظرا {وأنتم فيها خالدون} {وتلك الجنة التي أورثتموها بما كنتم تعملون} {لَكُمْ فِيهَا فَاكِهَةٌ كَثِيرَةٌ مِّنْهَا} أَيْ بَعْضهَا {تأكلون} وكل ما يؤكل يخلف بدله {إن المجرمين في عذاب جهنم خالدون} {لَا يُفَتَّرُ} يُخَفَّف {عَنْهُمْ وَهُمْ فِيهِ مُبْلِسُونَ} ساكتون سكوت يأس {وما ظلمناهم ولكن كانوا هم الظالمين} {وَنَادَوْا يَا مَالِكُ} هُوَ خَازِن النَّار {لِيَقْضِ عَلَيْنَا رَبُّكَ} لِيُمِتْنَا {قَالَ} بَعْد أَلْف سَنَة {إنكم ماكثون} مقيمون في العذاب دائما قال تعالى {لَقَدْ جِئْنَاكُم} أَيْ أَهْل مَكَّة {بِالْحَقِّ} عَلَى لِسَان الرسل {ولكن أكثركم للحق كارهون} {أَمْ أَبْرَمُوا} أَيْ كُفَّار مَكَّة أَحْكَمُوا {أَمْرًا} فِي كَيْد مُحَمَّد النَّبِيّ {فَإِنَّا مُبْرِمُونَ} مُحْكِمُونَ كَيْدنَا فِي إِهْلَاكهمْ {أَمْ يَحْسَبُونَ أَنَّا لَا نَسْمَعُ سِرَّهُمْ وَنَجْوَاهُم} مَا يُسِرُّونَ إِلَى غَيْرهمْ وَمَا يَجْهَرُونَ بِهِ بَيْنهمْ {بَلَى} نَسْمَع ذَلِكَ {وَرُسُلُنَا} الْحَفَظَة {لَدَيْهِمْ} عِنْدهمْ {يَكْتُبُونَ} ذَلِكَ {قُلْ إِن كَانَ لِلرَّحْمَٰنِ وَلَدٌ} فَرْضًا {فَأَنَا أَوَّلُ الْعَابِدِينَ} لِلْوَلَدِ لَكِنْ ثَبَتَ أَنْ لَا وَلَد لَهُ تَعَالَى فَانْتَفَتْ عِبَادَته {سبحان رب السماوات وَالْأَرْضِ رَبِّ الْعَرْشِ} الْكُرْسِيّ {عَمَّا يَصِفُونَ} يَقُولُونَ مِنَ الْكَذِب بِنِسْبَةِ الْوَلَد إِلَيْهِ {فَذَرْهُمْ يَخُوضُوا} فِي بَاطِلهمْ {وَيَلْعَبُوا} فِي دُنْيَاهُمْ {حَتَّىٰ يُلَاقُوا يَوْمَهُمُ الَّذِي يُوعَدُونَ} فِيهِ الْعَذَاب وَهُوَ يَوْم الْقِيَامَة {وهو الذي} هو {في السماء إله} بِتَحْقِيقِ الْهَمْزَتَيْنِ وَإِسْقَاط الْأُولَى وَتَسْهِيلهَا كَالْيَاءِ أَيْ معبود {وفي الأرض إله} وَكُلّ مِنَ الظَّرْفَيْنِ مُتَعَلِّق بِمَا بَعْده {وَهُوَ الْحَكِيمُ} فِي تَدْبِير خَلْقه {الْعَلِيمُ} بِمَصَالِحِهِمْ {وتبارك} تعظم {الذي له ملك السماوات وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا وَعِندَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ} مَتَى تقوم {وإليه ترجعون} بالتاء والياء {وَلَا يَمْلِكُ الَّذِينَ يَدْعُونَ} يَعْبُدُونَ أَيْ الْكُفَّار {مِن دُونِهِ} أَيْ مِنْ دُون الله

﴿الشَّفَاعَةَ﴾ لِأَحَدٍ ﴿إِلَّا مَنْ شَهِدَ بِالْحَقِّ﴾ أَيْ قَالَ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ ﴿وَهُمْ يَعْلَمُونَ﴾ بِقُلُوبِهِمْ مَا شَهِدُوا بِهِ بِأَلْسِنَتِهِمْ وَهُمْ عِيسَى وَعُزَيْرٌ وَالْمَلَائِكَةُ فَإِنَّهُمْ يَشْفَعُونَ لِلْمُؤْمِنِينَ ﴿وَلَئِنْ﴾ لَامُ قَسَمٍ ﴿سَأَلْتَهُمْ مَنْ خَلَقَهُمْ لَيَقُولُنَّ اللّٰهُ﴾ حُذِفَ مِنْهُ نُونُ الرَّفْعِ وَوَاوُ الضَّمِيرِ ﴿فَأَنَّى يُؤْفَكُونَ﴾ يُصْرَفُونَ عَنْ عِبَادَةِ اللّٰهِ ﴿وَقِيلِهِ﴾ أَيْ قَوْلِ مُحَمَّدٍ النَّبِيِّ وَنَصْبُهُ عَلَى الْمَصْدَرِ بِفِعْلِهِ الْمُقَدَّرِ أَيْ وَقَالَ ﴿يَا رَبِّ إِنَّ هٰؤُلَاءِ قَوْمٌ لَا يُؤْمِنُونَ﴾ قال تعالى ﴿فَاصْفَحْ﴾ أَعْرِضْ ﴿عَنْهُمْ وَقُلْ سَلَامٌ﴾ مِنْكُمْ وَهٰذَا قَبْلَ أَنْ يُؤْمَرَ بِقِتَالِهِمْ ﴿فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ﴾ بِالْيَاءِ وَالتَّاءِ تهديد لهم

**ترجمه**: دوی ته به اوویلې شي، اې زما بندګانو نن په تاسو باندې هيڅ ويره نشته، او نه به تاسو پريشانه کيږئ، چا چې زمونږ په آيتونو (قرآن) باندې ايمان راوړو، (الذين امنوا) د عبادي صفت دې. او وو دوی فرمانبردار، تاسو او ستاسو ښځې په خوشحالئ سره او په اکرام سره جنت ته داخل شئ، انتم مبتدأ ده، (تحبرون) ددې خبر دې، هغوی ته به د سرو زرو رکيبئ او ګلاسونه راوړلې شي، اکوابه د کوب جمع ده، هغه لوښی ته وائی چې هغې ته لاسکې نه وی، مثلا کټورې او ګلاس، چې څکونکې د کوم ځائې نه غوارې نو څکی. او هلته به داسې څيزون ملاوېږی کوم به ددوی زړونه غوارې، او چې د هغې په کتلو کتلو سره به سترګې مزه اخلي، او تاسو به په هغې کښې هميشه اوسېږئ، او دا هغه جنت دې چې د هغې تاسو د عملونو په وجه وارثان جوړ کړې شوئ، دلته ستاسو د پاره ډيرې ميوې دی، چې د هغه نه به تاسو هميشه خورئی، او څه چې اوخوړلې شي فورا به د هغې بدل موجود ېږی، بې شکه مجرمان خلق به د جهنم په عذاب کښې هميشه اوسيږی، دا عذاب به کله هم د هغوی نه سپکيږی نه، او هغوی په دې کښې خفه په خاموشئ سره پراته وی، او مونږ په هغوی باندې ظلم نه دې کړې، بلکه هغوی په خپله ظالمان وو، او په چغه چغه به وائی، اې مالکه استا رب دې زمونږ کار تمام کړی، چې مونږ مړه شو، په زرګونو کاله پس به هغه جواب ورکړی تاسو لره خو په هميشه عذاب کښې اوسيدل دی، اې مکې والو مونږ تاسو ته د رسولانو په ژبه حق راوړې وو، خو په تاسو کښې ډير خلقو د حق نه نفرت کولو، د مکې کافرانو حضور ﷺ ته د نقصان رسولو د پاره يو پوخ چل جوړ کړې وو، نو يقين اوساته مونږ هم د ددوی د هلاکت په باره کښې پوخ تدبير جوړونکی يو، آيا ددوی دا خيال دې چې مونږ د دوی پټې او د سرګوشئ خبرې نه اورو؟ يعنی کومې خبرې چې دوی د راز په توګه کوی او کومې خبرې چې دوی په خپل مينځ کښې په ښکاره کوی (آيا مونږ نه اورو ؟) آو ولې نه، هغه خامخا اورو، علاوه ددې نه زمونږ نګرانې فرښتې دوی سره دا ليکی هم، تاسو ورته اووايئ، که بالفرض د رحمن اولاد وو، نو زه به د ټولو نه مخکښې د ولد عبادت کولو والا ووم، خو دا خبره ثابته شوې ده، چې د الله تعالی اولاد نشته، لهذا د هغې د عبادت نه هم نفی راغله، د اسمانونو او د زمکې مالک کوم چې د عرش، کرسئ هم مالک

دې، د هغه طرف ته د اولاد نسبت كولو سره څوک چې دروغ وائي، هغه ددې نه پاک دې، اوس تاسو دوی داسې په باطل بحث او مباحثه او د دنيا په لوبو توقو كښې پريږدئ، تردې چې ددوی د هغه ورځ سره مخامخ كيدنه اوشي، په كومه ورځ چې دوی سره د عذاب وعده كړې شوې ده، او هغه د قيامت ورځ ده، هم هغه په آسمانونو كښې معبود دې، د دواړو همزو تحقيق، او د رومبئ ساقط كولو سره، او د هغې د ياء په شان تسهيل كولو سره، او په زمكه كښې هم هغه د عبادت لائق دې، او په دواړو ظرفو كښې هر يو د خپل مابعد ‹اله› سره متعلق دې، هغه د خپل مخلوق د تدبير په باره كښې دير حكمت والا دې، او د هغوی د مصلحتونو په باره كښې لوئې علم والا دې، او هغه لوې عظمت والا دې، چې هغه سره د اسمانونو او د زمكې او د هغې په مينځ كښې د هر څيز بادشاهي ده، او د قيامت علم هم هغه سره دې، چې كله به واقع كيږي، او هم د هغه طرف ته به تاسو واپس كولې شئ، په تاء او ياء سره، او چې د كوم غير الله دا كافران عبادت كوي، هغوی د چا د شفارس حق نه لري، خو چې څوک د حق خبرې اقرار اوكړي، يعنى لا اله الا الله اووائي، او چې د كومې خبرې په ژبه سره اقرار كوي، په هغې باندې د زړه نه يقين اوساتي، او هغه عيسى عليه السلام عزير عليه السلام او ملائک دی، دوی به د مومنانو سفارش كوي، او كه ته دوی نه تپوس اوكړې، چې دوی چا پيدا كړی دی؟ نو دوی به يقينا دا جواب به دركړي چې الله په لئن كښې لام د قسم دې، ‹ليقولن› كښې نون د رفع او واؤ د ضمير حذف كړې شوې دی، نو بيا دوی چرته اولته روان دی؟ او هغه ته د محمد ﷺ د دې خبرې پته هم ده، چې اې زما رب دا داسې خلق دی، چې ايمان نه راوړي، او په ‹قيله› باندې نصب د فعل مقدر د مصدر كيدو د وجې نه دې، اى قال قيله تاسو ددوی نه مخ واړوئ، او اووايئ ‹خه روره› څه تاسو ته سلام كوم، نو دوی ته به دير زر په خپله معلومه شي، په ياء او تاء سره، دا د هغوی د پاره دهمكى ده.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله**: **ياعباد**: په اصل كښې يا عبادی وو، اې زما بندګانو ‹عباد ياء متكلم محذوف طرف ته مضاف دې، او دا حذف د امام د مصحف د رعايت د وجې ده، دا اضافت د شرافت د پاره دې، ځكه چې د الله چا ته خپل وئيل دير د عزت او د اكرام خبره ده، دا رنګ په دې كښې د بندګانو حوصله افزائي ده.

**قوله**: **ياعبادي**: ددې په ياء كښې درې قراتونه دی، د ياء حذف، فتحه د ياء، او سكون د ياء، په دې آيت كښې ندا په څلورو امورو باندې مشتمله ده، نفى د ويرې، نفى د خفګان، په جنت كښې د داخليدو حكم، د خوشحالئ زيرې په تحبرون سره،

**قوله**: **لاخوف عليكم**: په رفع او تنوين سره د جمهورو قرامت دې، خوف مبتدأ ده، د خوف

نکره تحت النفی داخلیدو د وجې نه مبتدأ جوړیدل صحیح دی، علیکم د مبتدأ خبر، یوم ظرف دې د محذوف متعلق دې،

**قوله** تحبرون: ای تسرون حبر، (ن) نه مضارع جمع مذکر حاضر مجهول، ستاسو به عزت اوکړې شی، تاسو به خوشحاله کولې شئ، داسې خوشحالی چې د هغې اثر په مخ باندې ښکاره وی، زجاج وئیلې دی، چې د تحبرون معنی تکرمون اکراما یبالغ فیه ده.

**قوله** بصحاف: د صحفة جمع ده، دومره غټه رکیبئ چې په هغې کښې په یو وخت کښې پنځه کسان خوراک کولې شی، کسائی وئیلې دی چې اعظم القصاع جفنة بیا القصعة چه په هغې کښې لس کسان خوراک کولې شی، بیا الصحفة چې په هغې کښې پنځه کسان ماړه شی، بیا المکیلة چې په هغې کښې پنځه یا درې کسان ماړه شی.

**قوله** أكواب: د كوب جمع ده، هغه لوښې ته وئیلې شی چې په هغې کښې نه لاسکې وی او نه کړئ.

**قوله** تلك الجنة التى اورثتموها: تلک مبتدأ، الجنة موصوف، التی موصول، اورثتموها صله، موصول صله د الجنة صفت، موصوف صفت د مبتدأ خبر شو.

**نکته**: **سوال**: د اورثتموها تقاضه دا وه چې تکملوا الجنة ئې فرمائیلې وو، یعنی تلک ئې جمع راوړې وې؟

**جواب**: تلک د جمع راوړلو په ځائې په مفرد راوړلو کښې دا حکمت دې چې په تلکموا جمع کښې به خطاب اهل جنة ته مجموعی توګه باندې وو، او مفرد راوړلو سره هر یو جنتی ته مستقل خطاب اوشو، چې ډیر دعزت او د شرف خبره ده.

**قوله** لايفتر: تفتير اتفعیل نه واحد مذکر غائب مجهول منفی، کمولې به نشی، سپکولې به نشی،

**قوله** نادوا يا مالك: محقق الوقوع کیدو د وجې نه په ماضی سره تعبیر اوکړې شو.

**قوله** لقد جئناكم بالحق: دا د الله تعالی کلام هم کیدې شی، په دې کښې مشرکین مکه ته خطاب دې، او د مشرکینو په جهنم کښې د قیام علت دې، د علامه محلی په نیز هم دا راجح ده، او دا هم کیدې شی چې د جهنم د نګران یعنی د مالک کلام وی، په دې صورت کښې به خطاب عام اهل نار ته وی، او قائم مقام به د علت وی.

**قوله** ابرموا: ابرام نه ماضی جمع مذکر غائب، هغوی مضبوطه اراده اوکړه.

**قوله** العرش الكرسى: مناسب وه چې مفسر علام د عرش تفسیر په کرسئ سره نه وو کړې ځکه چې دا خبره معلومه او متعین ده چې عرش او کرسئ دواړه جدا جدا څیزونه دی.

**قوله** يومهم الذي يوعدون: که د دې تفسیر ئې د يوم القيامة په ځائې په يوم الموت سره کړې

وو، نو زيات مناسب به وه ځکه چې د مشركينو خوض في الباطل او د لعب في الدنيا انتها مركز دوی نه چې ورځ د قيامت.

**قوله**: من الظرفين متعلق بما بعده: د ظرفين نه مراد في السماء او في الارض دي، او د مابعد نه مراد دواړه ځايونو كنبې (اله) دي، كوم چې د (مألوه) (د معبود) په معنى كښې دي.

**قوله**: الذين يدعون: اى يدعونهم (هم) مفعول محذوف دي.

**قوله**: ولا يملك الذين: الغ الذين د يملك فاعل دي، كه د الذين نه مطلقا معبودان غير الله مراد وى نو په دې صورت كښې به الامن شهد بالحق مستثنى متصل وى، ځنگه چې مفسر علام د عبارت مقتضى ده، يا د (الذين) نه مخصوص طور باندې اصنام مراد دى نو په دې صورت كښې به مستثنى منقطع وى.

**قوله**: اي الكفار: الكفار د يدعون د واؤ تفسير دي.

**قوله**: لاحد: دا اشاره ده چې د الشفاعة مفعول محذوف دي.

**قوله**: وهم يعلمون: (هم) ضمير په اعتبار د معنى سره د (من) طرف ته راجع دي.

**قوله**: لئن سألتهم: لام قسم دي، ليقولن جواب قسم دي، او د قاعدې مطابق جواب شرط محذوف دي، ځكه چې قسم او شرط چې كله جمع شى نو د اول جواب به مذكور او د ثانى جواب به محذوف وى.

**قوله**: قيله: اى قول محمد ﷺ دا د مضاف او د مضاف اليه دواړو تفسير دي، يعنى قيل په معنى د قول دي. او د ضمير مضاف اليه نه مراد حضور ﷺ دي.

**قوله**: نصبه على المصدر بفعله: قيل د قال په مصادرو كښې يو مصدر دي يعنى قيله، د قال فعلِ محذوف د مصدر كيدو د وجې نه منصوب دي.

**قوله**: وقال يارب: زياته واضحه دا وه چې مفسر د قال يارب په ځاى قال قيله يارب فرمائيلې وو. (حاشية جلالين)

**قوله**: سلام: دا سلام د متاركت دي (د ځان د خلاصولو سلام) ځنگه چې مفسر اشاره كړې ده، كنى عليكم به وو، نه چې سلام تحية او سلام د مبتدأ محذوف خبر دي، تقديرى عبارت دا دي امرى سلام.

......

## [٤٤] سورة الدخان

### سورة الدخان مكية وقيل إلا كاشفوا العذاب (الآية) وهي ست أو سبع أو تسع وخمسون آية

سورة دخان مكي دې، بغير د: إلا كاشفوا العذاب له آيت نه، او په دې کښې شپږپنځوس، يا اووه پنځوس، يا نهه پنځوس آياتونه دي.

[آيتونه: ١ - ٢٩]

بسم الله الرحمن الرحيم (حم) الله أعلم بمراده به (وَالْكِتَابِ) القرآن (الْمُبِينِ) المظهر الحلال من الحرام (إِنَّا أَنزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةٍ مُّبَارَكَةٍ) هي ليلة القدر أو ليلة النصف من شعبان نزل فيها من أم الكتاب من السماء السابعة إلى سماء الدنيا (إِنَّا كُنَّا مُنذِرِينَ) مخوفين به (فِيهَا) أي في ليلة القدر أو ليلة النصف من شعبان (يُفْرَقُ) يفصل (كُلُّ أَمْرٍ حَكِيمٍ) محكم من الأرزاق والآجال وغيرهما التي تكون في السنة إلى مثل تلك الليلة (أَمْرًا) فرقا (مِّنْ عِندِنَا إِنَّا كُنَّا مُرْسِلِينَ) الرسل محمدا ومن قبله (رَحْمَةً) رأفة بالمرسل إليهم (مِّن رَّبِّكَ إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ) لأقوالهم (الْعَلِيمُ) بأفعالهم (رَبِّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا) برفع رب خبر ثالث وبجره بدل من ربك (إِن كُنتُم) يا أهل مكة (مُّوقِنِينَ) بأنه تعالى رب السماوات والأرض فأيقنوا بأن محمدا رسوله (لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ يُحْيِي وَيُمِيتُ رَبُّكُمْ وَرَبُّ آبَائِكُمُ الْأَوَّلِينَ) (بَلْ هُمْ فِي شَكٍّ) من البعث (يَلْعَبُونَ) استهزاء بك يا محمد فقال اللهم أعني عليهم بسبع كسبع يوسف قال تعالى (فَارْتَقِبْ يَوْمَ تَأْتِي السَّمَاءُ بِدُخَانٍ مُّبِينٍ) فأجدبت الأرض واشتد بهم الجوع إلى أن رأوا من شدته كهيئة الدخان بين السماء والأرض (يَغْشَى النَّاسَ) فقالوا (هَٰذَا عَذَابٌ أَلِيمٌ) (رَّبَّنَا اكْشِفْ عَنَّا الْعَذَابَ إِنَّا مُؤْمِنُونَ) مصدقون نبيك قال تعالى (أَنَّىٰ لَهُمُ الذِّكْرَىٰ) أي لا ينفعهم الإيمان عند نزول العذاب (وَقَدْ جَاءَهُمْ رَسُولٌ مُّبِينٌ) بين الرسالة (ثُمَّ تَوَلَّوْا عَنْهُ وَقَالُوا مُعَلَّمٌ) أي يعلمه القرآن بشر (مَّجْنُونٌ) (إِنَّا كَاشِفُو الْعَذَابِ) أي الجوع عنكم زمنا (قَلِيلًا) فكشف عنهم (إِنَّكُمْ عَائِدُونَ) إلى كفركم فعادوا إليه اذكر (يَوْمَ نَبْطِشُ الْبَطْشَةَ الْكُبْرَىٰ) هو يوم بدر (إِنَّا مُنتَقِمُونَ) منهم والبطش الأخذ بقوة (وَلَقَدْ فَتَنَّا) بلونا (قَبْلَهُمْ قَوْمَ فِرْعَوْنَ) معه (وَجَاءَهُمْ رَسُولٌ) هو موسى عليه السلام (كَرِيمٌ) على الله تعالى (أَنْ) أي بأن (أَدُّوا إِلَيَّ) ما أدعوكم إليه من الإيمان أي أظهروا إيمانكم لي يا (عِبَادَ اللَّهِ إِنِّي لَكُمْ رَسُولٌ أَمِينٌ) على ما أرسلت به (وَأَن لَّا تَعْلُوا) تتجبروا (عَلَى اللَّهِ) بترك طاعته (إِنِّي آتِيكُم بِسُلْطَانٍ) برهان (مُّبِينٍ) بين على رسالتي فتوعدوه بالرجم فقال (وَإِنِّي عُذْتُ بِرَبِّي وَرَبِّكُمْ أَن تَرْجُمُونِ) بالحجارة (وَإِن لَّمْ تُؤْمِنُوا لِي) تصدقوني (فَاعْتَزِلُونِ) فاتركوا أذاي فلم يتركوه (فَدَعَا رَبَّهُ أَنَّ) أي بأن (هَٰؤُلَاءِ قَوْمٌ مُّجْرِمُونَ) مشركون فقال تعالى (فَأَسْرِ) بقطع الهمزة ووصلها (بِعِبَادِي) بني إسرائيل (لَيْلًا إِنَّكُم مُّتَّبَعُونَ) يتبعكم فرعون وقومه (وَاتْرُكِ الْبَحْرَ) إذا قطعته أنت وأصحابك (رَهْوًا) ساكنا منفرجا حتى يدخله القبط (إِنَّهُمْ جُندٌ مُّغْرَقُونَ) فاطمأن بذلك فأغرقوا (كَمْ تَرَكُوا مِن جَنَّاتٍ) بساتين (وَعُيُونٍ) تجري (وَزُرُوعٍ وَمَقَامٍ كَرِيمٍ) مجلس حسن (وَنَعْمَةٍ) متعة (كَانُوا فِيهَا فَاكِهِينَ)

ناعِمِينَ ﴿كَذٰلِكَ﴾ خبر مبتدأ أي الأمر ﴿وَأَوْرَثْنَاهَا﴾ أي أموالهم ﴿قَوْمًا آخَرِينَ﴾ أي بني إسرائيل ﴿فَمَا بَكَتْ عَلَيْهِمُ السَّمَاءُ وَالْأَرْضُ﴾ بخلاف المؤمنين يبكي عليهم بموتهم مصلاهم من الأرض ومصعد عملهم من السماء ﴿وَمَا كَانُوا مُنْظَرِينَ﴾ مؤخرين للتوبة

**ترجمه**: شروع کوم د الله په نوم سره چې ډير مهربانه او ډير رحم کولو والا دې، حم ددې نه د الله څه مراد دې؟ هم هغه ئې ښه پيژنی، قسم دې په ښکاره کتاب (قرآن باندې کوم چې حلال د حرامو نه جدا کونکې دې، يقينا چې دا مونږ ډير په بابرکت شپه کښې نازل کړې دې، او هغه شب قدر يا شپه د نيم شعبان ده، هم په دغه شپه باندې قرآن په اووۀ اسمانونو باندې موجود لوح محفوظ نه د دنيا اسمان طرف ته نازل شو، بې شکه مونږ ددې په ذريعې سره ويرونکی يو، په دغه شپه يعنی په شب قدر يا په نيم د شعبان کښې د هر محکم کار يعنی رزق، مرګ وغيره چې په دې کال باندې د دې په شان بلې شپې پورې به کوم کارونه کيږی، دهغې فيصله کيږی، زمونږ د طرف نه د حکم صادرولو سره هم مونږ رسول جوړونکې او ليږونکی محمد ﷺ باندې او په مخکښې نبيانو او رسولانو باندې رحم کولې شی ستا د رب د طرف نه، او هم هغه دې چې ددوی خبرو لره ښه اوريدونکې او ددوی کارونو لره ليدونکې دې چه رب دې، د اسمانونو او د زمکې او څه چې ددې په مينځ کښې دی (رب) په رفع سره د (هو) خبر ثالث کيدو د وجې نه، (يارب) جر سره د (من ربک) نه بدل کيدو د وجه نه. اې مکې والو که تاسو يقين کولو والا يئ، دا چې د الله تعالی د اسمانونو او د زمکې رب دې، نو يقين اوساتئ چې محمد ﷺ د الله رسول دې، دهغه نه سوا بل معبود نشته، هم هغه ژوندی کول کوی، او هم هغه مړه کول کوی، او هم هغه ستاسو رب دې، او ستاسو د مخکښينو پلار نيکه هم، بلکه هغوی د بعث په باره کښې په شک کښې پراته په لوبو کښې مصروف دی، اې محمد ﷺ تاسو پسې توقې کولو سره نو نبی عليه السلام بددعاء اوکړه چې اې زما الله! ته ددوی په مقابله کښې د اووو کالو په ذريعه، د يوسف عليه السلام د اوو کالو په شان زما مدد اوکړې، الله تعالی دعا قبلولو سره اوفرمائيل تاسو د هغه ورځې انتظار کوئ چې د اسمان نه به په نظر راتلونکې يو لوګې ښکاره شی، کوم چې به په ټولو خلقو باندې خور شی، نو دغه شان خشک سالی شروع شوه، او مکې والا په سخته لوږه کښې اخته شو، تردې چې د ډير لوګې په وجه دوی ته د زمکې او اسمان په مينځ کښې يو لوګې شان په نظر، نو وې وئيل چې دا ډير تکليف رسونکې عذاب دې، اې زمونږه ربه! دا مصيبت زمونږ نه لرې کړه مونږ به ايمان راوړو، يعنی ستا د نبی ﷺ تصديق به اوکړو، الله تعالی اوفرمائيل ددوی د پاره نصيحت چرته دې؟ يعنی د عذاب نازليدو په وخت ايمان فائده چرته ورکوی، ښکاره ښکاره بيان کونکې پيغمبر دوی ته راغلې دی، نو بيا دوی د هغې نه مخ واړوو، او وئې وئيل چې خودلې شوې لوستلې شوې ليونې دې، څوک ده ته قرآن ښائی، مونږ دې افت لره به لږ لرې کړو، يعنی د

لوړې تکليف به ستاسو نه لږ وخت د پاره لرې کړو، چنانچه د دوی نه د لوږې تکليف لرې شو نو تاسو به بيا واپس شئ، يعنې خپل کفر ته به واپس راشئ، نو دغه شان دوی هغه مخکښنی حالت ته واپس راغلل، په کومه ورځ چې مونږ به سخت نيول اوکړو، او هغه د بدر ورځ ده، مونږ به ددوی نه پورا بدله واخلو، اود بطش معنی ده(په سختئ سره نيول) يقينا مونږ ددوی نه مخکښې د فرعون قوم سره د فرعون نه ازمايلې دی، دوی ته د الله د طرف نه عزت والا رسول راغلو، او هغه موسی عليه السلام وو او هغه اوفرمائيل چې اې د الله بندګانو کوم ايمان طرف ته چې څه دعوت درکوم، هغه قبول کړئ، يعنې زما په اطاعت باندې ايمان ښکاره کړئ، يقين اوساتئ ستاسو د پاره امانتدار رسول يم، په هغه څيز باندې چې هغې سره څه رالیږلې شوې يم، او تاسو د الله په مخکښې د هغه تابعداری پريخودلو سره، سرکشی مه کوئ، څه تاسو ته په خپل رسالت باندې په ښکاره دليلونو سره راغلې يم، خو هغه خلقو دوی په کاڼرو ويشتلو، او دوی ئې ته د مرګ دهمکی ورکړه، نو دغه شان موسی عليه السلام اوفرمائيل څه د خپل او ستاسو د رب په پناه کښې راغلم، ددې نه چې تاسو ما په کاڼرو اولئ، او که تاسو په ما باندې ايمان نه راوړئ دا چې ما اومنئ نو ما پرېږدئ يعنې ماته د تکليف رارسولو نه منع شئ، خو هغه خلقو دوی پرې نه خودل، بيا هغوی د خپل رب نه دعا اوکړه چې دا ټول مجرمان مشرکان خلق دی، الله تعالی اوفرمائيل څما بندګانو لره بنی اسرائيلو لره په شپه شپه کښې څان سره اوباسه، تاسو پسې به دوی کېږی، يعنې فرعون او د هغه لښکر به تاسو پسې وی، چې کله ته او ستا ملګری په سيند باندې پورې اوځئ نو سيند ولاړ پرېږدئ ترڅو چې په دې کښې قبطيان داخل شی، بې شکه دا لښکر به غرق کړې شی، په دې خبره باندې اطمينان اوشو، نو دغه شان هغوی غرق شول، هغوی ډير باغونه او روانې چينې او پټی او ارام والا مجلسونه پريخودل، او هغه د ارام څيزونه په کوم کښې چې هغوی ارام کولو هم داسې اوشو،كذلك الامر مبتدأ محذوف خبر دې، او مونږ ددوی يعنې د دوی د مالونو نورو خلقو لره وارثان جوړ کړل! نو نه هغوی په دوی اسمان اوژړل او نه زمکې، په خلاف د مومنانو چې د هغوی په مرګ باندې د هغوی د مونځ ځائې ژاړی، او په اسمان ددوی د نيک عملونو د ختلو لارې ژاړی، او نه د توبې د پاره دوی ته مهلت ملاو شو،

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله**: والكتاب المبين انا انزلناه: الاية: واؤ قسميه دې، الكتاب مقسم به دې، انا انزلناه د قسم جواب دې.

**قوله**: اناكنا منذرين: د جواب قسم علت دې، بعضې حضراتو اناكنا منذرين جواب قسم ګرځولې دې، او انا انزلناه فی ليلة مباركة ئې قسم او د جواب قسم په مينځ کښې جمله

معترضه گرځولې ده،خو اول احسن دې.

**قوله**: فيها يفرق: دا جمله يا خو مستانفه ده، يا د ليلة صفت دې، او په مينځ كښې اناكنا منذرين جمله معترضه ده،

**قوله**: فرقا: مفسر علام د امرا تفسير په فرقا سره كولو كښې اشاره اوكره، چې امرا د يفرق مفعول مطلق بغير لفظه كيدو د وجې نه منصوب دې، لكه قمت وقوفا، او قعدت جلوسا، او د انزلناه ضمير د فاعل نه حال هم صحيح دې، تقديرى عبارت به دا وى انزلناه حال كوننا آمرين يا د انزلناه مفعول نه هم حال كيدې شى،، تقديرى عبارت به دا وى انزلناه حال كونه مامورابه او د مفعول له كيدل هم صحيح دى، ددې عامل به انزلناه وى، تقديرى عبارت به دا وى انزلناه لامر الخلق.

**قوله**: رحمة من ربك: په دې كښې پنځه صورتونه دى، ①رحمة مفعول له وى، او ددې عامل به يا خو انزلنا وى، يا امرا يا يفرق يا منذرين ②رحمة د فعل محذوف مفعول مطلق كيدو د وجې نه منصوب دې، اى رحمنا رحمة ③رحمة د مرسلين مفعول وى، ④د مرسلين د ضمير نه حال وى، اى ذوى رحمة ⑤د امرا نه بدل وى،

**قوله**: فايقنوا: شارح رحمه الله اشاره اوكره چې د ان كنتم موقنين جواب شرط محذوف دې، او جمله شرطيه د خبرونو په مينځ كښې جمله معترضه ده، ځكه چې لا اله الا الله دا جمله د (ان) څلورم خبر دې.

**قوله**: دخان: لوګى (ج) ادخنة په آيت شريف كښې چې د كوم لوګى ذكر دې، حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما فرمائى چې ددې لوګى ښكاره كيدنه د حضور صلى الله عليه وسلم په زمانه كښې شوې وه، د حضرت على او نورو صحابو رضي الله عنهم نه روايت دې چې ددې ښكاره كيدنه به د قيامت په ورځ كيږى، شاه ولى الله رومبئ قول اختيار كړې ده.

**قوله**: ان ادوالى: ان مفسره هم كيدې شى، ځكه چې جاءهم الرسول د قول رسول معنى لره متضمن دې، جاء الرسول اى قال الرسول، او مصدريه هم صحيح دې،، په دې صورت كښې به (ان) سره د خپل مدخول نه د نزغ خافض د وجې نه د مصدر په تاويل سره منصوب وى، اى بان ادوالى او جار مجرور د جاءهم متعلق دې، او دا هم صحيح ده، چې (ان مُخففه عن الثقيله وى، ددې اسم ضمير شان به محذوف وى، او ادوالى جمله ددې خبر، عباد الله منادى مضاف حرف ندا محذوف، د عباد نه مراد قبطيان دى، زمخشرى فرمائى چې عباد الله د ادوالى مفعول به دې، او هغه بنى اسرائيل دى، او ادو الى په معنى

د ارسلوهم معی دې، ددې تائید په هغه آیت سره هم کیدې شی کوم چې سورة شعراء کښې راغلې دې، لکه ارسل معنا بنی اسرائیل (اعراب القرآن) علامه محلی د ادو الی تفسیر په ما ادعوکم الیه من الایمان سره کولو کښې اشاره اوکړه چې ان مصدریه دې، او اداء په معنی د قبول الدعوة دې، خو دا د هغه خلقو په نیز دې چې په امر باندې د ٥ان مصدریه د دخول د جواز قائل دی.

**قوله**: عباد الله: شارح د ما ادعوکم اضافه کولو سره دې خبرې ته اشاره اوکړه چې د ادو مفعول محذوف دې، عباد الله منادی دې، یا حرف ندا محذوف ده، او د عباد الله نه مراد قبط دې، او نورو مفسرینو وئیلې دی چې عباد الله د ادو مفعول دې او مراد ددې نه بنی اسرائیل دی، ای ارسلو معی بنی اسرائیل.

**قوله**: اترك البحر رهوا: دا د رهٰا یرهو مصدر دې، ساکن کیدل، اودریدل، او بعضو د لارې فراخوالې مراد اخستې دې، امام بخاری د سورة حم په تفسیر کښې فرمائی چې مجاهد وئیلې دی، (رهو) اوچه لاره، مطلب دا دې چې الله تعالی فرمائی چې سمندر ته دا حکم مه ورکوه چې هغه په خپل اصلی حالت باندې راشی، بلکه هغه په خپل هم هغه حالت باندې پریږده، چې د فرعون اخری سپاهی هم داخل شی، او عبدالله بن حمید په دویم طریق سره د رهوا معنی منفرجا، یعنی وسیع او فراخه نقل کړې ده، (لغات القرآن ملخصا) علامه محلی د رهوا تفسیر په ساکنا متفرجا سره کولو کښې د رهوا دواړو معنو طرف ته اشاره اوکړه،

**قوله**: ای الامر: په دې سره ئې اشاره اوکړه چې کذلک الامر د مبتدأ محذوف خبر دې.

**[آیاتونه: ٣٠-٤٢]**

(وَلَقَدْ نَجَّيْنَا بَنِي إِسْرَائِيلَ مِنَ الْعَذَابِ الْمُهِينِ) قَتْل الْأَبْنَاء وَاسْتِخْدَام النِّسَاء (مِنْ فِرْعَوْنَ) قِيلَ بَدَل مِنَ الْعَذَاب بِتَقْدِيرِ مُضَاف أَيْ عَذَاب وَقِيلَ حَال مِنَ الْعَذَاب (إنه كان عاليا من المسرفين) (وَلَقَدِ اخْتَرْنَاهُمْ) أَيْ بَنِي إِسْرَائِيل (عَلَى عِلْمٍ) مِنَّا بِحَالِهِمْ (عَلَى الْعَالَمِينَ) أَيْ عَالِمِي زَمَانهمْ اي العقلاء (وَآتَيْنَاهُمْ مِنَ الْآيَاتِ مَا فِيهِ بَلَاءٌ مُبِينٌ) نِعْمَة ظَاهِرَة مِنْ فَلْق الْبَحْر وَالْمَنّ وَالسَّلْوَى وغيرها (إِنَّ هَؤُلَاءِ) اي كفار مكة (ليقولون) (إِنْ هِيَ) مَا الْمَوْتَة الَّتِي بَعْدهَا الْحَيَاة (إِلَّا مَوْتَتُنَا الْأُولَى) أَيْ وَهُمْ نُطَف (وَمَا نَحْنُ بِمُنْشَرِينَ) بِمَبْعُوثِينَ أَحْيَاء بَعْد الثَّانِيَة (فَأْتُوا بِآبَائِنَا) أَحْيَاء (إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ) أَنَّا نبعث بعد موتنا اي نحيا قال تعالى (أَهُمْ خَيْرٌ أَمْ قَوْمُ تُبَّعٍ) هُوَ نَبِيّ أَوْ رَجُل صَالِح (وَالَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ) مِنَ الْأُمَم (أَهْلَكْنَاهُمْ) بِكُفْرِهِمْ وَالْمَعْنَى لَيْسُوا أَقْوَى مِنْهُمْ وَأُهْلِكُوا (إنهم كانوا مجرمين) (وما خلقنا السماوات وَالْأَرْض وَمَا بَيْنَهُمَا لَاعِبِينَ) بِخَلْقِ ذَلِكَ حَال (مَا خَلَقْنَاهُمَا) وَمَا بَيْنهمَا (إِلَّا بِالْحَقِّ) أَيْ مُحِقِّينَ فِي ذَلِكَ لِيُسْتَدَلّ بِهِ عَلَى قُدْرَتنَا وَوَحْدَانِيَّتنَا

وَهُوَ ذٰلِكَ ﴿وَلٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ﴾ اي كفار مكة ﴿لا يعلمون﴾ ﴿إِنَّ يَوْمَ الْفَصْلِ﴾ يَوْم الْقِيَامَة يَفْصِل اللّٰه فِيهِ بَيْن الْعِبَاد ﴿مِيقَاتُهُمْ أَجْمَعِينَ﴾ لِلْعَذَابِ الدَّائِم ﴿يَوْمَ لَا يُغْنِي مَوْلًى عَنْ مَوْلًى﴾ بِقَرَابَةٍ او صداقة اي لا يدفع عنه ﴿شَيْئًا﴾ مِنَ الْعَذَاب ﴿وَلَا هُمْ يُنْصَرُونَ﴾ يُمْنَعُونَ منه ويوم بدل من يوم الفصل ﴿إِلَّا مَنْ رَحِمَ اللّٰهُ﴾ وَهُمُ الْمُؤْمِنُونَ فَإِنَّهُ يَشْفَع بَعْضهمْ لِبَعْضٍ بِإِذْنِ اللّٰه ﴿إِنَّهُ هُوَ الْعَزِيزُ﴾ الْغَالِب فِي انْتِقَامه مِنَ الْكُفَّار ﴿الرَّحِيمُ﴾ بالمؤمنين

---

**ترجمه:** او بې شکه مونږ بنی اسرائیل ته د رسوا کونکي سزا نه خلاصې ورکړو یعنی د هلکانو د قتل او ښځو لره نوکراني جوړولو نه، کوم چې د فرعون د طرف نه کیدلو. ونیلې شوی دی چې من فرعون د عذاب نه په تقدیر د مضاف سره بدل دې، ای من عذاب فرعون او ونیلې شوی دی چې د عذاب نه حال دې، په حقیقت کښې هغه سرکشه او د حد نه د وتونکو نه وو، او مونږ بنی اسرائیل ته زمونږ ددوی په حالاتو باندې د واقف کیدو د وجې ددوی د زمانې په عقلمندو باندې اوچتوالې ورکړو، او مونږ دوی ته داسې نښې ورکړې چې په هغې کښې ښکاره انعام وو، یعنی ښکاره نعمتونه وو، مثلا سیند شلول، او من او سلوی وغیره، دا خلق یعنی کفار مکه خو هم دا وائی چې نشته داسې مرګ چې د هغې نه پس ژوند وی مګر اولنې مرګ، یعنی دنطفه کیدو په حالت کښې او مونږ به د دویم مرګ نه پس ژوندی کولو سره نه پاسو، زمونږ پلار نیکه ژوندی کولو سره واپس راولئ، که تاسو په دې خبره کښې رشتونې یئ، چې مونږ به د مرګ نه پس پاسولې شو، یعنی ژوندی کیږو به، الله تعالی اوفرمائیل آیا داخلق ښه دی یا د تبع قوم؟ هغه نبی دی یا خوک نیک کس، او هغه امتونه چې ددوی نه مخکښې وو، مونږ هغوی د هغوی د کفر د وجې نه هلاک کړل، مطلب دا چې دا خلق د هغوی نه زیات طاقتور نه دی، هغوی هلاک کړې شو او یقینا هغوی ګنهګار وو، او مونږ اسمانونو او زمکې لره او څه چې ددې په مینځ کښې دی د لوبې په طور پیدا کړې نه دی، ددې پیدا کول د ﴿لاعبین﴾ نه حال دې، مونږ دې دواړو لره یعنی زمکه او اسمان او څه چې ددې په مینځ کښې دی، حق سره پیدا کړې دی، حال دا چې مونږ ددې پیدا کولو کښې حکمت والا یو، چې ددې په پیدا کولو سره زمونږ په وحدانیت او قدرت باندې استدلال اوکړې شی، خو په کفار مکه کښې ډیر نه پوهیږی، یقینا دَ فیصلې ورځ یعنی ورځ د قیامت، په دې ورځ باندې به الله تعالی د خپلو بندګانو په مینځ کښې فیصله اوکړی، ددې ټولو دهمیشګیر عذاب یو مقرر وخت دې، په دغه ورځ به نه دوست د دوست پکاریږی، د رشته دارئ په اعتبار سره، یا د دوستئ په اعتبار سره، یعنی ددوی نه به لږ هم عذاب لرې نه کړی، او نه به ددوی مدد کولې شی، چې دوی د عذاب نه بچ کړې شی، یوم د یوم الفصل نه بدل دې، مګر په چا چه الله مهربانه شی، او هغه مومنان دی، ځکه چه مومنان به د الله په اجازت سره د یو بل

سفارش کوی، هغه زبردست دې، د کافرانو نه په خپله بدله اخستلو کښې، او رحم کولو والا دې، په مومنانو باندې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: ولقد نجينا بني اسرائيل الاية دا کلام مستانف دې، په دې سره حضور ﷺ ته تسلی مراد ده، په لقد کښې لام د قسم محذوف په جواب باندې دلالت کوی.

**قوله**: من فرعون: د جار په اعادې سره، د (من العذاب)نه بدل دې، او کائنا يا صادرا او يا واقعا، متعلق کيدو سره د عذاب نه حال هم کيدې شی، ای صادرامن فرعون.

**قوله**: کان: ددې اسم هو مستتر دې، او عاليا ددې خبر دې، او مسرفين د (کان) دويم خبر دې.

**قوله**: ای عالمی زمانهم: ای العقلاء ددې عبارت اضافه په اصل کښې د يوې شبهې جواب کول دی، کوم چې اخترناهم علی علم علی العلمين نه پيدا کيږی.

**شبه**: د دې آيت نه دا معلوميږی چې بنی اسرائيلو ته د ټول جهان په عقلمندو باندې فوقيت حاصل دې، حالانکه د نص صريح د (کنتم خير امة)نه معلوميږی، چې امت محمديه په ټولو امتونو کښې افضل دې؟

**جواب**: بنی اسرائيلو ته د هغوی د زمانې په عقلمندو باندې فوقيت حاصل وو، نه چې د قيامت د ورځې پورې په ټولو عقلمندو باندې، مفسر علام د علی العلمين تفسير په العقلاء سره کولو په ځائې که الثقلين فرمائيلې وو نو زيات مناسب به وو، ځکه چې په عقلمندو کښې جنات او انسانان او فرشتې ټول داخل دی، حالانکه بنی اسرائيل د فرشتو نه افضل نه وو.

**قوله**: من الايات: دا دالسين بيان مقدم دې، د فواصل د رعايت د وجې نه مقدم کړې شوې دې.

**قوله**: نعمة ظاهرة: دا د بلاء تفسير دې، د بلاء اصل معنی امتحان دې، او امتحان چونکه د نعمت، رحمت، فراخۍ او د تنګ دستيا، د خفګان او د خوشحالۍ دواړو صورتونو کښې وی، هم په دې وجه مفسر علام دلته د بلاء ترجمه په نعمت سره کړې ده.

**قوله**: المن: اسم دې، يو قسم شبنم رنګ والا ګوند دې، په دوادی تيه کښې د حيران او پريشان بنی اسرائيلو د پاره به الله تعالی روزانه د اونو په پاڼړو باندې لګولو.

**قوله**: سلوی: سلوی يو وړه شان مرغۍ ده، چې هغې ته تيتر وئيلې شی، په قاموس کښې ددې واحد سلواة ليکلې دې، په صحاح کښې د اخفش نه منقول دی چې ددې واحد نه

دي اوريدلي شوي، دا سې معلوميږي چې ددې واحد او جمع دواړه يو دي،

**قوله** هؤلاء: دا د اسم اشاره قريب د پاره ده،دكافرانو د تحقير او تذليل دپاره ئې اسم اشاره قريب استعمال کړې ده

**قوله** قوم تبّع: دا تبّع حميري دې، ابوكريب دده كنيت، او د ده نوم اسعد دې. انصار بنى حيره ده طرف ته منسوب دي، حيرة د كوفې د يو ښار نوم دې،

**قوله** والذين من قبلهم: ددې عطف په قوم تبع باندې دې،

[آياتونه: ٤٢ - ٥٩]

{إِنَّ شَجَرَةَ الزَّقُّومِ} هِيَ مِنْ أَخْبَث الشَّجَر الْمُرّ بِتُهَامَة يُنْبِتهَا اللّه تَعَالَى فِي الْجَحِيم {طَعَامُ الْأَثِيمِ} أَبِي جَهْل وَأَصْحَابه ذَوِي الْإِثْم الكبير {كَالْمُهْلِ} أَيْ كَدُرْدِيّ الزَّيْت الْأَسْوَد خَبَر ثَانٍ {تَغْلِي فِي الْبُطُونِ} بِالْفَوْقَانِيَّةِ خَبَر ثَالِث وبالتَّحْتَانِيَّة حَال من المهل {كَغَلْيِ الْحَمِيمِ} الْمَاء الشَّدِيد الْحَرَارَة {خُذُوهُ} يُقَال لِلزَّبَانِيَةِ خُذُوا الْأَثِيم {فَاعْتِلُوهُ} بِكَسْرِ التَّاء وَضَمّهَا جُرُّوهُ بِغِلْظَةٍ وَشِدَّة {إِلَى سَوَاءِ الْجَحِيمِ} وَسَط النَّار {ثُمَّ صُبُّوا فَوْقَ رَأْسِهِ مِنْ عَذَابِ الْحَمِيمِ} أَيْ مِنْ الْحَمِيم الَّذِي لَا يُفَارِقهُ الْعَذَاب فَهُوَ أَبْلَغ مِمَّا فِي آيَة {يُصَبُّ مِنْ فوق رؤوسهم الحميم} وَيُقَال لَهُ {ذُقْ} أَيْ الْعَذَاب {إِنَّكَ أَنْتَ الْعَزِيزُ الْكَرِيمُ} بِزَعْمِك وَقَوْلك مَا بَيْن جَبَلَيْهَا أعز وأكرم مني ويقال لهم {إِنَّ هَٰذَا} الَّذِي تَرَوْنَ مِنْ الْعَذَاب {مَا كُنْتُمْ بِهِ تَمْتَرُونَ} فِيهِ تَشُكُّونَ {إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي مَقَامٍ} مَجْلِس {أَمِينٍ} يُؤْمَن فيه الخوف {فِي جَنَّاتٍ} بَسَاتِين {وَعُيُونٍ} {يَلْبَسُونَ مِنْ سُنْدُسٍ وَإِسْتَبْرَقٍ} أَيْ مَا رَقَّ مِنْ الدِّيبَاج وَمَا غَلُظَ مِنْهُ {مُتَقَابِلِينَ} حَال أَيْ لَا يَنْظُر بَعْضهمْ إِلَى قَفَا بَعْض لِدَوَرَانِ الْأَسِرَّة بِهِمْ {كَذَٰلِكَ} يُقَدَّر قَبْله الْأَمْر {وَزَوَّجْنَاهُمْ} مِنْ التَّزْوِيج أَوْ قَرَنَّاهُمْ {بِحُورٍ عِينٍ} بِنِسَاءٍ بِيض وَاسِعَات الْأَعْيُن حِسَانهَا {يَدْعُونَ} يَطْلُبُونَ الْخَدَم {فِيهَا} أَيْ الْجَنَّة أَنْ يَأْتُوا {بِكُلِّ فَاكِهَةٍ} مِنْهَا {آمِنِينَ} مِنْ انْقِطَاعهَا وَمَضَرَّتهَا وَمِنْ كُلّ مَخُوف حَال {لَا يَذُوقُونَ فِيهَا الْمَوْتَ إِلَّا الْمَوْتَةَ الْأُولَىٰ} أَيْ الَّتِي فِي الدُّنْيَا بَعْد حَيَاتهمْ فِيهَا قال بعضهم إلا بمعنى بعد {وَوَقَاهُمْ عَذَابَ الْجَحِيمِ} {فَضْلًا} مَصْدَر بِمَعْنَى تَفَضُّلًا مَنْصُوب بِتَفَضُّلٍ مُقَدَّرًا {مِنْ رَبِّكَ ذَٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ} {فَإِنَّمَا يَسَّرْنَاهُ} سَهَّلْنَا الْقُرْآن {بِلِسَانِكَ} بِلُغَتِك لِتَفْهَمهُ الْعَرَب مِنْك {لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ} يَتَّعِظُونَ فَيُؤْمِنُونَ لَكِنَّهُمْ لا يؤمنون {فَارْتَقِبْ} انْتَظِرْ هَلَاكهمْ {إِنَّهُمْ مُرْتَقِبُونَ} هَلَاكك وَهَذَا قَبْل نزول الأمر بجهادهم

**ترجمه** بې شكه د زقوم اونه چې ترخه او د خبيثو نه خبيثه ده، په تهامه كښې پيدا كيږي، الله تعالى به دا په دوزخ كښې پيدا كړي، د مجرمانو خوراک دې، يعنى دابوجهل او د هغه د ملگرو چې ډير گنهگار دي، او هغه د تورو تيلو يعنى د تاركولو (تلچهټ) په شان دي، كالمهل خبر ثاني دې، هغه به د ډيرو گرمو اوبو په شان په خيټه كښې يشيږي، تغلى، په تاء فوقانيه سره دريم خبر دې، او په ياء تختانيه سره د المهل نه حال دې، په جهنم باندې

مقرر فرشتو ته به حکم اوکړې شي، چې مجرمان اونيسئ، يبا په راخلکلو سره د جهنم مينځ ته اورسوئ، (فاعتلوه) د تاء په کسرې او ضمې سره، يعنې دوی په سختئ سره راکاږئ، بيا ددوی په سر باندې د گرمو اوبو عذاب تويئ کړئ، يعنې گرمې اوبه چې دهغې نه به عذاب نه جدا کيږي، دا تعبير زيات بليغ دې، د هغه تعبير نه کوم چې په يصب من فوق رءوسهم الحميم کښې اختيار کړې شوې دې، دهٔ ته به اوونيلې شي، چې د عذاب مزه اوڅکه، ته په خپل گمان کښې ډير عزت او اکرام والا وې، د خپل دې قول د وجې نه چې د مکې د دوارو غرونو په مينځ کښې څما نه زيات عزت او وقار والا نشته، دوی ته به اوونيلې شي، دا عذاب کوم چې تاسو گورئی، هغه دې چې د کوم په باره کښې به تاسو شک کولو، بې شکه د الله نه ويريدونکی خلق به د امن او د ارام په مجلس کښې وی، چه په هغې کښې به هغوی د ويرې نه محفوظ وی په باغونو او چينو کښې د نرو او پيړو ريښمو لباس به ئې اغوستې وی يوبل ته به مخامخ ناست وی متقابلين حال دې، ددوی د بالختونو د گول والی د وجې نه به دوی د يو بل شاه نه وينی، خبره هم داسې ده، کذلک نه مخکښې به الامر مقدر منلې شی، او مونږ به د سپينو غټو غټو ښکلې سترگو والا حورو سره د دوی نکاح اوکړو، يا به ددوی جوړه ورسره اولگوو، جنتيان به په جنت کښې د خادمانو نه د قسما قسم ميوو فرمائش کوی، او د هغې د ختميدو او د هغې د نقصان او هر قسم ويرو نه به دوی په امن کښې وی، (آمنين) د يدعون د ضمير نه حال دې، هلته به دوی د مرگ مزه نه څکی، سوا ددې اولنی مرگ نه چې هغه دوی په دنيا کښې د ژوند نه پس اوڅکلو، بعضې خلقو وئيلې دی چې الا د بعد په معنی کښې ده، دوی الله د دوزخ د عذاب نه صرف ستا د رب په فضل بچ کړل، فضلا مصدر دې، د تفضلا په معنی کښې دې، تفضل د مقدر د وجه منصوب دې، هم دغه ده لويا کاميابی، مونږ دې قرآن لره ستا په ژبه کښې اسان کړو، چې عرب ئې ستا نه واوری او پوهه شی، چې هغوی نصيحت حاصل کړی، او ايمان راوړی، خو هغوی ايمان راوړونکې نه دی، اوس نه ددوی د هلاکت په انتظار کښې اوسه، دوی هم ستا د هلاکت په انتظار کښې دی، دا حکم دوی ته د جهاد د حکم د نازليدو نه مخکښې وو،

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله**: شجرت الزقوم: شجرت دلته په تاء مجروره سره دې، په قرآن کښې په باقی ځايونو کښې په تاء مدوره سره دې، د وقف په حالت کښې (ه) او (تاء) دواړه وئيلې شي.

**قوله**: زقوم: يو ځنگلی بوټی دې، د چنبيلی په شان په دې باندې گلونه راخيژی، دا د جهنميانو خوراک دې، په اردو کښې ورته تهوهر او په هندئ کښې ورته ناگ پهن وئيلې شی، ددې مزه ترخه او تروه بې مزه وی.

**قوله** تهامه: مکه مکرمه د ملک حجاز جنوبی علاقه ده، د نسبت د پاره تهامه وئیلې شی، جمع ئې تهامون او تهامیون راځی،

**قوله** کالمهل: ویلې شوې دهات، دردی، انختې (کونلې)، د تیلو وغیره باقی مانده، زیت الاسود تارکول.

**قوله** طعام الاثیم: د (ان) خبر اول دې، او کالمهل خبر ثانی دې، او تغلی (په) تاء سره خبر ثالث دې، او په یاء سره د المهل نه حال دې.

**قوله** صبوا فوق راسه من عذاب الحمیم: کښې زیاته مبالغه ده، په نسبت د یصب من فوق رءوسهم الحمیم په اولنی آیت کښې د عذاب په سر باندې د تویولو حکم دې، گویا چې اوبه دومره گرمې دی، چې هغې نه خپله عذاب جوړ شوې دې، لهذا گرمانش به اوس ددې نه جدا کیږی نه، ځکه چې گرمانش اوس صفت پاتې نه شو، بلکه خپله موصوف شو، په دې کښې مبالغه زیاته ده، په نسبت ددې وئیلو چې په دوی باندې گرمې اوبه توئ کړئ، دلته اوبه موصوف او گرم ددې صفت دې، او صفت د موصوف نه جدا کیدې شی،

**قوله**: اوقرناهم: دا ددې شبې جواب دې، چې زوجنا متعدی بنفسه دې، حالانکه دلته ددې صله د بحورعین باء ده؟

جواب دا دې، چې زوجنا په معنی د قرنا دې، لهذا ددې صله باء راوړل صحیح دی.

## [٤٥] سورة الجاثية

### سورة الجاثية مكية إلا قل للذين آمنوا يغفروا (الآية) وهي ست او سبع وثلاثون آية

سورة جاثیه مکی دې، بغیر د: قل للذین آمنوا یغفروا نه آیت نه، اوپه دې کښې شپږدیرش، یا اووه دیرش آیاتونه دی.

### [آیاتونه: ١ - ١١]

بسم الله الرحمن الرحيم (حم) اللّٰهُ أَعْلَم بِمُرَادِهِ بِهِ (تَنزِيلُ الْكِتَابِ) القرآن مبتدأ (مِنَ اللَّهِ) خبره (الْعَزِيزِ) فِي مُلْكِه (الْحَكِيمِ) فِي صُنْعِه (إِنَّ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ) أَيْ فِي خَلْقِهِمَا (لَآيَاتٍ) دَالَّة عَلَى قُدْرَةِ اللّٰه وَوَحْدَانِيَّتِه تَعَالَى (لِلْمُؤْمِنِينَ (وَفِي خَلْقِكُمْ) أَيْ فِي خَلْقِ كُلٍّ مِنْكُمْ مِنْ نُطْفَةٍ ثُمَّ عَلَقَةٍ ثُمَّ مُضْغَةٍ إِلَى ان صار إنسانا (و) خلق (مَا يَبُثُّ) يُفَرِّق فِي الْأَرْض (مِنْ دَابَّةٍ) هِيَ مَا يَدِبُّ عَلَى الْأَرْض مِنَ النَّاس وَغَيْرِهِمْ (آيَاتٌ لِقَوْمٍ يُوقِنُونَ) بِالْبَعْثِ (وَ) فِي (اخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ) ذَهَابِهِمَا وَمَجِيئِهِمَا (وَمَا أَنْزَلَ اللَّهُ مِنَ السَّمَاءِ مِنْ رِزْقٍ) مطر لانه سبب الرزق (فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا وَتَصْرِيفِ الرِّيَاحِ) تَقْلِيبِهَا مَرَّة جَنُوبًا وَمَرَّة شِمَالًا وَبَارِدَة وَحَارَّة (آيَاتٌ لِقَوْمٍ يَعْقِلُونَ) الدَّلِيل فَيُؤْمِنُونَ (تِلْكَ) الْآيَات الْمَذْكُورَة (آيَاتُ اللَّهِ) حُجَجه الدَّالَّة عَلَى وَحْدَانِيَّته (نَتْلُوهَا) نَقُصُّهَا (عَلَيْكَ بِالْحَقِّ) مُتَعَلِّق بِنَتْلُو (فَبِأَيِّ حَدِيثٍ بَعْدَ اللَّهِ) أَيْ حَدِيثه وَهُوَ الْقُرْآن

(وَآيَاتِه) حُجَجه (يُؤْمِنُونَ) أَيْ كُفَّار مَكَّة أَيْ لَا يُؤْمِنُونَ وَفِي قِرَاءَة بِالتَّاءِ (وَيْلٌ) كَلِمَة عَذَاب (لِكُلِّ أَفَّاكٍ) كَذَّاب (أَثِيمٍ) كثير الإثم (يَسْمَعُ آيَاتِ اللّٰهِ) القرآن (تُتْلَىٰ عَلَيْهِ ثُمَّ يُصِرُّ) عَلَى كُفْره (مُسْتَكْبِرًا) مُتَكَبِّرًا عَنْ الإِيمَان (كَأَنْ لَمْ يَسْمَعْهَا فَبَشِّرْهُ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ) مُؤْلِم (وَإِذَا عَلِمَ مِنْ آيَاتِنَا) أَيْ الْقُرْآن (شَيْئًا اتَّخَذَهَا هُزُوًا) أَيْ مَهْزُوءًا بِهَا (أُولَٰئِكَ) أَيْ الأَفَّاكُونَ (لَهُمْ عَذَابٌ مُهِينٌ) ذُو إِهَانَة (مِنْ وَرَائِهِمْ) أَيْ أَمَامهمْ لِأَنَّهُمْ فِي الدُّنْيَا (جَهَنَّمُ وَلَا يُغْنِي عَنْهُمْ مَا كَسَبُوا) مِنْ المال والفعال (شيئا ولا ما اتخذوا من دون الله) اي الاصنام (أولياء ولهم عذاب عظيم) (هَٰذَا) أَيْ الْقُرْآن (هُدًى) مِنْ الضَّلَالَة (وَالَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ لَهُمْ عَذَابٌ) حَظّ (مِنْ رِجْزٍ) أَيْ عَذَاب (أَلِيمٌ) مُوجِع

**ترجمه**: شروع کوم د الله په نوم سره چې ډیر مهربانه او ډیر رحم کولو والا دې، حم، ددې مراد الله ښه پیژنی، کتاب یعنی د قرآن نازلیدل د الله د طرف نه دې، (من الله) خبر دې، کوم چې په خپله بادشاهئ کښې غالب او په خپل کارونو کښې حکمت والا دې، بې شکه په اسمانونو او زمکه کښې یعنی ددې دواړو پیدا کولو کښې داسې نښې دی، چې د الله په قدرت او واحدانیت باندې دلالت کوی، او خپله ستاسو پیدائش کښې یعنی تاسو ټول ئې د نطفې نه پیدا کولو کښې، بیا ئې د چکه وینې نه، بیا ئې د غوښې د ټکړې نه تردې چه هغه د انسان نطفه وی او ددې څناورو په پیدائش کښې کوم چې هغه په زمکه باندې خوروی، (دابة) هر هغه څیز دې چې په زمکه باندې ګرځی، انسان وغیره، په بعث باندې یقین ساتونکې قوم د پاره ډیرې نښې دی، او د شپې ورځې په بدلولو کښې یعنی ددې په تلو اوراتلو کښې او په هغه رزق کښې (په باران کښې) چې هغه ئې د اسمان نه نازلوی، ځکه چې باران د رزق سبب دې، ددې باران په ذریعه الله تعالی زمکه ژوندئ کړه، ددې د مره کیدو نه پس، او د هواګانو په بدلولو کښې هم کله جنوب طرف ته، کله شمال طرف ته، کله یخې او کله ګرمې، هغه خلقو د پاره نښې دی، کوم دلیل پوهیږی، چې ایمان راوړی دا نښې چه ذکر شوې د الله نښې دی، یعنی د هغه داسې دلیلونه دی چې د هغه په وحدانیت باندې دلالت کوی، چې هغه مونږ تاته صحیح طریقې سره اوروو، (بالحق) د (نتلوا) متعلق دې، نو د الله خبره، او هغه قرآن دې، او د هغه د دلیلونو نه پس د چا په خبره به دا کفارِ مکه ایمان راوړی، او په یو قرات کښې په تاء سره (تؤمنون) دې، او په هر دروغژن ګنهګار په ډیر والی سره ګناهونه کولو والا باندې افسوس دې، چې د الله ایتونه (قرآن) اوری کوم چه په دهٔ باندې لوستلې شی، بیا هم د ایمان نه تکبر کوی، او په کفر باندې کلک اوسیږی، ګویا چې دې آیتونو لره ئې اوریدلې هم نه دی، نو داسې خلقو ته د دردناک عذاب خوشخبری واوروه، او چې کله زمونږ په ایتونه یعنی په قرآن کښې دې په یو آیت باندې خبردار شی (پوهه شی) نو هغې پسې ټوقې کوی، هم دغه دی هغه دروغژن د چا د پاره چې سپکونکې عذاب دې، ددوی نه مخکښې جهنم دې، ځکه چې هغوی په دنیا کښې دی، د مال او اعمالو

نه چې دوی څه کړي دي، هغه به ورته هيڅ فائده ورنکړي، او نه به هغه څه دوی په کار راشي، کوم بتانو لره ئې چې د الله نه سوا کارساز جوړکړې وو، او دوی د پاره ډير لوئي عذاب دې، دا يعني قرآن د گمراهئ نه هدايت دې، او کومو خلقو چې د خپل رب ايتونه اونه منل، د هغوی د پاره د دردناک عذاب حصه ده.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: تنزيل الكتاب: مبتدأ ده، او (من الله) د كائن متعلق كيدو سره ددې خبر دې، **العزيز الحكيم** دا دواړه د الله صفتونه دي، څنګه چې مفسر علام اشاره کړې ده، او دا هم صحيح ده، چې **تنزيل الكتاب** د **هذا** مبتدأ محذوف خبر وي، او (من الله) د **تنزيل متعلق** وي.

**قوله**: لايات: **آيات** د (ان) اسم كيدو د وجې نه منصوب دې، په كسرې سره په اتفاق د قراؤ دې، خو راتلونكى آيات **لقوم يوقنون** او **آيات لقوم يعقلون** كښې رفع او نصب دواړه قراءتونه جائز دي، رفع خو څكه چې آيات مبتدأ مؤخر ده، او **في خلقكم** خبر مقدم دې، او نصب څكه چې ايات معطوف دې په ايات اول باندې، كوم چې د (ان) اسم دې، او في خلقكم معطوف دې، په **في السموات والارض** باندې، كوم چې د (ان) خبر واقع شوې دې، په دې كښې د عامل واحد په دوو معمولو باندې عطف دې، كوم چې په اتفاق سره جائز دې.

**قوله**: وخلق ما يبث: شارع علام (خلق) مضاف مقدر منلو سره اشاره اوكړه، چې ددې عطف په خلقكم باندې دې، دا هم صحيح ده، چې د **ما يبث** عطف د خلقكم په (كم) ضمير مجرور باندې وي، خو دا به د هغه خلقو په نيز جائز وي، چې په ضمير مجرور باندې بغير د اعادې د جار نه عطف جائز ګڼري،

**قوله**: وفي اختلاف الليل والنهار: **في** ښكاره كولو سره اشاره ئې اوكړه چې دلته (في) مقدر ده، څنګه چې د قراءت شاذه نه ددې تائيد كيږي.

**قوله**: تلك آيات: مبتدأ خبر دي، او نتلوها حال دې.

**قوله**: لا يؤمنون: په دې سره ئې اشاره اوكړه چې په **فباي حديث** كښې همزه استفهام انكارى ده.

**قوله**: ويل: د عذاب او د جهنم وادى، په دواړه معنو كښې مستعمل دې،

**قوله**: كان لم يسمعها: كأن په اصل كښې (كأن) په تشديد سره وو، دا مخففه عن المثقله دې، ضمير شان محذوف دې، اى **كانه** او جمله يا خو مستانفه ده يا حال ده

**قوله**: اتخذها هزوا:

**سوال**: د اتخذها ضمير شيئا ته راجع دې، كوم چې مذكر دې، لهذا ددې طرف ته ضمير

مؤنث راجع کول صحیح نه دی؟

**جواب:** د معنی په اعتبار سره د مؤنث ضمير راجع کول صحيح دی، ځکه چې د شيئا نه مراد آيت دي،

**دويم جواب:** آياتنا طرف ته راجع کول هم صحيح دی،

**قوله:** اي امامهم: دې خبرې ته اشاره ده چې وراء امام و خلف دواړو په معنی کښې استعماليږی.

**[آياتونه: ١٢ - ٢١]**

﴿اللّٰهُ الَّذِي سَخَّرَ لَكُمُ الْبَحْرَ لِتَجْرِيَ الْفُلْكُ﴾ السُّفُن ﴿فِيهِ بِأَمْرِهِ﴾ بِإِذْنِهِ ﴿وَلِتَبْتَغُوا﴾ تَطْلُبُوا بِالتِّجَارَةِ ﴿من فضله ولعلكم تشكرون﴾ ﴿وَسَخَّرَ لَكُمْ مَا فِي السَّمَاوَاتِ﴾ مِنْ شَمْس وَقَمَر وَنُجُوم وَمَاء وَغَيْره ﴿وَمَا فِي الْأَرْضِ﴾ مِنْ دَابَّة وَشَجَر وَنَبَات وَأَنْهَار وَغَيْرهَا أَيْ خَلَقَ ذَلِكَ لِمَنَافِعِكُمْ ﴿جَمِيعًا﴾ تَأْكِيد ﴿مِنْهُ﴾ حَال أَيْ سَخَّرَهَا كَائِنَة مِنْهُ تَعَالَى ﴿إِنَّ فِي ذَلِكَ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ﴾ فِيهَا فَيُؤْمِنُونَ ﴿قُلْ لِلَّذِينَ آمَنُوا يَغْفِرُوا لِلَّذِينَ لَا يَرْجُونَ﴾ يَخَافُونَ ﴿أَيَّامَ اللّٰهِ﴾ وَقَائِعه أَيْ اغْفِرُوا لِلْكُفَّار مَا وَقَعَ مِنْهُمْ مِنَ الْأَذَى لَكُمْ وَهَذَا قَبْل الْأَمْر بِجِهَادِهِمْ ﴿لِيَجْزِيَ﴾ أَيْ اللّٰه وَفِي قِرَاءَة بِالنُّونِ ﴿قَوْمًا بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ﴾ مِنَ الْغَفْر لِلْكُفَّارِ أَذَاهُمْ ﴿من عمل صالحا فلنفسه﴾ عمل ﴿ومن أساء فعليها﴾ أَسَاءَ ﴿ثُمَّ إِلَى رَبِّكُمْ تُرْجَعُونَ﴾ تَصِيرُونَ فَيُجَازِي الْمُصْلِح وَالْمُسِيء ﴿وَلَقَدْ آتَيْنَا بَنِي إِسْرَائِيلَ الْكِتَابَ﴾ التَّوْرَاة ﴿وَالْحُكْمَ﴾ بِهِ بَيْن النَّاس ﴿وَالنُّبُوَّةَ﴾ لِمُوسَى وَهَارُونَ مِنْهُمْ ﴿وَرَزَقْنَاهُمْ مِنَ الطَّيِّبَاتِ﴾ الْحَلَالَاتِ كَالْمَنِّ وَالسَّلْوَى ﴿وَفَضَّلْنَاهُمْ عَلَى الْعَالَمِينَ﴾ عَالَمِي زَمَانهمْ الْعُقَلَاء ﴿وَآتَيْنَاهُمْ بَيِّنَاتٍ مِنَ الْأَمْرِ﴾ أَمْر الدِّين مِنَ الْحَلَال وَالْحَرَام وَبَعْثَة مُحَمَّد عَلَيْهِ أَفْضَل الصَّلَاة وَالسَّلَام ﴿فَمَا اخْتَلَفُوا﴾ فِي بَعْثه ﴿إِلَّا مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْعِلْمُ بَغْيًا بَيْنَهُمْ﴾ أَيْ لِبَغْيٍ حدث بينهم حسدا له ﴿إِنَّ رَبَّكَ يَقْضِي بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِيمَا كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ﴾ ﴿ثُمَّ جَعَلْنَاكَ﴾ يَا مُحَمَّد ﴿عَلَى شَرِيعَةٍ﴾ طَرِيقَة ﴿مِنَ الْأَمْرِ﴾ أَمْر الدِّين ﴿فَاتَّبِعْهَا وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ﴾ فِي عِبَادَة غَيْر اللّٰه ﴿إِنَّهُمْ لَنْ يُغْنُوا﴾ يَدْفَعُوا ﴿عَنْكَ مِنَ اللّٰهِ﴾ من عذابه ﴿شيئا وإن الظالمين﴾ الكافرين ﴿بعضهم أولياء بعض والله ولي المتقين﴾ ﴿هَذَا﴾ الْقُرْآن ﴿بَصَائِرُ لِلنَّاسِ﴾ مَعَالِم يَتَبَصَّرُونَ بِهَا فِي الْأَحْكَام وَالْحُدُود ﴿وَهُدًى وَرَحْمَةٌ لِقَوْمٍ يُوقِنُونَ﴾ بالبعث ﴿أَمْ﴾ بِمَعْنَى هَمْزَة الْإِنْكَار ﴿حَسِبَ الَّذِينَ اجْتَرَحُوا﴾ اكْتَسَبُوا ﴿السَّيِّئَاتِ﴾ الْكُفْر وَالْمَعَاصِي ﴿أَنْ نَجْعَلَهُمْ كَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ سَوَاءً﴾ خَبَر ﴿مَحْيَاهُمْ وَمَمَاتُهُمْ﴾ مبتدأ وَمَعْطُوف وَالْجُمْلَة بَدَل مِنَ الْكَاف وَالضَّمِيرَانِ لِلْكُفَّارِ الْمَعْنَى أَحَسِبُوا أَنْ نَجْعَلَهُمْ فِي الْآخِرَة فِي خَيْر كَالْمُؤْمِنِينَ فِي رَغَد مِنَ الْعَيْش مُسَاوٍ لِعَيْشِهِمْ فِي الدُّنْيَا حَيْثُ قَالُوا لِلْمُؤْمِنِينَ لَئِنْ بُعِثْنَا لَنُعْطَى مِنَ الْخَيْر مِثْل مَا تُعْطَوْنَ قَالَ تَعَالَى عَلَى وَفْق إِنْكَاره بِالْهَمْزَةِ ﴿سَاءَ مَا يَحْكُمُونَ﴾ أَيْ لَيْسَ الْأَمْر كَذَلِكَ فَهُمْ فِي الْآخِرَة فِي الْعَذَاب عَلَى خِلَاف عَيْشهمْ فِي الدُّنْيَا وَالْمُؤْمِنُونَ فِي الْآخِرَة فِي الثَّوَاب بِعَمَلِهِمْ الصَّالِحَات فِي الدُّنْيَا مِنَ الصَّلَاة وَالزَّكَاة وَالصِّيَام وَغَيْر ذَلِكَ وَمَا مَصْدَرِيَّة أَيْ بِئْسَ حكما حكمهم هذا

ترجمه: هم الله هغه ذات دې چا چې ستاسو د پاره سیند لره تابع کړو، چې په دې کښې د هغه په حکم (اجازت) سره کشتیانې اوچلیږي، او تاسو د تجارت په ذریعه د هغه فضل تلاش کړئ، او دا چې تاسو شکر اوباسئ، نمر، سپوږمۍ ستوري او اوبه وغیره او څه چې په اسمانونو کښې دي، او ځناور او اونې او ګیا او نهرونه وغیره څه چې په زمکه کښې دي، هغه د خپل طرف نه ټول ستاسو تابع کړل، یعنی ذکر شوې څیزونه الله تعالی د انسانانو د فائدې د پاره پیدا کړي دي، جمیعا تاکید دې، او (منه) حال دې، یعنی دې څیزونو لره ئې تابع کړل په داسې حال کښې چې دا ټول د هغه د طرف نه دي، بې شکه ددې په تابع کولو کښې د هغه خلقو د پاره چې په دې کښې غور او فکر کوي، ډیرې نښې دي، چې ایمان راوړي، تاسو ایمان والو ته اووایئ چې هغه خلقو ته معافي اوکړي چې د الله د ورځو واقعاتو نه ویره نه کوي، یعنی د کافرانو د طرف نه چې تاسو ته کوم تکلیف درسیدلې دې هغه معاف کړئ، او دا دوی ته د جهاد حکم ورکولو نه مخکښې حکم دې، چې الله تعالی مومن قوم ته د هغه عمل بـه بدله ورکړي، یعنی د کافرانو د تکلیفونو د معاف کولو بدله، څوک چې نیکی کوي هغه به د خپلې نفع د پاره کوي، او څوک چې خراب عمل کوي د هغې نقصان هم په هغه باندې دې، بیا تاسو لره خپل رب طرف ته واپس کیدل دي، چې هغه نیکانو او بدکارو ته بدله ورکړي، او یقینا مونږ بنی اسرائیل ته کتاب تورات او حکمت چې د هغې په ذریعه د خلقو په مینځ کښې فیصله اوکړي، او هم په هغوی کښې مو موسی علیه السلام او هارون علیه السلام لره نبوت ورکړو، او مونږ هغوی ته پاکه حلاله روزي ورکړې وه، لکه من او سلوی، او مونږ هغوی ته د هغوی په زمانه کښې د ټولې دنیا په عقلمندو باندې فضیلت ورکړې وو، او مونږ دوی ته د دین په معامله کښې، یعنی حلال او حرام او د محمد ﷺ بعثت په باره کښې، ښکاره او صفا دلیلونه ورکړې وو، بیا دوی د علم راتلو نه پس د محمد ﷺ د پیغمبرئی باره کښې اختلاف اوکړو، د ضد د وجې نه په خپل مینځ کښې، یعنی د هغه دشمنۍ نه په سبب، چې ددوی په مینځ کښې د محمد ﷺ سره د حسد په وجه پیدا شوې وه، په کومو څیزونو کښې چه دوی اختلاف کوي ستا رب به ددوی په مینځ کښې د قیامت په ورځ عملی فیصله به اوکړي، بیا مونږ اې محمد ﷺ تاسو د دین په یو خاص طریقه باندې کړئ، نو تاسو په دې طریقه باندې چلیږئ، او د غیر الله د عبادت په معامله کښې ددې جاهلانو په خواهش باندې مه چلیږئ، یاد اوساتئ چې دا خلق ستا نه د الله عذاب هرګز لرې کولې نشي، او پوهه شه، چې ظالمان کافر خلق په خپل مینځ کښې د یو بل دوستان وي، او د پرهیزګارو او مومنانو کارساز الله دې، او دا قرآن د خلقو د پاره بصیرت او هدایت او رحمت دې، په بعث بعد الموت باندې ایمان ساتونکی خلقو د پاره، آیا د هغه خلقو کوم چې دګناهونو د کفر او معاصی جرمونه کوي، دا خیال دې چې مونږ به دوی د هغه خلقو په شان کړو چې ایمان ئې راوړې دې،؟ او نیک عملونه ئې اوکړل، چه ددوی مرګ او ژوند بهیو شان شي؟

(ام) د همزهٔ انکار په معنی کښې دې، سواء خبر مقدم دې، او محیاهم ومماتهم مبتدا او معطوف ده، او جمله د کاف نه بدل دې، او دواړه ضمیرونه د کافرانو د پاره دی، د آیت معنی دا ده چې ایا دا کافران ګمان کوی چې مونږ دوی په آخرت کښې د مومنانو پشان کړو، یعنی د ژوند په خوشحالولو کښې، چې ددوی خوشحالی به یو شان وی، څکه چې دوی مومنانو ته وئیلې وو چې فرض کړه مونږ ژوندی کړې شو نو مونږ ته به داسې خیر راکړې شی څنګه چې به تاسو ته درکړې شوې دی، همزه ئې د انکاری منلو په صورت کښې اوفرمائیل خرابه فیصله ده کومه چې دوی کوی، یعنی خبره داسې نه ده، دوی به په آخرت کښې د دنیا د عیش نه خلاف په عذاب کښې وی، او مومنان به په آخرت کښې په دنیا کښې د کړې شوې نیک عملونو مثلا مونځ، زکواة، روژه وغیره په وجه ثواب حاصلوی، (ما یحکمون) کښې (ما) مصدریه ده، یعنی ددوی دا فیصله ډیره خرابه ده.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: وسخر لکم ما فی السموات وما فی الارض جمیعا منه : واؤ عاطفه دې، ددې جملې عطف په مخکښنئ جمله باندې دې.

**قوله**: جمیعا :دما نه حال دې، او (منه سخرها) ضمیر نه حال دې، **ای سخرها کائنة منه تعالی**، علامه محلی جمیعا لره د (ما) موصوله تاکید ګرځولې دې، کوم چې د سخر مفعول دې، غالبا داد علامه محلی رحمه الله وهم دې که جمیعا د(ما) موصوله تاکیدوو ،نو جمیعه به وئیلې شو، علامه محلی غالبا په دې کښې د ابن مالک اتباع کړې ده، ددې نه علاوه د جمیعا په ذریعه تاکید قلیل الاستعمال دې، لهذا قرآن په دې باندې محمول کول بهتره نه دی.

**قوله**: منه :حال دې، **ای سخرها کائنة منه تعالی**،

**قوله**: لیجزي قوما بما کانوا یکسبون : ذکر شوې جمله د معاف کولو علت دې، او د قوم نه مراد قوم مومن دې، او د**ما کانوا یکسبون** نه مراد د معاف کولو عمل دې، مطلب دا دې چې د کافرانو د طرف نه په تکلیف رسولو باندې د صبر کولو حکم ورکړې شوې دې، دې د پاره چې الله تعالی د قیامت په ورځ معاف کونکو ته ښه بدله ورکړی، خو دا حکم د جهاد د حکم راتلو نه د مخکښې زمانې دې.

**د آیت دویمه معنی**

د قوم نه مراد کفار دی، او د ماکسبوا نه مراد د مشرکانو هغه بې ډوله او غیر مناسبت حرکتونه دی چې مومنانو سره به ئې د تکلیف رسولو په شکل کښې کول، او د جزاء نه مراد سزا ده، مطلب دا دې چې اې مومنانو تاسو د انتقام او د بدلې کوشش مه کوئ، بلکه مونږ به خپله ددوی نه بدله واخلو، خو اولنئ معنی راجح ده.

**قوله**: قل للذين آمنوا يغفروا: د (قل) مقوله اغفروا ده، چې جوابِ امر يعنى د يغفروا للذين د دلالت د وجې نه محذوف ده، تقديرى عبارت دا دې قل لهم اغفروا يغفروا، او (ليجزى) لمر مقدر "اغفروا" علت دې، علامه محلى د (ما كانوا يكسبون) تفسير په (من المغفرلكفار اذاهم) سره كولو كښې اشاره اوكړه چې اول معنى راجع ده..

**قوله**: ولقد اتينا بنى اسرائيل الكتاب: د بنى اسرائيلو درې كتابونه دى، زبور، تورات، او انجيل، خو په دې كښې چونكه تورات اصل دې، كوم چې د دې نورو كتابونو په ځائ كفايت كوى، ځكه دلته په تورات باندې اكتفا شوې ده.

**قوله**: العقلاء: مناسب به وه چې مفسر د العقلاء په ځائې الثقلين وئيلې وې، ځكه چې په عقلاء كښې ملائكې هم راځى، حالانكه فرشتې د اسمانى كتابونو مكلف نه دى، د بيضاوى عبارت وفضلناهم على العلمين حيث اتيناهم مالم نؤته احدا غيرهم، د قاضى بيضاوى په قول حيث اتيناهم الخ كښې دې خبرې ته اشاره ده، چې عالمى زمانهم ته هم ضرورت نشته، ځكه چې مراد ددې فضائلو نه خصوصيت بيانول دى، كوم چې په حقيقت كښې نورو ته حاصل نه وو، او د جزوى فضيلت نه كلى فضيلت نه ثابتيږى، مثلا په بنى اسرائيلو كښې د ډير انبياؤ راتلل، د سيند شلولو نه پس لاره وركول، ددوى دشمن فرعون غرقيدل، د من او سلوى نازليدل، د يو كاڼى نه دولس چينې جارى كيدل، ددې نه معلومه شوه چې د اجر او ثواب په اعتبار سره فضيلت مراد نه دې (جمل ملخصا)

**قوله**: بعثة محمد: ددې عطف په الدين باندې دې، اى امر بعثه محمد.

**قوله**: لبغى حدث: په دې كښې دوو خبرو ته اشاره ده، اول دا چې بغيا د اختلاف علت دې، او دويم دا چې د بنى اسرائيلو په مينځ كښې د اختلاف سبب ددوى په خپل مينځ كښې ضد او جهالت دې.

**قوله**: هذا بصائر للناس:

**سوال**: هذا مبتدأ ده كوم چه واحد دې، او بصائر جمع ده، په دوارو كښې مطابقت نشته؟

**جواب**: د هذا نه مراد ډير ايتونه او مختلف دليلونه دى، لهذا د معنى په اعتبار سره په مبتدأ خبر كښې مطابقت شته.

**قوله** فى عبادة غيرالله: ددې تعلق د لاتتبعوا سره دې.

**قوله**: معالم: د معلم جمع ده، هغه نښې ته وائى چې د هغې په ذريعې سره د لارې خودنه كيږى، يعنى دا ايتونه احكامو طرف ته لار خودنه كوى،

**قوله**: الذين اجترحوا السيئات: د حسب فاعل دي، او جمله ان نجعلهم الخ د حسب د دوؤ مفعولو قائم مقام دي.

**قوله** سواء: په رفع سره، محياهم ومماتهم د مبتدأ خبر مقدم دي، او كسائي سواء په كالذين آمنوا كښې د ضمير مجرور نه حال واقع كيدو د وجې نه منصوب وئيلې دي، يا ځكه منصوب دي، چې د حسب مفعول ثالث دي، او بعضې حضراتو د نجعلهم د مفعول نه بدل الاشتمال واقع كيدو د وجې نه منصوب وئيلې دي،

**قوله** ليس الامر كذلك: په دې كښې دې خبرې ته اشاره ده چې په ام حسب كښې همزه د استفهام انكارى د پاره ده،

مناسب دا وه چې مفسر علام ليس الامر كذلك په ساء ما يحكمون باندې مقدم كړې وې، ځكه چې دا جمله هم دې سره تړلې ده.

**قوله**: ما مصدرية: بئس ما يحكمون كښې (ما) مصدريه ده، او د ما يحكمون په معنى كښې ده، اود بئس فاعل دې، كوم چې ظاهر دې، خو چې كله فاعل ظاهر وى نو بيا تميز نه وى، د شارح بئس حكما وئيل په دې خبره باندې دلالت كوى چې حكما تميز دې، او چې كله تميز وى نو فاعل مستتر وى، كوم چې د (ما) مصدريه كيدو سره منافى ده، ابن عطيه وئيلې دى چې (ما) مصدريه ده، اى ساء الحكم حكمهم په دې صورت كښې الحكم فاعل دې، او حكمهم مخصوص بالذم.

**[آياتونه: ٢٢ - ٢٦]**

(وخلق الله السماوات و) خلق (الأرض بالحق) متعلق بخلق ليدل على قدرته ووحدانيته (ولتجزى كل نفس بما كسبت) من المعاصي والطاعات فلا يساوي الكافر المؤمن (وهم لا يظلمون) (أفرأيت) اخبرني (من اتخذ إلهه هواه) ما يهواه من حجر بعد حجر يراه احسن (وأضله الله على علم) منه تعالى اي عالما بانه من اهل الضلالة قبل خلقه (وختم على سمعه وقلبه) فلم يسمع الهدى ولم يعقله (وجعل على بصره غشاوة) ظلمة فلم يبصر الهدى ويقدر هنا المفعول الثاني لرأيت أيهتدي (فمن يهديه من بعد الله) اي بعد إضلاله اياه اي لا يهتدي (أفلا تذكرون) تتعظون فيه إدغام إحدى التاءين في الذال (وقالوا) اي منكرو البعث (ما هي) اي الحياة (إلا حياتنا) التي في (الدنيا نموت ونحيا) اي يموت بعض ويحيا بعض بان يولدوا (وما يهلكنا إلا الدهر) اي مرور الزمان قال تعالى (وما لهم بذلك) المقول (من علم إن) ما (هم إلا يظنون) (وإذا تتلى عليهم آياتنا) من القرآن الدالة على قدرتنا على البعث (بينات) واضحات حال (ما كان حجتهم إلا أن قالوا ائتوا بآبائنا) احياء (إن كنتم صادقين) انا نبعث (قل الله يحييكم) حين كنتم نطفا (ثم يميتكم ثم يجمعكم) احياء (إلى يوم القيامة لا ريب) شك (فيه ولكن أكثر الناس) وهم القائلون ما ذكر (لا يعلمون)

**ترجمه:** اسمانونو او زمکې لره الله تعالی په حکمت سره پيدا کړل، بالحق د خلق متعلق دې، چې د هغه په قدرت او وحدانيت باندې دلالت اوکړی، او چې هر کس ته د هغه د کړې شوو کارونو که د ګناهونو نه وی او د نيکو نه پورا پورا بدله ورکړی، نو کافر او مومن به برابر نه وی او په دوی باندې به ظلم نه کيږی، نو اووايه آيا تا داسې کس ليدلې دې چا چې خپل خواهشاتو لره معبود جوړ کړو يعنی کانړو لره يو بل پسې خوښوی، (معبود ئې جوړوی) او الله تعالی ده لره د خپل علم ازلی مطابق ګمراه کړې دې، يعنی الله تعالی ته ددوی د پيدا کولو نه مخکښې پته ده چې دې د ګمراهانو نه دې. او د هغه په غوږونو او زړه باندې ئې مهر لګولې دې، چې د هغې د وجې ده هدايت نه واوريدلو او نه پوهه شو. او د هغه په سترګو باندې ئې هم پرده لګولې ده، چې د هغې د وجه نه هدايت نه وينی، دلته ر آيت مفعول ثانی أيهدی مقدر دې، اوس داسې کس ته د الله نه سوا څوک هدايت ورکولې شی، يعنی د الله ده لره د ګمراه کولو نه پس څوک ده ته هدايت ورکولې شی؟ يعنی څوک هدايت ورکولې نشی، آيا اوس هم تاسو نصيحت نه حاصلوئی، په دې کښې د دؤو تاءګانو نه د يو تاء په ذال کښې ادغام دې، او د بعث منکرينو اووئيل چې زمونږ ژوند خو صرف هغه ژوند دې کوم چې په دنيا کښې دې، مونږ مړه کيږو او ژوندی کيږو، يعنی يو مړ شی نو بل ژوندې شی، په داسې طريقه چې پيدا کيږی، او مونږ صرف زمانه مړ کولې شی، يعنی ددې چليدل، الله تعالی اوفرمائيل دوی ته ددې خبرې بالکل پته نشته، دوی صرف د اټکل نه کار اخلی، او چې کله ددوی په مخکښې زمونږ واضح ايتونه تلاوت کړې شی، يعنی د قرآن ايتونه چې زمونږ په قدرت علی البعث باندې دلالت کوی، نو دوی سره ددې خبرې نه سوا بل دليل نه وی، که چرې تاسو په دې خبره کښې رشتونې يئ، چې مونږ به ژوندی کيږو، نو زمونږ پلار نيکه ژوندی راولئ، بينات حال دې، ته ورته اووايه چې هم الله تاسو ژوندی کوی، کله چې تاسو بې جانه نطفه وئی، بيا به تاسو ته مرګ درکړی، بيا به تاسو د قيامت په ورځ ژوندی کولو سره جمع کړی، چې په هغې کښې څه شک نشته، خو ډير خلق چې ددې ذکر شوې خبرې قائل دی نه پوهيږی.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** افرآيت: اخبرني: په دې کښې سبب وئيلو سره مسبب مراد اخستلې شوې دې، ځکه چې رؤيت د اخبار سبب دې، لهذا رؤيت سبب او اخبار ددې مسبب، او اطلاق د مجاز د قبيلې نه دې، او استفهام په معنی د امر دې، او جامع طلب دې، ځکه چې امر او استفهام دواړه په طلب کښې مشترک دی.

**قوله:** اضله الله علی علم: علی علم، د اضله فاعل د الله نه هم حال کيدې شی، او (ه) ضمير د مفعول نه هم حال کيدې شی، مفسر علام د فاعل نه حال ګرځولو سره مطلب دا بيان کړې

دي، چې الله تعالی د خپل علم ازلی د وجې نه د ده د گمراه کیدلو نه د خبریدو د وجه گمراه کړو، او کومو حضراتو چې (علی علم) په (اضله) کښې د ه ضمیر نه حال گرځولې دې، د هغوی په نیز مطلب دا دې چې الله تعالی دهٔ لره د پوهې باوجود گمراه کړو. ای اضله وهو عالم بالحق په دې کښې ډیر مذمت دې.

**قوله**: وما لهم بذلك المقول :، دذلك المقول نه د منکرین خدا قول وما يهلكنا الا الدهر مراد دې، یعنی دوی سره په دې قول خپل هیڅ دلیل نشته، نه عقلی او نه نقلی، بلکه دوی په اټکل او اندازې سره خبرې کوی.

**[آیاتونه: ٣٦ - ٣٧]**

وولله ملك السماوات وَالْأَرْضِ وَيَوْمَ تَقُومُ السَّاعَةُ، يُبْدَل مِنْهُ (يَوْمَئِذٍ يَخْسَرُ الْمُبْطِلُونَ) الْكَافِرُونَ أَيْ يَظْهَر خسرانهم بِأَنْ يَصِيرُوا إِلَى النَّار (وَتَرَى كُلَّ أُمَّةٍ) أَيْ أَهْل دِين (جَاثِيَةً) عَلَى الرُّكَب أَوْ مُجْتَمِعَة (كُلُّ أُمَّةٍ تُدْعَى إِلَى كِتَابِهَا) كِتَاب أَعْمَالهَا وَيُقَال لَهُمْ (الْيَوْمَ تُجْزَوْنَ مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ) أَيْ جَزَاءَهُ (هَذَا كِتَابُنَا) دِيوَان الْحَفَظَة (يَنْطِقُ عَلَيْكُمْ بِالْحَقِّ إِنَّا كُنَّا نَسْتَنْسِخُ) نثبت ونحفظ (ما كنتم تعملون) (فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ فَيُدْخِلُهُمْ رَبُّهُمْ فِي رَحْمَتِهِ) جَنَّته (ذَلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْمُبِينُ) البين الظاهر (وَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا) فَيُقَال لَهُمْ (أَفَلَمْ تَكُنْ آيَاتِي) الْقُرْآن (تُتْلَى عَلَيْكُمْ فَاسْتَكْبَرْتُمْ) تَكَبَّرْتُمْ (وَكُنْتُمْ قَوْمًا مُجْرِمِينَ) كَافِرِينَ (وَإِذَا قِيلَ) لَكُمْ أَيُّهَا الْكُفَّار (إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ) بِالْبَعْثِ (حَقٌّ وَالسَّاعَةُ) بِالرَّفْعِ وَالنَّصْب (لَا رَيْبَ) شَكّ (فِيهَا قُلْتُمْ مَا نَدْرِي مَا السَّاعَةُ إِنْ) مَا (نَظُنُّ إِلَّا ظَنًّا) قَالَ الْمُبَرِّد أَصْله إِنْ نَحْنُ إِلَّا نَظُنّ ظَنًّا (وَمَا نَحْنُ بِمُسْتَيْقِنِينَ) أَنَّهَا آتِيَة (وَبَدَا) ظَهَرَ (لَهُمْ) فِي الْآخِرَة (سَيِّئَاتُ مَا عَمِلُوا) فِي الدُّنْيَا أَيْ جَزَاؤُهَا (وَحَاقَ) نَزَلَ (بِهِمْ مَا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ) اي العذاب (وَقِيلَ الْيَوْمَ نَنْسَاكُمْ) نَتْرُككُمْ فِي النَّار (كَمَا نَسِيتُمْ لِقَاءَ يَوْمِكُمْ هَذَا) أَيْ تَرَكْتُمْ الْعَمَل لِلِقَائِهِ (وَمَأْوَاكُمُ النَّارُ وَمَا لَكُمْ مِنْ نَاصِرِينَ) مانعين منه (ذَلِكُمْ بِأَنَّكُمُ اتَّخَذْتُمْ آيَاتِ اللَّهِ) القرآن (هُزُوًا وَغَرَّتْكُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا) حَتَّى قُلْتُمْ لَا بَعْث وَلَا حِسَاب (فَالْيَوْمَ لَا يُخْرَجُونَ) بِالْبِنَاءِ لِلْفَاعِلِ وَلِلْمَفْعُولِ (مِنْهَا) مِنَ النَّار (وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُونَ) لَا يُطْلَب مِنْهُمْ أَنْ يُرْضُوا رَبّهمْ بِالتَّوْبَةِ وَالطَّاعَة لِأَنَّهَا لَا تَنْفَع يَوْمئِذٍ (فَلِلَّهِ الْحَمْدُ) الْوَصْف بِالْجَمِيلِ عَلَى وَفَاء وَعْده فِي الْمُكَذِّبِينَ (رَبِّ السَّمَاوَاتِ وَرَبِّ الْأَرْضِ رَبِّ الْعَالَمِينَ) خَالِق مَا ذُكِرَ وَالْعَالَم مَا سِوَى اللَّه وَجُمِعَ لِاخْتِلَافِ أَنْوَاعه وَرَبّ بَدَل (وَلَهُ الْكِبْرِيَاءُ) الْعَظَمَة (فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ) حَال أَيْ كَائِنَة فِيهِمَا (وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ) تَقَدَّمَ

**ترجمه**: په اسمانونو او زمکه کښې د الله تعالی بادشاهی ده، په کومه ورځ به چې قیامت قائم شی، په هغه ورځ به باطل والو یعنی د کافرو یومئذ د یوم القیامة نه بدل دې، یعنی په هغه ورځ به ددوی نقصان ښکاره شی، په داسې طریقه چې دوی به جهنم ته داخل شی، ته به گورې چې هر یو فرقه یعنی مذهب والا به په گنډو باندې یا په اجتماعی توگه باندې ناست وی، هر یوه ډله به

خپلو اعمالنامو طرف ته رابللې شي، او دوی ته به اووئيلې شي نن به تاسو ته ستاسو د عملونو بدله در کړې شي، دا دې زمونږ کتاب د حفاظت کونکی فرشتو رجستر چې ستاسو په حق کښې رښتيا وائي، مونږ ستاسو عملونه ليکل، او محفوظ کول، نو کومو خلقو چې ايمان راوړو او نيک عملونه ئې اوکړل نو هغوی به د هغوی رب په خپل رحمت په جنت کښې داخل کړي. او هم دا ښکاره کاميابی ده، خو کومو خلقو چې کفر اوکړو، نو هغوی ته به اووئيلې شي، آيا تاسو ته زمونږ ايتونه نه اوريدلې کيدل؟ بيا هم تاسو تکبر کولو او تاسو وينځ مجرمان کافران او کله چې اې کافرانو تاسو ته اووئيلې شو چې د الله د بعث وعده حق ده، او د قيامت په راتلو کښې هيڅ شک نشته، الساعة، باندې رفع او نصب نو تاسو به وئيل چې مونږ ته پته نشته چې قيامت څه څيز دې؟ مونږ ته هسې خيال راشي، مبرد وئيلي دی چې د ماتظن الاظنا اصل ان نظن ظنا دې، خو مونږ ته يقين نشته، چې قيامت راتلونکې دې، په دوی باندې به په دنيا کښې د کړې شوو کارونو خرابئ ښکاره شي، يعنی دهغې سزا او چې کوم عذاب پسې دوی توقې کولې هم هغه په دوی باندې نازل شو دوی ته به اووئيلې شي نن به مونږ تاسو په اور کښې پريخودلو سره هير کړو څنګه چې تاسو ددې ورځې ملاقات هير کړې وو، يعنی ددې ورځې ملاقات د پاره مو عمل پريخودلې وو او ستاسو ځائې جهنم دې، او ستاسو مدد کولو والا څوک نشته، يعنی د اور نه بچ کولو والا ،څوک نشته، دا ځکه چې تاسو د الله په آيتونو پسې توقې کړې وې، او د دنيا ژوند تاسو په دهوکه کښې اچولې وئ، تر دې چې تاسو اووئيل چې نه بعث شته او نه حساب، نو نن ورځ به نه خو دوی د دوزخ نه ويستلې کيږی، او نه به د دوی نه عذر معذرت قبليږی، يعنی دوی نه به ددې مطالبه نه کيږی، چې خپل رب لره د توبې او اطاعت په ذريعې سره رضا کړی، ځکه چې نن ددې څه فائده نشته، ﴿يخرجون﴾ معروف او مجهول دواړو دې، نو د الله تعريفونه دی يعنی بهترينه ثناء ده، د مکذبينو په باره کښې د خپلې وعدې پوره په کولو کوم چې د اسمانونو او د زمکې او د ټولو جهانونو رب دې، د ذکر شوی ټولو څيزونو خالق دې، او ﴿عالم﴾ د الله نه د سوا څيزونو نوم دې، او عالمين ددې د مختلف قسمونو د وجه نه جمع راوړلې شوې دې، او رب د ﴿الله﴾ نه بدل دې په اسمانونو او زمکه کښې د الله بادشاهی ده، في السموات والارض حال دې، يعنی حال دا دې چې د هغه لوئې او عظمت په اسمانونو او زمکه کښې دې، او هغه غالب دې، او حکمت والا دې، ددې تشريح مخکښې تيره شوې ده،

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله**: يومئذ يخسر المبطلون: د يوم يقوم الساعة نه بدل د تاکيد د پاره دې، او يوم تقوم د يخسر ظرف دې، او په يومئذ کښې تنوين د مضاف اليه په عوض کښې دې، تقديری عبارت دا دې يوم اذ تقوم الساعة

**قوله** اي يظهر عمرانهم: دا ددې سوال مقدر جواب دې، چې د باطلو خلق پرستو تاوان په علم ازلی کښې متعين او لازم دې، نو بيا په دې ورځ د تاوان څه مطلب دې؟

**جواب** د باطل پرستو خلقو تاوان اګرچې د ازل نه متعين دې خو ددې ښکاره کيدل به په هغه ورځ وی چې کله دوی جهنم ته لاړشی.

**قوله** جاثية: واحد مؤنث غائب، په کونډو باندې ناسته، د کونډو په سر راغورزيدونکې، **جثوا جثى** دلته جاثيه جمع استعمال شوې ده، لکه **جماعة قائمة**

**قوله** نستنسخ: جمع متکلم مضارع (استفعال) مونږ محفوظ ساتو، (ف) نسخا، زائله کول، بدلول، منسوخ کول، ليکل، نقل کول.

**قوله** بالرفع والنصب: يعنی په الساعة باندې رفع او نصب دواړه جائز دی، رفع د مبتدأ کيدو د وجې نه، لاريب فيها جمله مبتدأ خبر، او نصب د (إن) په اسم باندې د عطف کيدو د وجې نه دې.

**قوله** قال المبرد اصله ان نحن الانظن ظنا.

**سوال**: ظنا مصدر د تاکيد د پاره واقع شوې دې، او کوم مصدر چې د تاکيد د پاره واقع شی نو هغه استثناء مفرغ واقع کيدې نه شی، حالانکه دلته ظنا مصدر استثناء مفرغ واقع شوې ده، ځکه چې په دې سره د يو څيز ثابت کيدل او هم د هغې نفی لازم راځی، کوم چې جائز نه دې، او دا داسې ده لکه چې څوک اووايئ، **ما ضربت الا ضربت** او دا استثناء **الکل عن الکل** کيدو د وجې په اتفاق سره جائز ده.

**جواب**: مفسر د نحن اضافه اوکړه، چې د هغې د وجې نه مستثنی د مستثنی منه نه مغائر شوه، ځکه چې د نفی مورد (مصداق) محذوف دې، او هغه (نحن) دې، او داثبات مصداق (مورد) **نظن ظنا** دې، کلمه د الا اګر چې مؤخر ده، خو تقدير مقدم ده، د آيت نه چې کوم حصر معلوميږی د خان د پاره د ظن اثبات او د ظن د ماعدا نفی ده، په من جمله ماعدا کښې يقين هم دې، او هم د يقين نفی مقصود ده، خو مطلقا د ماعدا الظن نفی د يقين په نفی کښې د مبالغې د پاره ده، او هم دغه وجه ده چې مشرکينو په خپل قول **وما نحن بمستيقنين** سره د مانظن الا ظنا تاکيد کړې دې.

**قوله** جزائها: د مضاف حذف طرف ته ئې اشاره اوکړه چې د ګناهونو د ښکاره کيدو نه مراد د هغې د بدلې ښکاره کيدل دی، د نسيان تفسير په ترک سره کولو کښې اشاره اوکړه چې د نسيان نه لازم معنی مراد ده، ځکه چې د انسان نه د نسيان ګناه اوچته شوې ده، او د الله د پاره محال ده، او ترک د نسيان سره لازم دې.

**قوله**: ذلكم بأنكم: اى العذاب العظيم بسبب انكم اتخذتم آيات الله هزوا، د ذلك مرجع عذاب عظيم دې، او بأنكم كښې با سببيه ده،

**قوله**: لا يستعتبون: استعتاب نه جمع مذكر غائب، (استفعال) ددوى نه به د الله د راضى كوو خواهش نه كيږى، بعضې حضراتو ددې ترجمه كړې ده، چې ددوى عذرونه نه به نشى قبلولې، علامه محلى اوله معنى مراد اخستې ده،

**قوله**: فى السموات والارض: دالكبرياء نه حال دې.

## پاره نمبر- ٢٦ [حٰمٓ]

## [٤٦] سورة الأحقاف

**سورة الأحقاف مكية إلا قُل أرأيتم إن كان من عند الله آية وإلا فاصبر كما صبر أولوا العزم من الرسل الاية وإلا ووصينا الإنسان بوالديه الثلاث آيات وهى أربع اوخمس وثلثون آية**

سورت احقاف مكى سورت دې سوا دَ قل أرأيتم (الآية) اوسوا دَ فاصبر كما صبر (الاية) اوسوا دَ ووصينا الإنسان (درې آياتونه) اودا ٣٤ يا ٣٥ آياتونه دى.

**[اياتونه: ١-١٠]**

---

بسم الله الرحمن الرحيم (حٰمٓ) الله أعلم بمراده به (تنزيل الكتاب) ال قرآن مبتدأ (من الله) خبره (العزيز) في مُلكه (الحكيم) في صُنعه (ما خلقنا السماوات والأرض وما بينهما إلا) خلقا (بالحق) ليدل على قُدرتنا ووحدانيتنا (وأجل مسمى) إلى فنائهما يوم القيامة (والذين كفروا عما أنذروا) خُوّفوا به من العذاب (معرضون) (قل أرأيتم) أخبروني (ما تدعون) تعبدون (من دون الله) أي الأصنام مفعول أول (أروني) أخبروني ما تأكيد (ماذا خلقوا) مفعول ثانٍ (من الأرض) بيان ما (أم لهم شرك) مشاركة (في) خلق (السماوات) مع الله وأم بمعنى همزة الإنكار (ائتوني بكتاب) منزل (من قبل هذا) ال قرآن (أو أثارة) بقية (من علم) يؤثر عن الأولين بصحة دعواكم في عبادة الأصنام أنها تقربكم إلى الله (إن كنتم صادقين) في دعواكم (ومن) استفهام بمعنى النفي أي لا أحد (أضل ممن يدعوا) يعبد (من دون الله) أي غيره (من لا يستجيب له إلى يوم القيامة) وهم الأصنام لا يجيبون عابديهم إلى شيء يسألونه أبدا (وهم عن دعائهم) عبادتهم (غافلون) لأنهم جماد لا يعقلون (وإذا حشر الناس كانوا) أي الأصنام (لهم) لعابديهم (أعداء وكانوا بعبادتهم) بعبادة عابديهم (كافرين) جاحدين (وإذا تتلى عليهم) أي أهل مكة (آياتنا) ال قرآن (بينات) ظاهرات حال (قال الذين كفروا) منهم (للحق) أي ال قرآن (لما جاءهم هذا سحر مبين) بيّن ظاهر (أم) بمعنى بل وهمزة الإنكار (يقولون افتراه) أي ال قرآن (قل إن افتريته) فرضا (فلا تملكون لي من الله) أي من عذابه (شيئا) اي لا تقدرون على دفعه عني إذا عذبني الله (هو أعلم بما تفيضون فيه) تقولون في ال قرآن (كفى به) تعالى (شهيدا بيني وبينكم وهو الغفور) لمن تاب (الرحيم)

به فلمَ يُعاجلكم بالعقوبة (قُلْ مَا كُنْتُ بِدْعًا) بديعًا (مِنَ الرُّسُلِ) اي اول مرسل قد سبق قبلي كثيرون منهم فكيف تكذبوني (وَمَا أَدْرِي مَا يُفْعَلُ بِي وَلَا بِكُمْ) في الدنيا اأخرج من بلدي ام اقتل كما فعل بالانبياء قبلي او ترموني بالحجارة ام يُخسف بكم كالمكذبين قبلكم (إِنْ) ما (أَتَّبِعُ إِلَّا مَا يُوحَىٰ إِلَيَّ) اي القران ولا ابتدع من عندي شيئًا (وَمَا أَنَا إِلَّا نَذِيرٌ مُبِينٌ) بيّن الإنذار (قُلْ أَرَأَيْتُمْ) اخبروني ماذا حالكم (إِنْ كَانَ) اي القران (مِنْ عِنْدِ اللَّهِ وَكَفَرْتُمْ بِهِ) جملة حالية (وَشَهِدَ شَاهِدٌ مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ) هو عبد الله بن سلام (عَلَىٰ مِثْلِهِ) اي عليه انه من عند الله (فَآمَنَ) الشاهد (وَاسْتَكْبَرْتُمْ) تكبرتم عن الإيمان وجواب الشرط بما عُطف عليه ألستم ظالمين دلّ عليه (إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ)

**ترجمه** شروع کوم په نامه دَ الله چه ډير بخښونکي او ډير مهربان دي حم دَدي نه خپل مراد الله تعالى بهتر پيژني، کتاب يعنى قرآن نازلول په خپل ملك کښې غالب په خپل صنعت کښې حکمت والا (دالله) دَ طرف نه دى (الكتاب) مبتدأ او مِنَ اللهِ دَدې خبردې. مونږ آسمانونه اوزمکې اودَدې په مينځ کښې ټول څيزونه په حکمت سره اودَ يوې مقررې مودې (پورې) دَپاره پيداکړې دى يعنى دَ قيامت په ورځ دَدې دَ فناکيدوپورې، دې دَپاره چه زمونږ په قدرت او وحدانيت باندې دلالت اوکړى اوکافران خلق چه دکوم څيز نه ويرولې شي (يعنى) دَ کوم عذاب نه چه ويرولې شي دَهغې نه مخ اړوى، ته ورته اووايه.آيا اوګورئي څوک چه دَالله تعالى نه علاوه تاسو رابلئ بندګى ئې کوئ يعنى دَ بتانو، ماته اوښايئ دوى دَ زمکې کومه يوه حصه پيدا کړې ده، ما، دَ تَدْعُونَ مفعول اول دې أَرُوْنِي په معنى أخْبِرُوْنِي (دَ أَرَأَيْتُمْ تاکيد دې مَاذَا خَلَقُوْا) مفعول ثانى دې (مِنَ الْأَرْضِ) دَ مَا بيان دې يادَ آسمانونوپه پيداکولوکښې دوى دالله تعالى سره شراکت دې. مَا دَاستفهام انکارى په معنى کښې دې ماته يوکتاب کوم چه دَدې قرآن نه وړاندې نازل کړې شوى وى راوړئي يا بل څه نقل کړې شوې مضمون چه ستاسو دَ بت پرستئ دَ دعوىٰ په صحت باندې دَ اسلافونه نقل کړې شوې راروان وى چه دا بتان به تاسو دَالله تعالى مقرب جوړه کړى که چرې تاسو په خپله دعو ى کښې رښتونى يئ اودَ هغه چا نه لوئې ګمراه به څوک وى؟ استفهام په معنى دَنفى دې يعنى هيڅوك نشته چه دَالله تعالى نه سوا داسې معبودانو ته آواز کوى يعنى بندګى ئې کوى چه ترقيامته پورې دَدوى دعا قبوله نه کړې شى اوهغه بتان دى، دَ خپل عبادت کونکو دَ يوسوال هيڅ کله هم جواب نه شى ورکولې بلکه هغوى دَ آوازونونه (يعنى دوى دَ بندګئ )ناخبره دى څکه چه دا خو جمادات بې عقل څيزونه دى اوکله چه به خلق جمع کړې شى نودا بتان به دَ هغوى يعنى خپله بندګئ کونکو دښمنان وى اودَ دوى يعنى خپل عبادت کونکو دَعبادت نه به انکار اوکړى اوکله چه دوى ته يعنى اهل مکه ته زمونږ ښکاره آياتونه يعنى قرآن لوستلو سره واورولې شى نو په دوى کښې دَحق نه منکر يعنى منکرين قرآن رښتيا خبره کومه چه دوى له راغلې ده د هغې

باره کښې وائی چه دا خو ښکاره جادو دې او هغوی دا وائی چه دا قرآن خو ده (رسول) دَ خپل ځان نه جوړ کړې دې؟ أَمْ په معنی د بَلْ دې او همزه دَ انکار ده، تاسو دوی ته اووایئ که فرض کړه دا ما دَ ځان نه جوړ کړې دې نو تاسو ما دَ الله تعالی دَ عذاب نه لږ شان هم نه شئ بچ کولې یعنی کله چه الله تعالی ما ته عذاب راکول غواړی نو تاسو هغه عذاب زمانه نه شئ لرې کولې، دَ قرآن باره کښې چه کومې خبرې تاسو جوړوئ هغه دا ښه پیژنی، زما او ستاسو په مینځ کښې دَ ګواهئ دَ پاره هم هغه کافی دې چا چه توبه او کړه هغه هغوی له ډیر لوئ معاف کونکې دې او هغه په هغوی باندې ډیر لوئ رحم کونکې دې، هم په دې وجه هغه ستاسو په سزا کښې تادی نه کوی، ته ورته او وایه چه زه څه ناشنا (عجیبه) رسول خو نه یم یعنی رومبې (رسول خو نه یم) مانه وړاندې زما په شان ډیر رسولان تیر شوی دی نو تاسو زما تکذیب په کوم بنیاد باندې کوئ؟ او زه نه پیژنم چه (صبا به) ما سره او تاسو سره په دنیا کښې څه معامله کولې شی آیا زه به دَ خپل ښار نه ویستلې شم یا به قتل کولې شم؟ لکه څنګه چه زما نه وړاندې انبیاء کرامو سره او کړې شو، یا به په تاسو باندې کاڼرې راوروولې شی یا به تاسو دَ وړاندینو مکذبینو په شان په زمکه کښې ورخښولې شئ زه خو صرف هم دَ هغه څه تابعداری کوم څه چه زما طرف ته وحی راليږلې شی او زه خو یو صفا صفا ویرول (خبردار کونکی) نه سوا هيڅ نه یم، تاسو ورته او وایئ چه تاسو ما ته دا او ښایئ که قرآن هم دَ الله تعالی دَ طرف نه وی او تاسو دَ دې نه انکار او کړو نو ستاسو انجام به څه وی؟ ﴿وَكَفَرْتُمْ بِهِ﴾ جمله حالیه ده او دَ دې په شان کلام باندې خو یو بنی اسرائیلی ګواه او هغه عبد الله بن سلام ﷺ دې شهادت هم ورکړې دې یعنی په دې خبره باندې چه (قرآن) دَ الله تعالی دَ طرف نه دې او هغه شاهد ایمان راوړو او تاسو په تکبر کښې پاتې شوئ یعنی دَ ایمان په مقابله کښې مو تکبر او کړو او دَ شرط سره د خپل معطوف جواب أَلَسْتُمْ ظَالِمِينَ دې په کوم چه إِنَّ اللهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ دلالت کوی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: أَحْقَاف، دَ حِقْف دَ جمع ده، او حِقْف دَ شګو هغه غونډئی ته وئیلی شی چه مستطیل او مرتفع او څه قدرې خکته وی او احقاف په یمن کښې دَ یوې وادئی نوم هم دې، دَ قوم عاد مرکزی مقام احقاف وو، دا دَ حضرموت په شمال کښې داسې واقع دَ چه دَ دې په مشرق کښې عمان او شمال کښې ربع خالی واقع دې دیته صحرائې اعظم الدنیا هم وئیلی شی، پخوانئی زمانه کښې د حضرموت او د نجران په مینځې حصه کښې عاد ارم یعنی د عاد اولی مشهوره قبیله آباده وه، کومه چه الله تعالی دَ هغوی دَ نافرمانئ په سبب دَ سیلئی عذاب راليږلو سره نیست او نابود (ختمه) کړې وه، عبد الوهاب نجار په قصص الانبیاء کښې په صفحه ٧١ باندې تصریح کړې ده چه ما ته سید عبد الله بن احمد

بن عمر بن يحيى علوى رحمه الله چه دحضرموت اوسيدونكي دي بيان كړي چه هغه دي هلاك شوي قوم د پخوانى مساكن (آبادئ) د لټون دپاره دحضرموت په شمالى ميدان كښې اوسيدونكي پاتې شوي دي د پوره كوشش او لټون نه پس د غونډو په كنستلو كښې د سنگ مرمر څه لوښى راوتل په كوم چه په خط مسمارى كښې څه كند، (نقش) كړي شوي وه ليكن افسوس د سرمايه د كمى په وجه دامهم په ځائ پريخودلې شو. (لغات ال قرآن)

**قوله:** إِلَّا بِالْحَقِّ، بِالْحَقِّ نه وړاندې خَلْقًا محذوف منلوسره مفسرعلام دې خبرې ته اشاره اوكړه چه بالحق د ملبسًا سره متعلق دى او دخلقًا مصدر محذوف صفت دې، تقديرى عبارت دادې الا خلقًا مُتَلَبِّسًا بِالْحَقِّ.

**قوله:** وَأَجَلٍ مُّسَمًّى واؤعاطفه دې د أَجَلٍ عطف په الْحَقِّ باندې دې أي بحق وبأجل مُسَمًّى يعنى مونږ آسمانونه اوزمكې په حق او متعين مودې سره پيدا كړى دى يعنى ددې دفنا كيدويوه ورځ متعين ده اوهغه دقيامت ورځ ده، په كلام كښې مضاف محذوف دې اى وَالاَ بتعيين أجلٍ مسمّى.

**قوله:** وَالَّذِينَ كَفَرُوا موصول، صله مبتدا، او مُعْرِضُونَ ددې خبر دې او عَمَّا أُنذِرُوا د مُعْرِضُونَ متعلق دې، ما اسم موصول دې مُعْرِضُونَ جمله صله ده عائد محذوف دې دكوم طرف ته چه مفسرعلام به مقدر منلوسره اشاره كړې ده.

**قوله:** عَمَّا أُنذِرُوا كښې مَا موصوله اومصدريه دواړه كيدې شى دموصوله په صورت كښې به تقديرى عبارت داشى عَنْ عَذَابِ الَّذِى أُنْذِرُوهُ مُعْرِضُونَ.

**قوله:** قُلْ أَرَأَيْتُم مَّا تَدْعُونَ مِن دُونِ اللهِ د شارح رحمه الله د قول مطابق أَرَأَيْتُمْ په معنى د أَخْبِرُونِي تَدْعُونَ په معنى د تَعْبُدُونَ دې أى أخبروني ما تعبدون من دون اللهِ من الأصنام مَا تَدْعُونَ، دأَرَأَيْتُمْ مفعول اول دې او مَاذَا خَلَقُوا جمله قائم مقام د مفعول ثانى ده، دا هم احتمال دې چه أَرُونِي د أَرَأَيْتُمْ تاكيدوى او په معنى د أخبروني وى، په دې صورت كښې به دا د باب تنازع فعلان نه وى، ځكه چه أَرَأَيْتُمْ او أَرُونِي دواړه دمفعول ثانى طالب دى مفعول اول دواړو سره موجود دې. مَا تَعْبُدُونَ د أَرَأَيْتُمْ مفعول اول دې او أَرُونِي كښې ياء د أَرُونِي مفعول اول دې او مَاذَا خَلَقُوا متنازع فيه دې، دواړه افعال دا خپل مفعول ثانى جوړول غواړى د بصريينو د مذهب مطابق فعل ثانى ته عمل وركولو سره به د فعل اول مفعول ثانى محذوف منلې شى.

**قوله:** مُشَارِكٌ فِى الْخَلْقِ، مشارك په معنى د مشاركت دې كه چرې مفسرعلام دمشارك

په خانې معارکة فرمائیلې وې نو ډیره به واضحه وه په موجوده نسخه کښې معارکة دې.

**قوله**: ایْتُونِیْ دا جمله هم منجمله دَ قُلْ دَ مقولې نه ده او ایْتُونِیْ امر د تعجیز او تبکیت دَپاره دې أَرُونِیْ په دَ دلیل عقلی فقدان طرف ته اشاره کولو نه پس ایْتُونِیْ بِکِتَابٍ الخ سره ئې دَدلیل نقلی فقدان طرف ته اشاره کړې ده.

**قوله**: مِن قَبْلِ هٰذَا دا دَ بِکِتَابٍ صفت دې کوم چه مطلق دې که منزّل وی اوکه غیر منزّل أی ایْتُونِیْ بِکِتَابٍ کَائِنٍ مِن قَبْلُ مگر مفسرعلام دَ ابو البقاء په اتباع د کښې مِنْ قَبْلُ متعلق خاص یعنی منزل ئې محذوف منلې دې مگر مطلق پریخودل زیات بهتر دی أی کَائِنٍ مِن قَبْلِ هٰذَا. (جمل)

**قوله**: أَثَارَةٍ بَقِیَّةٍ، د بَقِیَّةٍ اضافه دَ بیان معنی دَپاره ده أَثَارَة دغوایة وضلالة په وزن مصدر دې او دا دَ عربو قول سَمِنَتِ النَّاقَةُ عَلٰی أَثَارَةٍ مِنَ الْحِمِ، أی علی بقیة منه نه مشتق دې اوبعض د حضراتو أَثَارَة معنی روایة اوعلامة هم بیان کړې ده. خلاصه دا چه دَ اهل لغت په أَثَارَة کښې درې اقوال دی ① الأثارة په معنی بقیة دا أَثَرْتُ الشیئ دَ أَثَارَة نه مشتق دې کأنها بقیة تخرج فتستثار ② الأثارة، مِنَ الأثر، أی الروایة والنقل ③ مِنَ الأثر، په معنی العلامة (اعراب ال قرآن) مراد علوم دی کوم چه دَ اسلافو نه سینه په سینه رانقل کیږی.

**قوله**: مِنْ قَبْلِ هٰذَا: د کائن محذوف سره متعلق شو د بِکِتَابٍ صفت دې او بِکِتَابٍ دا ایْتُونِیْ سره متعلق دې او أَثَارَةٍ په کِتَابٍ باندې معطوف دې.

**قوله**: إِنْ کُنْتُمْ صَادِقِیْنَ شرط دې دَدې جزاء فأتونی محذوف ده او صَادِقِیْنَ د کنتم خبر دې.

**قوله**: مَنْ لَا یَسْتَجِیْبُ الخ مَنْ نکره موصوفه هم کیدې شی روسته جمله به ددې صفت وی تقدیر د عبارت به داسې وی: من أضل من شخص یعبد شیئا لا یجیبه او موصوله هم کیدې شی، په دې صورت کښې به دَ مابعد جمله دَدې صله وی تقدیری عبارت به داوی مَنْ أَضَلُّ مِنْ شَخْصٍ یَعْبُدُ الشیئ الذی لا یجیبُهٗ وَلَا یَنْفَعُهٗ فی الدنیا ولا فی الآخرة.

**قوله**: مَنْ لَا یَسْتَجِیْبُ لَهٗ جمله د یَدْعُوْا مفعول به دې.

**قوله**: إِلٰی یَوْمِ الْقِیَامَةِ دا دَ لَا یَسْتَجِیْبُ غایت دې، دکوم نه چه په ظاهره معلومیږی چه دَقیامت نه پس به استجابت وی داسې چه غایت په مغیا کښې داخل نه وی حالانکه داسې نه ده بلکه دلته دَ بیان غایت نه تائید مراد دې اوغایت په مغیا کښې داخل دې لکه چه دَالله تعالی قول وَإِنَّ عَلَیْکَ لَعْنَتِیْ إِلٰی یَوْمِ الدِّیْنِ.

**قوله** لِأَنَّهُمْ جَمَادٌ لَا يَعْقِلُوْنَ. دَغافلون تفسير لِأَنَّهُمْ جَمَادٌ کولو سره ئ اشاره اوکړه چه د غفلت نه عدم فهم مراد دي نه چه بې توجهي (وهم عن دعائهم غافلون) کښې اول هم ضمير د اصنام طرف ته او ثاني هم د عابدين اصنام طرف ته راجع دي دواړه ضميرونه جمع راوړل معنى د مَنْ د رعايت دَ وجې نه دي، دَ اصنام دَ پاره دَ ذوي العقول جمع په دې وجه راوړلې شوي ده چه دَمشرکينو دا عقيده وه چه بتان پوهيږي.

**قوله** قَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا دا وضع الاسم الظاهر موضع الضمير دَ قبيلې نه دي ځکه چه قالوا وئيل کافي وو مگر دَ اهل مکه صفت دکفر بيانولو دَپاره اسم ظاهر دَ اسم ضمير په ځائې باندې کيخودې شو.

**قوله**: لَمَّا جَاءَهُمْ. دَقَالَ ظرف دي او هٰذَا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ مقوله ده.

**قوله**: تُفِيْضُوْنَ إِفَاضَةٌ نه جمع مذکر حاضر صيغه ده (تاسو داخليږئ) دَدې استعمال کله دَ اوبو، اوښکو وغيره دَپاره کيږي نو دَ بهيدلو اوجاري کيدلو په معنى کښې وي خو چه کله دَ کلام متعلق استعماليږي نو په خبرو کښې غور اوفکر کولو او وئيلو اوريدلو او دَ نکته چينئ کولو په معنى کښې راځي دلته هم په دې معنى کښې استعمال شوي دي.

**قوله**: بِدْعًا، بديعًا، بدعًا مصدر هم کيدې شي مگر په دې صورت کښې به مضاف محذوف وي أي ذا بدع او دا هم کيدې شي چه بدعًا دَ بديعًا په معنى کښې صيغه د صفت وي لکه خِفّ په معنى د خفيف بِدْعٌ په معنى د بَدِيْعٌ عجيبه ناشنا.

**قوله**: وَمَا أَدْرِيْ مَا يُفْعَلُ بِيْ وَلَا بِكُمْ رومبې ما نافيه ده ثاني ما استفهاميه مبتدأ، او مابعد دَدې خبر، دا مَا أَدْرِيْ دَعمل نه مانع دي دَدې مابعد قائم مقام دَدوؤ مفعولونو دي.

**قوله**: مَا أَنَا إِلَّا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ داحصر حقيقي نه دي چه اعتراض وي چه حضور پاك بشير هم دي نو بيا په نذير کښې حصر ځنګه؟ جواب دادي چه حصر اضافي دي يعني زما ويرول او خبرول، هم دَالله تعالى دَ طرف نه دي پخپله زما دَ طرف نه هيڅ هم نشته لکه ځنګه چه ستاسو خيال دي.

**قوله**: أَرَأَيْتُمْ إِنْ كَانَ مِنْ عند الله وكفرتم به جمله أرأيتم الخ دَ قول مقوله ده دأرأيتم دواړه مفعولونه محذوف دي، تقدير د عبارت دادي أخبروني ماذا حالكم إن كان من عند الله وكفرتم به شرط او په دې دَ معطوف جواب محذوف دي. لکه ځنګه چه علامه محلى رحمه الله ألستم ظالمين مقدر منلو سره اشاره کړې ده دَ جواب شرط مذکوره تقدير د زمخشري رحمه الله

دَ قول مطابق دي مګر په دې باندې ابوحيان رد کړلو سره فرمائيلي دي چه که دَ زمخشري رحمه الله بيان کړې شوې تقدير اومنلې شي نو بيا دَ فاء راوړل ضروري دي ځکه چه جمله استفهاميه کله جواب شرط واقع کيږي نو په دې باندې فاء لازميږي هم دغه وجه ده چه نورو حضراتو رحمهم الله جواب شرط محذوف منلې دې. (اعراب ال قرآن)

**[ايات توله: ١٠-٢٠]**

(وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِلَّذِينَ آمَنُوا) أي فِي حَقِّهِمْ (لَوْ كَانَ) الإيمان (خَيْرًا مَا سَبَقُونَا إِلَيْهِ وَإِذْ لَمْ يَهْتَدُوا) أي القائلون (بِهِ) أي ال قرآن (فَسَيَقُولُونَ هَٰذَا) أي ال قرآن (إِفْكٌ) كذب (قَدِيمٌ وَمِنْ قَبْلِهِ) أي ال قرآن (كِتَابُ مُوسَىٰ) أي التَّوْرَاة (إِمَامًا وَرَحْمَةً) لِلْمُؤْمِنِينَ بِهِ حَالَانِ (وَهَٰذَا) أي ال قرآن (كِتَابٌ مُصَدِّقٌ) لِلْكُتُبِ قبله (لِسَانًا عَرَبِيًّا) حَال مِنَ الضَّمِير فِي مُصَدِّق (لِيُنْذِرَ الَّذِينَ ظَلَمُوا) مشركي مكة (و) هو (بشرى للمحسنين) المؤمنين (إن الذين قالوا ربنا الله ثم استقاموا) على الطاعة (فلا خوف عليهم ولا هم يحزنون أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ خَالِدِينَ فِيهَا) حَال (جَزَاءً) مَنْصُوب عَلَى الْمَصْدَر بِفِعْلِهِ الْمُقَدَّر أي يُجْزَوْنَ (بما كانوا يعملون) (ووصينا الإنسان بوالديه حسنا) وَفِي قِرَاءَة إِحْسَانًا أي أَمَرْنَاهُ أَنْ يُحْسِن إِلَيْهِمَا فَنَصَبَ إِحْسَانًا عَلَى الْمَصْدَر بِفِعْلِهِ الْمُقَدَّر وَمِثْله حَسَنًا (حَمَلَتْهُ أُمُّهُ كُرْهًا وَوَضَعَتْهُ كُرْهًا) أي عَلَى مَشَقَّة (وَحَمْلُهُ وَفِصَالُهُ) مِنَ الرَّضَاع (ثَلَاثُونَ شَهْرًا) سِتَّة أَشْهُر أَقَلّ مُدَّة الْحَمْل وَالْبَاقِي أَكْثَر مُدَّة الرَّضَاع وَقِيلَ إِنْ حَمَلَتْ بِهِ سِتَّة أَوْ تِسْعَة أَرْضَعَتْهُ الْبَاقِي (حَتَّىٰ) غَايَة لِجُمْلَةٍ مُقَدَّرَة أي وَعَاشَ حَتَّى (إِذَا بَلَغَ أَشُدَّهُ) هُوَ كَمَال قُوَّته وَعَقْله وَرَأْيه أَقَلّه ثَلَاث وَثَلَاثُونَ سَنَة أَوْ ثَلَاثُونَ (وَبَلَغَ أَرْبَعِينَ سَنَةً) أي تَمَامهَا وَهُوَ أَكْثَر الْأَشُدّ (قَالَ رَبِّ) إلخ نَزَلَ فِي أَبِي بَكْر الصِّدِّيق لَمَّا بَلَغَ أَرْبَعِينَ سَنَة بَعْد سَنَتَيْنِ مِنْ مَبْعَث النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آمَنَ بِهِ ثُمَّ آمَنَ أَبَوَاهُ ثُمَّ ابنه عبد الرحمن وبن عَبْد الرَّحْمَن أَبُو عَتِيق (أَوْزِعْنِي) أَلْهِمْنِي (أَنْ أَشْكُرَ نِعْمَتَكَ الَّتِي أَنْعَمْتَ) بِهَا (عَلَيَّ وَعَلَىٰ وَالِدَيَّ) وَهِيَ التَّوْحِيد (وَأَنْ أَعْمَلَ صَالِحًا تَرْضَاهُ) فَأَعْتَقَ تِسْعَة مِنَ الْمُؤْمِنِينَ يُعَذَّبُونَ فِي اللَّه (وأصلح لي في ذريتي) فكلهم مؤمنون (إني تبت إليك وإني من المسلمين) (أُولَٰئِكَ) أي قَائِلُو هَذَا الْقَوْل أَبُو بَكْر وَغَيْره (الَّذِينَ نَتَقَبَّلُ عَنْهُمْ أَحْسَنَ) بِمَعْنَى حَسَن (مَا عَمِلُوا وَنَتَجَاوَزُ عَنْ سَيِّئَاتِهِمْ فِي أَصْحَابِ الْجَنَّةِ) حَال أي كَائِنِينَ فِي جُمْلَتهمْ (وَعْدَ الصِّدْقِ الَّذِي كَانُوا يُوعَدُونَ) فِي قَوْله تَعَالَى (وَعَدَ اللَّهُ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ جَنَّاتٍ) (وَالَّذِي قَالَ لِوَالِدَيْهِ) وَفِي قِرَاءَة بِالْإِدْغَام أُرِيدَ بِهِ الْجِنْس (أُفٍّ) بِكَسْرِ الْفَاء وَفَتْحهَا بِمَعْنَى مَصْدَر أي نَتْنًا وَقُبْحًا (لَكُمَا) أَتَضَجَّر مِنْكُمَا (أَتَعِدَانِنِي) وَفِي قِرَاءَة بِالْإِدْغَام (أَنْ أُخْرَجَ) مِنَ الْقَبْر (وَقَدْ خَلَتِ الْقُرُونُ) الْأُمَم (مِنْ قَبْلِي) وَلَمْ تَخْرُج مِنَ الْقُبُور (وَهُمَا يَسْتَغِيثَانِ اللَّهَ) يسألانه الغوث برجوعه ويقولان إن لم ترجع (وَيْلَكَ) أي هَلَاكك بِمَعْنَى هَلَكْت (آمِنْ) بِالْبَعْثِ (إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ فَيَقُولُ مَا هَٰذَا) أي الْقَوْل بِالْبَعْثِ (إِلَّا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ) أَكَاذِيبهمْ (أُولَٰئِكَ الَّذِينَ حَقَّ) وَجَبَ (عَلَيْهِمُ الْقَوْلُ) بِالْعَذَابِ (في أمم قد خلت من قبلهم من الجن والإنس إنهم كانوا خاسرين) (وَلِكُلٍّ) مِنْ جِنْس الْمُؤْمِن وَالْكَافِر (دَرَجَاتٌ)

فَدَرَجَاتُ الْمُؤْمِنِينَ فِي الْجَنَّةِ عَالِيَةٌ وَدَرَجَاتُ الْكَافِرِينَ فِي النَّارِ سَافِلَةٌ (مِّمَّا عَمِلُوا) أَيِ الْمُؤْمِنُونَ مِنَ الطَّاعَاتِ وَالْكَافِرُونَ مِنَ الْمَعَاصِي (وَلِيُوَفِّيَهُمْ) أَيِ اللهُ وَفِي قِرَاءَةٍ بِالنُّونِ (أَعْمَالَهُمْ) أَيْ جَزَاءَهَا (وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ) شَيْئًا يُنْقَصُ لِلْمُؤْمِنِينَ وَيُزَادُ لِلْكُفَّارِ (وَيَوْمَ يُعْرَضُ الَّذِينَ كَفَرُوا عَلَى النَّارِ) بِأَنْ تُكْشَفَ لَهُمْ يُقَالُ لَهُمْ (أَذْهَبْتُمْ) بِهَمْزَةٍ وَبِهَمْزَتَيْنِ وَبِهَمْزَةٍ وَمَدَّةٍ وَبِهِمَا وَتَسْهِيلِ الثَّانِيَةِ (طَيِّبَاتِكُمْ) بِاشْتِغَالِكُمْ بِلَذَّاتِكُمْ (فِي حَيَاتِكُمُ الدُّنْيَا وَاسْتَمْتَعْتُمْ) تَمَتَّعْتُمْ (بِهَا فَالْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُونِ) أَيِ الْهَوَانِ (بِمَا كُنْتُمْ تَسْتَكْبِرُونَ) تَتَكَبَّرُونَ (فِي الْأَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَبِمَا كُنْتُمْ تَفْسُقُونَ) بِهِ وَتُعَذَّبُونَ بِهَا

**ترجمه:** اوكافرانودَ ايمان والوباره كښې اووئيل كه چرې دا ايمان بهتر څيزوې نوداخلق به زمونږ نه دَدې طرف ته سبقت كونكى نه وې اوچونكه دې وينا كونكودَدې قرآن نه هدايت او نه موندلو نو اوس به دوى وائى چه دا يعنى قرآن مجيد پخوانى دروغ دى حالانكه دَدې نه يعنى قرآن نه وړاندې دَموسىٰ عليه السلام كتاب يعنى تورات په هغې باندې ايمان راوړونكودَپاره پيشوا اورحمت وو (اِمَامًا او رحمةً) دواړه (كائن من كتاب موسىٰ نه) حال دى دا قرآن دَ عربى ژبې كتاب دې دَماقبل دكتابونوتصديق كونكې دې دَمصدق دَضميرنه حال دې، دې دَپاره چه ظالمان يعنى دَمكې مشركان اوبروى اودَ مؤمنانودَپاره زيرې وى بيشكه كوموخلقو چه اووئيل زمونږ رب الله تعالى دې بيا په طاعت باندې قائم پاتې شو نونه به په هغوى باندې څه ويره وى او به غمژن وى داخو اهل جنت دى چه هميشه به په دې كښې اوسيږى (خالدين) حال دې دَهغه اعمالو په بدله كښې كوم چه به هغوى كول، جزاءً دَ خپل فعل مقدر نه د مصدريت په وجه منصوب دې اى يُجْزَوْنَ جزاءً مونږ انسان ته دَخپل مورپلار سره دَ ښه سلوك كولو حكم وركړې دې په يوقراءت كښې اِحسانًا دې يعنى مونږ ده ته حكم وركړې دې چه هغوى سره دې ښه سلوك كوى اِحْسَانًا دَخپل فعل مقدر نه دَ مصدريت دَ وجې نه منصوب دې اودغه شان حُسْنًا دَ ده مور دې په ډير مشقت سره په خيټه كښې ساتلې دې او په ډير تكليف سره ئې دې راوړې دې په خيټه كښې ساتل اودَ پئ پريكول په ديرش مياشتو (كښې پوره كيږى) شپږ مياشتې كمه موده دَحمل ده او باقى دَ رضاعت اكثر موده ده، وئيلى شوى دى چه كه په ماشوم باندې شپږ مياشتې يا نهه مياشتې حامله پاتې شى نوباقى ورځې دې بچى ته پئ وركوى تردې چه كله هغه خپلې ځوانئ ته حتّٰى دَ جمله مقدره غايت دې اى عاش حتّٰى او اَشُدّ دَ ده دَ قوت عقل او د رائې كمال دې اودَدې كمه موده درې ديرش كاله ده او چه دَ څلويښتو كالو مودې ته اورسيدو او دغه دَ پوخوالى اكثرموده ده نوهغه اووئيل اې زما پروردګار الخ (داآيت) دَ حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه په شان كښې نازل شوې كله چه هغه دَ حضورپاك دَ بعثت نه دوه كاله پس د څلويښتو كالوعمرته اورسيدو په حضورپاك باندې ئې ايمان راوړو بيا

دَهغه والدينو ايمان راوړو بيا دَ صديق اكبر ﷺ خوى حضرت عبدالرحمن ﷺ اودَ هغه خوى ابوعتيق ايمان راوړو، ته ماته توفيق راکړې ماته الهام اوکړې چه زه ستادَ دې نعمت شکر په ځائې راوړم کوم چه تا په ماباندې اوزما په مور پلارباندې انعام اوکړو اوهغه توحيد دې اودا چه زه داسې نيک عمل اوکړم په کوم سره چه ته خوشحال شې، چنانچه نهه داسې مؤمنان غلامان ئې آزادکړل چاته چه دَ الله تعالى په لارکښې تکليف ورکولې شو اوماته زما دَ اولاد نه زاحت راکړې نوهغوى ټول په ټولو ايمان راوړو، اوزه ستا طرف ته رجوع کوم او زه دَ حکم منونکونه يم، هم دغه هغه خلق دى دَدې قول ويونکى حضرت ابوبکر ﷺ وغيره، دَ چانيک اعمال چه مونږ قبلوو أَحْسَنَ په معنى د حَسَنَ دې، اودَ چادَ بدو اعمالوچه معافى کوو حال دادې چه دابه دَ اهل جنت نه وى (فِي أَصْحٰبِ الْجَنَّةِ) حال دې أي كائنين من جملة أهل الجنة دَ هغه رښتونې وعدې مطابق چه هغوى سره کړې شوې وه (اوهغه وعده) دَ الله تعالى قول وَعَدَ اللهُ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ جَنّٰتٍ کښې کړې ده او چاچه خپل مور پلارته اووئيل أف! تنګ کړم تاسو دواړو او په يوقراءت په کښې افراد سره دې، په دې سره دَ جنس اراده کړې شوې ده أُفٍّ دَ فاء په کسرې اوفتحې سره دې دَ مصدر په معنى کښې دې ستاسودَ پاره بدبوئ اوخرابى ده زه تاسو نه تنګ شوې يم تاسو ماته دا وايئې او په يوقراءت کښې أَتَعِدَانِّيْ په ادغام سره دې، چه زه به دَ قبرنه راويستلې شم حالانکه زمانه وړاندې ډير امتونه تيرشوى دى اوهغوى دَ قبرونونه نه دى راويستلې شوې اوهغه دواړه (يعنى والدينو) الله تعالى ته فريادکوى (يعنى) دَهغه (دَ ايمان طرف ته) دَ رجوع کولو دعاکوى او وائى که چرې ته واپس نه شوې نوته به هلاک شې وَيْلَكَ په معنى دَ هَلَكْتَ دې، په بعث بعد الموت باندې ايمان راوړه، بيشکه دَ الله تعالى دَ بعث وعده حق ده نوهغه جواب ورکوى چه دا يعنى دَ بعث بعد الموت خبرې خو صرف قصې دى يعنى دَ دروغو خبرې دى دا هغه خلق دى په چا باندې چه د دوى نه وړاندې امتونه که دَ پيريانونه وى اوکه دَ انسانانونه دَعذاب وعده رښتونې شوه، بيشکه دوى دَ تاوانيانونه وو دَ جنس کافر اومؤمن نه دَهريودَپاره به دَخپل خپل اعمالو مطابق درجات ملاويږى په داسې توګه چه دَ مؤمنانو درجې به په جنت عاليه کښې وى اودَ کافرانو درجات به په جهنم سافله کښې وى يعنى مؤمنانوچه کوم دَ فرمانبردارئى کارونه اوکړل اوکافرانودَ ګناه کارونه اوکړل دې دَپاره چه هغه يعنى الله تعالى دَدوى دَاعمالو بدله ورکړى او په يوقراءت کښې په نون سره دې دې دَپاره چه مونږ دَهغوى دَاعمالو پوره پوره بدله ورکړو اوپه هغوى باندې به يو ذره برابر ظلم نه شى کولې چه دَمؤمنانو (نيک اعمال) کم کړې شى اودکافرانو په (بدواعمالو) کښې اضافه اوکړې شى اوپه کومه ورځ چه به کافران دَ اور مخې ته راوړلې شى په داسې طريقه چه دَهغوى دَمخې نه به دَ دوزخ پردې اوچتې کړې شى هغوى ته به اوئيلى شى تاسو خپلې

نيكئ په خپلو خوندونو كښې مشغول كيدوسره هم په دنياكښې بربادكړلئ د يوې همزې سره او دوؤ (محقق) همزو سره او يوهمزه اومد سره اودواړو سره مع ثاني (همزه) د تسهيل اوتاسو دَهغې نه فائده اوچته كړه بس نن به تاسوته دَ ذلت دَعذاب سزا دركولې شي هون په معنی هَوان ده، په دې وجه چه په تاسو په دنياكښې ناحق تكبركولو او په دې وجه هم چه تاسو حكم نه منلو اوهم دَدغې تاسوته دَ جهنم په ذريعه عذاب دركولې شي.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: لَوْكَانَ خَيْرًا لَوْ حرف شرط دې كَانَ خَيْرًا جمله شرط او مَا سَبَقُوْنَا جمله جزاء نوشرط او جزاء، دَ قَالَ مقوله.

**قوله**: وَإِذْلَمْ يَهْتَدُوْابِهٖ دَ إِذْ فاعل محذوف دې، أي ظَهَرَ عِنَادُهُمْ إِذْلَمْ يَهْتَدُوْا بِهٖ به إذ كښې فَسَيَقُوْلُوْنَ د عامل جوړيدل د دوؤ وجاهاتو نه صحيح نه دی، اول خودَ دې وجې نه چه دَدواړو زماني مختلف دی إذ دَ ماضی دَپاره دې او فَسَيَقُوْلُوْنَ دَ استقبال دَپاره، دويمه وجه داده چه فاء خپل مابعد لره په ماقبل كښې دَعمل كولونه مانع ده.

**قوله**: مِنْ قَبْلِهٖ كِتٰبُ مُوْسٰى، مِنْ قَبْلِهٖ دكَائِنٌ سره متعلق شو خبر مقدم دې او كِتٰبُ مُوْسٰى مبتدأ مؤخره جمله دَحال كيدودَ وجې نه محلاً منصوب ده.

**قوله**: إِمَامًا وَّرَحْمَةً دواړه د خبرمقدم كَائِنٌ د ضميرنه حال دې اوابوعبيد د جَعَلْنَاهُ محذوف د مفعول كيدودَ وجې نه منصوب گرځولې دې. (فتح القديرشوكاني)

**قوله**: لِسَانًا عَرَبِيًّا موصوف صفت د مُصَدِّقٌ دَ ضميرنه حال دې او د مصدق ضمير دَ كتابُ طرف ته راجع دې.

**قوله**: لِيُنْذِرَ، د مُصَدِّقٌ سره متعلق دې.

**قوله**: أي عَلٰى مشقةٍ په دې سره مفسرعلام اشاره اوكړه چه كُرْهًا په نزع الخافض منصوب دې اصل كښې عَلٰى كُرْهٍ وو اوبعض دَ حال دَوجې نه منصوب وئيلې دې أي ذاتَ كُرْهٍ اوبعضو دَمصدرمحذوف صفت كيدودَ وجې نه منصوب وئيلې دې أي حَمْلًا كُرْهًا.

**قوله**: ثلثون شَهْرًا په كلام كښې حذف دې أي مدة حمله وفصاله ثلثون شهرًا.

**قوله**: في أصحاب الجنة دا دَ كَائِنِيْن محذوف متعلق كيدوسره د عَنْهُمْ دَ ضميرنه حال دې كَمَا اَقُوْلُ اَكْرَمَنِيْ الْأَمِيْرُ فِيْ أَصْحَابِهٖ او دادا سې دی لكه چه دَ عربو مقوله ده أَكْرَمَنِي الْأَمِيْرُ فِي أَصْحَابِهٖ، اي في جملتهم او بعض حضراتو في په معنی د مع اخستې ده، مع أصحاب الجنة او نورو حضراتو دَ مبتدأ محذوف خبرگرځولې دې أي هم في أصحاب الجنة.

**قوله:** وَعْدَ الصِّدْقِ، وَعْدًا دَ فعل مقدر صله كيدو دَ وجې نه منصوب دې أي وَعَدَهُمُ اللهُ وَعْدَ الصدق.

**قوله:** وفي قراءة بالإفراد يعنى دَ هشام رحمه الله په قراءت كښې لِوَالِدَيْهِ په ځاني لِوَالِدِهٖ دې، مراد جنس والدې چه په معنى دَجمع كښې دې.

**قوله:** أُفٍّ كسره تنوين او بغير د تنوين اوفتحه بغير د تنوين أُفٍّ أُفِّ أُفَّ نه مصدر دې په د معنى تَبًّا وقُبْحًا كرخى رحمه الله وئيلى دى دا دأَفَّ يؤف مصدر دې او دتَبًّا وقُبْحًا په معنى كښې دې أُفٍّ كښې درې احتمالات دى ① مصدر ② اسم صوت ③ اسم فعل. مفسرعلام په دې كښې دَدوؤ طرف ته اشاره كړې ده يعنى المصدر سره د اول طرف ته او أَتَضَجَّرُ سره د دويم طرف ته، لكه چه مفسرعلام اشاره اوكړه چه دواړه تفسيرونه جائزدى، أُفٍّ هر قسم خيرې وغيره ته وئيلې شى لكه دَنوكونو پريكړې شوې وغيره اوهم په دې اعتبار سره دَ يوڅيز متعلق د ګندګئ او دَنفرت دَ اظهار دَپاره استعماليږى، فتح القدير كښې قاضى شوكانى رحمه الله په سورت إسراء كښې فرمائى چه دَ اصمعى رحمه الله بيان دې چه اف دَ غوږ خيرې دې اوتُفّ دَ نوكونو، دَ يوڅيزنه كركه ښكاره كولودَ پاره اف وئيلى شى، چنانچه په دې معنى كښې دومره په كثرت سره استعمال كړې شو چه دَهر تكليف رسونكى څيز په باره كښې عربودَې استعمال اوكړو، دَ ثعلب نه ابن عربى روايت كړې دې چه أَفَفٌ چه دَ أُفٍّ اصل دې دَدې معنى د زړه تنګيدل دى، زجاج دَدې معنى بدبوئ كړې ده. (لغات ال قرآن)

**قوله:** هَلَاكَكَ، دَ وَيْلَكَ تفسير په هَلَكْتَ سره كولو كښې ئ اشاره اوكړه چه وَيْلَكَ دَ خپل هَمْ معنيٰ فعل مقدر د وجې منصوب دې اوهغه هَلَكَ دې ځكه چه دَ وَيْلٌ فعل نه راځى او په معنى كښې دَ هَلَكْتَ دې چه په ظاهره بددعاده مكر بددعامراد نه ده بلكه دَناخوښئ اظهار او تحريض على الإيمان دې نه چه حقيقةً هلاكت لكه مورچه خپل خوى ته وائى ته مړ شې داسې مه كوه، تباه شې، دَ وَيْلَكَ په فارسى كښې معنى ده «اے وائے»، ده يعنى په تاباندې افسوس.

**قوله:** درجات په كلام كښې تغليب دې ګنى دَ جنهم درجات ته دركات وائى.

**قوله:** يَوْمَ يُعْرَضُ، يَوْمَ د فعل مقدر، يقال لهم د وجې منصوب دې.

**قوله:** أَذْهَبْتُمْ دَ اكثر په نيز په يوې همزه سرې دې يعنى همزه استفهام نه بغير اودوؤ همزه وو سره چه دواړه مخففه وى او يوهمزه اومد سره دادَ هشام په نيزدى، دوو همزو سره مكربه دويم كښې تسهيل بغيردَ مد نه، دادَ ابن كثير رحمه الله په نيزدې.

**قوله:** بغير حق دا دتَسْتَكْبِرُوْنَ صفت كاشفه دې ځكه چه تكبرهم ناحق وى.

**[اياتونه:۲۰ - ۲٦]**

﴿وَاذْكُرْ أَخَا عَادٍ﴾ هُوَ هود عَلَيْهِ السَّلام ﴿إِذْ﴾ إلخ بدل اشتمال ﴿أَنذَرَ قَوْمَه﴾ خَوَّفَهُمْ ﴿بِالْأَحْقَافِ﴾ وَادٍ بِالْيَمَنِ بِهِ مَنَازِلُهُمْ ﴿وَقَدْ خَلَتِ النُّذُرُ﴾ مَضَتِ الرُّسُل ﴿مِن بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِه﴾ أي مِنْ قَبْلِ هود وَمِنْ بَعْده إلَى أقْوَامِهِمْ ﴿أَنْ﴾ أي بِأنْ قَالَ ﴿لَّا تَعْبُدُوا إِلَّا اللَّه﴾ وَجُمْلَةُ وَقَدْ خَلَتْ مُعْتَرِضَة ﴿إِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُمْ﴾ إنْ عَبَدْتُمْ غَيْرَ اللّه ﴿عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ﴾ ﴿قَالُوا أَجِئْتَنَا لِتَأْفِكَنَا عَنْ آلِهَتِنَا﴾ لِتَصْرِفَنَا عَنْ عِبَادَتِهَا ﴿فَأْتِنَا بِمَا تَعِدُنَا﴾ مِنَ الْعَذَاب عَلَى عِبَادَتِهَا ﴿إِن كُنتَ مِنَ الصَّادِقِينَ﴾ فِي أنَّهُ يَأتِينَا ﴿قَالَ﴾ هود ﴿إِنَّمَا الْعِلْمُ عِندَ اللَّه﴾ هُوَ الَّذِي يَعْلَم مَتَى يَأتِيكُمْ الْعَذَاب ﴿وَأُبَلِّغُكُم مَّا أُرْسِلْتُ بِهِ﴾ إلَيْكُمْ ﴿وَلَٰكِنِّي أَرَاكُمْ قَوْمًا تَجْهَلُونَ﴾ باستعجالكم العذاب ﴿فَلَمَّا رَأَوْهُ﴾ أي مَا هُوَ الْعَذَاب ﴿عَارِضًا﴾ سَحَابًا عَرَضَ فِي أفُق السَّمَاء ﴿مُّسْتَقْبِلَ أَوْدِيَتِهِمْ قَالُوا هَٰذَا عَارِضٌ مُّمْطِرُنَا﴾ أي مُمْطِر إيَّانَا قال تعالى ﴿بَلْ هُوَ مَا اسْتَعْجَلْتُم بِهِ﴾ مِنَ الْعَذَاب ﴿رِيحٌ﴾ بَدَل مِنْ مَا ﴿فِيهَا عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ مؤلم ﴿تُدَمِّرُ﴾ تُهْلِك ﴿كُلَّ شَيْءٍ﴾ مَرَّتْ عَلَيْهِ ﴿بِأَمْرِ رَبِّهَا﴾ بِإرَادَتِهِ أي كُلّ شَيْء أرَادَ إهْلَاكَه بِهَا فَأهْلَكَتْ رِجَالَهُمْ وَنِسَاءَهُمْ وَصِغَارَهُمْ وَأمْوَالَهُمْ بِأنْ طَارَتْ بِذَلِكَ بَيْنَ السَّمَاء وَالْأرْض وَمَزَّقَتْهُ وَبَقِيَ هود وَمَنْ آمَنَ مَعَهُ ﴿فَأَصْبَحُوا لَا يُرَىٰ إِلَّا مَسَاكِنُهُمْ كَذَٰلِكَ﴾ كَمَا جَزَيْنَاهُمْ ﴿نَجْزِي الْقَوْمَ الْمُجْرِمِينَ﴾ غيرهم ﴿وَلَقَدْ مَكَّنَّاهُمْ فِيمَا﴾ فِي الَّذِي ﴿إِن﴾ نَافِيَة أوْ زَائِدَة ﴿مَّكَّنَّاكُمْ﴾ يَا أهْل مَكّة ﴿فِيهِ﴾ مِنَ الْقُوَّة وَالْمَال ﴿وَجَعَلْنَا لَهُمْ سَمْعًا﴾ بِمَعْنَى أسْمَاعًا ﴿وَأَبْصَارًا وَأَفْئِدَةً﴾ قُلُوبًا ﴿فَمَا أَغْنَىٰ عَنْهُمْ سَمْعُهُمْ وَلَا أَبْصَارُهُمْ وَلَا أَفْئِدَتُهُم مِّن شَيْءٍ﴾ أي شَيْئًا مِنَ الْإغْنَاء وَمِنْ زَائِدَة ﴿إِذْ﴾ مَعْمُولَة لِأغْنَى وَأُشْرِبَتْ مَعْنَى التَّعْلِيل ﴿كَانُوا يَجْحَدُونَ بِآيَاتِ اللَّه﴾ بِحُجَجِهِ الْبَيِّنَة ﴿وَحَاقَ﴾ نَزَلَ ﴿بِهِم مَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ﴾ أي العذاب

**ترجمه:** د عاد د رورهود عليه السلام ذکراوکړه کله چه هغه خپل قوم کوم وخت چه هغوې په احقاف کښې مقيم وو اوويرولو (خبرداري کړل) (اذ) نه واخله تر آخره پورې (اَخَاعَادٍ) نه بدالاشتمال دې، احقاف په يمن کښې يوه وادی ده هم په دې کښې دَهغوی کورونه وو او يقيناً ده نه وړاندې هم وروستو يعني رسولان تيرشوی وو اوددې نه پس هم يعني دَهود عليه السلام نه وړندې هم اودهغوی نه پس هم دَخپلوقومونوطرف ته داچه هغوی اووئيل دَ الله تعالی نه سوادَ بل چابندګی مه کوئ. او قدخلت جمله معترضه ده که چرې تاسودَغيرالله بندګی کوئ نوماته په تاسوباندې دَ يوې لوئې ورځې دَ عذاب انديښنه ده، قوم جواب ورکړو آياته مونږ له دَدې دَپاره راغلې ئې چه مونږ زمونږ دَ معبودانودَ بندګئ نه واړوې که چرې ته په دې خبره کښې رښتونې ئې چه عذاب به په مونږ باندې راځی نوهغه عذاب دکوم چه ته دَبتانو په عبادت کولوباندې مونږسره وعده کوې راوله، نوهود عليه السلام جواب ورکړو چه دَهغې علم خو هم الله تعالی ته دې هم هغه ته معلومه ده چه په تاسو به کله عذاب راځی زه خوچه کوم پيغام راکولوسره ستاسوطرف ته راليږلې شوې يم هغه تاسو ته دررسوم، ليکن زه ګورم چه تاسو خلق دَ عذاب په

باره کښې تادې کولوسره نادانی کوئ لیکن کله چه هغوی دا یعنی عذاب چه دَ اوریځو په شکل کښې دَ آسمان په غاړو باندې خور شوې وې دخپلو وادوطرف ته راتلونکې اولیدلو نووئ وئیل دا داسې اوریځې دی چه مونږ به خړوب کړی یعنی په مونږ به راورېږی، الله تعالی اوفرمائیل (نه) بلکه داهم هغه عذاب دې دَ کوم په باره کښې چه تاسو تادې کوله (یعنی دَ هوا طوفان دې) رِیْحٌ د مَا نه بدل دې، په کوم کښې چه دردناک عذاب دې، دا (عذاب) به هرهغه څیزدَخپل رب په حکم سره تباه اوبربادکړی په کوم چه دا تیرېږی یعنی هرهغه څیزبه بربادکړی دکوم چه الله تعالی په دې عذاب سره دَ بربادولو اراده اوکړی، نودغې (طوفانی عذاب) دَهغوی سری، اودَهغوی ښځې، دَهغوی ماشومان اودَ هغوی لوئ اودَهغوی مالونه هلاك کړل، په داسې طریقه چه دغه څیزونه ئې دَ آسمان اوزمکې په مینځ کښې والوزول اوهغه ئ ذره ذره کړل او هود عليه السلام اوچاچه په هغه ایمان راوړې وو صحیح سلامت بچ شو، هغوی داسې شوچه دَهغوی دکورونونه علاوه هیڅ هم په نظر نه راتلل، مونږ هم دغه شان خنګه چه هغوی ته سزا ورکړې شوه دَدوی نه علاوه هرمجرم قوم ته سزا ورکوو اویقینًا مونږ هغوی ته هغه قوت او مال ورکړې وو اې اهل مکه! چه تاسو ته درکړې شوې هم نه دې، اِنْ نافیه دې یا زائده دې اومونږ هغوی ته غوګونه سمع په معنی د أسماع دې سترګې او زړونه هرڅه ورکړی وو مګرنه دَهغوی هغه غوږونه په کارراغلل اونه سترګې اونه زړونه یعنی هیڅ ئ په کار رانغلل مِنْ زائده دې (اِذْ) دَ اَغْنٰی معمول دې اودَتعلیل په معنی باندې مشتمل دې هرکله چه هغوی دَالله تعالی آیاتو نو یعنی دَهغه دَ واضحه حجتونونه انکاراوکړو او په کوم عَذاب پورې چه هغوی خنداګانې کولې هم هغه عذاب په هغوی باندې رااولګېدو ((راغې).

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: اَخَاعَادٍ د حضرت نوح عليه السلام په قوم کښې یوسړې تیرشوې دې دَ کوم سلسله نسب چه په دریو واسطو حضرت نوح عليه السلام سره ملاوېږی روستودَهغه نسل هم په دغه نوم سره یادیدلو کوم چه دَ طوفان نوح عليه السلام نه پس دَعربو په ملك کښې دَ تولونه وړاندې بااقتدار هم وو، عادکه دَسړی په معنی کښې وی نومنصرف به وی اوکه چرې دَ قبیلې په معنی کښې وی نوغیرمنصرف به وی (لغات ال قرآن) اودلته دَأخ نه مراد نسبی أخوت دې نه چه دینی، بِالْاَحْقَافِ دا دَ حِقْفٌ جمع ده، دَ شګو اوږدو اوچتو او راتاؤ شوو غونډوته وئیلې شی زیاتی تحقیق دَ سورت په شروع کښې تیر شوې دې.

**قوله**: بِالْاَحْقَافِ دا دَ اَنْذَرَ صله نه ده لکه چه په ظاهره معلومېږی بلکه دادَ عَادٌ نه حال دې اَیْ حَالَ کَوْنِهِمْ مُقِیْمِیْنَ بِالْاَحْقَافِ، اوس پاتې شوه دَ اَنْذَرَ صله نو هغه لاتعبدوا الا الله دې کمافی (جمل) بِأَنْ شارح رحمه الله اشاره اوکړه چه اَنْ مصدریه یامخففه دې او باء تصویریه ده یعنی

دَ تیرید وپه صورت کښې د حال او د کیفیت بیانولودپاره ده یعنی هغه انبیاء او رسولان په داسې حال اوصورت کښې تیرشوی دی چه خپل خپل قومونو لره ویرونکی وو.

**قوله**: تَأفِكَنَا (ض،س) نه إفكة دَدې معنی دروغ وئیل دی مګرکله چه دَدې صله عَن راشی نو دَدې معنی اړول، واپس کول که دَعقیدې په اعتبارسره وی اوکه دَعمل په اعتبار سره وی.

**قوله**: مَاهُوَالعَذَابُ دَدې اضافې مقصد دې خبرې طرف ته اشاره کول دی چه رَأَوْهُ ضمیر دَهغه مَا طرف ته راګرځی کومه مَاچه په فَلَمَّا کښې ده اوزمحشری رحمه الله وئیلی دی چه دَ رَأَوْهُ ضمیر مبهم هم جائزدې دَکوم ابهام چه عارضًا سره رفع کړې شو که دَتمیز کیدو دَوجې نه دې او که دَحال کیدودَ وجې نه او فرمائیلې ئې دی چه دا اعراب افصح دی ځکه چه په دې کښې بیان بعدالإبهام دې.

**سوال**: مُسْتَقْبِلَ أَوْدِيَتِهِمْ دعارضًا صفت دې حالانکه موصوف عَارِضًا نکره دې او مستقبل أودیتهم د اضافت دَ وجې نه معرفه ده دغه شان مُمْطِرُنَا دَعَارِضٌ صفت دې حالانکه مُمْطِرُنَا دَ اضافت دَ وجې نه معرفه اوعارض نکره دې؟

**جواب**: په دواړه ځایونو کښې په صفت کښې اضافت لفظیه دې چه دَتعریف فائده نه ورکوی لهذا په صفت جوړیدوکښې هیڅ قباحت نشته، شارح رحمه الله ممطرإيانا محذوف منلوسره هم دې جواب طرف ته اشاره کړې ده.

**قوله**: فَأَهْلَكَتْ دَ دې د اضافې مقصد فَأَصْبَحُوا عطف صحیح کول دی.

**قوله**: أَوْزَائِدَة (فِيمَافِيهِ) ځکه چه ما زائده منلو په صورت کښې به معنی دا وی چه مونږ هغوی ته هم هغه شان قدرت ورکړې دې لکه چه تاسو مو ته قدرت درکړې دې، په دې کښې دَ قوم عاد قدرت مشبه او دَ قریشوقدرت مشبه به او مشبه به د مشبه نه اقوی وی، دَدې نه ثابته شوه چه قریشوته قدرت اوتمکین دَ قوم عادنه زیات ورکړې وو په دې سره دَقریشو عظمت په ذهن کښې راځی کوم چه خلاف مقصود دې، لهذا د شارح رحمه الله لَوْ زائدة وئیل زیاتی معلومیږی (جمل) وَأُشْرِبَتْ معنی التعلیل زمخشری رحمه الله وئیلی دی إذ ظرفیه دې جاری مجری دَ تعلیل دې او أُشْرِبَتْ په معنی د غلبت دې بغال أشرب الأبيض حمرة وأشرب في قلبهم أي غلبت على قلوبهم

[اياتونه: ٢٥ - ٣٦]

(وَلَقَدْ أَهْلَكْنَا مَا حَوْلَكُمْ مِنَ الْقُرَى) اي مِنْ اهلها كَثَمُودِ وَعَادٍ وَقَوْم لوط (وَصَرَّفْنَا الآيَاتِ) كررنا الحُجَجَ البينات (لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ) (فَلَوْلَا) هَلا (نَصَرَهُمْ) بِدَفْعِ الْعَذَاب عَنْهُمْ (الَّذِينَ اتَّخَذُوا مِنْ دُونِ اللَّهِ) اي غَيْره (قُرْبَانًا) مُتَقَرَّبًا بِهِمْ إِلَى اللَّه (آلِهَةً) مَعَهُ وَهُمُ الْأَصْنَام وَمَفْعُول اتَّخَذَ الْأَوَّل ضَمِير مَحْذُوف يَعُود عَلَى الْمَوْصُول اي هُمْ وَقُرْبَانًا الثَّانِي وَآلِهَة بَدَل مِنْهُ (بَلْ ضَلُّوا) غَابُوا (عَنْهُمْ) عِنْد نُزُول الْعَذَاب (وَذَلِكَ) اي اتِّخَاذهمْ الْأَصْنَام آلِهَة قُرْبَانًا (إِفْكُهُمْ) كَذِبهمْ (وَمَا كَانُوا يَفْتَرُونَ) يَكْذِبُونَ وَمَا مَصْدَرِيَّة أَوْ مَوْصُولَة وَالْعَائِد مَحْذُوف اي فِيهِ (و) اذكر (إِذْ صَرَفْنَا) أَمَلْنَا (إِلَيْكَ نَفَرًا مِنَ الْجِنِّ) جِنّ نَصِيبِينَ بِالْيَمَنِ أَوْ جِنّ نِينَوَى وَكَانُوا سَبْعَة أَوْ تِسْعَة وَكَانَ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِبَطْنِ نَخْل يُصَلِّي بِأَصْحَابِهِ الْفَجْر رَوَاهُ الشَّيْخَانِ (يَسْتَمِعُونَ الْ قرآن فَلَمَّا حَضَرُوهُ قَالُوا) اي قَالَ بَعْضهمْ لِبَعْضٍ (أَنْصِتُوا) اصْغَوْا لِاسْتِمَاعِهِ (فَلَمَّا قُضِيَ) فَرَغَ مِنْ قِرَاءَته (وَلَّوْا) رَجَعُوا (إِلَى قَوْمِهِمْ مُنْذِرِينَ) مُخَوِّفِينَ قَوْمهمْ الْعَذَاب إِنْ لَمْ يُؤْمِنُوا وَكَانُوا يَهُودًا وَقَدْ أَسْلَمُوا (قَالُوا يَا قَوْمَنَا إِنَّا سَمِعْنَا كِتَابًا) هُوَ ال قرآن (أُنْزِلَ مِنْ بَعْدِ مُوسَى مُصَدِّقًا لِمَا بَيْنَ يَدَيْهِ) اي تَقَدَّمَهُ كَالتَّوْرَاةِ (يَهْدِي إِلَى الْحَقِّ) الإِسْلَام (وَإِلَى طَرِيقٍ مُسْتَقِيمٍ) اي طَرِيقه (يَا قَوْمَنَا أَجِيبُوا دَاعِيَ اللَّهِ) مُحَمَّدًا صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الإِيمَان (وَآمِنُوا بِهِ يَغْفِرْ) اللَّه (لَكُمْ مِنْ ذُنُوبِكُمْ) اي بَعْضهَا لِأَنَّ مِنْهَا الْمَظَالِم وَلَا تُغْفَر إِلَّا بِرِضَا أَصْحَابهَا (وَيُجِرْكُمْ مِنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ) مُؤْلِم (وَمَنْ لَا يُجِبْ دَاعِيَ اللَّهِ فَلَيْسَ بِمُعْجِزٍ فِي الْأَرْضِ) اي لَا يُعْجِز اللَّه بِالْهَرَبِ منه فيفوته (وليس له) لمن لا يجيب (مِنْ دُونِهِ) اي اللَّه (أَوْلِيَاءُ) أَنْصَار يَدْفَعُونَ عَنْهُ الْعَذَاب (أُولَئِكَ) الَّذِينَ لَمْ يُجِيبُوا (فِي ضَلَالٍ مُبِينٍ) بين ظاهر (أَوَلَمْ يَرَوْا) يَعْلَمُوا أَيْ مُنْكِرُو الْبَعْث (أَنَّ اللَّهَ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَلَمْ يَعْيَ بِخَلْقِهِنَّ) لَمْ يَعْجِز عَنْهُ (بِقَادِرٍ) خَبَر أَنَّ وَزِيدَتْ الْبَاء فِيهِ لِأَنَّ الْكَلَام فِي قُوَّة أَلَيْسَ اللَّه بِقَادِرٍ (عَلَى أَنْ يُحْيِيَ الْمَوْتَى بَلَى) هُوَ قَادِر عَلَى إحياء الموتى (إِنَّهُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ) (وَيَوْمَ يُعْرَضُ الَّذِينَ كَفَرُوا عَلَى النَّارِ) بِأَنْ يُعَذَّبُوا بِهَا يُقَال لَهُمْ (أَلَيْسَ هَذَا) التَّعْذِيب (بِالْحَقِّ قَالُوا بَلَى وَرَبِّنَا قَالَ فَذُوقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُونَ) (فَاصْبِرْ) على اذى قومك (كَمَا صَبَرَ أُولُو الْعَزْمِ) ذَوُو الثَّبَات وَالصَّبْر عَلَى الشَّدَائِد (مِنَ الرُّسُلِ) قَبْلك فَتَكُون ذَا عَزْم وَمِنْ لِلْبَيَانِ فَكُلّهمْ ذَوُو عَزْم وَقِيلَ لِلتَّبْعِيضِ فَلَيْسَ مِنْهُمْ آدَم لِقَوْلِهِ تَعَالَى (وَلَمْ نَجِدْ لَهُ عَزْمًا) وَلَا يُونُس لِقَوْلِهِ تَعَالَى وَلَا تَكُنْ كَصَاحِبِ الْحُوت (وَلَا تَسْتَعْجِلْ لَهُمْ) لِقَوْمِك نُزُول الْعَذَاب بِهِمْ قِيلَ كَأَنَّهُ ضَجِرَ مِنْهُمْ فَأَحَبَّ نُزُول الْعَذَاب بِهِمْ فَأُمِرَ بِالصَّبْرِ وَتَرْك الِاسْتِعْجَال لِلْعَذَابِ فانه نازل لا محالة (كَأَنَّهُمْ يَوْمَ يَرَوْنَ مَا يُوعَدُونَ) مِنَ الْعَذَاب فِي الْآخِرَة لِطُولِهِ (لَمْ يَلْبَثُوا) فِي الدُّنْيَا فِي ظَنّهمْ (إِلَّا سَاعَةً مِنْ نَهَارٍ) هذا ال قرآن (بَلَاغٌ) تَبْلِيغ مِنَ اللَّه إِلَيْكُمْ (فَهَلْ) اي لَا (يُهْلَكُ) عِنْد رُؤْيَة الْعَذَاب (إِلَّا الْقَوْمُ الْفَاسِقُونَ) اي الكافرون

**ترجمه:** اويقينًا مونږ ستاسو خواؤشا (دير) کلی يعنی کلی والا مثلاً ثموديان اوعاديان او قوم لوط هلاک کړل اومونږ آياتونه يعنی واضحه حجتونه قسم قسم بيان کړل دې دپاره چه

هغوی (د کفر او شرك) نه منع شی نو هغوی د دوی نه عذاب لرې کولو سره د دوی امداد ولې اونه کړو؟ کوم چه دوی د الله تعالی نه علاوه د الله تعالی نیزدیکت حاصلولو د پاره خپل معبودان جوړ کړی وو او هغه بتان دی، د اِتَّخَذُوْا ضمیر مفعول محذوف دې کوم چه د موصول طرف ته راګرځی او هغه هُمْ دې او قُرْبَانًا مفعول ثانی دې او اٰلِهَةً د دې نه بدل دې بلکه هغوی د نزول عذاب په وخت د دوی نه غائب شو اودا یعنی بتان د تقرب د پاره معبودان جوړول د هغوی دروغ او د ځان نه جوړ کړې خبرې دی، او ما مصدریه ده یا موصوله او عائد محذوف دې او هغه د فیه ضمیر دې او یاد کړه کله چه مونږ د پیریانو جماعت ستاسو طرف ته متوجه کړو هغه پیریان د نصیبین یمن یا د نینوا او سیدونکی وو او د هغوی شمیر اووه یا نهه وو او حضور پاك ﷺ په بطن نخله کښې خپل صحابه کرامو ته د سحر مونځ ورکولو (رواه الشیخان) دې د پاره چه هغوی قرآن واورې کله چه هغوی د نبی خوا ته اورسیدل نو هغوی په خپل مینځ کښې اوئیل چپ شئ او غوږ کیخودسره واورئ نو چه کله حضور پاك د قراءت نه فارغ شو نو هغوی د خپل قوم د عذاب نه ویرونکی جوړ شو که چرې هغوی ایمان رانوړو واپس لاړل او دا یهودیان وو او هغوی اووئیل اې زمونږ قومه مونږ داسې کتاب قرآن اوریدلې دې کوم چه د موسیٰ عليه السلام نه پس نازل شوې دې او د خپل ځان نه د وړاندینو کتابونو مثلاً تورات تصدیق کوی د حق یعنی اسلام وینا او منئ په دې باندې ایمان راوړئ نو الله تعالی به ستاسو ګناه معاف کړی، یعنی بعض ګناهونه ځکه چه په ګناهونو کښې حقوق العباد هم دی هغه د صاحب حق د رضامندئ نه بغیر نه معاف کیږی او تاسو ته به د دردناک عذاب نه پناه درکړی، او کوم کس چه د الله تعالی د داعی خبره اونه منی نو هغه الله تعالی لره په زمکه کښې عاجز کولې نه شی، یعنی د هغه نه په تختید وسره الله تعالی عاجز کولې نه شئ نه د هغه د راګیرولو نه بچ وتلې شی، او د دې خبرې د نه منونکی د پاره د الله تعالی نه بغیر یل څوک مددګار نشته چه د هغه نه د غه عذاب لرې کړې شی، دا خلق یعنی خبره نه منونکی په ښکاره ګمراهئ کښې دی ولې دا منکرین بعث په دې خبره نه پوهیږی؟ چه کوم الله تعالی زمکه او آسمانونه پیدا کړل او د هغې په پیدا کولو کښې ستړې شوې نه دې یعنی د دې نه عاجز شوې نه دې، ولې هغه په دې خبره باندې قادر نه دې چه مړی راژوندی کړې شی ولې نه؟ بیشکه هغه د مړو په راژوندی کولو باندې قادر دې بِقَادِرٍ، د اِنَّ خبر دې او کلام اَلَیْسَ اللّٰهُ بِقَادِرٍ په قوت کښې دی بیشکه هغه په هرڅیز باندې قادر دې، هغه خلق چا چه کفر او کړو په کومه ورځ چه د اور مخې ته راوړلې شی په داسې توګه چه هغوی ته به په اور کښې عذاب ورکولې شی نو هغوی ته به وئیلی شی چه ولې دا عذاب حق نه دې؟ جواب به ورکړی او قسم دې زمونږ دا رب (حق دې) (الله تعالی) به اوفرمائی او س د خپل کفر په بدله کښې د عذاب مزه اوڅکئ پس (اې پیغمبره) د خپل قوم تکلیف باندې هم داسې صبر او کړه لکه چه

تانه وراندې اولوالعزم پيغمبرانو صبركړې دې (يعنې ثابت قدم پاتې كيدونكو او په تكليفونوباندې صبركونكو په شان (صبراوكړه) نوته به هم اولوالعزم شې، او مِنْ بيانيه دې په دې صورت كښې به ټول انبياء كرام اولوالعزم شي او وئيلې شوى دى چه من تبعيضيه دې نو آدم عليه السلام به په دوى كښې شميرنه وى دَالله تعالى د قول وَلَمْ نَجِدْ لَهٗ عَزْمًا دَ وجې نه او نه به يونس عليه السلام په اولوالعزم پيغمبرانوكښې شمير وى دَالله تعالى د قول وَلَا تَكُنْ كَصَاحِبِ الْحُوتِ دَ وجې نه اوتاسودَهغوى دَپاره (عذاب غوښتلوكښې) تادى مه كوئ، يعنى په خپل قوم باندې دَ عذاب دَنازليدو باره كښې تادى مه كوئ، وئيلې شوى دى لكه چه رسول الله صلى الله عليه وسلم دَهغوى نه تنگ راغلې وو دَخه په وجه چه حضورپاك په هغوى باندې دَعذاب نازليدل خوښ كړى وو لهذا حضور پاك ته دَ صبر او دَ عذاب غوښتلوكښې تادئى د ترك كولوحكم وركړې شو، ځكه چه عذاب خو په هغوى باندې لامحاله نازليدونكې دې، په كومه ورځ چه داخلق دَآخرت عذاب اووينى دكوم چه هغوى سره وعده كولې شى نوهغوى ته به داسې معلوميږى چه هغوى په دنياكښې دَهغوى په خيال كښې دَ ورځې دَ يوې گهرئى شوې وو، دا قرآن ستاسو طرف ته دَ الله تعالى دَ طرف نه تبليغ دې، نودَعذاب ليدلو په وخت به دَ فاسق كافرنه علاوه هيڅوك نه شى هلاک كولې. ..

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** وَلَقَدْ اَهْلَكْنَا مَا حَوْلَكُمْ مِّنَ الْقُرٰى داكلام مستانف دې دَمكې مشركانوته خطاب دې لام دَ قسم محذوف په جواب باندې داخل دې مِنَ الْقُرٰى، دَما بيان دې اَهْلَهَا دَاضافې مقصد دَحذف مضاف طرف ته اشاره ده.

**قوله:** لَوْلَا، دَ لولا تفسير په هَلَّا سره كولوكښې ئ دااوخودل چه لَوْلَا تحضيضيه دې اومقصدتوبيخ دې.

**قوله:** الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا، الَّذِيْنَ اسم موصول اتَّخَذُوْا دَدې صله، موصول صله دَ نَصَرَ فاعل، دَ اتَّخَذُوْا مفعول اول هُمْ محذوف دې اوثانى قُرْبَانًا دې او آلِهَةً دَقُرْبَانًا نه بدل دې كما صرح به المفسر، قربانا دَباب تفعيل مصدردې اوداصحيح ده چه آلِهَةً دَ اتَّخَذُوْا مفعول ثانى وى او قربانا حال يا مفعول له وى.

**قوله:** ضَلُّوْا اى الاصنام او بعض حضراتو دَضَلُّوْا فاعل كفار گرځولې دى يعنى عابدين به معبودين ترك كوى اودَ هغوى نه به دَ ويزارۍ اظهار اوكړى (اول اولى دې) (فتح القدير)

**قوله:** نَفَرًا په معنى د جماعت چه دَ دريونه زيات او د لسونه كم وى جمع انفار.

**قوله:** مِنَ الْجِنِّ دا دَنَفَرًا صفت اول دې او يَسْتَمِعُوْنَ الْقُرْاٰنَ صفت ثانى دې.

**قوله** حَضَرُوْهُ دَ ضمير مرجع قرآن اونبی دواړه کيدې شي.

**قوله** فَلَمَّا قُضِيَ جمهورو مجهول لوستلې دې اوحبيب بن عبيد رحمه الله معروف لوستلې دې دَ مجهول په صورت کښې به دَ حَضَرُوْهُ ضمير دَ قرآن طرف ته او د معروف په صورت کښې به دَ حضورپاك طرف ته راجع وي. (فتح القدير شوکانی)

**قوله** مُنْذِرِيْنَ حال مقدره کيدودَ وجې نه منصوب دې أي مقدرين الإنذار، نصيبين دَ يمن يوکلې دې، نينویٰ په نون مکسوره ياء ساکنه سره، او په نون ثانی کښې فتحه او ضمه دواړه جائزدی، آخر کښې الف مقصوره دې.

**قوله** ببطن نخل مفسرعلام دَدې واقعې نسبت بطن نخل طرف ته کړې دې په دې کښې تسامح دې ځکه چه هغه مقام چرته چه دَ جناتو دَ قرآن اوريدو واقعه پيښه شوې وه هغه بطن نخله وو هم دې ته به نخله هم وئيلې شوه اودا مقام دَمکې نه دَ طائف په لارکښې دَ يوې شپې په مسافت باندې واقع دې او بطن نخل هغه مقام دې چرته چه رسول الله ﷺ صلوة خوف کړې وو اودامقام دَمدينې نه دوه منزل لريوالی باندې دې. (جمل)

**قوله** في ضلال مبين دلته دَ جنات کلام پوره شو دَ أَوَلَمْ يَرَوْا نه دَالله تعالی کلام شروع کيږي.

**قوله** وزيدت الباء فيه لأنّ الكلام في قوّة أليس الله بقادر: دَعلامه محلی رحمه الله مقصد دَدې عبارت په اضافې سره دَ يو اعتراض جواب کول دی، اعتراض دادې چه باء دکلام نفی نه پس زائده وی اوکوم چه دَ إنّ لاندې دې هغه مثبت دې لهذا په بقادر کښې باء راوړل صحيح نه دی؟.

**جواب:** دَجواب حاصل دادې چه نفی دَ آيت په شروع أَوَلَمْ يَرَوْا کښې واقع ده اوکوم څه چه دَدې نه پس دی هغه هم دَ نفی لاندې دی لکه چه کلام د أليس الله بقادر په قوت کښې دې لهذا دَ باء داخلول جائزدی اوهم دغه وجه ده چه دَدې جواب دَالله تعالی قول بلی إنّه على كلّ شيء قدير کښې بَلَى سره ورکړې شوې دې دادَدې خبرې علامت دې چه کلام په قوت دَنفی کښې دې ځکه چه دَ بلی په ذريعه سره د کلام منفی جواب راځي.

**قوله** يُقَالُ لَهُمْ علامه محلی رحمه الله يقال لهم محذوف منلوسره اشاره اوکړه چه دَيوم ناصب يقال فعل محذوف دې اودَ يوم يعرض نه دَ أليس هذا بالحق پورې دَ يقال مقوله ده.

**قوله** وَرَبِّنَا کښې واؤ قسميه دَپاره دَ تاکيد دې.

**قوله** ذوو الثبات دادَ أولو العزم تفسيردې دَدې معنی ده اوچت همت والا، ثابت قدم، که چرې من بيانيه اومنلې شي نو ټول انبياء کرام به په اولو العزم کښې شامل شي اوبعض

حضراتو من تبعيضيه اخستې دې په دې صورت کښې به بعض انبياء کرام ذ اولوالعزم نه مستثنیٰ وی کما اشار اليه المفسر ﷺ.

**قوله**: فاصبر جواب شرط دې فاء جزائيه ده شرط محذوف دې أی إذا كان عاقبة أمر الكفار ما ذكر، فاصبر على أذاهم، اصل کانه فقره مناسب به وه چه مفسرعلام کانه حذف کړې وې.

(صاوی)

**قوله**: يوم يرون دا د لم يلبثوا ظرف دې لطوله، دَ لم يلبثوا تعليل مقدم دې.

**قوله**: هذا القرآن بلاغ، هذا القرآن محذوف منلو سره ئې اشاره او کړه چه بلاغ ذ مبتدأ محذوف خبر دې او بلاغ اسم للتعليم. (ترويح الارواح)

**[٤٧] سورة محمد**

**سورة القتال مدنية الا و كاين من قرية (الاية) او مكية وهي ثمان او تسع وثلثون اية**

سورة القتال مدنی دې سواد آيت وكأين من قرية نه، يا مكی دې، اوپه دې کښې اته ديرش يا نهه ديرش آياتونه دی.

**[اياتونه: ١-١١]**

(الَّذِينَ كَفَرُوا) مِنْ أَهْلِ مَكَّةَ (وَصَدُّوا) غَيْرَهُمْ (عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ) أَيِ الْإِيمَانِ (أَضَلَّ) أَحْبَطَ (أَعْمَالَهُمْ) كَإِطْعَامِ الطَّعَامِ وَصِلَةِ الْأَرْحَامِ فَلَا يَرَوْنَ لَهَا فِي الْآخِرَةِ ثَوَابًا وَيُجْزَوْنَ بِهَا فِي الدُّنْيَا مِنْ فَضْلِهِ تَعَالَى (وَالَّذِينَ آمَنُوا) أَيِ الْأَنْصَارُ وَغَيْرُهُمْ (وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَآمَنُوا بِمَا نُزِّلَ عَلَى مُحَمَّدٍ) أَيِ الْقُرْآنِ (وَهُوَ الْحَقُّ مِنْ رَبِّهِمْ كَفَّرَ عَنْهُمْ) غَفَرَ لَهُمْ (سَيِّئَاتِهِمْ وَأَصْلَحَ بَالَهُمْ) حَالَهُمْ فَلَا يَعْصُونَهُ (ذَٰلِكَ) أَيْ إِضْلَالُ الْأَعْمَالِ وَتَكْفِيرُ السَّيِّئَاتِ (بِأَنَّ) بِسَبَبِ أَنَّ (الَّذِينَ كَفَرُوا اتَّبَعُوا الْبَاطِلَ) الشَّيْطَانَ (وَأَنَّ الَّذِينَ آمَنُوا اتَّبَعُوا الْحَقَّ) الْقُرْآنَ (مِنْ رَبِّهِمْ كَذَٰلِكَ) أَيْ مِثْلَ ذَلِكَ الْبَيَانِ (يَضْرِبُ اللَّهُ لِلنَّاسِ أَمْثَالَهُمْ) يُبَيِّنُ أَحْوَالَهُمْ أَيْ فَالْكَافِرُ يُحْبَطُ عَمَلُهُ وَالْمُؤْمِنُ يُغْفَرُ لَهُ (فَإِذَا لَقِيتُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا فَضَرْبَ الرِّقَابِ) مَصْدَرٌ بَدَلٌ مِنَ اللَّفْظِ بِفِعْلِهِ أَيْ فَاضْرِبُوا رِقَابَهُمْ أَيِ اقْتُلُوهُمْ وَعَبَّرَ بِضَرْبِ الرِّقَابِ لِأَنَّ الْغَالِبَ فِي الْقَتْلِ أَنْ يَكُونَ بِضَرْبِ الرَّقَبَةِ (حَتَّىٰ إِذَا أَثْخَنْتُمُوهُمْ) أَكْثَرْتُمْ فِيهِمُ الْقَتْلَ (فَشُدُّوا) فَأَمْسِكُوا عَنْهُمْ وَأْسِرُوهُمْ وَشُدُّوا (الْوَثَاقَ) مَا يُوثَقُ بِهِ الْأَسْرَى (فَإِمَّا مَنًّا بَعْدُ) مَصْدَرٌ بَدَلٌ مِنَ اللَّفْظِ بِفِعْلِهِ أَيْ تَمُنُّونَ عَلَيْهِمْ بِإِطْلَاقِهِمْ مِنْ غَيْرِ شَيْءٍ (وَإِمَّا فِدَاءً) تُفَادُونَهُمْ بِمَالٍ أَوْ أَسْرَى مُسْلِمِينَ (حَتَّىٰ تَضَعَ الْحَرْبُ) أَيْ أَهْلُهَا (أَوْزَارَهَا) أَثْقَالَهَا مِنَ السِّلَاحِ وَغَيْرِهِ بِأَنْ يُسْلِمَ الْكُفَّارُ أَوْ يَدْخُلُوا فِي الْعَهْدِ وَهَذِهِ غَايَةٌ لِلْقَتْلِ وَالْأَسْرِ (ذَٰلِكَ) خَبَرُ مُبْتَدَأٍ مُقَدَّرٍ أَيِ الْأَمْرُ فِيهِمْ مَا ذُكِرَ (وَلَوْ يَشَاءُ اللَّهُ لَانْتَصَرَ مِنْهُمْ) بِغَيْرِ قِتَالٍ (وَلَٰكِنْ) أَمَرَكُمْ بِهِ (لِيَبْلُوَ بَعْضَكُمْ بِبَعْضٍ) مِنْهُمْ فِي الْقِتَالِ فَيَصِيرُ مَنْ قُتِلَ مِنْكُمْ إِلَى الْجَنَّةِ وَمِنْهُمْ إِلَى النَّارِ (وَالَّذِينَ قُتِلُوا) وَفِي قِرَاءَةٍ قَاتَلُوا الْآيَةُ نَزَلَتْ يَوْمَ أُحُدٍ وَقَدْ فَشَا فِي الْمُسْلِمِينَ الْقَتْلُ وَالْجِرَاحَاتُ (فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَلَنْ يُضِلَّ) يُحْبِطَ (أَعْمَالَهُمْ) (سَيَهْدِيهِمْ) فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ

إلى ما ينفعهم ﴿وَيُصْلِحُ بَالَهُمْ﴾ حالهم فيهما وما في الدنيا لمن لم يقتل وأدرجوا في قتلوا تغليبا ﴿وَيُدْخِلُهُمُ الْجَنَّةَ عَرَّفَهَا﴾ بينها ﴿لَهُمْ﴾ فيهتدون إلى مساكنهم منها وأزواجهم وخدمهم من غير استدلال ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنْ تَنْصُرُوا اللَّهَ﴾ أي دينه ورسوله ﴿يَنْصُرْكُمْ﴾ على عدوكم ﴿وَيُثَبِّتْ أَقْدَامَكُمْ﴾ يثبتكم في المعترك ﴿وَالَّذِينَ كَفَرُوا﴾ من أهل مكة مبتدأ خبره تعسوا يدل عليه ﴿فَتَعْسًا لَهُمْ﴾ أي هلاكا وخيبة من الله ﴿وَأَضَلَّ أَعْمَالَهُمْ﴾ عطف على تعسوا ﴿ذَٰلِكَ﴾ التعس والإضلال ﴿بِأَنَّهُمْ كَرِهُوا مَا أَنْزَلَ اللَّهُ﴾ من القرآن المشتمل على التكاليف ﴿فَأَحْبَطَ أَعْمَالَهُمْ﴾ ﴿أَفَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَيَنْظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ دَمَّرَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ﴾ أهلك أنفسهم وأولادهم وأموالهم ﴿وَلِلْكَافِرِينَ أَمْثَالُهَا﴾ أي أمثال عاقبة ما قبلهم ﴿ذَٰلِكَ﴾ نصر المؤمنين وقهر الكافرين ﴿بِأَنَّ اللَّهَ مَوْلَى﴾ ولي وناصر ﴿الَّذِينَ آمَنُوا وَأَنَّ الْكَافِرِينَ لَا مَوْلَىٰ لَهُمْ﴾

**ترجمه**: شروع کوم د الله په نوم سره چې ډير مهربانه او ډير رحم والا دې، د مکې والو نه کومو خلقو چې کفر اوکړو او نورو لره ئې د الله د لارې نه يعني د ايمان نه منع کړل الله تعالى د هغوى عملونه برباد کړل، مثلا روټئ په بل خوړل، صله رحمي کول، نو دوى به په آخرت کښې د خپلو عملونو هيڅ اجر اونه مومي، البته په دنيا کښې به دوى ته د الله په مهربانئ سره د دوى د عملونو صله ورکړې کيږى، او هغه خلق يعني انصار وغيره چه ايمان ئې راوړو او نيک عملونه ئې اوکړل، او څه چې په محمد ﷺ باندې نازل شوې دى په هغې ئې هم ايمان راوړو، او هغه د دوى د رب د طرف نه حق دې، نو الله تعالى د هغوى ګناهونه معاف کړل، او د دوى د حالت اصلاح ئې اوکړه، نو دوى د هغه نافرمانى نه کوى، دا يعني د عملونو بربادول او ګناهونو لره معاف کول د دې وجې نه دى چې کومو خلقو کفر اوکړو نو هغوى د باطل شيطان تابعدارى اوکړه، او کومو خلقو چې ايمان راوړو هغوى د خپل رب د طرف نه د حق يعني د قرآن تابعدارى اوکړه، کذلک، يعني د دې بيان په شان، الله تعالى د خلقو حالاتو لره بيانوى، نو دغه شان د کافر عمل لره برباد وى، او د مومن خطاګانې معاف کړو، او چې کله تاسو د کافرانو سره مخامخ شئ نو په څټونو باندې ګزار کوئ، ضرب، مصدر په لفظ د فعل سره، د خپل فعل په عوض کښې دې، يعني فاضربوا رقابهم يعني هغوى قتل کړئ، او قتل نه په څټ وهلو سره څکه تعبير اوکړو چې قتل زيات تر په څټ باندې وهلو سره په اسانئ کيږى. چې کله دوى ښه تکړې کړئ، يعني چې کله دوى ښه قتل کړئ نو د دوى قيد کول ښه مضبوط کړئ، يعني قتلول پريږدئ او هغوى قيد کړئ، وثاق هغه څيز چې د هغې په ذريعه سره قيديان ترلې شى، رسئ وغيره، بيا اختيار دې که احسان پرې کوئ او که پرېږدئ ئې (منا) د خپل فعل مصدر لفظى دې او د خپل فعل په عوض کښې دې، يعني بغير د څه کولو نه په دوى باندې احسان اغستلو سره دوئ پرېږدئ، يا د دوى نه فديه واخلئ يعني په فديه کښې د دوى نه مال واخلئ، يا د مسلمانو قيديانو تبادله اوکړئ، تر دې چې جنګ يعني

جنگ کولو والا خپله اسلحه کیږدی، تردې چه کافران مسلمانان شی یا په معاهده کښې شریک شی، او دا د قید او د قتل غایت دې ذلک د مبتدأ مقدر خبر دې، أی الأمر ذلک یعنی ددوی په معامله کښې حکم هم دغه دې، او که الله غوښتله نو خپله به ئې بغیر د قتال نه ددوی نه بدله اخستلې وه، خو تاسو ئې ته د قتال حکم درکړو چې په تاسو کښې بعض په دوی کښې په بعضو باندې اوزمائی نو په تاسو کښې چې کوم شهیدان کړې، هغه به جنت ته لاړ شی، او څوک چې په دوی کښې قتل کړې شی هغه به جهنم ته لاړ شی، کوم خلق چې د الله په لار کښې شهیدان شی، الله تعالی به د هغوی عملونه چرې هم نه ضائع کوی، او په یو قرامت کښې قاتلوا دې، دا ایت د احد په ورځ باندې نازل شوې وو، په داسې حال چې په مسلمانانو کښې زخمونه او قتل عام شوې وو، ډیر زر به الله تعالی ددوی په دنیا او آخرت کښې داسې څیز طرف ته رهنمائی اوکړی چې دوی ته به فائده ورکړی، او په دنیا او آخرت کښې به ددوی د حال اصلاح اوکړی، او په دنیا کښې چې څه دی، (هدایت او اصلاح وغیره) د هغه د پاره دی څوک چې شهید نه شو، او کوم کسان چې مقتولین نه شو هغوی په مقتولین کښې د غلبې په توگه شامل کړې شول، او دوی به داسې جنت ته ورداخل کړی چې د هغې به دوی سره پیژندگلو اوشی نو دغه شان به دوی په جنت کښې خپل کور طرف ته، خپلو بیبیانو طرف ته او خپلو خادمانو طرف ته بغیر د معلومولو نه اورسیږی، اې ایمان والو که چرې تاسو د الله مدد اوکړئ یعنی د هغه د دین او د هغه د رسول مدد اوکړئ نو هغه به تاسو ستاسو په دشمن باندې غالب کړی، او ستاسو خپې به کلکې کړی، یعنی په جنگ کښې به تاسو مضبوط کړی، او اهل مکه چا چې کفر اوکړو هغوی هلاک شول، والذین کفروا مبتدأ ده، او تعسوا ددې خبر دې، په حذف خبر باندې فتعساً لهم دلالت کوی، نو ددوی د پاره د الله د طرف نه نقصان او هلاکت دې، او ددوی عملونه ضائع شول، ددې عطف په تعسوا باندې دې، دا هلاکت او د عملونو ضائع کیدل ددې وجې نه دی چې دوی هغه څه ناخوښه کړو څه چې الله تعالی نازل کړو، یعنی قرآن کوم چه په احکامو باندې مشتمل دې، نو الله تعالی ددوی عملونه ضائع کړل، آیا دا خلق په زمکه باندې نه گرځی او دوی کتلې نه دی، چې کوم خلق ددوی نه مخکښې تیر شوی دی د هغوی څه انجام شو؟ الله تعالی هغوی هلاک کړل، یعنی په خپله هغوی، د هغوی اولاد او د هغوی مالونه ئې هلاک او برباد کړل، او د کافرانو د پاره هم داسې سزاگانې دی، یعنی ددې نه د مخکښنو خلقو په شان سزاگانې دی دا یعنی د مومنانو مدد او په کافرانو باندې غضب ددې وجې نه دې چې الله تعالی د ایمان والو دوست، یعنی ولی او مدگار دې، او داچې د کافرانو هیڅ څوک کارساز نشته.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

ددې سورة نوم سورة قتال دې، د ترتیب مصحف په اعتبار سره ددې نمر ۴۷ دې، او دا

نوم د ایت نمبر ۲۰ فقرې وذکر فیها القتال نه ماخوذ دی، ددې دوه نومونه نور هم دی، یو سورۀ محمد او دویم نوم سورۀ الذین کفروا.

**قوله** صدوا، لازم متعدی دواړه مستعمل دی، یعنی منع کیدل او نورو لره منع کول، او الذین کفروا نه مراد د قریشو کافران دی.

**قوله** أضل أعمالهم، أی أبطلها وجعلها ضائعة.

**قوله** والذین آمنوا وعملوا الصلحت، د عملو الصالحات عطف په آمنوا باندې کړې شوې دې، په دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چې عمل صالح د ایمان د حقیقت جزء نه دې، ځکه چې عطف د مغایرت تقاضا کوی، البته عمل صالح د کمالِ ایمان د پاره د شرط په درجه کښې دې. (کما هو مختار الأشاعرة)

**قوله** وأمنوا بما أنزل علی محمد: دا د عطف د خاص علی العام د قبیلې نه دې، مقصد ددې د معطوف اهمیت او عظمت ښکاره کول دی، او دې خبرې ته اشاره هم ده چې دمحمد ﷺ په بعثت باندې او څه چې حضور ﷺ راوړلی دی په هغې باندې دایمان نه ایمان نه تامیږی، یعنی که څوک توحید او د توحید لوازمات او د دین لوازمات او په مخکښو پیغمبرانو باندې ایمان راوړی خو د محمد ﷺ د نبوت قائل نه وی نو دهغه ایمان به د الله په نیز قبول نه وی.

**قوله** والذین آمنوا: مبتدأ ده، او کفر عنهم سیآتهم ددې خبر دې، او وهو الحق من ربهم مبتدأ د او د خبر په مینځ کښې جمله معترضه ده.

**قوله** ذلك: مبتدأ ده، او بأن الذین کفروا اتبعوا، د مبتدأ خبر دې.

**قوله** فإذا لقیتم الذین کفروا فضرب الرقاب: د ظرف یعنی د إذا لقیتم عامل محذوف دې، او د ضرب الرقاب هم هغه عامل دې، تقدیری عبارت دا دې فاضربوا الرقاب وقت ملاقاتکم العدو.

**قوله** فضرب الرقاب: په دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چې ضرب مصدر د خپل فعل امر اضربوا نائب دې، ځکه چې ددې اصل فاضربوا الرقاب ضربا دې، فعل حذف کړې شو مصدر د مفعول طرف ته مضاف کولو سره د فعل قائم مقام کړې شو، د دې کښې په اختصار سره تاکید هم دې.

**قوله** إذا أثخنتموهم، کله چې تاسو دوی په ښې طریقې سره قتل کړئی أثخنتموا د إثخان نه ماضی جمع مذکر حاضر، هم ضمیر جمع مذکر غائب، أی أکثرتم فیهم القتل، او په مصباح کښې أثخن فی الأرض سار إلی العدو.

**قوله**: الوثاق: بالفتح والکسر ما یوثق به رسن وغیره، هغه ولق ته وهغاکی هم العنق

**قوله**: وهذه غایة للقتل والأمر: یعنی چې کله ذشمن اسلحه اوغورزوي، او د هغوی دم بالکل ختم شی، نو بیا قتل او قید موقوف کړئی،

**قوله**: والذین قتلوا: مبتدأ ده. او فلن یضل أعمالهم د مبتدأ خبر دی.

**قوله**: لیبلو بعضکم ببعض: دا د امر بالقتال علت دی.

**قوله**: وما فی الدنیا: لئن لم یقتل وأدرجوا فی قتلوا تغلیبا، دا د یو اعتراض جواب دی،

اعتراض دا دی چې د الله تعالی د قول یصلح بالهم تفسیر ئ په حالهم فیهما أی فی الدنیا والآخرة سره کړی دی، د (هم) نه مراد مقتولین فی الحرب دی، ښکاره خبره ده چې په دنیا کښې د حال د اصلاح نه مراد هغه خیزونه دی کوم چې په دنیا کښې نفع رسونکی دی، مثلا نیک عملونه، اخلاص، هدایت، خو دا قسم اصلاح د حال د هغه خلقو د پاره کیدی شی کوم چې قتل شونه وی؟

**تنبیه**: ددې خبرې دې خیال اوساتلې شی، چې دا ذکر شوې اعتراض به د قتلوا والا قرامت باندې به وی، که قاتلوا والا قرامت واخستلې شی نو بیا هیڅ اعتراض نشته.

**جواب**: د جواب حاصل دا دی چې دلته د قتلوا نه هغه مجاهدین مراد دی کوم چې مقتول شوې نه دی، خو په جهاد کښې شریک وو، ددې تائید د قاتلوا والا قرامت نه کیږی، قاتلین په مقتولین کښې تغلیبا داخل کړې شو، اوس د ایت مطلب دا دی چې کوم مجاهدین ژوندی پاتې شول الله تعالی به د هغوی د حالت اصلاح په دنیا کښې اوکړی، اوکوم چې د الله په لاره کښې شهیدان شول دهغوی دحالت اصلاح به په جنت کښې اوکړی.

**قوله**: یثبت اقدامکم: ددې تفسیر ئې په یثبتکم سره کولو کښې دې خبرې ته اشاره اوکړه چې جز ونیلو سره کل، یعنی ذات مراد دی.، د ذات نه په اقدام سره تعبیر کولو وجه دا ده چې د ثبات او تزلزل اثر اول په قدمونو باندې ښکاره کیږی.

**قوله**: المعترك: معترك نه د جنګ میدان مراد دی.

**قوله**: ذلك: مبتدأ او (بأن الله) ددې خبر دی.

**[ایاتونه: ۱۱-۱۹]**

(إِنَّ اللّٰهَ یُدۡخِلُ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ جَنّٰتٍ تَجۡرِیۡ مِنۡ تَحۡتِهَا الۡاَنۡهٰرُ وَالَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا یَتَمَتَّعُوۡنَ) فی الدُّنیا (وَیَاۡکُلُوۡنَ کَمَا تَاۡکُلُ الۡاَنۡعَامُ) ای لیس لَهُمْ هَمٌّ اِلَّا بُطُونهم وَفُرُوجهم وَلَا یَلْتَفِتُونَ اِلَى الآخِرَةِ (وَالنَّارُ مَثۡوًی لَّهُمۡ) مَنْزِل وَمُقَام وَمَصِير (وَکَاَیِّنۡ) وَكَم (مِّنۡ قَرۡیَةٍ) أُرِيدَ بِهَا اَهْلُهَا (هِیَ اَشَدُّ قُوَّةً مِّنۡ قَرۡیَتِكَ) مَكّة اي اَهْلها

﴿الَّتِي أَخْرَجَتْكَ﴾ رُوعِيَ لَفظ قَرْيَة ﴿أَهْلَكْنَاهُمْ﴾ رُوعِيَ مَعْنَى قَرْيَة الأُولَى ﴿فَلَا نَاصِرَ لَهُمْ﴾ من إهلاكنا ﴿أَفَمَنْ
كَانَ عَلَىٰ بَيِّنَةٍ﴾ حُجَّة وَبُرْهَان ﴿مِّن رَّبِّهِ﴾ وَهُمُ الْمُؤْمِنُونَ ﴿كَمَن زُيِّنَ لَهُ سُوءُ عَمَلِهِ﴾ فَرَآهُ حَسَنًا وَهُمْ كُفَّار مَكَّة
﴿وَاتَّبَعُوا أَهْوَاءَهُم﴾ فِي عِبَادَة الأَوْثَان أَيْ لَا مُمَاثَلَة بينهما ﴿مَّثَلُ﴾ أَيْ صِفَة ﴿الْجَنَّةِ الَّتِي وُعِدَ الْمُتَّقُونَ﴾
الْمُشْتَرَكَة بَيْن دَاخِلِيهَا مبتدأ خبره ﴿فِيهَا أَنْهَارٌ مِّن مَّاءٍ غَيْرِ آسِنٍ﴾ بِالْمَدّ وَالْقَصْر كَضَارِبٍ وَحَذِر أَيْ غَيْر مُتَغَيِّر
بِخِلَافِ مَاء الدُّنْيَا فَيَتَغَيَّر بِعَارِضٍ ﴿وَأَنْهَارٌ مِّن لَّبَنٍ لَّمْ يَتَغَيَّرْ طَعْمُهُ﴾ بِخِلَافِ لَبَن الدُّنْيَا لِخُرُوجِهِ مِنَ الضُّرُوع
﴿وَأَنْهَارٌ مِّنْ خَمْرٍ لَّذَّةٍ﴾ لَذِيذَة ﴿لِّلشَّارِبِينَ﴾ بِخِلَافِ خَمْر الدُّنْيَا فَإِنَّهَا كَرِيهَة عِنْد الشُّرْب ﴿وَأَنْهَارٌ مِّنْ عَسَلٍ
مُّصَفًّى﴾ بِخِلَافِ عَسَل الدُّنْيَا فَإِنَّهُ بِخُرُوجِهِ مِنْ بُطُون النَّحْل يُخَالِطُ الشَّمْع وَغَيْره ﴿وَلَهُمْ فِيهَا﴾ أَصْنَاف ﴿مِن
كُلِّ الثَّمَرَاتِ وَمَغْفِرَةٌ مِّن رَّبِّهِمْ﴾ فَهُوَ رَاضٍ عَنْهُمْ مَعَ إِحْسَانه إِلَيْهِمْ بِمَا ذُكِرَ بِخِلَافِ سَيِّد الْعَبِيد فِي الدُّنْيَا
فَإِنَّهُ قَدْ يَكُون مَعَ إِحْسَانه إِلَيْهِمْ سَاخِطًا عَلَيْهِمْ ﴿كَمَنْ هُوَ خَالِدٌ فِي النَّارِ﴾ خَبَر مبتدأ مُقَدَّر أَيْ أَمَّنْ هُوَ فِي هَذَا
النَّعِيم ﴿وَسُقُوا مَاءً حَمِيمًا﴾ أَيْ شَدِيد الْحَرَارَة ﴿فَقَطَّعَ أَمْعَاءَهُمْ﴾ أَيْ مَصَارِينهمْ فَخَرَجَتْ مِنْ أَدْبَارهمْ وَهُوَ جَمْع
مِعًى بِالْقَصْرِ وَأَلِفه عَنْ يَاء لِقَوْلِهِمْ مِعَيَان ﴿وَمِنْهُم﴾ أَيِ الْكُفَّار ﴿مَّن يَسْتَمِعُ إِلَيْكَ﴾ فِي خُطْبَة الْجُمُعَة وَهُمُ
الْمُنَافِقُونَ ﴿حَتَّىٰ إِذَا خَرَجُوا مِنْ عِندِكَ قَالُوا لِلَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ﴾ لِعُلَمَاء الصحابة منهم بن مسعود وبن عباس
اسْتِهْزَاء وَسُخْرِيَة ﴿مَاذَا قَالَ آنِفًا﴾ بِالْمَدّ وَالْقَصْر أَيِ السَّاعَة أَيْ لَا نَرْجِع إِلَيْهِ ﴿أُولَٰئِكَ الَّذِينَ طَبَعَ اللَّهُ عَلَىٰ
قُلُوبِهِمْ﴾ بِالْكُفْرِ ﴿وَاتَّبَعُوا أَهْوَاءَهُمْ﴾ فِي النِّفَاق ﴿وَالَّذِينَ اهْتَدَوْا﴾ وَهُمُ الْمُؤْمِنُونَ ﴿زَادَهُمْ﴾ اللَّه ﴿هُدًى
وَآتَاهُمْ تَقْوَاهُمْ﴾ أَلْهَمَهُمْ مَا يَتَّقُونَ بِهِ النَّار ﴿فَهَلْ يَنظُرُونَ﴾ مَا يَنْتَظِرُونَ أَيْ كُفَّار مَكَّة ﴿إِلَّا السَّاعَةَ أَن
تَأْتِيَهُم﴾ بَدَل اشْتِمَال مِنَ السَّاعَة أَيْ لَيْسَ الأَمْر إِلَّا أَنْ تَأْتِيهِمْ ﴿بَغْتَةً﴾ فَجْأَة ﴿فَقَدْ جَاءَ أَشْرَاطُهَا﴾ عَلَامَاتهَا
مِنْهَا بَعْثَة النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَانْشِقَاق الْقَمَر وَالدُّخَان ﴿فَأَنَّىٰ لَهُمْ إِذَا جَاءَتْهُمْ﴾ السَّاعَة ﴿ذِكْرَاهُمْ﴾
تَذَكُّرهُمْ أَيْ لَا يَنْفَعهُمْ ﴿فَاعْلَمْ أَنَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا اللَّهُ﴾ أَيْ دُمْ يَا مُحَمَّد عَلَى عِلْمك بِذَلِكَ النَّافِع فِي الْقِيَامَة
﴿وَاسْتَغْفِرْ لِذَنبِكَ﴾ لِأَجْلِهِ قِيلَ لَهُ ذَلِكَ مَعَ عِصْمَته لِتَسْتَنَّ بِهِ أُمَّته وَقَدْ فَعَلَهُ قَالَ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّي
لأستغفر الله في كل يوم مئة مَرَّة ﴿وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ﴾ فِيهِ إِكْرَام لَهُمْ بِأَمْرِ نَبِيّهمْ بِالِاسْتِغْفَارِ لَهُمْ ﴿وَاللَّهُ
يَعْلَمُ مُتَقَلَّبَكُمْ﴾ مُنْصَرَفكُمْ لِأَشْغَالِكُمْ فِي النَّهَار ﴿وَمَثْوَاكُمْ﴾ مَأْوَاكُمْ إِلَى مَضَاجِعكُمْ بِاللَّيْلِ أَيْ هُوَ عَالِم
بِجَمِيعِ أَحْوَالكُمْ لَا يَخْفَى عَلَيْهِ شَيْء مِنْهَا فَاحْذَرُوهُ وَالْخِطَاب لِلْمُؤْمِنِينَ وغيرهم

**ترجمه**: کوم خلقو چې ايمان راوړو او نيک عملونه ئې اوکړل هغوی به الله تعالی يقينا داسې
باغونو کښې داخل کړی چې د هغې لاندې به نهرونه بهيږی، او کافران په دنيا کښې خو ورځې د
ژوند مزې اخلی، او د څناورو په شان خوراک کوی، يعنی د دوی په مخې ته د خيټې او د
فرج د شهوت نه علاوه بل څه نه دی، او هغوی آخرت طرف ته نه متوجه کيږی، او جهنم
دهغوی د اوسيدو ځائې دې (يعنی) دهغوی منزل، مقام او د اوسيدو ځائې جهنم دې، (اې
پيغمبره) مونږ څومره کلی مراد د کلی اوسيدونکی چې په طاقت کښې ستا د هغه کلی يعنی د

مکې والا نه زیات وو، چې د کوم نه ئې تاسو ویستلئ، په (اخرجتک) کښې د لفظ قریة خیال ساتلې شوې دې. هلاک کړې شول اول د قریة د معنی رعایت کړې شوې دې چې څوک دوی لره زمونږ هلاکت نه د خلاصولو والا نه وو، نو ایا چرته کیدې شي چې هغه خلق چې د خپل پروردګار د طرف نه په حجت او دلیل سره وی، او هغوی مومنان هم وی، د هغه کس په شان شي چې د هغه د پاره د هغه خراب عمل ښائسته کړې شوې وی، او هغه دې عمل لره ښه ګنړلې وی او د بتانو په بندګۍ کښې د خپلو خواهشاتو تابعداری کوی، یعنی ددوی په مینځ کښې هیڅ برابری نشته، او د هغه جنت صفت، چې د هغې نیکانو خلقو سره وعده کړې شوې ده، هغه جنت دې کوم چې مشترک دې په هغې کښې د داخلیدونکو په مینځ کښې، (الجنة الخ) مبتداء دې، (فیها انهار) ددې خبر دې، دادې چه په دې کښې دداسې اوبو نهرونه دی چه هغه بد بوئی نه کوی (اسن) مد او بغیر د مد نه دواړه قسمه دې، لکه ضارب وحذر یعنی هغه اوبه بدلیدونکی نه دی، په خلاف د دنیا د اوبو، چې هغه د یو څیز د وجه بدلیږی، او د پیو نهرونه دی چې دهغې مزه به نه بدلیږی، په خلاف د دنیا د پیو، د غلانړې نه د راوتلو په وجه، او د شرابو نهرونه دی چې په هغې کښې د څکونکو د پاره ډیره مزه ده، په خلاف د دنیا شراب چې هغه د څکلو په وخت بې مزه شي او صفا د شهدو نهرونه دی، په خلاف د دنیا د شهدو نه، ځکه چې د مچئ د خیټې نه راوتلو په وجه په هغې کښې موم وغیره شامل وی، او دوی د پاره هلته هر قسم میوې دی، او د هغوی د رب د طرف نه معفرت دې، او هغه ددوی نه راضي دې، په دوی باندې مذکوره احسان کولو باوجود په خلاف د دنیا د غلامانو د مالکانو، چې هغوی بعضې وخت په هغوی باندې احسان کولو سره د هغوی نه خفه هم وی آیا دا د هغه کس په شان دې چې همیشه په اور کښې دې؟ دا د مبتدأ محذوف یعنی (أمن هو في هذا النعیم) خبر دې، یعنی هغه کس چې په دې نعمتونو کښې وی، د هغه کس په شان دې چې همیشه به په اور کښې وی، او په چا به چې ګرمې یعنی ډیرې ګرمې اوبه څکولې شي، چې د هغوی کولمې به ټکرې ټکرې کړی، یعنی د هغوی کولمې به کټ کړی او په شرمګاهونو به بهر راوځی، او امعاء معا بغیر د مد جمع ده، او ددې الف د یاء په عوض کښې دې، په (تثنیه) کښې ددوی د قول معیان په دلیل سره، او په دې کافرانو کښې بعضې داسې دی چې د جمعې په خطبه کښې تاسو طرف ته په ظاهره غوږ لګولې وی، او هغه منافقان دی، تر دې چې کله دوی ستا د خوا نه لاړ شي، نو د علم خاوندانو عالمانو صحابو ﷺ نه چې په هغې کښې ابن مسعود او ابن عباس شامل دی، د توقو په توګه تپوس کوی چې اوس هغه څه اوویئیل؟ (آنفا) مد او بغیر د مد نه، په معنی د ساعت، (اوس) مونږ د هغه طرف ته توجه نه ورکوو هم دا خلق دی چې الله تعالی ددوی په زړونو باندې د کفر په وجه مهر لګولې دې او دوی په منافقت کښې د خپلو خواهشاتو تابعداری کوی، او کوم خلقو ته چې هدایت نصیب شو او هغه مومنان دی الله

تعالى دوى په هدايت كښې نور هم زيات كړل، او هغه څيز ته ئې خپله پرهيزگارى وركړه، يعنى دوى ته ئې ددې توفيق وركړو، چې د هغې د وجې نه به دوى د اور نه محفوظ وى، دې كفار مكه ته د قيامت انتظار دې، چې هغه به دوى ته اچانک راشى، تاتيهم، د الساعة نه بدل الاشتمال دې، يعنى د يقين كولو اوس څه صورت پاتې نشو، خو دا چې په دوى باندې اچانک قيامت راشى، يقينا د هغې علامتو خو راغلى دى په هغې كښې يو د حضور ﷺ راتلل، او د سپوږمئ شلېدل دى، او لوګېدې، بيا چې كله دوى باندې قيامت راشى نو دوى به نصيحت چرته حاصليږى،؟ يعنى نصيحت به دوى ته فائده نه وركوى، نو اې نبى ﷺ يقين اوساته چې د الله نه سوا بل معبود نشته، يعنى اې محمد ﷺ ته په خپل دې علم باندې كوم چې په قيامت كښې نفع وركونكې دې، كلک اوسه، او د خپلو خطاګانو بخښنه غواړه، حضور(ص) ته د معصوم كيدو باوجود د بخښنې غوښتلو حكم اوشو چې ددوى امت ددوى ﷺ تابعدارى اوكړى، او حضور ﷺ په دې باندې عمل هم كړې وو، وئې فرمائيل چې زه روزانه د الله نه سل ځله بخښنه غواړم، او د مومنانو سړو او ښځو د پاره هم حضور ﷺ ته د مومنانو دپاره د استغفار حكم وركول د امت د پاره عزت او اكرام دې او الله تعالى د ورځې ستاسو كار كولو د پاره تلل راتلل او په شپه كښې ستاسو د اوسيدو ځائې ښه پيژنى، يعنى هغه ستاسو د ټول حالاتو نه خبردار دې، د هغه نه په دې كښې يو څيز هم پټ نه دې، نو د هغه نه ويريږئ، او خطاب مومنانو وغيره ټولو ته دې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** مثوىً : ظرف مكان دې، تهكانه، د ډيرې مودې پورې د اوسيدو ځائې، (جمع) مثاوى.

**قوله:** والنار مثوىً لهم: مبتدأ او خبر مستانفه ده.

**قوله:** كأيّن، دا د كاف او أيّ نه مركب دې، (كم) خبريه معنى كښې دې، د مبتدأ د وجه نه محلا مرفوع دې،

**قوله:** هى اشد الخ: جمله د قرية صفت دې.

**قوله:** أخرجتك: د أخرجتک ضمير مونث راوړلو كښې د قريهٔ اولى رعايت كړې شوې دې، او د أهلكناهم په ضمير كښې د قريهٔ ثانيه د معنى رعايت كړې شوې دې، يعنى اهل قرية مراد كيدو د وجه نه ضمير مذكر راوړلې شوې دې.

**قوله:** المشتركة: يعنى چې د كوم جنت متقيانو سره وعده كړې شوې ده، هغه د ټولو نيكانو په مينځ كښې مشترک دې، ځكه چې هر يو مومن د شرک نه په امن كښې دې،

البته د اوچتې درجې نيکانو د پاره اوچت درجې والا جنت دې،

**قوله:** الجنة التي: مبتدأ ده، او فيها أنهر ددې خبر دې.

**سوال:** خبر جمله ده، او چې کله جمله خبر وي نو عائد ضروري وي حالانکه دلته عائد نشته؟

**جواب:** چې کله خبر عين مبتدأ وي نو د عائد راوړل ضروري نه دي، دلته هم داسې ده.

**قوله:** آسنٌ: (س، ض) أسنا، د اوبو بدليدل، بدبوداره کيدل.

**قوله:** لذيذةٌ، په دې کښې اشاره ده چې مصدر په معنی د اسم فاعل دې، او اسناد مجازي دې، لکه زيد عدل کښې، يعنی د جنت شراب دومره لذت والا دی ګويا چې ټول په ټوله لذت دې، دا د سوال او جواب په شکل کښې داسې هم وئيلې شې چې من خمر لذة کښې د مصدر حمل په ذات باندې راځی، کوم چې صحيح نه دې.
جواب دا دې چې دا حمل د زيد عدل د قبيل نه مبالغة دې.

**قوله:** لهم فيها: لهم د كائن يا د موجود متعلق کيدو سره خبر مقدم دې، فيها د محذوف متعلق دې، او مبتدأ محذوف ده، څنګه چې مفسر علام {اصناف} محذوف منلو سره د مبتدأ محذوف طرف ته اشاره کړې ده.

**قوله:** فهوراضٍ عنهم: ددې جملې د زياتوالی مقصد د يو سوال جواب دې،

**سوال:** د الله تعالی قول ولهم فيها من كل الثمرات ومغفرة من ربهم نه معلوميږی چې څنګه به جنت ته د داخليدو نه پس جنتيانو ته ميوې ميلاويږی دغه شان به مغفرت هم په جنت کښې ميلاويږی، حالانکه مغفرت جنت ته د داخليدو نه مخکښې کيدل پکار دی؟
**جواب:** د مغفرت نه دلته رضا مراد ده چه دا به په جنت کښې حاصليږی.

**قوله:** من هو خالد في النار: د مبتدأ محذوف خبر دې، مفسر علام مبتدأ محذوف طرف ته په خپل قول أمن هو في هذا النعيم سره اشاره کړې ده،

**قوله:** أمعاء: کولمې، أمعاء د معًا جمع ده، ددې الف په ياء سره بدل کړې شوې دې، نه چې په واؤ سره، څکه چې ددې واحد معیً راځی، او تثنيه ئ معيان راځی، ددې خبرې دليل دې چې د معا الف د ياء نه بدل راغلې دې.

**قوله:** مصارين، مصارين د مصير جمع الجمع ده، يعنی د مصير جمع مصران، او د مصران جمع مصارين ده، ددې معنی ده کولمې، په فارسئ کښې ورته روده وئيلې شی؟

**قوله:** لا يرجع إليه: دې طرف ته توجه نشی کولې، يا دا د التفات لائق نه دې، په صحيح نسخه کښې نرجع جمع متکلم دې، يعنی مونږ ددې خبرو طرف ته توجه نه کوو، تاسو

اووائي چې حضرت اوس څه اووئيل؟

**قوله:** فأنى لهم خبر مقدم دې، او ذكراهم مبتدأ مؤخر ده، إذا جاءتهم الساعة جمله معترضه ده، اود إذا جواب محذوف دې، تقديري عبارت دادې إذا جاءتهم الساعة فكيف يتذكرون؟

**قوله:** أولئك: مبتدأ ده، الذين طبع الله على قلوبهم ددې خبر.

**قوله:** والذين اهتدوا: مبتدأ ده او، زادهم ددې خبر.

**قوله:** أشراطها: أشراط جمع شرط، بفتح الراء بمعنى علامت

**قوله:** فاعلم أنه لا إله إلا الله: يعنى كله چې د مومنانو نيكبختى او د كافرانو بدبختى معلومه شوه نو تاسو آئنده هم په خپل علم بالوحدانيت وغيره باندې قائم اوسيږئ.

**قوله:** استغفر لذنبك: أي استغفر الله أن يقع منك الذنب أو استغفر الله ليعصمك وقيل الخطاب له والمراد الأمة خو ددې آخرى توجيه نه، راروانه جمله (وللمؤمنين والمؤمنات)، انكار كوي.

[ايات توله: ٢٠-٢٨]

(ويقول الذين آمنوا) طلبا للجهاد (لولا) هلا (نزلت سورة) فيها ذكر الجهاد (فإذا أنزلت سورة محكمة) أي لم ينسخ منها شيء (وذكر فيها القتال) أي طلبه (رأيت الذين في قلوبهم مرض) أي شك وهم المنافقون (ينظرون إليك نظر المغشي عليه من الموت) خوفا منه وكراهة له أي فهم يخافون من القتال ويكرهونه (فأولى لهم) مبتدأ خبره (طاعة وقول معروف) أي حسن لك (فإذا عزم الأمر) أي فرض القتال (فلو صدقوا الله) في الإيمان والطاعة (لكان خيرا لهم) وجملة لو جواب إذا (فهل عسيتم) بكسر السين وفتحها وفيه التفات عن الغيبة إلى الخطاب أي لعلكم (إن توليتم) أعرضتم عن الإيمان (أن تفسدوا في الأرض وتقطعوا أرحامكم) أي تعودوا إلى أمر الجاهلية من البغي والقتال (أولئك) أي المفسدون (الذين لعنهم الله فأصمهم) عن استماع الحق (وأعمى أبصارهم) عن طريق الهدى (أفلا يتدبرون القرآن) فيعرفون الحق (أم) بل (على قلوب) لهم (أقفالها) فلا يفهمونه (إن الذين ارتدوا) بالنفاق (على أدبارهم من بعد ما تبين لهم الهدى الشيطان سول) أي زين (لهم وأملى لهم) بضم أوله وبفتحه واللام والمملي الشيطان بإرادته تعالى فهو المضل لهم (ذلك) أي إضلالهم (بأنهم قالوا للذين كرهوا ما نزل الله) أي للمشركين (سنطيعكم في بعض الأمر) أي المعاونة على عداوة النبي صلى الله عليه وسلم وتثبيط الناس عن الجهاد معه قالوا ذلك سرا فأظهره الله تعالى (والله يعلم إسرارهم) بفتح الهمزة جمع سر وبكسرها مصدر (فكيف) حالهم (إذا توفتهم الملائكة يضربون) حال من الملائكة (وجوههم وأدبارهم) ظهورهم بمقامع من حديد (ذلك) التوفي على الحالة المذكورة (بأنهم اتبعوا ما أسخط الله وكرهوا رضوانه) أي العمل بما يرضيه (فأحبط أعمالهم)

**ترجمه**: او کومو خلقو چې ایمان راوړو، هغوی د جهاد مطالبه کولو سره وائی ولې یو داسې سورت نازل نه شو چې په هغې کښې د جهاد د اجازت ذکر وی، چې کله یو محکم غیر منسوخ سورت نازل شی چې په هغې کښې د جهاد د جازت ذکر وی، یعنی د جهاد د مطالبې ذکر وی، نو ته هغه خلقو ته چې د چا په زړونو کښې مرض یعنی شک وی او هغه منافقان دی چه دوی ستا طرف ته داسې گوری لکه چې لکه په چا باندې د مرگ بې هوشی راغلی وی، د مرگ نه ویره کولو د وجې او د هغې د نه خوښولو د وجې هغوی د جهاد نه ویریږی، او دا نه خوښوی، نو بهتره وه دوی لره چې ستا حکم ئې منلې وې، او تا سره ښې خبرې، اولی لهم مبتدأ ده، او طاعةٌ وقولٌ معروفٌ ددې خبر، یعنی ددوی د پاره ستا اطاعت او تا سره ښه خبره کول بهتر وو، او چې کله خبره پخه شوه، یعنی جهاد فرض شو، نو که د الله سره په ایمان او طاعت کښې رشتونې وو نو ددوی د پاره بهتره ده، او جمله (لو صدقوا) د (اذا) جواب دې، که تاسو د ایمان نه مخ واړوئ، نو تاسو نه لرې نه ده، چې تاسو په ملک کښې فساد شروع کړئ او صله رحمی کټ کړئ، او تاسو د جاهلیت یعنی د بغاوت او د قتل طرف ته واپس شئ، په (عسیتم) کښې سین په کسرې، او فتحې سره دواړه جائز دی، او په دې کښې د غائب نه د خطاب طرف ته التفات دې، او عسیتم په معنی د لعلکم دې، هم دغه فساد خوښونکی خلق دی، چې په چا باندې د الله لعنت دې، کوم چې د حق خبرې اورید و نه گونگیان کړې شوې دی او د هدایت لارې کتلو نه ددوی سترگې ړندې کړې شوی دی، آیا دا خلق په قرآن کښې غور او فکر نه کوی؟ چې حق اوپیژنی، بلکه ددوی زړونو باندې د زړونو مناسب تالې لگېدلې دی، چې د هغې د وجه نه دوی په قرآن باندې نه پوهیږی، یقینا هغه خلق چې د منافقت د وجې نه په دوی هدایت ښکاره کید و نه پس دوی واپس شول، (مرتد شول) یقینا شیطان ددوی د پاره ددوی عمل ښائسته کړې دې، او شیطان دوی ته د لرې خبرې ښودلی دی، اول (یعنی همزه) په ضمیه او فتحې سره اود لام فتحې سره، او د لرې باندې پوهه کولو والا د الله په ارادې سره شیطان دې، لهذا شیطان دوی لره گمراه کونکې دې، او دا یعنی د شیطان دوی لره گمراه کول ددې وجې نه اوشو چې دې منافقانو هغه خلقو ته چې د الله نازل شوې قرآن نه خوښوی، یعنی مشرکینو ته ئې اووئیل چې مونږ به بعضې خبرې ستاسو اومنو، یعنی د نبی کریم ﷺ په مخالفت کښې د معاونت په سلسله کښې او خلقو لره د حضور ﷺ سره د جهاد نه منع کولو کښې به ستاسو مدد اوکړو، منافقانو دا خبره د راز په توگه باندې وئیلې وه، خو الله دې خبرې لره ښکاره کړه، او الله تعالی ددوی پټو خبرو لره پیژنی، یا ددوی د رازونو نه خبردار دې، اسرار د همزې په فتحې سره د سر جمع ده، او د همزې په کسرې سره مصدر دې، نو ددوی به څه حالت وی؟ چې کله فرشتې ددوی روحونه قبض کوی، حال دا چې

هغه فرشتې به ددوی په مخونو او ددوی په شاګونو یعنی په ملاګانو باندې د اوسپنې به سټک سره وهل کوی، او دا یعنی په مذکوره صورت کښې روح اخستل ددې وجې نه وی چې کومه طریقه د الله د خفګان وه دوی په هغې باندې چلیدلې وو، او د هغه د رضامندئی نه ئې نفرت اوکړو یعنی هغه عمل نه کوم چه هغه رضا کولو، ځکه الله تعالی ددوی عملونه برباد کړل.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله: فأولی لهم:** لام په معنی د باء. أی أن کان الأولی بهم طاعة الله وطاعة رسوله: یعنی کمزورې ایمان والا او منافقانو د پاره د الله او د هغه د رسول تابعداری بهتره وه، دا مطلب د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه عطاء رحمه الله نقل کړې دې، او بعضې حضراتو اولی د ویل نه مشتق کړې دې، ددې معنی هلاکت او بربادی ده، په دې صورت کښې به دا کلمه ضعیف ایمان والا د پاره او دمنافقانو د پاره بددعاء او د وعید کلمه وی، اولی لهم باندې به وقف وی، ددې نه پس به کلام مستانف وی.

**قوله: فأولی لهم:** په دې کښې درې ترکیبونه کیدې شی، (١) أولی مبتدأ. لهُمْ ددې متعلق، لام په معنی د باء، طاعة وقول معروف ددې خبر، مفسر علام هم دا ترکیب اختیار کړې دې، (٢) اولی لهم د مبتدأ محذوف خبر دې، تقدیری عبارت دا دې الهلاك أولی لهم أی أقرب لهم وأحق لهم، (٣) أولی مبتدأ، او لهم ددې خبر، تقدیری عبارت دا دې فالهلاك لهم، ابو البقاء هم دا اختیار کړې دې، (اعراب ال قرآن)

**قوله: فإذا عزم الأمر:** چې کله امر د (جهاد) پخه اراده اوکړی په دې کښې اسناد مجازی دې، ځکه چې عزم د عزم کونکې دې نه چې د امر.

**قوله: فلوصدقوا الله:** بعضې حضراتو وئیلې دی چې لوصدقوا الله سره د خپل جواب نه د (إذا) جواب دې، او بعضې حضراتو د إذا جواب کرهو محذوف ګرځولې دې، او فلوصدقوا الله شرط او لکان خیرالهم ئې ددې جزاء ګرځولې ده.

**قوله: فهل عسیتم أن تولیتم:** عسیتم د افعال رجاء (مقاربه) نه فعل ماضی دې، یعنی ستاسو نه لرې نه ده، په دې کښې د مزید توبیخ او تقریع د پاره د غیبت نه خطاب طرف ته التفات دې، حضرت قتاده رضی الله عنه د تولیتم معنی إعراض عن الطاعة کړې ده، مفسر علام هم دا معنی مراد اخستلې ده، او کلبی د تولیتم معنی إن تولیتم أمر الأمة کړې ده، یعنی که تاسو د ملک د کارونو والیان او ذمه دار مقرر کړې شوئ نو په ملک کښې به د ظلم په ذریعه سره فساد خور کړئی.

**قوله: أقفالها:** أقفال د قفل جمع ده، په معنی د تالا، د اقفال اضافت قلوب طرف ته

كولو كښې ئې اشاره اوكړه چې دلته د قفل نه عرفي تالا مراد نه ده، بلكه يو خاص قسم غيبي تالا مراد ده، كومه چې د زړونو مناسب ده، مثلاً د توفيق اخستل، د غور او فكر صلاحيت ختميدل، وغيره، مفسر علام په فلايفهمونه سره هم دې غيبي تالې يعنى د سوچ او صلاحيت ختميدلو طرف ته اشاره كړې ده.

**قوله**: أُمْلِيَ: په دې كښې دوه قراتونه دي (١) د همزې ضمه او د لام كسره، سره د ياء د فتحې أي أُملِيَ ماضي مجهول، دوى ته مهلت وركړې شو، (٢) په يو قرات كښې د ياء سكون سره مضارع معروف هم ده، يعنى دوى ته به مهلت وركوم، أملي لهم دوى ته ئې لرې سوچ وركړو، اوږده اوږده اميدونه ئې وركړل، په دې صورت كښې به ددې فاعل شيطان وى، اودوى ته ئې مهلت وركړو، نيته ئې وركړه، نو په دې صورت كښې به فاعل الله وى.

**قوله**: الْمُمْلِي الشيطان بإرادته تعالى: ددې عبارت مقصد د يو سوال جواب وركول دي.

**سوال**: مهلت وركول دا د الله تعالى كار دې، لهذا شيطان طرف ته ددې نسبت كول صحيح نه دى؟

**جواب**: نيته او مهلت وركول په حقيقت كښې هم د الله تعالى دې، خو د اسناد مجازى په توګه د شيطان طرف ته نسبت شوې دې، ځكه چې داد هغه د وسوسې په ذريعې سره كيږي.

**قوله**: ذلك: مبتدأ، بأنهم قالوا ددې خبر، باء سببيه ده.

**قوله**: قالوا: قالوا ددې فاعل منافقين دى، او د كَرِهُوا فاعل يهود دى، ګويا چې دا وئيل اوريدل او خبرې كول د منافقينو او د يهودو په مينځ كښې وو، نه چې د منافقين او د مشركانو په مينځ كښې، ځنګه چه علامه محلي اختيار كړې ده، غالبا د قلم سبقت والې دې، (حاشية جلالين)

**[اياتونه: ٢٩ - ٣٨]**

(أَمْ حَسِبَ الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ مَرَضٌ أَنْ لَنْ يُخْرِجَ اللَّهُ أَضْغَانَهُمْ) يُظهر أحقادهم على النبيّ صلى الله عليه وسلم والمؤمنين (ولو نشاء لأريناكهم) عرفناكم وكررت اللام في (فَلَعَرَفْتَهُمْ بِسِيمَاهُمْ) علامتهم (وَلَتَعْرِفَنَّهُمْ) الواو لقسم محذوف وما بعدها جوابه (فِي لَحْنِ الْقَوْلِ) أي معناه إذا تكلّموا عندك بأن يُعرضوا بما فيه تهجين أمر المسلمين (والله يعلم أعمالكم (وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ) نختبرنكم بالجهاد وغيره (حَتَّى نَعْلَمَ) علم ظهور (الْمُجَاهِدِينَ مِنْكُمْ وَالصَّابِرِينَ) في الجهاد وغيره (وَنَبْلُوَ) نظهر (أَخْبَارَكُمْ) من طاعتكم وعصيانكم في الجهاد وغيره بالياء والنون في الأفعال الثلاثة (إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوا عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ) طريق الحق (وَشَاقُّوا الرَّسُولَ) خالفوه (مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الْهُدَىٰ) هو معنى سبيل الله (لَنْ يَضُرُّوا اللَّهَ شَيْئًا وَسَيُحْبِطُ أَعْمَالَهُمْ) يُبطلها من صدقة ونحوها فلا يرون لها في الآخرة ثوابا نزلت في المطعمين

مِنْ أَصْحَابِ بَدْرٍ أَوْ فِي قُرَيْظَةَ وَالنَّضِيرِ ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَلَا تُبْطِلُوا أَعْمَالَكُمْ﴾ بِالْمَعَاصِي مَثَلًا ﴿إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوا عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ﴾ طَرِيقِهِ وَهُوَ الْهُدَى ﴿ثُمَّ مَاتُوا وَهُمْ كُفَّارٌ فَلَنْ يَغْفِرَ اللَّهُ لَهُمْ﴾ نَزَلَتْ فِي أَصْحَابِ الْقَلِيبِ ﴿فَلَا تَهِنُوا﴾ تَضْعُفُوا ﴿وَتَدْعُوا إِلَى السَّلْمِ﴾ بِفَتْحِ السِّينِ وَكَسْرِهَا أَيِ الصُّلْحِ مَعَ الْكُفَّارِ إِذَا لَقِيتُمُوهُمْ ﴿وَأَنْتُمُ الْأَعْلَوْنَ﴾ حُذِفَ مِنْهُ وَاوُ لَامِ الْفِعْلِ الْأَغْلَبُونَ الْقَاهِرُونَ ﴿وَاللَّهُ مَعَكُمْ﴾ بِالْعَوْنِ وَالنَّصْرِ ﴿وَلَنْ يَتِرَكُمْ﴾ يُنْقِصَكُمْ ﴿أَعْمَالَكُمْ﴾ أَيْ ثَوَابَهَا ﴿إِنَّمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا﴾ أَيِ الْاِشْتِغَالُ فِيهَا ﴿لَعِبٌ وَلَهْوٌ وَإِنْ تُؤْمِنُوا وَتَتَّقُوا﴾ اللَّهَ وَذٰلِكَ مِنْ أُمُورِ الْآخِرَةِ ﴿يُؤْتِكُمْ أُجُورَكُمْ وَلَا يَسْأَلْكُمْ أَمْوَالَكُمْ﴾ جَمِيعَهَا بَلِ الزَّكَاةَ الْمَفْرُوضَةَ فِيهَا ﴿إِنْ يَسْأَلْكُمُوهَا فَيُحْفِكُمْ﴾ يُبَالِغْ فِي طَلَبِهَا ﴿تَبْخَلُوا وَيُخْرِجْ﴾ الْبُخْلُ ﴿أَضْغَانَكُمْ﴾ لِدِينِ الْإِسْلَامِ ﴿هَا أَنْتُمْ﴾ يَا ﴿هٰؤُلَاءِ تُدْعَوْنَ لِتُنْفِقُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ﴾ مَا فُرِضَ عَلَيْكُمْ ﴿فَمِنْكُمْ مَنْ يَبْخَلُ وَمَنْ يَبْخَلْ فَإِنَّمَا يَبْخَلُ عَنْ نَفْسِهِ﴾ يُقَالُ بَخِلَ عَلَيْهِ وَعَنْهُ ﴿وَاللَّهُ الْغَنِيُّ﴾ عَنْ نَفَقَتِكُمْ ﴿وَأَنْتُمُ الْفُقَرَاءُ﴾ إِلَيْهِ ﴿وَإِنْ تَتَوَلَّوْا﴾ عَنْ طَاعَتِهِ ﴿يَسْتَبْدِلْ قَوْمًا غَيْرَكُمْ﴾ أَيْ يَجْعَلْهُمْ بَدَلَكُمْ ﴿ثُمَّ لَا يَكُونُوا أَمْثَالَكُمْ﴾ فِي التَّوَلِّي عَنْ طَاعَتِهِ بَلْ مُطِيعِينَ لَهُ عَزَّ وَجَلَّ

**ترجمه:** آیا د هغه خلق چه د هغوی په زړونو کښې بیماری ده، دا ګنړی چې الله به د هغوی نبی ﷺ او مومنانو ته ددوی د زړه دشمنې نه ښکاره کوی؟ که مونږ غواړو نو دا ټول به مونږ تاته اوښایو، یعنی ددې ټولو به مونږ تاسو نه شناخت کړې وو، او لام په فلتعرفتهم کښې مکرر راوړلې شوې دې، نو تاسو به په دوی د مخونو علاماتو نه پیژندلې، او یقینا تاسو به دوی د خبرو نه اوپیژنئ،واؤ د قسم محذوف د پاره دې، او ددې مابعد جواب قسم دې، مطلب دا دې چې کله دوی تاسره خبرې د کوی په نو داسې طریقې تاسو ته تعریض کوی چې په هغې کښې د مسلمانانو سپکاوې وی، ستاسو ټول کارونه الله تعالی ته معلوم دی او یقینا مونږ به ستاسو ټولو امتحان اخلو، یعنی د جهاد وغیره په ذریعه به ستاسو امتحان اخلو چې په تاسو کښې مجاهدین او په جهاد وغیره کښې ثابت قدم خلق معلوم کړو،یعنی ښکاره ئې کړو، او جهاد وغیره کښې ستاسو د نافرمانئ او فرمانبردارئی حالت معلوم کړو،درې واړه په افعال یاء او نون سره دی، یقینا چې کومو خلقو کفر اوکړو او د الله د لارې یعنی د حق لارې نه ئې خلق منع کړل او د رسول ﷺ مخالفت ئې اوکړو، روستو ددې نه چې دوی د پاره هدایت ښکاره شوې وو، د سبیل الله هم دا معنی ده، دوی به هیڅ کله د الله څه نقصان اونکړی، دیړند به هغه ددوی عملونه برباد کړی، یعنی ددوی صدقه وغیره به باطله کړی، نو په آخرت کښې به دوی ته ددې هیڅ ثواب نه میلاویږی، دا ذکر شوې ایت د اصحاب بدر، یا د بنو قریظه، او د بنو نضیر په خلقو باندې خوراک کونکو په باره کښې نازل شوې دې، اې ایمان والو د الله اطاعت کوئ او د رسول خبره منئ، او خپل عملونه د ګناهونو په ذریعه مه باطلوئ، کومو خلقو چې کفر اوکړو او نور ئې د الله د لارې نه چې هغه د هدایت لاره ده، منع کړل

يا د كفر په حالت كښې مړ شو يقين اوكړي چه الله به هغوى هيڅ كله اونه بخښي، دا ذكر شوي ايت په بدر كښې د كوهى والو باره كښې نازل شوي دي، نو اې مسلمانانو همت مه ېيلئ او د صلح درخواست مه كوئ السَّلم كښې د سين په فتحې سره، او كسرې سره، يعنى چې كله ستاسو كافرانو سره مقابله راشي نو د صلح درخواست مه كوئ، او هم تاسو به غالب ئې، او (الأعلون) نه واؤ كوم چې لام فعل دې، حذف كړې شوې دې، يعنى تاسو به غالب او قاهر يئ، په نصرت او مدد سره، الله تاسو سره دې، او ستاسو عملونه به يعنى د هغې ثواب به نه كموى، واقعى د دنيا ژوند يعنى په دې كښې مشغوليدل، صرف لوبې توقې دى، او كه تاسو ايمان راوړو، او د الله د پاره مو تقوى اختيار كړه، او دا د آخرت د كارونو نه دې، نو هغه به تاسو ته ستاسو د عملونو اجر دركړى، هغه ستاسو نه ستاسو ټول مال نه غواړى، بلكه د هغې نه د زكوة فرض مقدار غواړى. كه هغه ستاسو نه ستاسو مال اوغواړى او ټول په ټوله اوغواړى يعنى د هغې په غوښتلو كښې مبالغه اوكړى نو تاسو به شوم توب اوكړئ، او شوم توب به د دين اسلام د پاره ستاسو ناخوښوالي ښكاره كړى، هو تاسو خلق داسې يئ چې تاسو د الله په لاره كښې په يو مقدار سره خرچ كولو د پاره رابللئ شئ، كوم چې په تاسو باندې فرض دې، بعضې په تاسو كښې هغه دى چې بخل كوى، او كوم كس چې بخل كوى هغه خپل ځان سره كنجوسى كوى، وئيلې كيږى (بخل عليه وعنه) الله ستاسو د خرچ كولو نه مستغنى دې، او تاسو د هغه محتاجه يئ، او كه تاسو د هغه د اطاعت نه مخ اړوئ نو الله تعالى به ستاسو په ځائې بل قوم پيدا كړى، يعنى ستاسو به ځائې به ئې كړى، يا به هغوى د اطاعت نه مخ اړولو كښې ستاسو په شان نه وى، بلكه د الله تعالى حكم منونكى به وى.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** أم حسِبَ الذين الخ: أم منقطعه دې، أى بل أحسب المنافقون الذين د خپلې صلې (موجود في قلوبهم مرض) سره، د حسب فاعل أن لن يخرج الله أضغانهم، د حسب د دوؤ مفعول قائم مقام دې،

**قوله:** أضغان: أضغان د ضغن جمع ده، بُغض، دشمنى.

**قوله:** لأريناكهم: دلته د رؤيت نه رؤيت بصرى مراد دې، دې وجې نه متعدى په دوو مفعولو سره دې، كه رؤيت قلبى مراد وو نو متعدى په درې مفعولو به وو، (إعراب ال قرآن بعضې حضراتو رؤية علميه هم مراد اخستې دې، مفسر علام د أرينا تفسير په عرّفنا كولو كښې هم دې ته اشاره كړې ده، او د معرفت نه داسې معرفت مراد دې، چې كالمشاهد (يعنى ستر ګو ليدلو پشان) وى.

**قوله:** لأريناكهم: د (لو) جواب دې، د (فلتعرفتهم) جواب په (لو) باندې عطف دې، لام تاكيد د پاره مكرر راوړې شوې دې، فاء عاطفه ده.

**قوله**: ولتعرفنهم: لام د قسم محذوف په جواب باندې داخل دې.

**قوله**: لحن القول: د لحن دوه معنې دی، (١) خطأ في الإعراب (٢) خطأ في الكلام، لحن في الكلام دا دې چې ظاهر د کلام په تعظیم باندې او باطن د کلام په تحقیر باندې دلالت کوی، او متکلم باطن د کلام مراد اخلی، یا کلمه په داسې توګه باندې ادا کول چې د هغې معنی بدله شی، او د تعظیم په ځائې د تحقیر معنی پیدا شی، څنګه به چې منافقینو حضور ﷺ ته خطاب کولو په وخت د رَاعِنا په ځائې راعِینا وئیل، د راعنا معنی ده چې زمونږ رعایت اوساته، او د راعینا معنی ده چې زمونږ شپونکې، د السلام علیکم په ځائې به ئې السام علیکم وئیل، (یعنی په تا باندې دې هلاکت وی، او مرګ دې)

**قوله**: في الأفعال الثلاث: دا درې صیغې د افعالو، لیبلونکم، یعلم، یبلو دې، په دې درې واړو افعالو کښې واحد غائب او جمع متکلم دواړه قراءتونه دی،

**قوله**: شاقوا: ماضی جمع مذکر غائب، هغوی مخالفت اوکړو، دا د مشاقة او د شقاق نه اخستلې شوې دې،

**قوله**: سیحبط أعمالهم: د اعمالو د بربادولو مطلب دا دې چې په آخرت به کښې ددوی اجر ختم شی، او د اعمالو نه هغه اعمال مراد دی کوم چې په عام معاشره کښې د خیر عملونه ګڼړلې شی، مثلاً رشته داری پالل، د غریبانو، مسافرو مدد کول، اوږو تږو باندې خوراک کول، وغیره.

**قوله**: أنزلت في المطعمین: دلته د مطعمین نه مراد مشرکین مکه دی، چا چې د غزوه بدر په موقع باندې د کافرانو د لښکر د خوراک انتظام کړې وو.

**قوله**: أصحاب القلیب: قلیب په میدان بدر کښې د یو کوهی نوم دې، چې په هغې کښې د مشرکانو قتل شوې خلقو لره حضور ﷺ غورځولې وو.

**قوله**: فلا تهنوا: تاسو همت مه بیلئ، کم همته کیږئ مه، فاء په جواب شرط باندې داخله ده، شرط محذوف دې، تقدیری عبارت دا دې، إن تبیّن لکم بالدلالة القطعیة عز الإسلام وذل الکفر في الدنیا والآخرة فلا تهنوا.

**قوله**: وأنتم الأعلون: واؤ حالیه دې، جمله حال کیدو د وجې نه په محل د نصب کښې ده، أي وأنتم الغالبون بالسیف والحجة آخر الأمر، أعلون په اصل کښې أعلوون وو، اولنې واؤ لام فعل دې، او دویم واؤ جمع دې، اول واؤ متحرک ددې ماقبل مفتوح کیدو د وجه نه الف سره بدل شو، الف د التقاء ساکنین د وجې نه اوغورزیدو، أعلون شو، د أعلون القاهرون په معنی دې، او بعضې نسخو کښې د قاهرون په ځائې الظاهرون دې،

**قوله** والله معكم: دا هم جمله حاليه ده،

**قوله** يتر، وتريتر (ض) كمول،

**قوله** فيحفكم: د إحفاء نه په يو كار كښې مبالغه كول، د جرړې نه اوخكل، هم ددې نه إحفاء الشارب دې، بريت ښه طريقې سره صفا كول، دلته په طلب كښې مبالغه مراد ده

**قوله** هاأنتم: ها حرف تنبيه، او أنتم مبتدأ ده، او هؤلاء منادیٰ ده، حرف ندا محذوف دې، كوم چې مفسر علام ښكاره كړې ده، تدعون خبر، جمله ندائيه د مبتدأ او خبر په مينځ كښې جمله معترضه واقع شوې ده.

**قوله**: يقال بخل عليه وعنه: ددې عبارت مقصد دا خودل دى چې بخل كله د شُحّ (حرص) معنى لره متضمن وى نو متعدى بعلى وى، او چې كله د أمسك معنى لره متضمن وى نو بيا متعدى بعن وى.

## [٤٨] سورة الفتح

### سورة الفتح مدنية تسع و عشرون اية

سورة الفتح مدنى دې، په دې كښې نهه ديرش آياتونه دى.

### [اياتونه: ١-١٠]

{إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ} قَضَيْنَا بِفَتْحِ مَكَّةَ وَغَيْرِهَا فِي الْمُسْتَقْبَلِ عِنْوَةً بِجِهَادِكَ {فَتْحًا مُبِينًا} بَيِّنًا ظَاهِرًا {لِيَغْفِرَ لَكَ اللَّهُ} بِجِهَادِكَ {مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ} مِنْهُ لِتَرْغَبَ أُمَّتُكَ فِي الْجِهَادِ وَهُوَ مُؤَوَّلٌ لِعِصْمَةِ الْأَنْبِيَاءِ عَلَيْهِمُ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ بِالدَّلِيلِ الْعَقْلِيِّ الْقَاطِعِ مِنَ الذُّنُوبِ وَاللَّامُ لِلْعِلَّةِ الْغَائِيَّةِ فَمَدْخُولُهَا مُسَبَّبٌ لَا سَبَبٌ {وَيُتِمَّ} بِالْفَتْحِ الْمَذْكُورِ {نِعْمَتَهُ} إِنْعَامَهُ {عَلَيْكَ وَيَهْدِيَكَ} بِهِ {صِرَاطًا} طَرِيقًا {مُسْتَقِيمًا} يُثَبِّتُكَ عَلَيْهِ وَهُوَ دِينُ الْإِسْلَامِ {وَيَنْصُرَكَ اللَّهُ} بِهِ {نَصْرًا عَزِيزًا} ذَا عِزٍّ لَا ذُلَّ لَهُ {هُوَ الَّذِي أَنْزَلَ السَّكِينَةَ} الطُّمَأْنِينَةَ {فِي قُلُوبِ الْمُؤْمِنِينَ لِيَزْدَادُوا إِيمَانًا مَعَ إِيمَانِهِمْ} بِشَرَائِعِ الدِّينِ كُلَّمَا نَزَلَ وَاحِدَةٌ مِنْهَا آمَنُوا بِهَا وَمِنْهَا الْجِهَادُ {وَلِلَّهِ جُنُودُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ} فَلَوْ أَرَادَ نَصْرَ دِينِهِ بِغَيْرِكُمْ لَفَعَلَ {وَكَانَ اللَّهُ عَلِيمًا} بِخَلْقِهِ {حَكِيمًا} فِي صُنْعِهِ أَيْ لَمْ يَزَلْ مُتَّصِفًا بِذَلِكَ {لِيُدْخِلَ} مُتَعَلِّقٌ بِمَحْذُوفٍ أَيْ أَمَرَ بِالْجِهَادِ {الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا ويكفر عنهم سيئاتهم وكان ذلك عند الله فوزا عظيما} {وَيُعَذِّبَ الْمُنَافِقِينَ وَالْمُنَافِقَاتِ وَالْمُشْرِكِينَ وَالْمُشْرِكَاتِ الظَّانِّينَ بِاللَّهِ ظَنَّ السَّوْءِ} بِفَتْحِ السِّينِ وَضَمِّهَا فِي الْمَوَاضِعِ الثَّلَاثَةِ ظَنُّوا أَنَّهُ لَا يَنْصُرُ مُحَمَّدًا صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْمُؤْمِنِينَ {عَلَيْهِمْ دَائِرَةُ السَّوْءِ} بِالذُّلِّ وَالْعَذَابِ {وَغَضِبَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ وَلَعَنَهُمْ} أَبْعَدَهُمْ {وَأَعَدَّ لَهُمْ جَهَنَّمَ وَسَاءَتْ مَصِيرًا} مَرْجِعًا {وَلِلَّهِ جُنُودُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَكَانَ اللَّهُ عَزِيزًا} فِي مُلْكِهِ {حَكِيمًا} فِي صُنْعِهِ أَيْ لَمْ يَزَلْ مُتَّصِفًا بِذَلِكَ {إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ شَاهِدًا} عَلَى أُمَّتِكَ فِي الْقِيَامَةِ {وَمُبَشِّرًا} لَهُمْ فِي الدُّنْيَا {وَنَذِيرًا} مُنْذِرًا مُخَوِّفًا فِيهَا مَنْ عَمِلَ سُوءًا بِالنَّارِ {لِتُؤْمِنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ} بِالْيَاءِ

وَالتاء فِيهِ وَفِي الثَلاثَة بَعْده {وَتُعَزِّرُوهُ} يَنصُرُوهُ وَقُرِئَ بِزَايَيْنِ مَعَ الفوقانية {وَتُوَقِّرُوهُ} يعظموا وضميرها لله او لرسوله {وَتُسَبِّحُوهُ} اي لله {بُكْرَةً وَأَصِيلًا} بِالغَدَاةِ وَالعَشِيِّ {إِنَّ الَّذِينَ يُبَايِعُونَكَ} بَيْعَة الرِّضْوَان بِالحُدَيْبِيَةِ {إِنَّمَا يُبَايِعُونَ اللَّهَ} هُوَ نحو {مَنْ يُطِعِ الرَّسُولَ فَقَدْ أَطَاعَ اللَّهَ} {يَدُ اللَّهِ فَوْقَ أَيْدِيهِمْ} الَّتِي بَايَعُوا بِهَا النَّبِيَّ أَيْ هُوَ تَعَالَى مُطَّلِع عَلَى مُبَايَعَتِهِمْ فَيُجَازِيهِمْ عَلَيْهَا {فَمَنْ نَكَثَ} نَقَضَ البَيْعَة {فَإِنَّمَا يَنْكُثُ} يَرْجِع وَبَال نَقضه {عَلَى نَفْسِهِ وَمَنْ أَوْفَى بِمَا عَاهَدَ عَلَيْهُ اللَّهَ فَسَيُؤْتِيهِ} بالياء والنون {أَجْرًا عَظِيمًا}

**ترجمه**: شروع کوم د الله په نوم سره، چې ډير مهربانه او ډير رحم کولو والا دې، بې شکه مونږ تاسو ته اې نبی ﷺ يوه ښکاره فتح درکړه، يعنی ستا د جهاد په ذريعه مونږ د توري په زور په مستقبل کښې د مکې وغيره د فتح فيصله اوکړه، چې الله ستا د جهاد په صله کښې ستاسو مخکښينی گناهونه معاف کړی، چې ستا امت ته د جهاد شوق پيدا شي، او دا ذکر شوې ايت مؤول دې، د انبياؤ د گناهونه نه په دليل قطعی سره د عصمت د وجې نه، او لام د علت غائيه د پاره دې، لهذا ددې مدخول مسبب دې نه چې سبب، او چه دې ذکر شوې فتح په ذريعې سره په تا باندې خپل نعمتونه پوره کړی او ددې په ذريعه تا ته، نيغه لاره اوښايئ، يعنی تا په هغې باندې ثابت قدم کړی، او هغه نيغه لاره د دين اسلام ده، او چې هغه ددې فتح په ذريعې سره ستا يو زبردست مدد اوکړی، د عزت مدد، چې په هغې کښې ذلت نه وی هم هغه ذات دې چې د مومنانو په زړونو کښې ئې سکينت نازل کړو، چې ددوی ايمان سره د دين په احکامو باندې د ايمان نوره هم اضافه اوشی، چې کله هم په دوی باندې يو حکم نازل شی په هغې باندې ئې ايمان راوړی، او هم د هغه احکامو نه جهاد هم دې، او د زمکې او اسمان لښکرې هم د الله دی، نو که هغه ستاسو بغير د خپل دين د نصرت اراده کړې وه نو داسې ئې کولې شو، او الله تعالی د خپل مخلوق په باره کښې پوهه او په خپله کاريگرئ کښې باحکمت دې، يعنی هغه دې په صفت سره هميشه متصف دې، (هغه د جهاد حکم ځکه ورکړو) چې هغه ليدخل، د امر بالجهاد سره متعلق دې، مومنانو سړو او ښځو لره داسې جنت ته داخل کړی چې د هغې لاندې نهرونه بهيږی، چې په هغې کښې به هميشه اوسيږی، او چې د هغوی گناهونه ددوی نه لرې کړی، د الله په نيز دا لويا کاميابی ده، او چې منافق سړو او ښځو ته او مشرکانو سړو او ښځو ته سزا ورکړی، چې الله باندې بد گمانونه کوی، (السَّوْءِ) په درې واړه ځايونو کښې د سين په فتحې او ضمې سره دې، ددوی گمان دې، چې الله تعالی به د محمد ﷺ او د مومنانو مدد نه کوی، ذلت او عذاب سره د خرابوالې په چکر کښې دوی خپله راغلل، او د الله به په دوی باندې غضب وی، او دوی به د رحمت نه لرې کړی، او دوی د پاره هغه دوزخ تيار کړې دې، او هغه دوزخ خراب ځائې دې، او د اسمانونو او د زمکې لښکرې صرف د الله دی، الله تعالی په خپل ملک کښې زبردست او په خپل کاريگرئ

كښې حكمت والا دې، په دې صفت هغه د هميشه د پاره متصف دې. يقينا مونږ ته د قيامت په ورځ د خپل امت د پاره گواهي وركونكې او دوى لره په دنيا كښې د جنت خوشخبرى اورونكې والا جوړ كړې ليږلې يې، او په دنيا كښې د اور نه، د خراب عملونو د وجه نه ويرونكې راليږلې، چې تاسو خلق په الله او د هغه رسول باندې ايمان راوړئ، په لِتُؤْمِنُوا كښې ياء او تاء دواړه دى، دلته هم، او دې نه پس په درې واړو ځايونو كښې او د هغوى مدد اوكړئ او د ياء فوقانيه په صورت كښې دوؤ زاء سره وئيلې شوې دې. او د هغوى تعظيم اوكړئ، د دواړو صيغو ضمير الله او د هغه رسول طرف ته راجع دې، او د هغه يعنى د الله سحر او مابنام پاكى بيان كړئ، بې شكه هغه خلق چه تاسو سره په حديبيه كښې بيعت رضوان كوى، نو يقينا هغوى الله سره بيعت كوى، او دا د من يطع الرسول فقد أطاع الله په شان دې. د الله لاس ددوى په لاس باندې دې، هغه لاس په كوم باندې چه مومنانو د حضور ﷺ سره بيعت كړې وو، يعنى الله تعالى ددوى ددې بيعت د كاروائې نه خبردار دې، نو هغه به دوى ته بدله وركړى، او چې كوم كس وعده ماته كړى، يعنى بيعت مات كړى، نو د هغه د وعدې ماتولو وبال به هم په هغه باندې وى، يعنى د هغه عهد ماتول به هم د هغه طرف ته واپس كيږى، او كوم كس چې هغه څه پوره كړى، د څه چې هغه د الله سره وعده كړې ده، نو الله تعالى به ده ته لوئې اجر وركړى، فسوتيه كښې ياء او نون دواړه دى.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله**: إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُّبِينًا: دفتحنا تفسير په قضينا كولو كښې مقصد ديوې شبهې جوب كول دى.

**شبه**: فتح نه مراد فتح مكه ده، او فتح مكه په اتفاق سره په سن: ٨ هجرئ كښې شوې ده، او دا سورت د حديبيه نه د واپسئ په وخت په ضجنان چې د مكې نه ٢٥ كلو ميتر لرې دې، يا په قول د بعضې كراع الغميم په مقام باندې ٦ هجرئ كښې نازل شوې دې، نو اوس دا شبه ده چې په سن ٨ هجرئ كښې شوې واقعه په سن ٦ هجرئ كښې په إِنَّا فَتَحْنَا ماضى صيغې سره ولې تعبير اوكړې شوه؟

**دفع**: مفسر ينو ددې شبهې درې جوابونه وركړې دى ① يو خو هغه دې چې هغې طرف ته علامه محلى د فتحنا تفسير په قضينا سره كولو كښې اشاره اوكړه،

ددې جواب خلاصه دا ده چې د فتحنا نه مراد قضاء في الأزل ده، أى حكمنا في الأزل، أوقضاء في الأزل يقينا د صلح حديبيه نه مقدم ده، يعنى په سن: ٨ هجرئ كښې د فتحې مكې فيصله كړې شوې وه، په دې صورت كښې به په ماضى سره تعبير حقيقة وى،

② **دويم جواب**: دادې چه د فتح مكې يقينى واقع كيدلو په وجه ئې ماضى سره تعبير

کړې دې، ځکه چه د کوم څه واقع کېدل يقيني وي هغه په ماضي سره تعبير کوي، په دې صورت کښې به تعبير بالماضي مجازاً وي، اودا به د ونفخ في الصور نظير وي.

③ **دريم جواب**: دا دې چې حقيقي فتح صلح حديبيه ده، ځکه چې صلح حديبيه د فتح مکې او د نورو فتوحاتو د پاره سبب جوړه شوې وه، او حضور ﷺ هم صلح حديبيه ته فتح مبين فرمائيلې وو، چې کله د کراع الغميم په مقام باندې دا سورت نازل شو، نو حضور ﷺ صحابه کرامو ته اولوستلو، نو حضرت عمر رضي الله عنه هغه وخت هم سوال اوکړو چې اې د الله رسوله ! دا فتح مبين ده،؟ حضور ﷺ اوفرمائيل چې قسم په هغه ذات باندې چې د چا په قبضه کښې زما ساه ده، چې دا فتح مبين ده، په دې صورت کښې به هم تعبير په ماضي سره حقيقتا وي،

**قوله**: عنوة: په زور اخستل، د تورې په زور حاصلول، دا د امام اعظم او امام مالک مذهب دې، د امام شافعي مذهب دا دې چې مکه په صلح سره فتح شوې وه.

**قوله**: بَيِّناً: دمبينا تفسير په بينا کښې ئې کولو سره دې خبرې ته اشاره اوکړه چې مبين د أبان نه دې، په معنی د لازم نه چې متعدي.

**قوله**: في المستقبل: د فتح سره متعلق دې، په بعضو نسخو کښې د (في) نه بغير دې، ځنکه چه زمونږ نسخه کښې دی، نو په دې صورت کښې به المستقبل، د بفتح صفت وی.

**قوله**: بجهادك: ددې تعلق د فتح مکه سره دې، ددې کلمې د اضافې مقصد د يو سوال جواب ورکول دی.

**سوال**: فتح مکه د الله فضل دې، ځکه چې په إنا فتحنا کښې د فتح نسبت الله خپل ځان طرف ته کړې دې،او د مغفرت تعلق د حضور ﷺ د ذات سره دې، ددې مطلب دا دې چې فتح کومه چې د الله تعالی فعل دې، دا علت دې د حضور ﷺ د مغفرت، او دا صحيح نه ده، ځکه چې د يو فعل د بل د فعل د پاره علت نشی جوړيدلې، لهذا په فتح مکه باندې د حضور ﷺ مغفرت مرتب کېدل صحيح نه دی؟ ددې سوال جواب د پاره مفسر علام د بجهادک اضافه اوکړه،

**جواب**: د جواب حاصل دا دې چې د بجهادک تعلق د فتح مکه سره دې، مطلب دا دې چې فتح خو الله تعالی ورکړه خو ددې ظاهري سبب او ذريعه د حضور ﷺ جهاد جوړ شو، په دې طريقه باندې خپله د حضور ﷺ فعل د هغوی ﷺ د مغفرت علت جوړ شو، نه چې فعلِ باري تعالی، او دا صحيح ده، لهذا اوس څه اعتراض نشته،

**قوله**: هو مُؤَوَّل: دا هم د يو سوال مقدر جواب دې.

**سوال**: سوال دا دې چې نبي ص معصوم وی، نو بیا د حضور ﷺ د گناهونو د معاف کولو څه مطلب دې؟

**جواب** اول خبره دا ده چې په دې ایت کښې تاویل دې، ①چې خطاب اګرچې حضور ﷺ ته دې خو مراد ددې نه امت دې، چې امت ته د جهاد شوق وی.

② دویم دا چې د ذنوب نه د حسنات الأبرار سيئات المقربين د قاعدې مطابق خلاف اولی مراد دی،اود نبی ﷺ نه د خلاف اولی صدور کیدې شی، دا د عصمت انبیاء خلاف نه ده.

③یا د مغفرت نه مراد ستر او پرده ده، مطلب دا چې د حضور په مینځ کښې او د گناهونو د صادریدو په مینځ کښې ستر او حجاب حائل کړی، چې د هغوی ﷺ نه گناهونه صادریدل بالکل نه وی.

**قوله**: لِتَرغَب أُمَّتَكَ: دا په جهاد باندې د مغفرت مرتب کیدو علت دې، یعنی په جهاد باندې د مغفرت مرتب کیدلو د وجې نه به ستا امت د جهاد شوق لری.

**قوله**: واللام للعلة الغائية: په لِیَغفر کښې لام علتِ غائیه د پاره دې، ځکه چې د الله تعالی یو فعل معلل بالأغراض نشی کیدلې، یعنی یو څیز هغه لره په یو فعل باندې باعث (راوچتولې) نشی، البته لام مذکور د علت غائیه د پاره کیدې شی، یعنی د فعل نتیجې د پاره، چې کله وئیلې شی (اشتریت القلم لأكتب) ما قلم واخستلو د لیکلو د پاره، کتابت د اشتراء غایت دې، لهذا د لام مدخول یعنی مغفرت مسبب دې نه چې سبب، سبب فتح ده او مسبب معفرت دې نه چې مغفرت سبب وی، او فتح مکه مسبب، یعنی د جهاد په ذریعه فتح مکه د مفعرت سبب دې، نه چې مغفرت د فتح مکه سبب.

**قوله**: وَيُتِمَّ: ددې عطف په یغفر باندې دې، او د لام لاندې دې.

**قوله**: يُثَبِّتك: ددې اضافې مقصد د یو اعتراض جواب ورکول دی،

اعتراض دا دې چې حضور ﷺ خو د شروع نه هدایت یافته وو، بیا د حضور ﷺ په باره کښې ويهديك صراطاً مستقيماً وئیلو څه مطلب دې؟

**جواب**: د جواب ماحصل دا دې چې د هدایت نه مراد دوام او استقرار دې.

**قوله**: ذَا عِزّ: دا هم د یو سوال جواب دې،

**سوال**: سوال دا دې چې عزیز د منصور صفت دې، نه چې د نصر، او دلته د نصر صفت واقع کیږی؟

**جواب**: د جواب خلاصه دا ده چې عزیز د فعیل په وزن باندې دې، او د فعیل وزن د

نسبت بیانولو د پاره هم راخي، لکه فَسَقُوا ما د هغه فسق طرف ته نسبت اوکړو، یا ما هغه ته فاسق اووئیلو، دغه شان دلته هم عزیز په معنی د ذوعز دي، او ذوعز منصور وی.

**قوله**: في المواضع الثلثة: یعنی دویمه او دریمه موقع وظننتم ظن السوء

**تنبیه**: دا د شارح رحمه الله نه سبقت قلم دې، ځکه په اول او دریم مقام باندې په اتفاق سره صرف فتحه ده، لهذا صحیح دا وه چې داسې ئې وئیلې وو في الموضع الثاني.

**قوله**: والتاء فیه: یعنی لتؤمنوا بالله کښې یاء او تاء دواړه قرأتونه دی، خو د تاء په صورت کښې به دا اعتراض وی چې لتؤمنوا بالله د إنا أرسلنك تتمه ده، او په إنّا أرسلنک کښې خطاب حضور ﷺ ته دې، او په لتؤمنوا کښې خطاب امت ته دې، په کلام واحد کښې انتشار د مرجع لازمیږی، حالانکه آخر د کلام د اول کلام تتمه ده.

**جواب**: لتؤمنوا کښې اګرچې په ظاهره خطاب امت ته معلومیږی خو په حقیقت کښې خطاب حضور ﷺ ته دې، ځکه چې هغوی ﷺ اصل د امت دی، لهذا اوس په کلام واحد کښې تعدد د مرجع نه لازمیږی.

**قوله**: هو نحو من یطع الرسول فقد أطاع الله: ددې عبارت د اضافې مقصد د شبه جواب ورکول دی، شبه دا ده چې د حضور ﷺ بیعت د الله بیعت ګرځولې شوې دې. ددې نه د الله د پاره د اندامونو شبه پیدا کیږی ځکه چې حضور ﷺ په خپل لاس باندې د خلقو نه بیعت اخستلې وو، ددې نه معلومیږی چې الله به هم په لاس باندې بیعت اخستلې وی؟

جواب: د جواب خلاصه دا ده، چې ددې بیعت نه عقد میثاق مراد دې، او دا بالکل داسې ده لکه من یطع الرسول فقد أطاع الله یعنی څنګه چې د الله اطاعت د رسول اطاعت دې، دغه شان د رسول الله ﷺ سره بیعت د الله سره بیعت کول دی.

**[ایاتونه: ١١-١٧]**

(سَيَقُولُ لَكَ الْمُخَلَّفُونَ مِنَ الْأَعْرَابِ) حَوْلَ الْمَدِينَة أَيْ الَّذِينَ خَلَّفَهُمْ اللّٰه عَنْ صُحْبَتك لَمَّا طَلَبْتهمْ لِيَخْرُجُوا مَعَك إِلَى مَكَّة خَوْفًا مِنْ تَعَرُّض قُرَيْش لَك عَامَ الْحُدَيْبِيَة إِذَا رَجَعْت مِنْهَا (شَغَلَتْنَا أَمْوَالُنَا وَأَهْلُونَا) عَنْ الْخُرُوج مَعَك (فَاسْتَغْفِرْ لَنَا) اللّٰه مِنْ تَرْك الْخُرُوج مَعَك قَالَ تَعَالَى مُكَذِّبًا لَهُمْ (يَقُولُونَ بِأَلْسِنَتِهِمْ) أَيْ مِنْ طَلَب الِاسْتِغْفَار وَمَا قَبْله (مَا لَيْسَ فِي قُلُوبِهِمْ) فَهُمْ كَاذِبُونَ فِي اعْتِذَارهمْ (قُلْ فَمَنْ) اسْتِفْهَام بِمَعْنَى النَّفْي أَيْ لَا أَحَد (يَمْلِكُ لَكُمْ مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا إِنْ أَرَادَ بِكُمْ ضَرًّا) بِفَتْحِ الضَّاد وَضَمّهَا (أَوْ أَرَادَ بِكُمْ نَفْعًا بَلْ كَانَ اللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا) أَيْ لَمْ يَزَلْ مُتَّصِفًا بِذَلِكَ (بَلْ) فِي الْمَوْضِعَيْنِ لِلِانْتِقَالِ مِنْ غَرَض إِلَى آخَر (ظَنَنْتُمْ أَنْ لَنْ يَنْقَلِبَ الرَّسُولُ وَالْمُؤْمِنُونَ إِلَى أَهْلِيهِمْ أَبَدًا وَزُيِّنَ ذَلِكَ فِي قُلُوبِكُمْ) أَيْ أَنَّهُمْ يُسْتَأْصَلُونَ بِالْقَتْلِ فَلَا يَرْجِعُونَ (وَظَنَنْتُمْ ظَنَّ السَّوْءِ) هَذَا وَغَيْره (وَكُنْتُمْ قَوْمًا بُورًا) جَمْع بَائِر أَيْ هَالِكِينَ عِنْد اللّٰه بِهَذَا الظَّنّ (وَمَنْ لَمْ يُؤْمِن

بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ فَاِنَّآ اَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِيْنَ سَعِيْرًا﴾ نارا شديدة ﴿وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ يَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا﴾ اي لم يزل متصفا بما ذكر ﴿سَيَقُوْلُ الْمُخَلَّفُوْنَ﴾ المذكورون ﴿اِذَا انْطَلَقْتُمْ اِلٰى مَغَانِمَ﴾ هي مغانم خيبر ﴿لِتَاْخُذُوْهَا ذَرُوْنَا﴾ اتركونا ﴿نَتَّبِعْكُمْ﴾ لناخذ منها ﴿يُرِيْدُوْنَ﴾ بذلك ﴿اَنْ يُّبَدِّلُوْا كَلَامَ اللّٰهِ﴾ وفي قراءة كلم الله بكسر اللام اي مواعيده بغنائم خيبر اهل الحديبية خاصة ﴿قُلْ لَّنْ تَتَّبِعُوْنَا كَذٰلِكُمْ قَالَ اللّٰهُ مِنْ قَبْلُ﴾ اي قبل عودنا ﴿فَسَيَقُوْلُوْنَ بَلْ تَحْسُدُوْنَنَا﴾ ان نصيب معكم من الغنائم فقلتم ذلك ﴿بَلْ كَانُوْا لَا يَفْقَهُوْنَ﴾ من الدين ﴿اِلَّا قَلِيْلًا﴾ منهم ﴿قُلْ لِّلْمُخَلَّفِيْنَ مِنَ الْاَعْرَابِ﴾ المذكورين اختبارا ﴿سَتُدْعَوْنَ اِلٰى قَوْمٍ اُولِيْ﴾ اصحاب ﴿بَاْسٍ شَدِيْدٍ﴾ قيل هم بنو حنيفة اصحاب اليمامة وقيل فارس والروم ﴿تُقَاتِلُوْنَهُمْ﴾ حال مقدرة هي المدعو اليها في المعنى ﴿اَوْ﴾ هم ﴿يُسْلِمُوْنَ﴾ فلا تقاتلون ﴿فَاِنْ تُطِيْعُوْا﴾ الى قتالهم ﴿يُؤْتِكُمُ اللّٰهُ اَجْرًا حَسَنًا وَاِنْ تَتَوَلَّوْا كَمَا تَوَلَّيْتُمْ مِّنْ قَبْلُ يُعَذِّبْكُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا﴾ مؤلما ﴿لَيْسَ عَلَى الْاَعْمٰى حَرَجٌ وَّلَا عَلَى الْاَعْرَجِ حَرَجٌ وَّلَا عَلَى الْمَرِيْضِ حَرَجٌ﴾ في ترك الجهاد ﴿وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ يُدْخِلْهُ﴾ بالياء والنون ﴿جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ وَمَنْ يَّتَوَلَّ يُعَذِّبْهُ﴾ بالياء والنون ﴿عَذَابًا اَلِيْمًا﴾.

**ترجمه**: د مديني اطرافو كښې چې كوم كلي وال د حديبيه په سفر كښې د شركت نه روستو پاتې شوي وو يعنى هغه كلي وال كوم چې الله تعالى د رسول الله ﷺ د ملګرتيا نه روستو پاتې كړي وو، يعنى محروم كړئ وو، حالانكه د حديبيه په كال باندې حضور ﷺ دوى ته په خپل معيت كښې د مكې طرف ته وتلو د پاره د قريشو د تعارض په خيال باندې د تللو د پاره وئيلې وو، دوى به ډير زر اووايئ چې زمونږ مال او خاندان مونږ لره تاسو سره د وتلو نه مشغول كړي وو، نو تاسو زمونږ د پاره تاسو سره د نه وتلو په وجه د الله نه د معافئ دعا اوغواړئ، الله تعالى ددوى تكذيب كولو سره اوفرمائيل چې دوى د معافئ د غوښتلو د پاره اوس چې څه وائى او ددې نه مخكښې چې ئې كوم عذر بيان كړو دا خبره صرف په ژبه باندې ده، په زړه كښې نشته، لهذا دوى په خپل عذر بيانولو كښې دروغژن دى، تاسو ورته اووايئ چې ستاسو د پاره د الله د طرف نه د يو څيز هم اختيار څوك لرى؟، استفهام په معنى د نفى دې، يعنى هيڅ اختيار نه لرى، كه هغه تاسو ته د نقصان رسولو اراده اوكړى، (ضر) د ضاد په فتحې او ضمې سره، يا تاسو ته د نفع رسولو اراده اوكړى، بلكه څه چې تاسو خلق كوئ الله د هغې نه خبردار دې، يعنى هغه په دې صفت سره هميشه د پاره متصف دې، بلكه تاسو خو دا ګنړله چې رسول ﷺ او مومنان به خپل خاندان ته واپس چرته هم رانشى، (بل) په دواړه ځايونو كښې د يو غرض نه بل غرض ته د انتقال د پاره دې، او دا خبره ستاسو زړونو ته ښه هم لګيدله، چې ددې خلقو د قتل په ذريعه صفائى (خاتمه) اوكړې شى، چې دوى ته واپس راتلل نصيب نه شى، او تاسو دا او دغه شان نور ډير بد ګمانونه كړې وو، او تاسو خلق يئ هلاك كيدونكى، بُورًا د (بائر) جمع ده، يعنى ددې بدګمانى د وجې نه د الله په نيز هلاك

كيدونكي، او كوم كس چې په الله او رسول باندې ايمان رانوړي نو مونږ داسې كافرانو د پاره د دوزخ سخت اور تيار كړې دې، د اسمانونو او د زمكې د بادشاهئ مالک هم الله دې، هغه چې چاته اوغوارې نو معاف ئې كړي او چاته چې اوغواړي نو سزا وركړي، چې كله تاسو د مال غنيمت اخستلو د پاره او هغه د خيبر مال غنيمت دې لاړ شئ نو دا روستو پاتې كړې شوي خلق به دير زر اووايئ چې مونږ ته د ځان سره د تلو اجازت راكړئ، چې مونږ هم د مال غنيمت نه څه حاصل كړو، دوى غواړي چې په دې طريقې سره د الله او د هغه د رسول حكم بدل كړي، او په يو قرات كښې كلم الله دې، د لام په كسرې سره، يعنى په مخصوص توګه باندې د اهل حديبيه د پاره د مال غنيمت وعدو لره بدل كړي، تاسو ورته اووايئ چې الله تعالى زمونږ د حديبيه نه د واپس كيدو نه مخكښې فرمائيلې دى چې تاسو مونږ سره چرې هم تلې نشئ، نو دير زر به دوى په جواب كښې دوى اووائى چې دا خبره نه ده، بلكه تاسو مونږ سره په دې خبرې سره حسد كوئ، چې تاسو سره مونږ ته هم مال غنيمت ملاوشى، څكه تاسو دا خبره كوئ (حالانكه دا خبره نه ده) اصل خبره دا ده چې په دې خلقو كښې د دين خبرې لره دير كم خلق پيژني، تاسو دې روستو پاتې كړې شوو باندې چيانو ته اووائى چې د امتحان په توګه به دير زر تاسو د يو سخت جهګړمار قوم سره د مقابلې د پاره رابللې شئ، وئيلې شوې دى چې هغه د يمامه اوسيدونكى بنوحنفيه دى، او وئيلې شوى دى چې اهل فارس او روم دى، په داسې حال چې تاسو به هغوى سره جنګ كوئ، دا حال مقدره دې، او حالت قتال په حقيقت كښې مدعو اليها دې، يا هغوى مسلمانان شى، نوبيا به تاسو هغوى سره قتال نه كوئ، نو كه تاسو هغوى سره په قتال كولو كښې اطاعت اوكړو نو الله به تاسو ته دير بهتر اجر دركړي، او كه تاسو مخ واړولو څنګه چې مخكښې تاسو مخ اړولې وو، نو هغه به تاسو ته دردناک عذاب دركړي، نه په ړوند باندې څه ګناه شته او نه په ګوډ باندې څه ګناه شته، او نه په مريض باندې څه ګناه شته، د جهاد په نه كولو كښې او څوک چې د الله او د هغه د رسول اطاعت اوكړي، نو هغه به الله تعالى داسې جنت ته داخل كړي چې په هغې كښې به نهرونه بهيږي، په (يدخله) كښې ياء او نون دواړه قراتونه دى، او څوک چې مخ واړوي نو هغه ته به دردناک عذاب وركړي، (يعذبه) په ياء او نون سره دې.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** حول المدينة: دا د الأعراب صفت دې، **الملفين حول المدينة** حال هم كيدې شى تقديرى عبارت به دا وى، **كائنين حول المدينة**.

**قوله:** اذا رجعت: دا د سيقولون ظرف دې، **أى سيقولون إذا رجعت من الحديبية**.

**قوله:** بل في الموضعين للانتقال: الخ (بل) په دواړو ځايونو كښې د يو مضمون نه بل مضمون طرف ته د انتقال د پاره دې، (بل) اول نه وراندې د مُخلَّفُون په اعتذار كښې د

تکذیب بیان دي، اود بل نه پس په عذرونو او په تخلف باندې د سزا (وعید) بیان دي. د دویم بل نه پس د هغه سبب بیان دې، څه چې دوی په تخلف او عذرونو پیش کولو باندې آماده کړل، او دا ترقی فی الرد په توګه باندې ده.

**قوله** لن تتبعونا: داجمله د نهی په معنی کښې ده، ای لاتتبعونا

**قوله** کذلك قال الله: ای حکم الله یعنی الله تعالی د حدیبیه نه واپس کیدو نه مخکښې حکم اوکړو چې په غزوه خیبر کښې به هغه خلق شریک وی کوم چې د حدیبیه په سفر کښې شریک شوې دی، او هم هغوی د خیبر د مال غنیمت مستحق دی.

**قوله** فسیقولون بل تحسدوننا: یعنی زمونږ د خیبر په مال غنیمت کښې د نه شریک کیدو حکم، د الله حکم نه دې بلکه دا ستاسو د حسد نتیجه ده.

**[ایاتونه: ۱۸ - ۲٦]**

﴿لَقَدْ رَضِيَ اللّٰهُ عَنِ الْمُؤْمِنِيْنَ إِذْ يُبَايِعُوْنَكَ﴾ بِالْحُدَيْبِيَةِ ﴿تَحْتَ الشَّجَرَةِ﴾ هِيَ سَمُرَةٌ وَهُمْ أَلْفٌ وَثَلَاثُمِائَةٍ أَوْ أَكْثَر ثُمَّ بَايَعَهُمْ عَلَى أَنْ يُنَاجِزُوا قُرَيْشًا وَأَنْ لَا يَفِرُّوا مِنَ الْمَوْتِ ﴿فَعَلِمَ﴾ اللّٰهُ ﴿مَا فِيْ قُلُوْبِهِمْ﴾ مِنَ الصِّدْقِ وَالْوَفَاءِ ﴿فَأَنْزَلَ السَّكِيْنَةَ عَلَيْهِمْ وَأَثَابَهُمْ فَتْحًا قَرِيْبًا﴾ هُوَ فَتْحُ خَيْبَرَ بَعْدَ انْصِرَافِهِمْ مِنَ الْحُدَيْبِيَةِ ﴿وَمَغَانِمَ كَثِيْرَةً يَأْخُذُوْنَهَا﴾ مِنْ خَيْبَرَ ﴿وَكَانَ اللّٰهُ عَزِيْزًا حَكِيْمًا﴾ أَيْ لَمْ يَزَلْ مُتَّصِفًا بِذٰلِكَ ﴿وَعَدَكُمُ اللّٰهُ مَغَانِمَ كَثِيْرَةً تَأْخُذُوْنَهَا﴾ مِنَ الْفُتُوْحَاتِ ﴿فَعَجَّلَ لَكُمْ هٰذِهٖ﴾ غَنِيْمَةَ خَيْبَرَ ﴿وَكَفَّ أَيْدِيَ النَّاسِ عَنْكُمْ﴾ فِيْ عِيَالِكُمْ لَمَّا خَرَجْتُمْ وَهَمَّتْ بِهِمُ الْيَهُوْدُ فَقَذَفَ اللّٰهُ فِيْ قُلُوْبِهِمُ الرُّعْبَ ﴿وَلِتَكُوْنَ﴾ أَيِ الْمُعَجَّلَةُ عَطْفٌ عَلَى مُقَدَّرٍ أَيْ لِتَشْكُرُوْهُ ﴿اٰيَةً لِّلْمُؤْمِنِيْنَ﴾ فِيْ نَصْرِهِمْ ﴿وَيَهْدِيَكُمْ صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا﴾ أَيْ طَرِيْقَ التَّوَكُّلِ عَلَيْهِ وَتَفْوِيْضِ الْأَمْرِ إِلَيْهِ تَعَالَى ﴿وَأُخْرٰى﴾ صِفَةُ مَغَانِمَ مُقَدَّرًا مبتدأ ﴿لَمْ تَقْدِرُوْا عَلَيْهَا﴾ هِيَ مِنْ فَارِسَ وَالرُّوْمِ ﴿قَدْ أَحَاطَ اللّٰهُ بِهَا﴾ عَلِمَ أَنَّهَا سَتَكُوْنُ لَكُمْ ﴿وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرًا﴾ أَيْ لَمْ يَزَلْ مُتَّصِفًا بِذٰلِكَ ﴿وَلَوْ قَاتَلَكُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا﴾ بِالْحُدَيْبِيَةِ ﴿لَوَلَّوُا الْأَدْبَارَ ثُمَّ لَا يَجِدُوْنَ وَلِيًّا﴾ يَحْرُسُهُمْ ﴿وَلَا نَصِيْرًا﴾ ﴿سُنَّةَ اللّٰهِ﴾ مَصْدَرٌ مُؤَكِّدٌ لِمَضْمُوْنِ الْجُمْلَةِ قَبْلَهُ مِنْ هَزِيْمَةِ الْكَافِرِيْنَ وَنَصْرِ الْمُؤْمِنِيْنَ أَيْ سَنَّ اللّٰهُ ذٰلِكَ سُنَّةً ﴿الَّتِيْ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلُ وَلَنْ تَجِدَ لِسُنَّةِ اللّٰهِ تَبْدِيْلًا﴾ مِنْهُ ﴿وَهُوَ الَّذِيْ كَفَّ أَيْدِيَهُمْ عَنْكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ عَنْهُمْ بِبَطْنِ مَكَّةَ﴾ بِالْحُدَيْبِيَةِ ﴿مِنْ بَعْدِ أَنْ أَظْفَرَكُمْ عَلَيْهِمْ﴾ فَإِنَّ ثَمَانِيْنَ مِنْهُمْ طَافُوْا بِعَسْكَرِكُمْ لِيُصِيْبُوْا مِنْكُمْ فَأُخِذُوْا وَأُتِيَ بِهِمْ إِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَفَا عَنْهُمْ وَخَلّٰى سَبِيْلَهُمْ فَكَانَ ذٰلِكَ سَبَبَ الصُّلْحِ ﴿وَكَانَ اللّٰهُ بِمَا يَعْمَلُوْنَ بَصِيْرًا﴾ بِالْيَاءِ وَالتَّاءِ أَيْ لَمْ يَزَلْ مُتَّصِفًا بِذٰلِكَ ﴿هُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾ أَيْ عَنِ الْوُصُوْلِ إِلَيْهِ ﴿وَالْهَدْيَ﴾ مَعْطُوْفٌ عَلٰى كُمْ ﴿مَعْكُوْفًا﴾ مَحْبُوْسًا حَالٌ ﴿أَنْ يَّبْلُغَ مَحِلَّهٗ﴾ أَيْ مَكَانَهُ الَّذِيْ يُنْحَرُ فِيْهِ عَادَةً وَهُوَ الْحَرَمُ بَدَلُ اشْتِمَالٍ ﴿وَلَوْلَا رِجَالٌ مُّؤْمِنُوْنَ وَنِسَاءٌ مُّؤْمِنَاتٌ﴾ مَوْجُوْدُوْنَ بِمَكَّةَ مَعَ الْكُفَّارِ ﴿لَّمْ تَعْلَمُوْهُمْ﴾ بِصِفَةِ الْإِيْمَانِ ﴿أَنْ تَطَئُوْهُمْ﴾ أَيْ تَقْتُلُوْهُمْ مَعَ الْكُفَّارِ لَوْ أُذِنَ لَكُمْ فِي الْفَتْحِ بَدَلُ اشْتِمَالٍ مِنْ هُمْ ﴿فَتُصِيْبَكُمْ مِّنْهُمْ مَّعَرَّةٌ﴾ أَيْ

إثم ﴿بِغَيْرِ عِلْمٍ﴾ مِنكُمْ بِهِ وَضَمَائِر الغَيبة لِلصِّنفَين بِتَغلِيبِ الذُّكور وَجَوَاب لَوْلَا مَحذُوف أَي لَأَذِنَ لَكُم فِي الفَتح لَكِن لَمْ يُؤذَن فِيهِ حِينَئِذٍ ﴿لِيُدْخِلَ اللّٰهُ فِي رَحْمَتِهِ مَنْ يَشَاءُ﴾ كَالمُؤمِنِينَ المَذكُورِينَ ﴿لَوْ تَزَيَّلُوا﴾ تَمَيَّزُوا عَن الكُفَّار ﴿لَعَذَّبْنَا الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْهُمْ﴾ مِنْ أَهل مَكَّة حِينَئِذٍ بِأَنْ نَأذَن لَكُمْ فِي فَتحِهَا ﴿عَذَابًا أَلِيمًا﴾ مُؤلِمًا ﴿إِذْ جَعَلَ﴾ مُتَعَلِّق بِعَذَّبْنَا ﴿الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ فَاعِل ﴿فِي قُلُوبِهِمُ الْحَمِيَّةَ﴾ الأَنَفَة مِنَ الشَّيْء ﴿حَمِيَّةَ الْجَاهِلِيَّةِ﴾ بَدَل مِنَ الحَمِيَّة وَهِيَ صَدّهمْ النَّبِيّ وَأَصْحَابه عَنِ المَسْجِد الحَرَام ﴿فَأَنْزَلَ اللّٰهُ سَكِينَتَهُ عَلَىٰ رَسُولِهِ وَعَلَى الْمُؤْمِنِينَ﴾ فَصَالَحُوهُمْ عَلَى أَنْ يَعُودُوا مِنْ قَابِل وَلَمْ يَلْحَقهُمْ مِنَ الحَمِيَّة مَا لَحِقَ الكُفَّار حَتّٰى يُقَاتِلُوهُمْ ﴿وَأَلْزَمَهُمْ﴾ أَي المُؤمِنِينَ ﴿كَلِمَةَ التَّقْوَىٰ﴾ لَا إِلٰه إِلَّا اللّٰه مُحَمَّد رَسُول اللّٰه وَأُضِيفَتْ إِلَى التَّقْوَى لِأَنَّهَا سَبَبهَا ﴿وَكَانُوا أَحَقَّ بِهَا﴾ بِالكَلِمَةِ مِنَ الكُفَّار ﴿وَأَهْلَهَا﴾ عَطف تَفسِيرِيّ ﴿وَكَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا﴾ أَي لَمْ يَزَلْ مُتَّصِفًا بِذٰلِكَ وَمِنْ مَعلُومه تَعَالَى أَنَّهُمْ أَهلهَا

---

**ترجمه:** یقینا الله تعالی د مومنانو نه راضی شو کله چې هغوی په حدیبیه کښې د اونې د لاندې حضور ﷺ سره بیعت اوکړو، او هغه د ببول اونه ده، او اصحاب حدیبیه زر او درې سوه یا ددې نه لږ زیات وو، بیا دې حضراتو په دې باندې بیعت اوکړو چې دوی به د قریشو مقابله کوی، او دا چې د مرګ نه به نه تختي، الله ته ددوی د زړونو د وفا او د صدق حال معلوم وو، ځکه ئې په دوی باندې سکینت نازل کړو، او دوی ته ئې نزدې فتح ورکړه، او هغه د فتح حدیبیه نه واپسئ کښې د خیبر فتح وه، او ډیر غنیمتونه کوم چې به هغوی د خیبر نه حاصل کړی، او الله تعالی غالب حکمت والا دې، یعنی هغه په دې صفت سره د همیشه د پاره متصف دې، الله تعالی تاسو سره د ډیرو غنیمتونو وعده فرمائیلې ده، کوم چې به تاسو د فتوحاتو په ذریعه حاصلوئ، دا یعنی د خیبر غنیمت ئې خو تاسو ته زر درکړو او د خلقو لاسونه ئې ستاسو د اهل و عیال په باره کښې بند کړل، چې کله تاسو د حدیبیه نه اوتلئ او یهودص ستاسو د اهل و عیال قصد اوکړو، نو الله د هغوی په زړونو کښې رعب واچولو، او چې فوری توګه باندې تاسو ته درکړې شوې، دا غنیمت د نورو وعدو د پاره د مومنانو په نصرت باندې د مومنانو د پاره نښه ده، **لِتَكُونَ** ددې عطف لِتَشکُرُوه مقدر باندې دې، او چې هغه تاسو په نیغه لاره باندې واچوی، او هغه نیغه لاره په هغه باندې بهروسه کول او معامله هغه ته سپارل دی، او هغه تاسو ته نور غنیمتونه هم درکړی، **أخرى** د مغانم مقدر مبتدأ صفت دې، چې په هغې باندې تاسو لا قبضه نه ده کړې، او هغه د فارس او د روم نه حاصل شوي غنیمتونه دی، او هغه د الله په قابو کښې دی، یعنی الله تعالی ددې خبرې نه ښه خبردار دې چې هغه ډیر زر تاسو ته ملاویدونکی دی، او الله تعالی په هر څیز باندې قادر دې، یعنی هغه په دې صفت سره همیشه متصف دې، او حدیبیه کښې که کافرو تاسو سره جنګ کړې وو نو یقینا هغوی به په شاه تختیدلې، بیا به نه هغوی کارساز موندلو چې

حفاظت ئې کړې وو، او نه مدد ګار، د الله هغه دستور مطابق کوم چې مخکښې نه راروان دې، سنة مصدر دې، چې د مخکښې جملې د مضمون تاکید کوي، او هغه مضمون د کافرانو شکست او د مومنانو مدد کول دي، يعنې الله تعالى دا دستور جوړ کړې دې، او ته به د الله دستور ددې نه چرته بدليدونکې اونه وينې، او هم هغه ذات دې چې هغه ددوی لاسونو لره ستاسو نه او ستاسو لاسونه د دووی نه په عين مکه کښې په حديبيه کښې بند کړل، پس ددې نه چې هغه تاسو ته په دوی باندې غلبه درکړه، په داسې توګه چې په دوی کښې اتيا کسانو ستاسو د لښکر ګهيره اوکړه چې په تاسو باندې حمله اوکړي، خو هغوی ګرفتار شول، او هغوی د حضور ﷺ په خدمت کښې پيش کړې شول، نو حضور ﷺ هغوی معاف کړل، او هغوی ئې خلاص کړل، او هم دا خبره د صلح وجه جوړه شوه، او تاسو چې څه کوئ الله هغې لره ګوري، په تعملون کښې ياء او تاء دواړه دي، يعنې هغه په دې صفت سره هميشه د پاره متصف دې، دا هغه خلق دي چا چې کفر اوکړو او تاسو ئې د محترم ښار نه يعنې هلته د رسيدو نه منع کړئ، او د قربانئ څناور ئې هم هلته د رسيدو نه مخکښې بند کړل، حال دا چې هغه د قربانئ د پاره وقف وو، يعنې ځائ ته د رسيدو ئې نه منع کړل، کوم ځاې چې عام توګه باندې قرباني کيږي، او هغه حرم دې، ان يبلغ الهدى، نه بدل الاشتمال دې، او که ډير مسلمانان سړي او مسلمانانې ښځې کافرانو سره يو ځائې پ همکه کښې موجود نه وو چې د هغوی د صفتِ ايمان نه ستاسو بې خبر کيدو د وجه نه ستاسو هغوی نه دل دول کولو احتمال نه وی، دا چې تاسو هغوی کافرانو سره قتل کړئ، که تاسو ته د فتح اجازت درکړې شوې وو أن تطوهم د تعلموهم د ضمير نه حال دې، چې د هغې د وجه نه به تاسو ته هم د بې خبرئ د وجه نه ضرر (پيښمانتيا) درسيدو، د غائب ضميرونه دواړه د صفت د پاره دي، (مذکر او مؤنث د پاره) مذکر ته غلبه ورکولو سره، او د لولا جواب محذوف دې، او هغه لأذن لكم في الفتح دې، خو دې وخت کښې د فتح اجازت ورنکړې شو، چې الله د ذکر شوی مومنانو په شان چالره چې اوغواړي په خپل رحمت کښې داخل کړي، او که دا مومنان د کفارو نه جدا وې، نو مونږ به هغه وخت د مکې کافرانو ته دردناک عذاب ورکړې وو، په داسې توګه چې مونږ به تاسو ته د مکې د فتحه کولو اجازت درکړې وو، او دې کافرانو په خپلو زړونو کښې حميت يعنې بغض ته ځائې ورکړو او بغض هم د جاهليت إذ جعلنا د عذبنا سره متعلق دې، الذين كفروا د جعل فاعل دې، حميت د تکبر د وجې نه سخت والى ته وائي، الجاهلية د حمية نه بدل دې، او نبي عليه السلام لره او د هغوی صحابه کرامو لره مسجدحرام ته د رسيدو نه منع کوي، نو الله تعالى په خپل رسول او مومنانو باندې سکينت نازل کړو، چې د هغې د وجې نه دې خلقو په دې خبره باندې صلح اوکړه چې راروان کال به راځي، او کوم حميت چې کافرانو ته لاحق

شوي وو هغه صحابو ﷺ ته نه وو لاحق شوي، ترديه چې هغوى سره قتال کړې وي، او الله تعالى مومنانو لره د تقوى په خبره باندې کلک اوساتل، او هغه کلمه د لا إله إلا الله محمد رسول الله ده، او د تقوى اضافت د کلمې طرف ته څکه دې چې دا کلمه د تقوى سبب دې، او هغوى د دې کلمې د کافرانو نه زيات حقدار او اهل وو، دا عطف تفسيرى دې، او الله تعالى ته د هر څيز ښه پته ده، يعنى هميشه په دې صفت سره متصف دې، او د الله تعالى په معلوماتو کښې دا هم ده چې دا مومنان ددې کلمې زيات حقدار دى.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله**: إِذْ يُبَايِعُونَكَ: د رضى د وجې نه محلا منصوب دې، څکه چې (اذ) د زمانهٔ ماضى د پاره ظرف دې، ددې نه پس هميشه جمله واقع کيږى، د حکايتِ حالِ ماضى په توګه باندې (د مبايعت صورت د د استحضار د پاره د مضارع صيغه ئې استعمال کړه، او تحت د يبايعونک ظرف دې.

**قوله**: سمرة: بروزن رجل د ببول اونه، بعضې حضراتو وئيلي دى چې د جهاؤ اونه ده، لن لا يفروا على الموت په بعضې نسخو کښې من الموت دې، مطلب ښکاره دې چې د مرګ نه به تختيدلي نشى، مفسر علام د (من) په ځائې (على) راوړلو سره اشاره اوکړه چې يو روايت کښې دا هم ده چې بيعت په مرګ (شهادت) باندې شوې وو، او په دويم روايت کښې دى چې بيعت په ثابت قدمئ او په نه تختيدو باندې شوې وو.

**قوله**: فعلم: د علم عطف په اذ يبايعونك باندې دې، اوس پاتې شو دا سوال چې معطوف ماضى دې او معطوف عليه مضارع؟

نو ددې جواب دا دې چې إذ يبايعونك هم د ماضى په معنى کښې دې، څنګه چې بره بيان کړې شوې دى.

**قوله**: فَأَنزَلَ: ددې عطف په رضى باندې دې.

**قوله**: وَمَغَانِمَ كَثِيرَةً: ددې عطف په فتحا قريبا باندې دې.

**قوله**: وعدكم الله: چونکه دا ځائې د احسان کولو دې لهذا د خطاب شرافت ورکولو د پاره د غيبت نه ئې خطاب طرف ته التفات اوکړو، دا اهل حديبيه ته خطاب دې.

**قوله**: مِنَ الْفُتُوحَاتِ: مفسر علام من الفتوحات وئيلو سره دې خبرې ته اشاره اوکړه چې دا عطف د مغايرت د پاره دې، مطلب دا دې چې اول مَغَانِمَ كَثِيرَة نه، کوم چې معطوف عليه دې، غنائم د خيبر مراد دى، او د ثانى مغانم كثيرة نه کوم چې معطوف دې، د خيبر نه علاوه مغانم مراد دى.

**قوله**: غنیمة خیبر: که ددې آیت نزول د فتح خیبر نه پس وی، ځنګه چې ښکاره ده نو د پوره سورت نازلیدل به د حدیبیه نه د واپسۍ په وخت نه وی، او که نزول د فتح خیبر نه مخکښې وی نو دا به د غیبو خبرونو نه وی، او د ماضی سره تعبیر د تحقق وقوع د وجې به وی، او دا خبره مخکښې تیره شوې ده، چې ټول سورت د حدیبیه نه د واپسۍ په وخت د عسفان علاقې ته نزدې کراع الغمیم کښې نازل شوې وو.

**قوله**: فی عیالکم أي عن عیالکم: فی عیالکم، د عنکم نه بدل دې، په دې کښې مضاف محذوف طرف ته اشاره ده.

**قوله**: أخری صفة مغانم مقدراً: أخری د مغانم محذوف صفت دې، موصوف او صفت مبتدأ، او لم تقدروا علیها د دې صفت دې، قد أحاط الله بها د مبتدأ خبر دې، د مذکوره ترکیب نه علاوه څلور ترکیبونه نور دی، د اوږد والی د ویرې نه م پریخودل، (جمل طرف ته رجوع اوکړئ)

**قوله**: أظفر علیهم: د اظفر صله (علی) مستعمل نه ده، خو چونکه أظفر د أظهر په معنی کښې دې، ځکه ددې صله (علی) صحیح ده، مفسر علام په خپل قول فإن ثمانین الخ، نه أظفر بمعنی أظهر طرف ته اشاره کړې ده،

**قوله**: معرة: په معنی د مکروه، ګناه، پیښمانه کیدل،

**قوله**: جواب لولا محذوف: د لولا جواب محذوف دې، او هغه لأذن لکم فی الفتح دی، ځنګه چې مفسر علام ظاهره کړې ده.

**قوله**: فأنزل الله سکینته: ددې عطف په مقدر باندې دې، تقدیری عبارت دا دې أی فضاقت صدور المسلمین واشتد الکرب علیهم فأنزل الله سکینته.

**قوله**: لأنها سببها: په دې کښې د مضاف حذف طرف ته اشاره کړې شوې ده، کلمة التقوی أی سبب التقوی، اضافت ادنی مناسبت د وجې نه دې، او بعضې حضراتو د تقوی نه مخکښې (اهل) محذوف منلې دې، أی کلمة أهل التقوی یعنی الله تعالی د اهل بدر د پاره د متقی خلقو کلمه خوښه کړه،

**قوله**: أهلها: أحق بها عطف تفسیری دې.

**[آیاتو له: ۲۷ - ۲۹]**

(لَقَدْ صَدَقَ اللّٰهُ رَسُوْلَهُ الرُّؤْيَا بِالْحَقِّ) رَأٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي النَّوْمِ عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ قَبْلَ خُرُوْجِهٖ أَنَّهُ يَدْخُلُ مَكَّةَ هُوَ وَأَصْحَابُهٗ آمِنِيْنَ وَيَحْلِقُوْنَ وَيُقَصِّرُوْنَ فَأَخْبَرَ بِذٰلِكَ أَصْحَابَهٗ فَفَرِحُوْا فَلَمَّا خَرَجُوْا

مَعَهُ وَصَدُّهُمْ الْكُفَّار بِالْحُدَيْبِيَةِ وَرَجَعُوا وَشَقَّ عَلَيْهِمْ ذٰلِكَ وَرَابَ بَعْض الْمُنَافِقِينَ نَزَلَتْ وَقَوْله بِالْحَقِّ مُتَعَلِّق بِصَدَقَ او حال من الرؤيا وما بعدها تفسيرها ﴿لَتَدْخُلُنَّ الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ﴾ لِلتَّبَرُّكِ ﴿آمِنِينَ مُحَلِّقِينَ رُءُوسَكُمْ﴾ أَيْ جَمِيع شُعُورهَا ﴿وَمُقَصِّرِينَ﴾ بَعْض شُعُورهَا وَهُمَا حَالَانِ مُقَدَّرَتَانِ ﴿لَا تَخَافُونَ﴾ ابدا ﴿فَعَلِمَ﴾ في الصلح ﴿مَا لَا تَعْلَمُوا﴾ مِنَ الصَّلَاحِ ﴿فَجَعَلَ مِنْ دُونِ ذٰلِكَ﴾ أَيْ الدُّخُول ﴿فَتْحًا قَرِيبًا﴾ هُوَ فَتْح خَيْبَر وَتَحَقَّقَتْ الرُّؤْيَا فِي الْعَامِ الْقَابِل ﴿هُوَ الَّذِي أَرْسَلَ رَسُولَهُ بِالْهُدَىٰ وَدِينِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهُ﴾ أَيْ دِين الْحَقّ ﴿عَلَى الدِّينِ كُلِّهِ﴾ عَلَى جَمِيع بَاقِي الْأَدْيَان ﴿وَكَفَىٰ بِاللّٰهِ شَهِيدًا﴾ أَنَّك مُرْسَل بِمَا ذُكِرَ كَمَا قَالَ اللّٰه تعالى ﴿مُحَمَّدٌ﴾ مبتدا ﴿رَسُولُ اللّٰهِ﴾ خَبَره ﴿وَالَّذِينَ مَعَهُ﴾ أَيْ أَصْحَابه مِنَ الْمُؤْمِنِينَ مبتدا خَبَره ﴿أَشِدَّاءُ﴾ غِلَاظ ﴿عَلَى الْكُفَّارِ﴾ لَا يَرْحَمُونَهُمْ ﴿رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ﴾ خَبَر ثَانٍ أَيْ مُتَعَاطِفُونَ مُتَوَادُّونَ كَالْوَالِدِ مَعَ الْوَلَد ﴿تَرَاهُمْ﴾ تُبْصِرهُمْ ﴿رُكَّعًا سُجَّدًا﴾ حَالَانِ ﴿يَبْتَغُونَ﴾ مُسْتَأْنَف يَطْلُبُونَ ﴿فَضْلًا مِنَ اللّٰهِ وَرِضْوَانًا سِيمَاهُمْ﴾ عَلَامَتهمْ مبتدا ﴿فِي وُجُوهِهِمْ﴾ خَبَره وَهُوَ نُور وَبَيَاض يُعْرَفُونَ بِهِ فِي الْآخِرَة أَنَّهُمْ سَجَدُوا فِي الدُّنْيَا ﴿مِنْ أَثَرِ السُّجُودِ﴾ مُتَعَلِّق بِمَا تَعَلَّقَ بِهِ الْخَبَر أَيْ كَائِنَة وَأُعْرِبَ حَالًا مِنْ ضَمِيره الْمُنْتَقِل إِلَى الْخَبَر ﴿ذٰلِكَ﴾ الْوَصْف الْمَذْكُور ﴿مَثَلُهُمْ﴾ صِفَتهمْ مبتدا ﴿فِي التَّوْرَاةِ﴾ خَبَره ﴿وَمَثَلُهُمْ فِي الْإِنْجِيلِ﴾ مبتدا خَبَره ﴿كَزَرْعٍ أَخْرَجَ شَطْأَهُ﴾ بِسُكُونِ الطَّاء وَفَتْحهَا فِرَاخه ﴿فَآزَرَهُ﴾ بِالْمَدِّ وَالْقَصْر قَوَّاهُ وَأَعَانَهُ ﴿فَاسْتَغْلَظَ﴾ غَلُظَ ﴿فَاسْتَوَىٰ﴾ قَوِيَ وَاسْتَقَامَ ﴿عَلَىٰ سُوقِهِ﴾ أُصُوله جَمْع سَاق ﴿يُعْجِبُ الزُّرَّاعَ﴾ أَيْ زُرَّاعه لِحُسْنِهِ مِثْل الصَّحَابَة رَضِيَ اللّٰه عنهم بذلك لانهم بدأوا في قِلَّة وَضَعْف فَكَثُرُوا وَقَوُوا عَلَى أَحْسَن الْوُجُوه ﴿لِيَغِيظَ بِهِمُ الْكُفَّارَ﴾ مُتَعَلِّق بِمَحْذُوفٍ دَلَّ عَلَيْهِ مَا قَبْله أَيْ شُبِّهُوا بِذٰلِكَ ﴿وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ مِنْهُمْ﴾ الصَّحَابَة وَمِنْ لِبَيَانِ الْجِنْس لَا لِلتَّبْعِيضِ لِأَنَّهُمْ كُلّهمْ بِالصِّفَةِ الْمَذْكُورَة ﴿مَغْفِرَةً وَأَجْرًا عَظِيمًا﴾ الْجَنَّة وَهُمَا لِمَنْ بَعْدهمْ أَيْضًا فِي آيَات

**ترجمه**: بې شکه الله تعالى خپل رسول ته رښتونې خواب اوخودلو، کوم چې د واقعې مطابق دې، يعنى حضور ﷺ ته ئ د حديبيه په کال د حديبيه طرف د وتلو نه مخکښې په خوب کښې خودلې شوې وو، چې دوی په خپله او ددوی ﷺ صحابه کرام په امن او امان سره مکې ته داخليږى او حلق کوی، او قصر کوی، حضور ﷺ د خوب خبر صحابه کرامو ته ورکړو، نو د حضور ﷺ اصحاب ډير خوشحاله شول، نو چې کله ددوی د اصحاب دوی ﷺ سره اووتل او کافرانو دوی په حديبيه کښې منع کړل، او واپس شول، او دا واپسی په دوی باندې گرانه پريوتله، او بعضې منافقانو شک اوکړو نو دا ايت نازل شو، بالحق د صدق سره متعلق دې، يا د رؤيا نه حال دې، او د رؤيا مابعد ددې رؤيا تفسير دې، تاسو خلق به په مسجد حرام کښې ان شا مالله انشاء الله د برکت د پاره دې په امن او امان سره داخليږئ، تاسو باندې به يو وخت هم ويره نه وى، الله تعالى ته چې په صلح کښې د کوم خير علم دې، د هغې تاسو ته پته نشته، ددې د داخليدو نه مخکښې مو يو نژدې فتح درکړه، او هغه فتح د

خبر ده، او د خوب تعبیر په راروان کال پوره شو، هغه داسې ذات دې چې خپل رسول ئې په هدایت سره او په حق دین سره رااولیږلو، چې دې دین حق لره په ټولو باقي دینونو باندې غالب کړي، او الله ګواه کافي دې، چې تاسو مذکوره څیزونه درکولو سره اولیږلې شوئ. الله تعالی اوفرمائیل محمد ﷺ د الله رسول دې، محمد ﷺ مبتدأ ده، او رسول الله ددې خبر دې، او کوم خلق چې د حضور ﷺ سره دی، یعنی د هغوی ملګری مومنان (والذین معه) مبتدأ دې، أشداء ددې خبر دې، په کافرانو باندې سخت دی چې په هغوی باندې رحم نه کوي، او په خپل مینځ کښې رحم زړه والا دی، (رحماء بینهم) خبر ثاني دې، یعنی په خپل مینځ کښې مهرباني او محبت ساتي، څنګه چې د پلار د خوی سره سلوک وی، ته به دوی رکوع او سجده کونکې ګورې، (رکعاً او سجداً) دواړه حال دی، د الله فضل او د ضامندئ په طلب کښې دی، جمله مستانفه ده، او یبتغون دیطلبون په معنی کښې دې، ددوی نښه یعنی ددوی علامت ددوی په مخونو باندې د سجدو د اثر نه دې، سیماهم مبتدأ ده، (فی وجوههم) ددې خبر دې، او یو نور دې هغه یو سپینوالې دې، چې د هغې په ذریعه به په آخرت کښې پیژندلې شی، چې دې خلقو په دنیا کښې سجده اوکړه، (من اثر السجود) هم د هغه څیز سره متعلق دې، د کوم سره چې خبر متعلق دې، او هغه کائنة دې، او دغه شان (من أثر السجود) د خبر د متعلق (کائنة) دهغه ضمیر نه حال ګرځولې شو دې، کوم چې د خبر طرف ته راجع دې، او هم دا یعنی مذکوره وصف په تورات کښې ددوی صفت دې ذلک مثلهم، مبتدأ خبر دې، اوپه انجیل کښې ددې مثال دهغه پټی پشان بیان کړې شوې دې، چه هغې غوټئ غوړګه راوبنکلی وی (مثلهم فی الانجیل) مبتدا دې. او کزرع أخرج الخ د دې خبر دې، او شطاء، د طاء په سکون او فتحې سره دې، ای فطاه أی فراخه، یعنی هغه خپل بچې راوخکلو، یعنی د شروع والا غوټئ مراد ده، بیا ئې هغه قوی کړو او د هغه مدد ئې اوکړو، (فآذره) مد او بغیر د مد نه دواړه طریقو سره دې، هغه ئې مضبوط کړو بیا ئې موټا کړو بیا به په خپله تنه باندې اودریدو، یعنی په خپله جرړه باندې، سوق د ساق جمع ده، زمیندارانو لره خوشحالوی، یعنی هغه زمیندارانو لره په خپل حسن سره، صحابه کرام ئې د پټی سره مشابه کړل، څکه چې ددوی ابتدا د لږوالی او د کمزورئ نه شوې وه، بیا هغوی ډیر شول او بهتر طریقه باندې طاقتور شول، چې کافران دوی ته اوپسځیږی، لیغیظ د محذوف سره متعلق دې، او په دې حذف باندې ددې ماقبل دلالت کوی، یعنی صحابه ئې د پټی سره مشابه کړل، ددوی په دوستانو کښې چې کومو خلقو ایمان راوړو، الله تعالی هغوی سره د اجر عظیم او د بخښنې وعده کړې ده، (منهم) د د بیانِ جنس د پاره دې، نه چې د تبعیض د پاره، څکه چې ټول صحابه کرام په مذکوره صفت سره متصف دی، او د اجر عظیم نه مراد جنت دې، او دواړه یعنی مغفرت او جنت ددوی نه پس راتلونکی خلقو دپاره هم په ایتونو کښې ذکر دی،

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: بالحق: دا د مصدر محذوف صفت دې، أى صدقاً ملتبساً بالحق.

**قوله**: لقد صدق الله: په لقد کښې لام د جوابِ قسم د تمهید په توګه باندې دې، قسم محذوف دې، او لَتَدْخُلُنَّ جواب قسم دې، چې په هغې باندې لام توطیه او تمهید دلالت کوي.

**قوله**: للتبرك: یعنی إن شاء الله د تبرک او تعلیم د پاره دې، نه چې د تعلیق د پاره.

**قوله**: للتبرک، ددې جملې مقصد د یو سوال جواب دې.

**سوال**: د ان شاء الله نه معلومیږی چې (مخبر) خبر ورکونکې د خبر په باره کښې په شک کښې دې، او دلته مخبر الله تعالی دې، او د الله د پاره شک ناممکن دې؟.

**جواب**: دلته ان شاء الله د تبرک او د تعلیم د پاره دی، نه چې د تعلیق د پاره، لهذا هیڅ اعتراض نشته،

**قوله**: آمنین: ومحلقین ومقصرین دا درې واړه د تدخلن د واؤ محذوف نه حال دی، په دې صورت کښې به دا حال مترادفه وی، یا محلقین ومقصرین دواړه د آمنین د ضمیر نه حال دی، په دې صورت کښې به حال متداخله وی.

**قوله**: حالان مقدران: دا د یو اعتراض جواب دې.

**اعتراض**: د حال او د ذوالحال زمانه یوه وی، حالانکه د دخول زمانه کومه چې د احرام دحالت زمانه ده هغه بیله او د مقصرین او محلقین زمانه یعنی دحلق او قصر زمانه بله ده؟

**جواب**: د جواب خلاصه دا د ه، چې دا دواړه حال مقدره دی، یعنی هغوی به داسې حالت کښې داخلیږی، چې د دوی د پاره حلق او قصر په مقدر کښې لیکلې شوې دې.

**قوله**: لا تخافون: جمله مستانفه هم کیدې شی، او حال هم کیدې شی، د تدخلن د ضمیر نه یا د آمنین د ضمیر نه، یا د محلقین د ضمیر نه، یا د مقصرین د ضمیر نه.

**قوله**: لا تخافون أبداً:

**سوال**: د أبداً د اضافې څه فائده ده؟

**جواب**: دجواب حاصل دادې چې دآمنین نه پس دلاتخافون اضافه کول تکرار معلومیږی، ځکه چې څوک په امن وی، هغه بې ویرې هم وی، ددې تکرار شبهې دفع کولو د پاره ئې د أبداً د قید اضافه اوکړه، ځکه چې د آمنین مطلب خو دا دې، چې د احرام په حالت کښې تاسو په امن کښې یئ، ځکه چې مشرکین مکه به محرم ته تعرض نه کولو، دغه شان حرم

ته داخليدونكي كس ته به يئ هم نه تعرض نه كولو، خو د احرام نه د وتلو نه پس او د حرم د وتلو نه پس څه گارنټي نه وه چې اوس به هم داخلق په امن وي، نو لاتخافون أبداً وئيلو سره اشاره يئ اوكړه، چې حالت احرام او غير حالت احرام، د حرم نه بهر يا دننه په هر صورت كښې به هميشه د پاره په امن او بې ويرې وي.

**قوله:** من دون ذلك: أي الدخول.

**قوله:** متعاطفون: متوادون دواړه اسم فاعل جمع مذكر غائب، د تعاطف او د توادد (تفاعل) نه ماخوذ دى، په خپل مينځ كښې مهرباني كول، محبت كول.

**قوله:** في وجوههم: دا د كائنة محذوف متعلق شو او د سيماهم مبتدأ خبر دې.

**قوله:** من أثر السجود: هم د كائنة محذوف سره متعلق دې، او په من أثر السجود كښې دا هم كيدې شي چې د كائنة د ضمير نه حال كيدو سره محلا منصوب وي.

**قوله:** ذلك: مبتدأ اول دې، او (مثلهم) مبتدأ ثاني ده، او (في التوراة) د مبتدأ ثاني خبر دې، مبتدأ او خبر جمله د مبتدأ اول خبر دې.

**قوله:** مثلهم في الانجيل: مبتدأ ده، كزرع أخرج شطأه ددې خبر دې.

**قوله:** شطأ: شطء، فراخ النبات ته وئيلې شي، يعنى د تخم نه اولنې غوټئ، چې هغې ته انكهوا يا سوئ (د بوټي اولنې تيغ) وئيلې شي، سترغكې ورته وئيلو. دا وجه معلوميږي چې دا سترغكې (تيغ) د د تخم د هغه ځائې نه راوخي كوم ځائې ته چې د تخم سترگه وائي، چې په اكثر تخمونو كښې كوم ډير نمايان او ښكاره وئ، مثلا د كهجورې هدوكې، يا د ناريل سترگه، عربئ كښې دې ته فراخ وائي، فراخ او فرخ په اصل كښې د مرغئ بچي ته وائي، ځنكه چې بچي ته د مرغئ نه پيدا كيدو د وجه بچي وئيلې شي دغه شان سترغكې د تخم نه د وتلو د وجه په منزله د فراخ كښې وي.

**قوله:** زراع: دا د زراع جمع ده كاشتكار ته وائي.

## [٤٩] سورة الحجرات

## سورة الحجرات مدنية، ثماني عشرة اية

## سورة الحجرات مدني دې، په دې كښې اتلس آياتونه دي

### [اياتونه: ١-١٠]

(يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُقَدِّمُوا) مِنْ قَدَّمَ بِمَعْنَى تَقَدَّمَ أَيْ لَا تَتَقَدَّمُوا بِقَوْلٍ وَلَا فِعْلٍ (بَيْنَ يَدَيِ اللَّهِ وَرَسُولِهِ) الْمُبَلِّغِ عَنْهُ أَيْ بِغَيْرِ إِذْنِهِمَا (وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ) لِقَوْلِكُمْ (عَلِيمٌ) بِفِعْلِكُمْ نَزَلَتْ فِي مُجَادَلَةِ أَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي تَأْمِيرِ الْأَقْرَعِ بْنِ حَابِسٍ أَوِ الْقَعْقَاعِ بْنِ مَعْبَدٍ وَنَزَلَ فِيمَنْ رَفَعَ صَوْتَهُ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَرْفَعُوا أَصْوَاتَكُمْ) إِذَا نَطَقْتُمْ

﴿فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ﴾ إذا نطق ﴿وَلَا تَجْهَرُوا لَهُ بِالْقَوْلِ﴾ إذا نَاجَيْتُمُوهُ ﴿كَجَهْرِ بَعْضِكُمْ لِبَعْضٍ﴾ بل دون ذلك إجلالا له ﴿أَنْ تَحْبَطَ أَعْمَالُكُمْ وَأَنْتُمْ لَا تَشْعُرُونَ﴾ أَيْ خَشْيَةَ ذَلِكَ بِالرَّفْعِ وَالْجَهْرِ الْمَذْكُورَيْنِ وَنَزَلَ فِيمَنْ كَانَ يَخْفِضُ صَوْتَهُ عِنْد النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَأَبِي بَكْر وَعُمَر وَغَيْرهمَا رَضِيَ الله عنهم ﴿إِنَّ الَّذِينَ يَغُضُّونَ أَصْوَاتَهُمْ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ أُولَئِكَ الَّذِينَ امْتَحَنَ﴾ اختبر ﴿اللَّهُ قُلُوبَهُمْ لِلتَّقْوَى﴾ أَيْ لِتَظْهَر مِنْهُمْ ﴿لَهُمْ مَغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ عَظِيمٌ﴾ الجنة ونزل في قوم جاءوا وَقْت الظَّهِيرَة وَالنَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي مَنْزِله فَنَادَوْهُ ﴿إِنَّ الَّذِينَ يُنَادُونَكَ مِنْ وَرَاءِ الْحُجُرَاتِ﴾ حُجُرَات نِسَائِهِ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَمْع حُجْرَة وَهِيَ مَا يُحْجَر عَلَيْهِ مِنْ الْأَرْض بِحَائِطٍ وَنَحْوه وَكَانَ كُلّ وَاحِد مِنْهُمْ نَادَى خَلْف حُجْرَة لِأَنَّهُمْ لَمْ يَعْلَمُوهُ فِي أَيّ حُجْرَة مُنَادَاة الْأَعْرَاب بِغِلْظَةٍ وَجَفَاء ﴿أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ﴾ فِيمَا فَعَلُوهُ مَحَلّك الرَّفِيع وَمَا يُنَاسِبهُ مِنَ التعظيم ﴿وَلَوْ أَنَّهُمْ صَبَرُوا﴾ أَنَّهُمْ فِي مَحَلّ رَفْع بِالِابْتِدَاءِ وَقِيلَ فَاعِل لِفِعْلٍ مُقَدَّر أَيْ ثَبَتَ ﴿حَتَّى تَخْرُجَ إِلَيْهِمْ لَكَانَ خَيْرًا لَهُمْ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ﴾ لِمَنْ تَابَ مِنْهُمْ وَنَزَلَ فِي الْوَلِيد بْن عُقْبَة وَقَدْ بَعَثَهُ النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى بَنِي الْمُصْطَلِق مُصَدِّقًا فَخَافَهُمْ لِتِرَةٍ كَانَتْ بَيْنه وَبَيْنهمْ فِي الْجَاهِلِيَّة فَرَجَعَ وَقَالَ إِنَّهُمْ مَنَعُوا الصَّدَقَة وَهَمُّوا بِقَتْلِهِ فَهَمَّ النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِغَزْوِهِمْ فجاءوا مُنْكِرِينَ مَا قَالَهُ عَنْهُمْ ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنْ جَاءَكُمْ فَاسِقٌ بِنَبَإٍ﴾ خَبَر ﴿فَتَبَيَّنُوا﴾ صِدْقه مِنْ كَذِبه وَفِي قِرَاءَة فَتَثَبَّتُوا مِنَ الثَّبَات ﴿أَنْ تُصِيبُوا قَوْمًا﴾ مَفْعُول لَهُ أَيْ خَشْيَة ذَلِكَ ﴿بِجَهَالَةٍ﴾ حَال مِنَ الْفَاعِل أَيْ جَاهِلِينَ ﴿فَتُصْبِحُوا﴾ تَصِيرُوا ﴿عَلَى مَا فَعَلْتُمْ﴾ مِنَ الْخَطَأ بِالْقَوْمِ ﴿نَادِمِينَ﴾ وَأَرْسَلَ صلى الله عليه وسلم إِلَيْهِمْ بَعْد عَوْدهمْ إِلَى بِلَادهمْ خَالِدًا فَلَمْ يَرَ فِيهِمْ إِلَّا الطَّاعَة وَالْخَيْر فَأَخْبَرَ النَّبِيّ بذلك ﴿وَاعْلَمُوا أَنَّ فِيكُمْ رَسُولَ اللَّهِ﴾ فَلَا تَقُولُوا الْبَاطِل فَإِنَّ اللَّه يُخْبِرهُ بِالْحَالِ ﴿لَوْ يُطِيعُكُمْ فِي كَثِيرٍ مِنَ الْأَمْرِ﴾ الَّذِي تُخْبِرُونَ بِهِ عَلَى خِلَاف الْوَاقِع فَيُرَتِّب عَلَى ذَلِكَ مُقْتَضَاهُ ﴿لَعَنِتُّمْ﴾ لَأَثِمْتُمْ دُونه إِثْم التَّسَبُّب إِلَى الْمُرَتَّب ﴿وَلَكِنَّ اللَّهَ حَبَّبَ إِلَيْكُمُ الْإِيمَانَ وَزَيَّنَهُ﴾ حَسَّنَهُ ﴿فِي قُلُوبِكُمْ وَكَرَّهَ إِلَيْكُمُ الْكُفْرَ وَالْفُسُوقَ وَالْعِصْيَانَ﴾ اسْتِدْرَاك مِنْ حَيْثُ الْمَعْنَى دُون اللَّفْظ لِأَنَّ مَنْ حُبِّبَ إِلَيْهِ الْإِيمَان إِلَخْ غَايَرَتْ صِفَته صِفَة مَنْ تَقَدَّمَ ذِكْره ﴿أُولَئِكَ هُمُ﴾ فِيهِ الْتِفَات عَنِ الْخِطَاب ﴿الرَّاشِدُونَ﴾ الثَّابِتُونَ عَلَى دِينهمْ ﴿فَضْلًا مِنَ اللَّهِ﴾ مَصْدَر مَنْصُوب بِفِعْلِهِ الْمُقَدَّر أَيْ أَفْضَل ﴿وَنِعْمَةً﴾ مِنْهُ ﴿وَاللَّهُ عَلِيمٌ﴾ بِهِمْ ﴿حَكِيمٌ﴾ فِي إِنْعَامه عَلَيْهِمْ ﴿وَإِنْ طَائِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ﴾ الْآيَة نَزَلَتْ فِي قَضِيَّة هِيَ أَنَّ النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وسلم ركب حمارا ومر على ابن ابي فبال الحمار فسد ابن ابي انفه فقال ابن رَوَاحَة وَاللَّه لَبَوْل حِمَاره أَطْيَب رِيحًا مِنْ مِسْكك فَكَانَ بَيْن قَوْمَيْهِمَا ضَرْب بِالْأَيْدِي وَالنِّعَال وَالسَّعَف ﴿اقْتَتَلُوا﴾ جُمِعَ نَظَرًا إِلَى الْمَعْنَى لِأَنَّ كُلّ طَائِفَة جَمَاعَة وَقُرِئَ اقْتَتَلَتَا ﴿فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا﴾ ثَنَّى نَظَرًا إِلَى اللَّفْظ ﴿فَإِنْ بَغَتْ﴾ تَعَدَّتْ ﴿إِحْدَاهُمَا عَلَى الْأُخْرَى فَقَاتِلُوا الَّتِي تَبْغِي حَتَّى تَفِيءَ﴾ تَرْجِع ﴿إِلَى أَمْرِ اللَّهِ﴾ الْحَقّ ﴿فَإِنْ فَاءَتْ فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا بِالْعَدْلِ﴾ بِالْإِنْصَافِ ﴿وَأَقْسِطُوا﴾ اعدلوا ﴿إن الله يحب المقسطين﴾ ﴿إنما المؤمنون إخوة﴾ في الدين ﴿فأصلحوا بين أخويكم﴾ إذا تنازعا وقرئ إخوتكم بالفوقانية ﴿واتقوا الله لعلكم ترحمون﴾

ترجمه: شروع کوم د الله په نوم سره چې ډير مهربانه او ډير رحم کول والا دې، اې خلقو! کومو چې ايمان راوړي دې قدم د تقدم په معنی کښې، يعنې په قول او فعل کښې په الله او د هغه په رسول باندې وړاندې والې مه کوئ، يعنی ددې دواړو د اجازت نه بغير او د الله نه ويريږئ بې شکه الله تعالی ستاسو خبرو لره اوريدونکې او ستاسو په کارونو باندې عالم دې. دا ايت د حضور ﷺ سره د ابوبکر او عمر ﷠ اقرع ابن حابس يا قعقاع بن معبد لره د امير جوړولو د نزاع باره کښې نازل شو، او دا مخکښې ايت د هغه کس په باره کښې نازل شو چا چې خپل آواز د حضور ﷺ په مخکښې اوچت کړو، اې ايمان والو چې کله تاسو خبرې کوئ نو د حضور ﷺ په آواز باندې خپل آواز مه اوچتوئ، کله چې د هغوی خبرې کوی، او نه د هغوی په مخکښې په تيزه اواز سره خبرې کوئ، کله چې تاسو هغوی سره خبرې کوئ، ستاسو عملونه به ضائع شی، او تاسو ته به ددې احساس هم نه وی، ددې ذکر شوې اوچت اواز د وجې نه ستاسو د عملونو د ضائع کيدو پيش نظر «د حضور ﷺ سره په اوچت اواز خبرې مه کوئ» او دا راروان ايت د هغه کس په باره کښې نازل شو چا چې به خپل اواز د حضور ﷺ په وړاندې ټيټ ساتلو، لکه ابوبکر او عمر ﷠ وغيره، بې شکه هغه خلق چه د رسول ﷺ په مخکښې خپل اوازونه لاندې ساتی دا هغه خلق دی چې د چا زړونه الله تعالی د تقوی د پاره ازمائيلی دی، چې د هغوی تقوی ښکاره شی، او د هغوی د پاره مغفرت او لوئې اجر دې يعنی جنت، او راروان آيت نازل شو د هغه خلقو په باره کښې چې د ماسپخين په وخت کښې راغلل او حضور ﷺ «په خپل کور کښې وو، نو هغوی دوی ته اوازونه شروع کړل، بې شکه هغه خلق چې تاسو ته د حُجرو د بهر نه اوازونه کوی، يعنی ستاسو په باره کښې ورته دا پته نشته، چې تاسو په کوم کور کښې يئ؟ په سختئ او تريخ اواز سره د باندچيانو په شان رابلل کوی په دوی کښې ډير ستاسو د مقام او ستاسو دمناسب تعظيم نه ناخبره وو، په دې سلسله کښې څه چې دې ووئيل، او که دې خلقو صبر کړې وو تردې چې حضور ﷺ خپله دوی طرف ته راوتلې وو، نو دا به دوی د پاره ډيره بهتره وه، «أنهم» د ابتداً د وجې نه د رفع په محل کښې دې، او دا هم وئيلې شوی دی چې دا د فعل مقدر فاعل دې، يعنی د «ثبت» الله د هغه کس د پاره بخښونکې رحم کونکې دې چا چې د دوی نه توبه اوويستله، او دا راروان ايت د وليد بن عقبه په باره کښې نازل شو، او حضور ﷺ دوی د بنی مصطلق طرف ته د زکواة راغونډولو د پاره ليږلې وو، نو هغوی د دشمنئ د وجې چې ددوی او د بنی مصطلق په مينځ کښې د زمانهٔ جاهليت د وخت نه وه، د دوی نه ئ خطره محسوس کړه چې د هغې د وجې نه دوی واپس راغلل او راتلو سره ئې اووئيل چې هغوی د صدقې ورکولو نه انکار اوکړو، او هغوی زما د قتل اراده اوکړه، نو حضور ﷺ هغوی سره د جنګ کولو اراده اوکړه، نو د بنی مصطلق خلق د حضور ﷺ په خدمت کښې حاضر

شول، او دوی ته منسوبه کومه خبره چې عقبه ﷺ دوی ته کړې وه، د هغې انکار ئ اوکړو، اې ایمان والو ا که تاسو ته یو فاسق خبر درکړی نو د هغې د حق او د رشتیا ښه تحقیق کوئ او په یو قراءت کښې (تثبتوا) دې د ثبات نه، (یعنی صبر کوئ تندی مه کوئ) داسې نه وی چې په ناپوهتیا کښې یو قوم ته تکلیف اورسوئ، (أن تصیبوا) مفعول له دې، یعنی ددې خطرې د وجې نه بجهالة د (تصیبوا) دفاعل نه حال دې، په داسې حال کښې چې تاسو ته پته نه وی، بیا په غلطئ سره چه تاسو قوم سره څه اوکړل په هغې باندې به پښیمانه یئ، د دې حضراتو خپلو ښارونو ته واپس تلو نه پس حضور ﷺ دوی ته خالد ﷺ اولیږلو نو هغوی د اطاعت او د خیر نه سوا بل څه اونه لیدل، نو خالد ﷺ ددې کار خبر حضور ﷺ ته ورکړو، او یاد ساتئ چې ستاسو په مینځ کښې الله او د هغه رسول موجود دې، لهذا څه غلطه خبره مه کوئ، الله تعالی به هغوی ته د حقیقت حال خبر ورکړی، او که هغه په ډیرو معاملو کښې چې د هغې تاسو د واقعې نه خلاف خبر ورکوئ ستاسو خبره اومنی، بیا په هغې باندې د هغې مقتضی هم مرتب شی، نو تاسو به ګنهګار شئ، نه چې هغوی ﷺ د مرتب سبب جوړیدو د وجې نه، نه ددې کار د کولو د وجه نه، خو الله تاسو ته دَ ایمان محبت درکړو او ستاسو زړونو کښې ئې خائسته کړو، خوښ ئې جوړ کړو، کفر او ګناه او نافرمانی ئې ستاسو په نظرونو کښې ناخوښه کړل، (لکن) سره استدراک دې، د معنی په حیثیت سره نه چې د لفظ په حیثیت سره، ځکه چې د من حبب إليه الإيمان الخ صفت متغایر دې، د هغوی صفت نه چې د کوم ذکر په ماقبل کښې اوشو دا خلق په دې کښې د خطاب نه غیبت طرف ته التفات دې، لاره موندونکی دی، یعنی په خپل دین باندې ثابت قدم پاتې کیدونکې دې، د الله په فضل او احسان سره فضلاً مصدر منصوب دې، د خپل فعل أفضَلَ د وجې نه، او الله ددوی د حالاتو نه خبردار دې، او په دوی باندې انعام کولو والا دې، باحکمت دې، او که د مومنانو دوه جماعتونه په جنګ شی، نو ددوی په مینځ کښې صلح اوکړئ، دا ایت د یوې واقعې په باره کښې نازل شوې دې، واقعه دا ده چې حضور ﷺ په یو خرباندې سور شو نو هغوی ﷺ په عبدالله بن أبی باندې تیرشول، نو خر تش بول اوکړل، چې د هغې د وجې نه عبدالله ابن ابی خپله پوزه پټه کړه، نو ابن رواحه (رض) اوفرمائیل، قسم په الله د حضور ﷺ د خر تش بول ستا د مشک نه زیات خوشبوداره دی، نو د دې دواړو قومونو کښې جنګ اوشو، او خپلې او ډنډې اوچلیدې، (طائفة) ته نظر کولو سره، (اقتتلوا) ئې جمع راوړو، ځکه چې هره طائفه یو جماعت وی، او اقتتلتا هم وئیلې شوې دې، او بینهما د لفظ رعایت د وجې تثنیه راوړې شوې دې، نو که په دې دواړو جماعتونو کښې یو جماعت په بل باندې زیاتې اوکړی، نو تول هغه جماعت سره چا چې زیاتې کړې کړې دې، جنګ اوکړئ، تردې چې هغوی د الله حکم طرف ته واپس شی، نو که واپس شول، نو په انصاف سره فیصله

اوکړئی، او عدل کوئ، بې شکه الله تعالی انصاف کونکی خوښوی، یاد ساتئ رټول مسلمانان دینی رونړه دی، نو په دوه رونړو کښې کله چې هغوی جنګ اوکړی صلح کوئ، (أخويكم) په تاء فوقانیه سره هم وئیلې شوې دې، او په اصلاح کولو کښې د الله نه ویریږئ، چې په تاسو باندې رحم اوکړې شی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** لاتقدموا: په دې کښې دوه صورتونه دی، اول دا چه دا متعدی دې د تعمیم په قصد سره ددې مفعول حذف کړې شوې دې، یا د نفس فعل قصد کولو د وجې نه مفعول پریخودلې شوې دې، لکه عرب وائی، فلان يُعْطِي وَيَمْنَعُ، دویم صورت دا دې چې دا لازم دې، ځنګه چې وَجَّهَ وتَوَجَّهَ، هغه متوجه شو، او ددې تائید د ابن عباس رضي الله عنهما او د ضحاک او یعقوب د قرامت تَقَدَّمُوا کوی، او واحدی وئیلې دی، چې قَدَّمَ دلته د تَقَدَّمَ په معنې کښې دې، یعنی تاسو مخکښې مه ځئ، (فتح القدير) مفسر علام قدم په معنی د تَقَدَّمَ اخستلو سره اشاره اوکړه چې قَدَّمَ د لازم په معنی کښې دې، لهذا ددې مفعول محذوف راویستلو ته ضرورت نشته.

**قوله:** المبلغ عنه: دا د رسوله صفت دې، او د الله او د هغه د رسول نه د مخکښې د نه تلو مطلب دا دې، چې ددوی د حکم او اجازت نه بغیر نه په قول کښې مخکښې والې کوئ، او نه په فعل کښې، بعضې حضراتو وئیلې دی، چې د تقدموا مفعول محذوف دې، أي لا تقدموا أمرًا.

**قوله:** إذا ناجيتموه: ددې جملې د اضافې مقصد د یو سوال مقدر جواب دې،

**سوال:** اول جمله یعنی لا ترفعوا أصواتكم او دویمه جمله ولا تجهروا له بالقول، د دوارو مفهوم یو دې، او عطف د مغایرت تقاضه کوی نو بیا د تکرار څه مقصد؟

**جواب:** د دوارو جملو مفهوم او مصداق یو دې، د اولنۍ جملې مفهوم دا ددې چې کله حضور ﷺ سره خبرې کیږی، یعنی سوال او جواب کیږی نو چه داسې طریقې سره خبرې مه کوئ چې ستاسو اواز د حضور ﷺ په اواز باندې اوچت شی، او د دویمې جملې مطلب دا دې، چې کله تاسو د حضور ﷺ نه تپوس کوئ، او حضور ﷺ په خاموشۍ سره دا اوری، نو په زور سره خبرې مه کوئ، ځنګه چې تاسو خپل مینځ کښې خبرې کوئ،

**قوله:** بَلْ دُونَ ذلك: مطلب دا دې، چې هر حالت کښې د حضور ﷺ د اواز نه خپل اواز لاندې ساتئ، که نبی علیه السلام سره خبرې کیږی یا تاسو خبرې کوئ، او حضور ﷺ په خاموشۍ سره ستاسو خبرې اوری.

**قوله**: إجلالاً: دا د ولاترفعوا أصواتکم علت دی، مطلب دا دی چې په هر وخت کښې د حضور ﷺ د جلالت شان خیال پکار دی۔

**قوله**: خشیة ذلك: ددې عبارت د اضافې مقصد دا ښودل دی، چې أن تحبط د مضاف په حذف سره د مفعول له کیدو د وجې نه منصوب المحل دې تقدیری عبارت داسې دې، انتهوا عما نهیتم لخشیة حبوط أعمالکم۔

**فائده**: لاترفعوا ولاتجهروا دواړو په خشیة کښې تنازع کړې ده، هر یو خشیة لره خپل مفعول جوړول غواړی، د بصریینو د مذهب مطابق دویم ته عمل ورکول پکار دی، او د اول د پاره مو مفعول محذوف اوګنړلو، (لکه چې دا د باب تنازع فعلان نه دې)

**قوله**: اولئك الذین...الخ: اولئك مبتدأ دہ، الذین امتحن الله موصول او صله جمله د (إن خبر دې.

**قوله**: لتظهر منهم: ددې عبارت د اضافې مقصد د یو سوال مقدر جواب دې.

**سوال**: امتحان د تقوی سبب نه وی، حالانکه په امتحن الله قلوبهم للتقوی کښې امتحان لره د تقوی سبب بیان کړې شوې دې؟

**جواب**: امتحان د تقوی سبب نه دې خو د تقوی د ظاهریدو سبب ضرور دې، دا د اطلاق السبب علی المسبب د قبیلې نه دې، څکه چې امتحان په زړه کښې پټه تقوی ښکاره کوی، ددې شبهې دفع کولو د پاره ئې لتظهر منهم اضافه کړې ده،

**قوله**: تِرَةٌ: د تاء په کسرې سره او د راء په تخفیف سره، په معنی د حسد، دشمنی، شک،

**قوله**: فتثبتوا: دا د تثبت نه امر جمع مذکر حاضر دې، تاسو توقف اوکړئ، توندی مه کوئ،

**قوله**: خشیة ذلك: دا دې خبرې ته اشاره ده چې أن تصیبوا قوما د فتبینوا مفعول له دې، أن تصیبوا نه مخکښې مضاف محذوف دې، أی خشیة إصابة قوم

**قوله**: عَنِتُّمْ: دعنت نه ماضی جمع مذکر حاضر، تاسو ګنهګار شوئ، تاسو په مشکل کښې پریوتلئ.

**قوله**: دونه: یعنی د دروغو او د غلط بیانئ د وجې چې کومه نتیجه راوزی، د هغې ذمه دار به غلط بیانی کولو کونکی وی، نه چې حضور ﷺ ، څکه چې هغوی ﷺ خو ستاسو د ګواهئ په وجه په فیصله کولو باندې مجبور دی.

**قوله**: إثْمَ التَّسَبُّبِ إلی المُرَتَّبِ: یعنی تاسو به د مرتب شوې نتیجې ذریعه او سبب جوړیدو د وجې ګنهګار به یئ، نه چې د ګناه د کولو د وجې.

**قوله:** استدراك من حيث المعنى دون اللفظ : ددې عبارت مقصد د يو سوال جواب وركول دی.

**سوال:** سوال دا دې چې (لكن) د استدراک د پاره دې، او د استدراک د پاره ضروری ده چې مابعد د ماقبل لفظاً او اثباتاً مخالف وی، او دلته داسې نه ده، لهذا دا استدراک صحيح نه دې؟

**جواب:** د (لكن) مابعد د ماقبل نه اگرچې لفظاً او اثباتاً متغائر نه دې، خو معناً متغائر دې، لهذا استدراک صحيح دې، او معنوی اختلاف دا دې، چې د من حبب اليه الايمان صفت د هغه خلقو نه مختلف دې، چې د هغوی ذکر مخکښې تير شو، په دې طريقې سره مستدرک د مستدرک منه نه مختلف دې، لهذا استدراک هم صحيح دې.

**قوله:** مصدر منصوب بفعله المقدر: يعنی فضلا د خپل فعل مفعول مطلق كيدو د وجې نه منصوب دې، خو دا صحيح نه ده، په دې كښې تسامح ده، ځكه چې فضلا اسم مصدر دې، مصدر ددې إفضالاً دې، البته مفعول له صحيح دې، او عامل په دې كښې حَبَّبَ دې، د عامل او معمول په مينځ كښې أولئك هم الراشدون جمله معترضه ده.

**قوله:** اقْتَتَلُوا جُمِعَ نَظَراً إلى المعنى :دا د يوې شبهې جواب دې.

**شبه:** اقتتلوا جمع صيغه ئې راوړې ده، حالانكه ددې ضمير طائفتان (تثنيه) طرف ته راجع كيږی، لهذا د ضمير او د مرجع په مينځ كښې مطابقت نشته؟

**دفع:** د طائفتان د معنې رعايت كولو د وجې د جمع صيغه راوړې شوې ده، ځكه چې هر يو طائفه په ډيرو كسانو باندې مشتمل وی، او په بينهما كښې تثنيه راوړې شوې ده، د طائفتان د لفظ رعايت كولو د وجې.

**[اياتونه: ١١ - ١٨]**

{يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا يَسْخَرْ} الْآيَة نَزَلَتْ فِي وَفْد تَمِيم حِين سَخِرُوا مِنْ فُقَرَاء الْمُسْلِمِينَ كَعَمَّارٍ وَصُهَيْبٍ وَالسُّخْرِيَّة الِازْدِرَاء وَالِاحْتِقَار {قَوْمٌ} أَيْ رِجَال مِنْكُمْ {مِنْ قَوْمٍ عَسَى أَنْ يَكُونُوا خَيْرًا مِنْهُمْ} عِنْد اللَّه {وَلَا نِسَاء} مِنْكُمْ {مِنْ نِسَاء عَسَى أَنْ يَكُنَّ خَيْرًا مِنْهُنَّ وَلَا تَلْمِزُوا أَنْفُسكُمْ} لَا تَعِيبُوا فَتُعَابُوا أَيْ لَا يَعِبْ بَعْضكُمْ بَعْضًا {وَلَا تَنَابَزُوا بِالْأَلْقَابِ} لَا يَدْعُو بَعْضكُمْ بَعْضًا بِلَقَبٍ يَكْرَههُ وَمِنْهُ يَا فَاسِق يَا كَافِر {بِئْسَ الِاسْم} أَيْ الْمَذْكُور مِنْ السُّخْرِيَة وَاللَّمْز وَالتَّنَابُز {الْفُسُوق بَعْد الْإِيمَان} بَدَل مِنْ الِاسْم لِأَنَّهُ فِسْق لِتَكَرُّرِهِ عَادَة {وَمَنْ لَمْ يَتُبْ} مِنْ ذَلِكَ {فَأُولَئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ} {يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اجْتَنِبُوا كَثِيرًا مِنَ الظَّنِّ إِنَّ بَعْض الظَّنّ إِثْم} أَيْ مُؤْثِم وَهُوَ كَثِير كَظَنِّ السَّوْء بِأَهْلِ الْخَيْر مِنَ الْمُؤْمِنِينَ وَهُمْ كَثِير بِخِلَافِهِ بِالْفُسَّاقِ مِنْهُمْ فَلَا إِثْم فِيهِ فِي

نَحْو مَا يَظْهَر مِنْهُمْ {وَلَا تَجَسَّسُوا} حذف منه إحدى التاءين ولا تَتَبَّعُوا عَوْرَات الْمُسْلِمِينَ وَمَعَايِبهمْ بِالْبَحْثِ عَنْهَا {وَلَا يَغْتَبْ بَعْضُكُمْ بَعْضًا} لا يَذْكُرهُ بِشَيْءٍ يَكْرَههُ وَإِنْ كَانَ فِيهِ {أَيُحِبُّ أَحَدُكُمْ أَنْ يَأْكُلَ لَحْمَ أَخِيهِ مَيْتًا} بِالتَّخْفِيفِ وَالتَّشْدِيد أَيْ لَا يَحْسُن بِهِ {فَكَرِهْتُمُوهُ} أَيْ فَاغْتِيَابه فِي حَيَاته كَأَكْلِ لَحْمه بَعْد مَمَاته وَقَدْ عُرِضَ عَلَيْكُمْ الثَّانِي فَكَرِهْتُمُوهُ فَاكْرَهُوا الْأَوَّل {وَاتَّقُوا اللَّهَ} أَيْ عِقَابه فِي الِاغْتِيَاب بِأَنْ تَتُوبُوا مِنْهُ {إِنَّ اللَّهَ تَوَّابٌ} قَابِل تَوْبَة التَّائِبِينَ {رَحِيمٌ} بِهِمْ {يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّا خَلَقْنَاكُمْ مِنْ ذَكَرٍ وَأُنْثَى} آدم وَحَوَّاء {وَجَعَلْنَاكُمْ شُعُوبًا} جَمْع شَعْب بِفَتْحِ الشِّين هُوَ أَعْلَى طَبَقَات النَّسَب {وَقَبَائِلَ} هِيَ دُون الشُّعُوب وَبَعْدهَا الْعَمَائِر ثُمَّ الْبُطُون ثُمَّ الْأَفْخَاذ ثُمَّ الْفَصَائِل آخِرهَا مِثَاله خُزَيْمَة شَعْب كِنَانَة قَبِيلَة قُرَيْش عِمَارَة بِكَسْرِ الْعَيْن قُصَيّ بَطْن هَاشِم فَخِذ الْعَبَّاس فَصِيلَة {لِتَعَارَفُوا} حُذِفَ مِنْهُ إِحْدَى التَّاءَيْنِ لِيَعْرِف بَعْضكُمْ بَعْضًا لَا لِتَفَاخَرُوا بِعُلُوِّ النَّسَب وَإِنَّمَا الْفَخْر بِالتَّقْوَى {إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِنْدَ اللَّهِ أَتْقَاكُمْ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ} بِكُمْ {خَبِيرٌ} ببواطنكم {قَالَتِ الْأَعْرَابُ} نَفَر مِنْ بَنِي أَسَد {آمَنَّا} صَدَّقْنَا بِقُلُوبِنَا {قُلْ} لَهُمْ {لَمْ تُؤْمِنُوا وَلَكِنْ قُولُوا أَسْلَمْنَا} انقدنا ظَاهِرًا {وَلَمَّا} أَيْ لَمْ {يَدْخُلِ الْإِيمَانُ فِي قُلُوبِكُمْ} إِلَى الْآن لَكِنَّهُ يُتَوَقَّع مِنْكُمْ {وَإِنْ تُطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ} بِالْإِيمَانِ وغيره {لَا يَلِتْكُمْ} بِالْهَمْزِ وَتَرْكه وَبِإِبْدَالِهِ أَلِفًا لَا يُنْقِصكُمْ {مِنْ أَعْمَالِكُمْ} أَيْ مِنْ ثَوَابهَا {شَيْئًا إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ} لِلْمُؤْمِنِينَ {رَحِيمٌ} بِهِمْ {إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ} أَيْ الصَّادِقُونَ فِي إِيمَانهمْ كَمَا صَرَّحَ بِهِ بَعْد {الَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ ثُمَّ لَمْ يَرْتَابُوا} لَمْ يَشُكُّوا فِي الْإِيمَان {وَجَاهَدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ} فَجِهَادهمْ يُظْهِر بِصِدْقِ إِيمَانهمْ {أُولَئِكَ هُمُ الصَّادِقُونَ} فِي إِيمَانهمْ لَا مَنْ قَالُوا آمَنَّا وَلَمْ يُوجَد مِنْهُمْ غير الإسلام {قُلْ} لَهُمْ {أَتُعَلِّمُونَ اللَّهَ بِدِينِكُمْ} مُضَعَّف عَلِمَ بِمَعْنَى شَعَرَ أَيْ أَتُشْعِرُونَهُ بِمَا أَنْتُمْ عَلَيْهِ فِي قولكم آمنا {وَاللَّهُ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ وَاللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ} {يَمُنُّونَ عَلَيْكَ أَنْ أَسْلَمُوا} مِنْ غَيْر قِتَال بِخِلَافِ غَيْرهمْ مِمَّنْ أَسْلَمَ بَعْد قِتَاله مِنْهُمْ {قُلْ لَا تَمُنُّوا عَلَيَّ إِسْلَامَكُمْ} مَنْصُوب بِنَزْعِ الْخَافِض الْبَاء وَيُقَدَّر قَبْل أَنْ فِي الْمَوْضِعَيْنِ {بَلِ اللَّهُ يَمُنُّ عَلَيْكُمْ أَنْ هَدَاكُمْ لِلْإِيمَانِ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ} فِي قَوْلكُمْ آمَنَّا {إِنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ غَيْبَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ} أَيْ مَا غَابَ فِيهِمَا {وَاللَّهُ بَصِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ} بِالْيَاءِ وَالتَّاء لَا يَخْفَى عَلَيْهِ شَيْء مِنْهُ

---

**ترجمه**: اې ايمان والو، نه دې سړي په سړو پسې ټوقې کوي. کيدې شي چې دوی به د هغوی نه د الله په نيز بهتر وي، او نه دې ښځې په ښځو پسې، ممکن ده چې هغه ښځې د دې ښځو نه بهترې وي، دا ايت د وفد بنو تميم په باره کښې نازل شو، کله چې هغوی فقيرانو مسلمانانو پسې ټوقې اوکړې مثلا د عمار، صهيب ﷺ پسې او سخريه تحقير او تذليل ته وائی، او په خپل مينځ کښې يوبل باندې عيب مه لګوئ، چې تاسو د بل عيب لټوئ او بيا نوئ نو ستاسو به عيب لټولې او بيانولې شي، يعنی څوک دې د چا عيب لټول اور بيانول نه کوی، او نه يو بل ته خراب لقب ورکوئ، يعنی په خپل مينځ کښې يوبل په داسې لقب سره مه رابلئ کوم چې هغه ناخوښه ګڼړی، او هم د دغه خرابو لقبونو نه يا فاسق يا کافر هم دې، ايمان سره

متصف کیدو نه پس د فسق مذکوره نوم ایخودل چې هغه توقې کول ، عیب لټول او خراب لقب، لګیدل بد کار دې، (الفسوق) د اسم نه بدل دې، ددې خبرې فائده ورکولو د وجې نه چې دا نوم ورانول عادة بار بار کیږي، او په صغیره ګناه باندې اصرار کولو سره صغیره کبیره شي، او د دې نه توبه نه ویستونکی دیر ظالمان دی، اې ایمان والو! د بدګمانۍ نه بچ اوسئ، یقین اوساتئ چې بعضې بدګمانۍ ګناه ده، یعنی ګنهګار کونکی ده، او دا اکثر وی، لکه مومنانو اهل خیرو خلقو سره بدګمانی کول، او هغه (اهل خیر) دیر دی، بخلاف د هغه بدظنی نه، په فاسقانو مومنانو کښې نو په دې بدګمانۍ کښې هیڅ ګناه نشته، د هغه ګناهونو په باره کښې کوم چې هغوی په ښکاره توګه باندې کوی، او د چا عیب مه لټوئ، او د چا غیبت هم مه کوئ، د (تجسسوا) نه یو تاء حذف کړې شوې ده، یعنی د مسلمانانو د عیبونو او د رازونو په تلاش کښې مه کیږئ، او نه د هغوی یو داسې څیز سره تذکره کوئ چې هغوی ئې نه خوښوی، اګر که هغه کارونه په هغوی کښې موجود وی، آیا په تاسو کښې یو کس دا خبره خوښوی چې د خپل مړ د دې غیبت نه ناخبره رور غوښه اوخوری؟ (میتا) په تخفیف او تشدید سره دې، (یقینا) نه به ئې خوښوی، لهذا تاسو هم دې خبرې لره ناخوښه اوګنړئ، څکه چې دهغه په ژوند کښې دهغه غیبت کول دهغه د مرګ نه پس دده غوښه خوړلو په شان دی، او تاسو ته دوئم مثال پیش کړې شو، نو تاسو هغه ناخوښه کړو، نو اول هم ناخوښه کړئی، او د الله نه ویریږئی، یعنی د غیبت په باره کښې د هغه د سزا نه، په داسې توګه چې د هغې نه توبه اوباسئ، بې شکه الله تعالی توبه قبلولو والا، په دوی باندې مهربانه دې، یعنی د توبه ویستونکو توبه قبلوی، اې خلقو امونږ تاسو د یو سړی او د یوې ښځې نه پیدا کړی ئی، د آدم علیه السلام او د حوا (علیها السلام) او مونږ تاسو قومونه او قبیلې جوړې کړئ، شعوب د شعب جمع ده د شین په فتحې سره او هغه (شعب) د نسب په طبقاتو کښې د ټولو نه بره ده، او قبیله دا د شعب نه لاندې ده، او د هغې لاندې عمائر دی، بیا بطون دی، او د هغې نه لاندې أفخاذ دی، او د دې ټولو په آخر فصیله دې، ددې مثال خزیمة شعب دې، کنانه قبیله ده، قریش عماره دی، د عین په کسرې سره، او قصی بطن دې، هاشم فخذ دې، عباس فصیله دې، چې تاسو یو بل اوپیژنئ، د تعارفو نه یو تاء حذف کړې شوې ده، چې تاسو یو بل اوپیژنئ، نه چې په اوچت نسب باندې فخر اوکړئ، او فخر خو صرف د تقوی د وجې دې، او په تاسو کښې د ټولو نه زیات شریف هغه دې چې د ټولو نه زیات متقی وی، الله تعالی ستاسو په باره کښې ښه خبردار دې او ستاسو د باطن نه پوره خبردار دې، د بنو اسد بانډیچیانو یو جماعت وائی، چې مونږ ایمان راوړو، یعنی مونږ د زړه نه تصدیق اوکړو، تاسو دوی ته اووایئ چې تاسو ایمان نه دې راوړې، لیکن داسې وایئ چې مونږ اسلام راوړو، یعنی په ښکاره توګه باندې تابعدار شو، خو اوسه پورې ستاسو په زړونو

ته ایمان نه دي داخل شوي، خو تاسو نه ددې امید ساتلې شی، تاسو که د الله او د هغه د رسول په ایمان وغیره کښې تابعداري اوکړئ نو هغه به ستاسو د عملونو نه یعنی د هغې د ثواب نه هیڅ هم نه کموی، (یلتکم) همزه او ترک همزه سره، او همزه الف سره بدلولو سره، یعنی ستاسو اجر به نه کموی، بې شکه الله تعالی مومنانو لره معاف کونکې او په هغوی باندې رحم کونکې دې، مومنان خو هغه دی چې په الله او رسول باندې ئې ایمان راوړو، یعنی په خپل ایمان کښې رشتونی دی، لکه روستو ئې ددې صراحت اوکړو، بیا هغوی په ایمان کښې شک اونکړو، او په خپل مالونو او خپل ځانونو سره ئې د الله په لاره کښې جهاد اوکړو، ددوی د جهاد نه د دوی د ایمان صداقت ښکاره کیږی، (په خپله دعوای د ایمان کښې) هم دغه خلق رشتونی دی نه هغه څوک چه د هغوی د طرف نه د ظاهری اتباع نه علاوه نور هیڅ اونه موندلې شو، تاسو دوی ته اووایئ آیا تاسو الله ته د خپلې دینداریٔ خبر ورکوئ، تعلمون د علم، مضعف دې، په معنی شعر، یعنی تاسو هغه د هغه خه نه خبروئ، په څه چې تاسو په خپل قول آمنا کښې یئ، او الله د هر هغه څیز نه چې په اسمانونو او زمکه کښې دي، خبردار دې، دا خلق بغیر د قتال نه اسلام راوړلو باندې په تاباندې احسان کوی، په خلاف د نورو چې هغوی د قتال نه پس اسلام راوړو، تاسو ورته اووایئ چې په خپل اسلام راوړلو باندې په ما احسان مه کوئ، (إسلامکم) نزع د حافض بآء د وجې نه منصوب دې، او په دوارو ځایونو کښې د (أن) نه مخکښې باء مقدر ده، بلکه په حقیقت کښې د الله په تاسو باندې احسان دې چې هغه تاسو ته د ایمان هدایت درکړو، په شرط ددې چې تاسو خپل قول کښې رشتونې یئ، الله تعالی د زمکې او اسمانونو ټول پټ څیزونه پیژنی یعنی په زمکه او اسمان کښې چې کوم څیزونه پټ ی، او الله تعالی ستاسو عملونو باندې هم پوهیږی، په یاء او تاء سره، په دې کښې د هغه نه یو څیز هم پټ نه دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** لایسخر: مضارع منفی واحد مذکر غائب (س) سَخَرٌ، توقې کول. مسخرې کول.

**قوله:** الاذدراءوالاحتقار: دا عطف تفسیری دې، سپکاوې کول.

**قوله:** قوم أي رجال: په رجال سره ئې اشاره ئې اوکړه چې قوم اسم جمع ده، په معنی د رجال، چونکه قوم د نساء په مقابله کښې راغلې دې، لهذا دلته ترې سړي مراد دي او د عربو په لغت کښې قوم د رجال په معنی کښې استعمال شوې دې.

**قال الشاعر:**

وما أدري ولست إخال أدري　　　أقوم آل حصن أم نساء

د شاعر مراد د قوم نه رجال دې، او (رجال) ته قوم ځکه وئیلې شوی دی، چې هغوی

قوامون على النساء دی، اوس پاتې شو سړو او ښځو ته قوم ونیل، لکه قوم فرعون، قوم لوط، وغیره، نو هغه د تبعیت په توګه دی، أصالة قوم رجال ته وائی.

**قوله:** عسى أن یکون: جمله مستانفه ده، د علت د بیانولو د پاره، او عسى د فاعل د وجه نه د خبر نه مستغنی دې،

**قوله:** اللمز: لمز اشاره کول په سترګو سره.

**قوله:** لاتعیبوا فتعابوا: دا د لاتلمزوا أنفسکم توجیه ده، یعنی که تاسو د نورو عیبونه راوباسئ نو خلق به ستاسو عیبونه راوباسی، نو داسې شوه چې تاسو پخپله خپل عیبونه راوباسئ، دا د من ضحك ضحك د قبیل نه دې، یا لکه څنګه چې حضور ﷺ اوفرمائیل لا تسبوا آبائکم خپل مور پلار ته کنځل مه کوئ، صحابه عرض اوکړو چې یا رسول الله خپل مور پلار ته څوک څنګه کنځل کولې شی؟، حضور ﷺ اوفرمائیل چې تاسو د چا مور پلار ته کنځل اوکړئ نو هغه به ستاسو پلار ته کنځل اوکړی، نو داسې شوه چې تاسو پخپله خپل پلار مور ته کنځل اوکړل.

**قوله:** اي لا تنابزوا: دا تنابزوا نه نهی جمع مذکر حاضر صیغه ده، تم کسی کی چڑ نہ نکالو، تاسو د چا بد مه راوباسئ، چاته بد اواز سره آواز مه کوئ، د چا نوم مه خرابوئ.

**قوله:** اي المذکور من السخریة واللمز والتنابز: د مفسر علام مقصد ددې عبارت د اضافې نه د یو سوال جواب ورکول دی،

**سوال:** په الاسم باندې الف لام د عهد دې، کوم چې جمع باندې دلالت کوی، او مراد ترې نه اسماء ثلثه مذکوره یعنی السخریه، اللمز، التنابز دی، لهذا مناسب وه چې د اسم مفرد راوړلو په ځائ الأسماء یئ جمع راوړې وو.

**جواب:** اسم دلته د ذکر مشهور په معنی کښې دې، کوم چې د عربو د قول طار اسمه نه مشتق دې، اسماء ثلثة د المذکور په معنی کښې دې، لهذا د الاسم مفرد راوړل صحیح دی، او د اسم نه مراد ذکر او شهرت دې، نه چې هغه معروف اسم، کوم چې مقابل د حرف او فعل راځی، او نه بمعنی علم، او دا د سمو نه مشتق دې، چې د هغې معنی ده، اوچتوالې.

**قوله:** بئس الاسم الفسوق: بئس فعل ماضی، الاسم ددې فاعل، الفسوق د الاسم نه بدل دې، مفسر علام هم دا ترکیب اختیار کړې دې، په دې صورت کښې به مخصوص بالذم محذوف وی، أی هو، دیر واضح ترکیب دا دې چې الفسوق مخصوص بالذم اوګرځولې شی، دمذکوره جملې مشهور ترکیب دا دې، چې الفسوق مبتدأ او بئس الاسم خبر مقدم وی.

**قوله:** لإفادة أنه فسق لتكرره عادة: يعنى سخريه وغيره كوم چې ذكر شو، اگرچې گناه صغيره ده، خو چې كله په صغيره باندې اصرار وى او د هغې ارتكاب بار بار اوكړې شي، نو هغه گناه كبيره جوړه شي، او په عام توگه باندې عادة هم داسې كيږي، چې انسان دا القاب بار بار ذكر كوي.

**قوله:** لا يحس به: دا د ميتا صفت دې، يعنى مړ چې محسوس نه كوي، يعنى كه هغه لره څوک اوخوري نو هغه ته احساس نه كيږي، مفسر علام د لايحس اضافه كولو سره دې خبرې ته اشاره اوكړه، چې د ميت او مغتاب له (د چا چې غيبت اوكړې شي) په مينځ كښې وجه د مشابهت عدم علم دې، د كوم انسان چې غائبانه غيبت كولې شي هغه ته هم د غيبت علم نه وي، او د مړي غوښې خوړلو سره هم مړي ته علم او احساس نه وي، گويا چې عدم علم په دواړو كښې مشترک دې.

**قوله:** مضعف علم: يعنى تعليم د إعلام په معنى كښې دې، كوم چې متعدى په دوو مفعولو سره دې، دويم مفعول دينكم دې، چې د هغې طرف ته په باء سره متعدى دې.

**قوله:** إن كنتم صادقين: في ادعائكم الإيمان شرط دې، ددې جواب محذوف دې، فلله المنة عليكم

**قوله:** في الموضعين: يعنى د (أن) نه مخكښې باء مقدره ده، په دوو ځايونو كښې (أن اسلموا) دې، او دويم ځائې أن هداكم أي بأن أسلموا وبأن هداكم.

## [٥٠] سورة ق

سورة ق مكية إلا ولقد خلقنا السموت، الاية فمدنية خمس واربعون اية

سورة ق مكى دې، سوا د آيت: خلقنا السموت نه، چه دا مدنى دې، په دې كښې پنځه څلويښت آيتونه دي.

[ايا تو له: ١-١٥]

(ق) الله أعْلَم بِمُرَادِهِ بِهِ (وَالْقرآنِ الْمَجِيد) الكريم مَا آمَنَ كُفَّار مَكَّة بِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (بَلْ عَجِبُوا أَنْ جَاءَهُمْ مُنْذِرٌ مِنْهُمْ) رَسُول مِنْ أَنْفُسهمْ يُخَوِّفهُمْ بِالنَّارِ بَعْد الْبَعْث (فَقَالَ الْكَافِرُونَ هذا) الإنذار (شيء عجيب) (أإذا) بِتَحْقِيقِ الْهَمْزَتَيْنِ وَتَسْهِيل الثَّانِيَة وَإِدْخَال أَلِف بَيْنهمَا عَلَى الْوَجْهَيْنِ (مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا) نرجع (ذَلِكَ رَجْعٌ بَعِيدٌ) فِي غَايَة الْبُعْد (قَدْ عَلِمْنَا مَا تَنْقُصُ الْأَرْضُ) تَأْكُل (مِنْهُمْ وَعِنْدَنَا كِتَابٌ حَفِيظٌ) هُوَ اللَّوْح الْمَحْفُوظ فِيهِ جَمِيع الْأَشْيَاء الْمُقَدَّرَة (بَلْ كَذَّبُوا بِالْحَقِّ) بِالْقُرْآنِ (لَمَّا جَاءَهُمْ فَهُمْ) فِي شَأْن النَّبِيّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْقُرْآن (فِي أَمْرٍ مَرِيجٍ) مُضْطَرِب قَالُوا مَرَّة سَاحِر وَسِحْر وَمَرَّة شَاعِر وَشِعْر وَمَرَّة

كاهن وكهانة {أَفَلَمْ يَنظُرُوا} بِعُيُونِهِمْ مُعْتَبِرِينَ بِعُقُولِهِمْ حِينَ أَنكَرُوا الْبَعْث {إِلَى السَّمَاءِ} كَائِنَة {فَوْقَهُمْ كَيْفَ بَنَيْنَاهَا} بِلَا عَمَد {وَزَيَّنَّاهَا} بِالْكَوَاكِبِ {وَمَا لَهَا مِن فُرُوجٍ} شُقُوق تَعِيبهَا {وَالْأَرْضَ} مَعْطُوف عَلَى مَوْضِع إِلَى السَّمَاء كَيْفَ {مَدَدْنَاهَا} دَحَوْنَاهَا عَلَى وَجْه الْمَاء {وَأَلْقَيْنَا فِيهَا رَوَاسِيَ} جِبَالًا تُثَبِّتهَا {وَأَنبَتْنَا فِيهَا مِن كُلِّ زَوْجٍ} صِنْف {بَهِيجٍ} يُبْهَج بِهِ لِحُسْنِهِ {تَبْصِرَةً} مَفْعُول لَهُ أَيْ فَعَلْنَا ذَلِكَ تَبْصِيرًا منا {وَذِكْرَىٰ} تذكيرا {لِكُلِّ عَبْدٍ مُّنِيبٍ} راجع إلى طاعتنا {وَنَزَّلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً مُّبَارَكًا} كَثِير الْبَرَكَة {فَأَنبَتْنَا بِهِ جَنَّاتٍ} بَسَاتِين {وَحَبَّ} الزَّرْع {الْحَصِيدِ} المحصود {وَالنَّخْلَ بَاسِقَاتٍ} طِوَالًا حَال مُقَدَّرَة {لَّهَا طَلْعٌ نَّضِيدٌ} مُتَرَاكِب بَعْضه فَوْق بَعْض {رِّزْقًا لِّلْعِبَادِ} مفعول له {وَأَحْيَيْنَا بِهِ بَلْدَةً مَّيْتًا} يَسْتَوِي فِيهِ الْمُذَكَّر وَالْمُؤَنَّث {كَذَٰلِكَ} أَيْ مِثْل هَذَا الْإِحْيَاء {الْخُرُوجُ} مِنَ الْقُبُور فَكَيْفَ تُنْكِرُونَهُ وَالِاسْتِفْهَام لِلتَّقْرِيرِ وَالْمَعْنَى أَنَّهُمْ نَظَرُوا وَعَلِمُوا مَا ذكر {كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ} تَأْنِيث الْفِعْل بِمَعْنَى قَوْم {وَأَصْحَابُ الرَّسِّ} هِيَ بِئْر كَانُوا مُقِيمِينَ عَلَيْهَا بِمَوَاشِيهِمْ يَعْبُدُونَ الْأَصْنَام وَنَبِيّهمْ قِيلَ حَنْظَلَة بْن صَفْوَان وَقِيلَ غَيْره {وَثَمُودُ} قَوْم صَالِح {وَعَادٌ} قوم هود {وَفِرْعَوْنُ وَإِخْوَانُ لُوطٍ} {وَأَصْحَابُ الْأَيْكَةِ} الْغَيْضَة قَوْم شُعَيْب {وَقَوْمُ تُبَّعٍ} هُوَ مَلِك كَانَ بِالْيَمَنِ أَسْلَمَ وَدَعَا قَوْمه إِلَى الْإِسْلَام فَكَذَّبُوهُ {كُلٌّ} مِنَ الْمَذْكُورِينَ {كَذَّبَ الرُّسُلَ} كَقُرَيْشٍ {فَحَقَّ وَعِيدِ} وَجَبَ نُزُول الْعَذَاب عَلَى الْجَمِيع فَلَا يَضِيق صَدْرك مِنْ كُفْر قُرَيْش بك {أَفَعَيِينَا بِالْخَلْقِ الْأَوَّلِ} أَيْ لَمْ نَعْيَ بِهِ فَلَا نَعْيَا بِالْإِعَادَةِ {بَلْ هُمْ فِي لَبْسٍ} شَكّ {مِّنْ خَلْقٍ جَدِيدٍ} وَهُوَ الْبَعْث

**ترجمه:** شروع کوم د الله په نوم سره چې ډیر مهربانه او ډیر رحم کونکې دې، ق ددې نه الله تعالی خپل مراد ښه پیژني. قسم دې په قرآن باندې چه کفار مکه ایمان را ونه وړو، بلکه په دې خبره ئې تعجب اوکړو چې هغوی ته د هغوی نه یو ویرونکې یعنی هم ددوی نه یو رسول ﷺ چې ددوی د ژوندی کیدو نه پس د جهنم د اور نه ویروی، راغلو، نو کافرانو اووئیل چې دا یروول عجیبه خبره ده، آیا چې کله مونږ مړه شو او خاورې شو، نو مونږ به دوباره ژوندی کیږو، د دوارو همزو تحقیق او دویمې تسهیل، او په دوارو صورتونو کښې ددوی په مینځ کښې الف داخلولو سره، دا واپسی ډیره لرې خبره ده، ځکه چې ددوی نه څه اوخوری هغه مونږ ته معلوم دی، او مونږ سره محفوظ کونکې کتاب دې، او هغه لوح محفوظ دې، چې په هغې کښې د ټولو څیزونو تقدیر لیکلې شوې دې، بلکه دوی خو حق ته یعنی قرآن ته کله چې دوی ته راغلو، دروغ اووئیل، نو دوی په یو پریشانې کښې پریوتل. یعنی اضطراب والا حالت کښې، کله ئې ورته ساحر او جادو اووئیلو، او کله شعر او شاعر او کله ئې ورته کاهن او کهانت اووئیلو، آیا د دوی خپل عقلونو په سترګو د عبرت سره اسمان ته اونه کتل؟ کله چې دوی د بعث بعد الموت انکار اوکړو، حال دا دې چې هغه په دوی باندې د پاسه دې، چې مونږ هغه بغیر د ستونو نه څنګه جوړ کړو، او مونږ هغې ته د ستورو په وجه ښکلا ورکړه، او په دې کښې څه چاودې عیب لګولو والا نشته، او آیا دوی زمکې ته اونه کتل، د إلى السماء په محل

باندې عطف دې، چې مونږ هغې لره د اوبو په سطح باندې ځنګه خوره کړه، او مونږ په هغې باندې غرونه کېښودل، چې هغه ئې ټينګه کړې ده، او مونږ په دې کښې هر قسم ښکلې پټې پيدا کړل، چې د هغې د ښکولو والې نه خوشحالي حاصلېږي، د سترګو کولاولو د پاره او د نصيحت حاصلولو د پاره، مفعول له دې، يعنې مونږ دا کاريګرې د سترګو کولاولو د پاره او د نصيحت حاصلولو د پاره اوکړه، د هر هغه بنده د پاره چې زمونږ تابعدارئې ته رجوع کونکې وي، او مونږ د اسمان نه برکتي يعنې ډير برکت والا اوبه نازل کړې، بيا مو په هغې سره باغونه زرغون کړل، او کټ کيدو والا د فصل غله، او د کهجورو په شان اوچتې اونې، (بسقت) حال مقدره دې، چې د هغې غونچې د يو بل د پاسه دي، يعنې کوم چې يو بل د پاسه لګيدلي دي، بندګانو ته د روزي ورکولو د پاره دا مفعول له دې، او مونږ په اوبو سره مړه زمکه ژوندئې کړه، په ميتا کښې مذکر او مؤنث دواړه برابر دي، دغه شان يعنې د دې ژوندي کولو په شان به د قبرونو نه وتل وي، بيا تاسو د دې نه ولې انکار کوئ، او (أفلم ينظروا) کښې استفهام تقريري دې، او معنى ئې دا ده چې هغوي مذکوره خيزونه يقينا اوکتل او پوهه پرې شول، او د دوي نه مخکښې قوم د نوح عليه السلام د فعل تانيث د قوم د معنى د وجې نه دې، او رس والو دا يو کوهې وو چې دلته به دوي خپلو ځناورو سره اوسيدل، او د بتانو عبادت به ئې کولو، وئيلې شوي دي، چې د دوي نبي حنظله بن صفوان عليه السلام وو، او وئيلې شوي دي، چې د دوي نه علاوه وو، قوم ثمود او د هود قوم عاديانو، فرعون، او د لوط عليه السلام رونړو (قوم) او ايکه والو، يعنې د شعيب عليه السلام قوم، ځنګل، بار والا، او د تبع قوم او هغه د يمن بادشاه وو، چا چې اسلام قبول کړې وو، او هغه خپل قوم ته د اسلام دعوت ورکړې وو، خو قوم د هغه اونه منل، ذکر شوې ټولو قومونو د قريشو په شان د رسولانو تکذيب اوکړو، نو په ټولو باندې عذاب ثابت شو، يعنې په ټولو باندې د عذاب نازليدل ثابت شول، لهذا د قريشو په انکار باندې دې ستاسو زړه تنګ نشي، آيا مونږ د اول ځل پيدا کولو باندې ستړې شو؟ يعنې مونږ د دې نه ستړې شوي نه يو، لهذا د دوباره پيدا کولو هم نه ستړې کيږو، بلکه دا خلق د پيدائش په باره کښې په شک کښې دي، او (نوې پيدائش) د قبرنه بيا پاسيدل دي.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** ق: د جمهورو په نيز قاف په سکون سره دې، او په شاذ قراة کښې کسرې، فتحې او ضمې باندې مبنى هم وئيلې شوې دې.

**قوله:** مَا آمن كُفَّارُ مكة بمحمد صلى الله عليه وسلم: شارح رحمه الله مذکوره عبارت محذوف ګنړلو سره اشاره اوکړه چې دا د قسم جوابِ محذوف دې.

**قوله:** بَل عجبوا أن جاءهم: الخ: جوابِ قسم سره دا د مشرکينو د مکې د اعراض خراب

احوال بیانوی،، مطلب دا چې هغوی نه صرف دا چې په محمد ﷺ باندې ایمان راونورو، بلکه ددې نه لویه خبره دا چې هم ددوی نه د یو رسول راتلل ددوی د پاره د ډیرې حیرانتیا خبره وه.

**قوله:** نرجع: په دې سره دې خبرې ته اشاره ده چې د (متنا) عامل محذوف دې، تقدیری عبارت دا دې أنرجع إذا متنا وكنا ترابا په دې حذف باندې رجع دلالت کوی.

**قوله:** غاية البعد: یعنی د عقل او د امکان نه ډیره لرې ده، چې د مرگ نه پس انسان بیا دوباره ژوندې شی.

**قوله:** مَرِيج: صفت مشبه دې، ماده مرج، شکی او مشکل خبره، د غیریقینې کیفیت، گډوډ حالت، یعنی دا مشرکینِ مکه د قرآن او رسول ﷺ په باره کښې په شک کښې پراته دی، دوی ته خپله په یوه خبره باندې قرار نشته، کله حضور علیه السلام ته ساحر، او قرآن ته سحر، او کله حضور ﷺ ته شاعر او قرآن ته شعر، او کله حضور ﷺ ته کاهن او قرآن ته کهانت وائی.

**قوله:** أفلم ينظروا: همزه په محذوف باندې داخل ده، تقدیری عبارت به دا رنگه شی، أعموا فلم ينظروا إلى السماء

**قوله:** كائنة: شارح علام كائنة محذوف راویستلو سره اشاره اوکړه چې فوقهم،د (السماء) نه حال دې.

**قوله:** إلى السماء: د ینظروا مفعول کیدو د وجې نه محلا منصوب دې.

**قوله:** كيف بنينها: کیف مفعول مقدم دې، او جمله بنینها د سماء نه بدل دې.

**قوله:** والأرض: د (إلى السماء) په محل باندې عطف دې، او والأرض د فعل محذوف (مددنا) د وجه هم منصوب کیدې شی، چې د هغې تفسیر د مابعد فعل کوی، أی مددناها په دې صورت کښې به د ما أضمر عامله على شريطة التفسير قبیل نه وی.

**قوله:** الزرع: مفسر علام الزرع محذوف منلو سره اشاره اوکړه چې الحصید صفت دې، الزرع موصوف کړې شو سره صفت ددې قائم مقام کړې شو، او حصید په معنی د محصود دې، یعنی هغه فعل چې د هغې شان کټ کیدل وی، لکه غنم، جوار وغیره.

**قوله:** والنخل بٰسِقٰت: باسقات، دالنخل نه حال مقدر دې، أی قدر الله لها السوق ځکه چې حال او ذوالحال د دوارو زمانه یوه وی، حالانکه (نخل) د إنبات (راختلو) په وخت کښې باسقات (اوږدې) نه وی، روستو بیا اوږدیږی.

**سوال**: نخل ذو الحال مفرد دي، او باسقات حال جمع دي، حالانکه په حال او ذوالحال کښې مطابقت ضروري وي؟

**جواب**: نخل د منافع کثيره او د ډير اوږدوالی د وجې نه قائم مقام د جمع دي.

**قوله**: لها طلع نضيد: دا که د نخل نه حال وي نو حال مترادفه دي، او که د باسقات د ضمير نه حال وي نو حال متداخله دي.

**قوله**: نَضِيد: صفت مشبه، په معنی د منضود، اسم مفعول، يو بل پسې لګيدلي (يو بل د پاسه).

**قوله**: يستوي فيه المذكر والمؤنث: ددې عبارت مقصد د يو اعتراض جواب دي، اعتراض دا دي چې ميته د بلدة صفت دي، بلدة مؤنث دي، او ميتا صفت مذکر دي، حالانکه په موصوف صفت کښې مطابقت ضروري وي؟

**جواب**: ميتا کښې مذکر او مؤنث دواړه برابر دي، لهذا د ميتا صفت واقع کيدل صحيح دي، خو په دې جواب کښې نظر دې، ځکه چې د فعيل وزن په مذکر او مؤنث کښې برابر وي، او ميتا د فعيل په وزن باندې نه دې، ددې صحيح جواب دا دې، چې بلدة دلته د مکان په معنی کښې دې.

**قوله**: الاستفهام للتقرير: صحيح به دا وه چې مفسر علام للإنكار والتوبيخ وئيلي وو.

**قوله**: والمعنى انهم نظروا وعلموا: د شارح دا عبارت زائد او بې محل دې،، ځکه چه که هغوی کتلې او پوهيدلې نو ايمان به ئې راوړې وو، خو داسې اونه شوه،

**قوله**: لمعنى قوم أي بمعنى أمة:

**قوله**: أصحاب الرس: رس کوهې، امام بخاری د رس معنی د معدن کړ ې ده، او ددې جمع ئې رساس خودلې ده.

**قوله**: عيينا: (س) د عَيِيَ يَعْيَ عَيًّا نه يعنی مونږ ستړې شو، عاجزه شو.

[ايات نوله: ١٦ - ٢٩]

{وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ وَنَعْلَمُ} حَال بِتَقْدِيرِ نَحْنُ {مَا} مَصْدَرِيَّة {تُوَسْوِسُ} تُحَدِّثُ {بِهِ} الْبَاء زَائِدَة أو للتعدية والضمير للإنسان {نَفْسُهُ وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ} بِالْعِلْمِ {مِنْ حَبْلِ الْوَرِيدِ} الإِضَافَة لِلْبَيَانِ وَالْوَرِيدَانِ عِرْقَانِ بِصَفْحَتَيِ الْعُنُق {إِذْ} مَنْصُوبَة بِاذْكُرْ مُقَدَّرًا {يَتَلَقَّى} يَأْخُذ وَيُثْبِت {الْمُتَلَقِّيَانِ} الْمَلَكَانِ الْمُوَكَّلَانِ بِالْإِنْسَانِ مَا يَعْمَلُهُ {عَنِ الْيَمِينِ وَعَنِ الشِّمَالِ} مِنْهُ {قَعِيدٌ} أَيْ قَاعِدَانِ وَهُوَ مبتدأ خبره ما قبله {مَا يَلْفِظُ مِنْ قَوْلٍ إِلَّا لَدَيْهِ رَقِيبٌ} حَافِظ {عَتِيدٌ} حَاضِر وَكُلّ مِنْهُمَا بِمَعْنَى الْمُثَنَّى {وَجَاءَتْ سَكْرَةُ الْمَوْتِ} غَمْرَته وَشِدَّته {بِالْحَقِّ} مِنْ أَمْر الْآخِرَة حَتَّى الْمُنْكِر لَهَا عِيَانًا وَهُوَ نَفْس الشِّدَّة {ذَلِكَ} أَيْ الْمَوْت {مَا كُنْتَ مِنْهُ

تَحِيدُ﴾ تَهرُب وتَفزَع ﴿وَنُفِخَ فِي الصُّورِ﴾ لِلبَعثِ ﴿ذَٰلِكَ﴾ اي يَوم النَّفخ ﴿يَوْمُ الْوَعِيدِ﴾ لِلكُفّار بِالعَذاب ﴿وَجَاءَتْ﴾ فِيهِ ﴿كُلُّ نَفْسٍ﴾ إلى المَحشَر ﴿مَعَهَا سَائِقٌ﴾ مَلَك يَسُوقُها إليه ﴿وَشَهِيدٌ﴾ يَشهَد عَلَيها بِعَمَلِها وَهُوَ الأيدِي وَالأرجُل وَغيرُهما وَيُقال لِلكافِر ﴿لَقَدْ كُنتَ﴾ فِي الدُّنيا ﴿فِي غَفْلَةٍ مِّنْ هَٰذَا﴾ النّازِل بِكَ اليَوم ﴿فَكَشَفْنَا عَنكَ غِطَاءَكَ﴾ أزَلنا غَفلَتَك بِمَا تُشاهِدُهُ اليَوم ﴿فَبَصَرُكَ الْيَوْمَ حَدِيدٌ﴾ حادّ تُدرِك بِهِ مَا أنكَرتَه فِي الدنيا ﴿وَقَالَ قَرِينُهُ﴾ المَلَك المُوَكَّل بِهِ ﴿هَٰذَا مَا﴾ اي الّذِي ﴿لَدَيَّ عَتِيدٌ﴾ حاضِر فَيُقال لِمالِك ﴿أَلْقِيَا فِي جَهَنَّمَ﴾ اي ألقِ ألقِ أو ألقِيَن وَبِهِ قَرَأ الحَسَن فَأُبدِلَت النُّون ألِفًا ﴿كُلَّ كَفَّارٍ عَنِيدٍ﴾ مُعانِد لِلحَقّ ﴿مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ﴾ كَالزَّكاةِ ﴿مُعْتَدٍ﴾ ظالِم ﴿مُّرِيبٍ﴾ شاكّ فِي دِينِه ﴿الَّذِي جَعَلَ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ﴾ مبتدأ ضُمِّنَ مَعنَى الشَّرط خَبَره ﴿فَأَلْقِيَاهُ فِي الْعَذَابِ الشَّدِيدِ﴾ تَفسِيرُه مِثل مَا تَقَدَّمَ ﴿قَالَ قَرِينُهُ﴾ الشَّيطان ﴿رَبَّنَا مَا أَطْغَيْتُهُ﴾ أضلَلتُه ﴿وَلَٰكِن كَانَ فِي ضَلَالٍ بَعِيدٍ﴾ فَدَعَوتُه فَاستَجابَ لِي وَقالَ هُوَ أطغانِي بِدُعائِهِ لَهُ ﴿قَالَ﴾ تَعالَى ﴿لَا تَخْتَصِمُوا لَدَيَّ﴾ اي مَا يَنفَع الخِصام هُنا ﴿وَقَدْ قَدَّمْتُ إِلَيْكُم﴾ فِي الدُّنيا ﴿بِالْوَعِيدِ﴾ بِالعَذابِ فِي الآخِرَة لَو لَم تُؤمِنوا وَلا بُدّ مِنهُ ﴿مَا يُبَدَّلُ﴾ يُغَيَّر ﴿الْقَوْلُ لَدَيَّ﴾ فِي ذَلِكَ ﴿وَمَا أَنَا بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيدِ﴾ فَأُعَذِّبُهُم بِغَيرِ جُرم وَظَلّام بِمَعنَى ذِي ظُلم لِقَولِهِ ﴿لَا ظُلْمَ الْيَوْمَ﴾

---

**ترجمه**: او مونږ انسان پيدا كړو، او مونږ د هغه په زړه كښې د نفس وسوسې اچولو باندې هم پوهيږو، (نعلم) د (نحن) د تقدير سره حال دې، (به) كښې باء زائده ده، يا د تعديه د پاره ده، او د (به) ضمير انسان طرف ته راجع دې، او مونږ انسان ته د علم په اعتبار سره د هغه د شه رگ نه هم نزدې يو، (حبل الوريد) كښې اضافت بيانيه دې، (وريدان) څټ طرف ته دوه رگونه دي، چې كله اخلي، او ليكي دوه اغستونكې، د ده عمل دوه فرشتې كومې چې په انسان باندې مقرر دي، د انسان ښى طرف او گس طرف ته ناستې وي، د (اذ) ناصب (اذكر) مقدر دې، (قعيد) په معنى د (قاعدان) دې، دا مبتدأ ده، ددې ماقبل ددې خبر دې، (انسان) يو لفظ د خلې نه ويستلې نه وي خو دا چې ده سره يو نگرانى كونكې موجود وي (قعيد او عتيد) كښې هر يو د تثنيه په معنى كښې دې، او د مرگ بې هوشي د آخرت حقيقت راوړو، يعنى د مرگ بې هوشي او سختوالې ئې راوړو، تردې چې څوک د آخرت نه انكار كونكې وو هغه به هم په كولاؤ سترگو اوينى، او هغه امر اخر نفس سختوالې دى، دا هغه مرگ دې، دكوم نه چه ته تښتيدلې اوويريدلې به، اود راپورته كيدو دپاره به په صور (شپيلۍ) كښې پهوک اووهلې شي او همدا د پهوكلو ورځ دكافرانو د پاره د وعيد ورځ به وى، او ددې وعيد په ورځ به هر نفس محشر طرف ته داسې راروان وى چې ده سره به يو شړونكې هم وى، يعنى فرشته به وى، چې هغه به ميدان حشر طرف ته شړى، او يو گواه به وى چې دده خلاف به دده د اعمالو گواهى وركوى، او هغه لاسونه خپې وغيره دى، او كافر ته به وئيلې شى، په دنيا كښې بې شكه ته په تا باندې نن ورځ راتلونكى دې مصيبت نه په غفلت كښې

وې، خو مونږ ستا د مخې نه پرده اوچته کړه، یعنی ستا غفلت مو ختم کړو، چې د هغې د وجې نه ته د نن ورځ راتلونکی مصیبت ګورې، نو نن ستا نظر ډیر تیز دې، یعنی د څه نه چه تا په دنیا کښې انکار کولو هغه وینی هغه چې په ده باندې مقرر وو، عرض به اوکړی، دا هغه څه دی کوم چې ماسره تیار دې، مالک او د هغه ملګری یعنی د دوزخ نګران ته به اووئیلې شی، اوغورزوه جهنم ته د حق دشمن هر ضدی کافر، یعنی اوغورزوه، یا ضرور اوغورزوه، او حسن ﴿أَلْقِیَنْ﴾ نون خفیفه سره وئیلې دې، نون خفیفه ئې په الف سره بدل کړو، کوم چې د خیر زکواة نه منع کونکې وی او د حد نه تیریدونکې ظالم وی، او په دین کښې شک اچونکې چا چې د الله تعالی سره بل معبود جوړ کړې وی، ﴿الَّذِی﴾ مبتدأ متضمن معنی د شرط لره دې، ددې خبر ﴿فَأَلْقِیَاهُ﴾ دې، داسې کس په سخت عذاب کښې واچوه، د دې تفسیر د ماقبل په شان دې، هغه شیطان کوم چې ده سره وه، وائی به اې زمونږ پروردګاره! ما دی ګمراه کړې نه دی، دې خو پخپله په لرې ګمراهۍ کښې وو، نو ما دې رااوبللو، نو دهٔ زما خبره اومنله، الله تعالی ارشاد به اوفرمائی، زما په مخکښې د جهګړې خبرې مه کوئ، دلته جهګړې هیڅ فائده درنکړی، ما خو مخکښې نه په دنیا کښې تاسو ته د آخرت د عذاب وعید رالیږلې وو، که تاسو ایمان راونړو نو دا به ضرور واقع کیږی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: توسوس: الوسوسة الصوت الخفی: وسوسه پټ آواز ته وائی، چې په هغې کښې په زړه کښې راتلونکې خیالات هم شامل دی، **ولقد خلقنا الانسان** جمله مستانفه ده، او په لقد کښې لام د قسم محذوف په جواب باندې داخل دې، **أی وعزتنا وجلالنا لقد خلقنا الانسان**، **الانسان** کښې الف لام د جنس دې، کوم چې په آدم او اولاد ادم دواړو باندې صادقیږی، مفسر علام حال **بتقدیرنحن** د اضافې سره مقصد د یو سوال جواب ورکول دی.

**سوال**: ونعلم، دا د خلقنا د ضمیر نه حال دې، او مضارع مثبت چې کله حال واقع شی نو بیا واؤ حالیه نه راځی، صرف ضمیر کافی وی، واؤ هغه وخت راځی، چې کله جمله اسمیه وی، او دلته داسې نه ده؟

**قوله**: ما توسوس: ﴿ما﴾ مصدریه هم کیدې شی، څنګه چې مفسر علام اشاره اوکړه تقدیری عبارت به دا وی، **ونعلم وسوسة نفسه إیاه** یعنی د انسان په زړه کښې د نفس وسوسې اچولو باندې مونږ خبردار یو، او ﴿ما﴾ موصوله هم کیدې شی، په دې صورت کښې به د ﴿به﴾ ضمیر عائد وی، او تقدیری عبارت به دا وی، **ونعلم الأمر الذی تحدث نفسه به** یعنی مونږ دې خبره باندې پوهیږو کومه چې دده نفس دده په زړه کښې اچوی، د ﴿ما﴾ موصوله په صورت کښې به د ﴿به﴾ باء زائده وی، او ضمیر به د ﴿ما﴾ موصوله طرف ته راجع وی، او که

(ما) مصدريه وي، نو باء به د تعديه وي، او ضمير به انسان ته راجع وي.

**قوله:** نحن أقرب إليه بالعلم:

**سوال:** د بالعلم اضافا څه فائده ده؟

**جواب:** مفسر علام د بالعلم اضافه كولو سره اشاره اوكړه چې دلته د قربت نه قربت علميه مراد دې، نه چې قربت جسميه، ځكه چې الله تعالى د جسم نه منزه دې،د حبل الوريد نه د ډير نيزديكت طرف ته اشاره ده، حبل رګ ته وائي، او حبل الوريد د شا رګ ته وائي، چې هغې ته رګ جا ن هم وئيلې شي، دا رګونه دوه وي، د څټ دواړو طرف ته يو يو، ددې كټ كيدو سره يقينا مرګ واقع كيږي، ذبيحه كښې دې دواړه رګونو لره كټكول ضروري دي.

**قوله:** ما يعمله:دا د يتلقى مفعول دې، يعنى انسان چې څه كوى هغه مقرر كړې شوې دواړه فرشتې اخلى، او ليكى ئې.

**قوله:** اي قاعدان:دا هم د يوې شبهې جواب دې.

**شبه:** جمله د المتلقيان نه حال دې، ذوالحال تثنيه ده، او حال مفرده دېوې حالانكه په دواړو كښې مطابقت ضروري دې؟

**دفع:** قعيد په وزن د فعيل دې، او د فعيل په وزن كښې واحد، تثنيه جمع ټول برابر دى، لهذا قعيد مفرد د تثنيه قائم مقام دې، قعيد مبتدأ او ددې ماقبل يعنى عن اليمين وعن الشمال ددې خبر مقدم دې، بيا جمله د المتلقيان نه حال دې.

**قوله:** لديه رقيب:رقيب مبتدأ مؤخر ده، او لديه خبرمقدم دې.

**قوله:** عتيد:تيار حاضر، دا د عتادنه دې، چې د هغې معنى ده، د ضرورت نه مخكښې د يو څيز ذخيره كول.

**قوله:** وهونفس الشدة:غوره به وه كه مفسر رحمه الله دا عبارت حذف كړې وې، ځكه چه د ماقبل په موجودګئ كښې ددې هيڅ ضرورت نشته، البته كه د هُو مرجع امر د آخرت وى اود شدة نه مراد امر شديد وى اوهغه اهوال د آخرت دى نو څه خبره جوړيدې شى.

**قوله:** ألق ألق: دا دې خبرې طرف ته اشاره ده چه ألقيا په اصل كښې ألق، ألق وو، تكرار د فعل سره يعنى واچوه، واچوه، اويوفعل حذف كولو سره دهغې ضمير فاعل ئې د اول فعل سره ملاؤكړو، چه دهغې په وجه ضمير مثنٰى شو.

**قوله:** أوألقين:ددې مطلب دادې چه په ألقيا كښې الف دتثنيه نه دې، بلكه نون تاكيد

خفیفه سره بدل کړې شوې دې.

**سوال:** نون تاکید خفیفه د الف نه په حالت د وقف کښې بدلولې شی نه چه په وصل کښې؟

**جواب:** حالت د وصل ئې په حالت د وقف باندې محمول کړې دې اوبعضې حضراتو وئیلی دی چه اَلقِیا د تثنیه صیغه ده، او مراد ددې نه سائق او شهید دې.

**قوله:** عنید: عناد ساتونکې، مخالف، ضدی، سرکش، ددې جمع عُنُدْ راځی.

**قوله:** الشدید: یعنی اَلقِیا کښې د تثنیه راوړلو چې کومې درې توجیهات مخکښې بیان کړې شوی دی، هم هغه به په فاَلقِیه کښې وی.

**قوله:** قال قرینه: الشیطان ربنا ما اطغیته دا د کافر د قول (هوا طغانی بدعائه) په جواب کښې دې، یعنی چې کله کافر د الله تعالی په مخکښې عذر پیش کولو سره اووائی، چې دې شیطان څه گمراه کړې ووم، نو ددې په جواب کښې به شیطان اووائی ربنا ما اطغیته خو د مفسر علام د پاره مناسب وو چې هواطغانی ئې مقدم کړې وې.

**قوله:** لاتختصموا: دا کافرانو او د هغوی ملگرو ته خطاب دې.

**قوله:** وقدقدمت الیکم بالوعید: ظاهر دا ده چې دا د لاتختصموا نه حال دې، خو دا صحیح ن ده، ځکه چې د حال او د ذوالحال زمانه یوه وی، حالانکه دلته داسې نه ده، ځکه چې تقدیم د وعید په دنیا کښې شوې دې، او اختصام په اخرت کښې.

**قوله:** ولامفهوم له: یعنی لاظلم الیوم له مفهوم مخالف مراد نه دې، یعنی دا مطلب نه دې، چې نن ظلم نشته، او د نن نه علاوه به ظلم وی.

**[ایاتوله: ٣٠-٤٥]**

(يَوْمَ) نَاصِبه ظَلَّام (نَقُولُ) بِالنُّونِ وَالْيَاء (لِجَهَنَّمَ هَلِ امْتَلَأْتِ) اِسْتِفْهَام تَحْقِيق لِوَعْدِهِ بِمَلْئِهَا (وَتَقُولُ) بِصُورَةِ الاسْتِفْهَام كَالسُّؤَالِ (هَلْ مِن مَّزِيدٍ) أيْ لا أسَع غَيْر مَا امْتَلَأْتُ بِهِ أيْ قَدْ امتلأت (وَأُزْلِفَتِ الْجَنَّةُ) قُرِّبَتْ (لِلْمُتَّقِينَ) مَكَانًا (غَيْرَ بَعِيدٍ) مِنْهُمْ فَيَرَوْنَهَا وَيُقَال لَهُمْ (هَٰذَا) الْمَرْئِيّ (مَا تُوعَدُونَ) بِالتَّاءِ وَالْيَاء فِي الدُّنْيَا وَيُبْدَل مِنْ لِلْمُتَّقِينَ قَوْله (لِكُلِّ أَوَّابٍ) رَجَّاع إِلَى طَاعَة اللّٰه (حَفِيظٍ) حَافِظ لِحُدُودِهِ (مَّنْ خَشِيَ الرَّحْمَٰنَ بِالْغَيْبِ) خَافَهُ وَلَمْ يَرَهُ (وَجَاءَ بِقَلْبٍ مُّنِيبٍ) مُقْبِل عَلَى طَاعَته وَيُقَال لِلْمتقين ايضا (ادْخُلُوهَا بِسَلَامٍ) سَالِمِينَ مِنْ كُلّ مَخُوف أَوْ مَعَ سَلَام أَيْ سَلِّمُوا وَادْخُلُوا (ذَٰلِكَ) الْيَوْم الَّذِي حَصَلَ فِيهِ الدُّخُول (يَوْمُ الْخُلُودِ) الدَّوَام فِي الجنة (لَهُم مَّا يَشَاءُونَ فِيهَا وَلَدَيْنَا مَزِيدٌ) زِيَادَة عَلَى مَا عملوا وطلبوا (وَكَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم مِّن قَرْنٍ) أَيْ أَهْلَكْنَا قَبْل كُفَّار قُرَيْش قُرُونًا كَثِيرَة مِنَ الْكُفَّار (هُمْ أَشَدُّ مِنْهُم بَطْشًا) قُوَّة (فَنَقَّبُوا)

فتشوا ﴿فِي الْبِلَادِ هَلْ مِنْ مَّحِيصٍ﴾ لهم أو لغيرهم من الموت فلم يجدوا ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ﴾ المذكور ﴿لَذِكْرَىٰ﴾ لعظة ﴿لِمَن كَانَ لَهُ قَلْبٌ﴾ عقل ﴿أَوْ أَلْقَى السَّمْعَ﴾ استمع الوعظ ﴿وَهُوَ شَهِيدٌ﴾ حاضر بالقلب ﴿وَلَقَدْ خَلَقْنَا السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ﴾ أولها الأحد وآخرها الجمعة ﴿وَمَا مَسَّنَا مِن لُّغُوبٍ﴾ تعب نزل ردًا على اليهود في قولهم إن الله استراح يوم السبت وانتفاء التعب عنه لتنزهه تعالى عن صفات المخلوقين ولعدم المماسة بينه وبين غيره ﴿إِنَّمَا أَمْرُهُ إِذَا أَرَادَ شَيْئًا أَن يَقُولَ لَهُ كُن فَيَكُونُ﴾ ﴿فَاصْبِرْ﴾ خطاب للنبي صلى الله عليه وسلم ﴿عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ﴾ أي اليهود وغيرهم من التشبيه والتكذيب ﴿وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ﴾ صل حامدًا ﴿قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ﴾ أي صلاة الصبح ﴿وَقَبْلَ الْغُرُوبِ﴾ أي صلاة الظهر والعصر ﴿وَمِنَ اللَّيْلِ فَسَبِّحْهُ﴾ أي صل العشاءين ﴿وَأَدْبَارَ السُّجُودِ﴾ بفتح الهمزة جمع دبر وكسرها مصدر أدبر أي صل النوافل المسنونة عقب الفرائض وقيل المراد حقيقة التسبيح في هذه الأوقات ملابسا للحمد ﴿وَاسْتَمِعْ﴾ يا مخاطب مقولي ﴿يَوْمَ يُنَادِ الْمُنَادِ﴾ هو إسرافيل ﴿مِن مَّكَانٍ قَرِيبٍ﴾ من السماء وهو صخرة بيت المقدس أقرب موضع من الأرض إلى السماء يقول أيتها العظام البالية والأوصال المتقطعة واللحوم المتمزقة والشعور المتفرقة إن الله يأمركن أن تجتمعن لفصل القضاء ﴿يَوْمَ﴾ بدل من يوم قبله ﴿يَسْمَعُونَ﴾ أي الخلق كلهم ﴿الصَّيْحَةَ بِالْحَقِّ﴾ بالبعث وهي النفخة الثانية من إسرافيل ويحتمل أن تكون قبل ندائه وبعده ﴿ذَٰلِكَ﴾ أي يوم النداء والسماع ﴿يَوْمُ الْخُرُوجِ﴾ من القبور وناصب يوم ينادي مقدرا أي يعلمون عاقبة تكذيبهم ﴿إِنَّا نَحْنُ نُحْيِي وَنُمِيتُ وَإِلَيْنَا الْمَصِيرُ﴾ ﴿يَوْمَ﴾ بدل من يوم قبله وما بينهما اعتراض ﴿تَشَقَّقُ﴾ بتخفيف الشين وتشديدها بإدغام التاء الثانية في الأصل فيها ﴿الْأَرْضُ عَنْهُمْ سِرَاعًا﴾ جمع سريع حال من مقدر أي فيخرجون مسرعين ﴿ذَٰلِكَ حَشْرٌ عَلَيْنَا يَسِيرٌ﴾ فيه فصل بين الموصوف والصفة بمتعلقها للاختصاص وهو لا يضر وذلك إشارة إلى معنى الحشر المخبر به عنه وهو الإحياء بعد الفناء والجمع للعرض والحساب ﴿نَّحْنُ أَعْلَمُ بِمَا يَقُولُونَ﴾ أي كفار قريش ﴿وَمَا أَنتَ عَلَيْهِم بِجَبَّارٍ﴾ تجبرهم على الإيمان وهذا قبل الأمر بالجهاد ﴿فَذَكِّرْ بِالْقُرْآنِ مَن يَخَافُ وَعِيدِ﴾ وهم المؤمنون.

**ترجمه**: په کومه ورځ چې مونږ به د دوزخ نه تپوس اوکړو آيا ته ډک شوې؟ د ﴿يوم﴾ ناصب ﴿ظلام﴾ دې، نقول په نون او ياء سره دې، استفهام د جهنم نه، يعنى د هغه د ډکولو د وعدې د تحقيق د پاره دې، او جهنم به جواب ورکړى، آيا نور هم زيات شته؟ په ما کښې چې څه اچوڼې شوې دى د هغې نه زيات ګنجائش نشته، يعنى څه ډک شوم، او جنت به پرهيزګارانو د پاره بالکل نزدې کړې شي، دومره چې لرې شان به هم د هغوى نه لرې نه وى، نو دوى به هغه ګورى، او دوى ته به وئيلې شي چې دا څه چې په نظر راځى دا هغه څه دى چې تاسو سره ئې په دنيا کښې وعده کړې شوې وه، په ياء او تاء سره، او للمتقين نه دا قول ﴿لكل أواب﴾ بدل دې، د هر هغه کس د پاره چې د الله اطاعت طرف ته رجوع کونکې او د حدودو حفاظت

کونکې زړه راوړې وي، چه د رحمن غائبانه ویره لري یعنی د هغه نه ویریږي حالانکه هغه ئې لیدلې نه دې، او د هغه د اطاعت طرف ته متوجه کیدونکې زړه ئې راوړلې وی او پرهیزګارانو ته به دا هم اووئیلې شی، په دې کښې سلامتیا سره داخل شئ یعنی د هر خفګان نه بې ویرې، یا د سلامتئ سره، یا سلام کوئ او داخل شې دا ورځ چې په کومه ورځ به داخلیدل کیږی، د همیشه د پاره په جنت کښې د داخلیدو ورځ ده، دوی د پاره چې هلته دوی څه غواړی همیشه د پاره به ورته میلاویږی، بلکه مونږ سره د دوی د طلب او د عمل نه زیات دی، او د دوی نه مخکښې هم مونږ ډیر امتونه هلاک کړی دی، یعنی د قریشو نه مخکښې د کافرانو ډیرو امتونو لره مونږ هلاک کړی دی، او هغوی ددوی نه په طاقت کښې زیات وو، ټول ښارونه ئې کتلې وو (ګرځیدلی وو) آیا دوی ته او نورو ته د مرګ نه د تختیدو ځائې میلاو شو؟ میلاو نشو، نو بې شکه په دې کښې هر زړه والا (د عقل خاوند) د پاره نصیحت دې، او د هغه چا د پاره چې د زړه په حاضرئ د نصیحت اوریدو د پاره غوږ کیږدی، او یقینا مونږ اسمانونه او زمکه او څه چې د دې په مینځ کښې دی په شپږ ورځو کښې پیدا کړل په هغې کښې اولنئ ورځ اتوار ده، او آخری ورځ جمعه ده، او مونږ ته ستړیوالې بالکل په دې رارسیدلې، دا ایت د یهودو د دې قول د رد د پاره نازل شوې دې چې د هفتې په ورځ الله تعالی ارام اوکړو، او ستړی والې دده نه منتفی کیدل د الله تعالی د مخلوق د صفاتو نه د منزه کیدو د وجې دی، او دده او دده د غیر په مینځ کښې د عدم مجانست د په وجه دې، د هغه شان خو دا دې چې کله د یو څیز اراده اوکړی نو هغه دې څیز د پاره (کن) لفظ اووائی نو هغه څیز موجود شی، نو دا یعنی یهود وغیره د تشبیه او د تکذیب چې کومه خبره کوی، تاسو په دې باندې صبر کوئ، دا حضور ﷺ ته خطاب دې، او د خپل رب د حمد سره تسبیح بیان کړه، حمد بیانولو سره مونځ کوه د نمر راختلو نه مخکښې یعنی د سحر مونځ او د نمر پریوتلو نه مخکښې یعنی د ماسپښین او مازیګر مونځ او د شپې په څه وخت کښې تسبیح بیانوه. یعنی د ماښام او ماسخوتن مونځ اوکړې او د مونځ نه پس هم أدبار د همزې په فتحې سره د دُبر جمع ده، او د همزې په کسرې سره، د (أدبر) مصدر دې، مطلب دا دې چې د فرائضو نه پس نوافل مسنونه ادا کړئ، او وئیلې شوې دی چې په دې وختونو کښې د حمد سره تسبیح وئیل مراد دی، او اې مخاطب زما خبرې لره واوره، په کومه ورځ به چه یو آواز کونکې او هغه اسرافیل علیه السلام دې، اسمان نه د نزدې ځائې نه اواز اوکړی، او هغه د بیت المقدس صخره (کاڼړې) دې، صخره د زمکې نه اسمان طرف ته د ټولو نزدې ځائې دې، او هغه اواز کونکې به اواز اوکړی اې وراستو شوو هډوکو، او جدا شئ جوړونو، او ټکړې ټکړې غوښو، او خواره ویختو، الله تاسو ته حکم درکوی چې د مقدمې د فیصلې د پاره راجمع شئ، په کومه ورځ به چه د پاسیدلو د پاره اواز ټول مخلوق واوری، او دا به د اسرافیل علیه السلام د

دویم خل شپیلئ وی، او دا احتمال هم دی، چې دا شپیلې به د اسرافیل علیه السلام اواز نه مخکښې یا روستو وی، هغه د اواز او د اوریدو ورځ به د قبرونو نه د وتلو ورځ وی، او د یوم ناصب ینادی مقدر دی، یعنی دوی به د تکذیب د انجام نه خبر شی، بې شکه مونږ ژوندی کول کوو، او مونږ مړه کول کوو، او زمونږ طرف ته واپس راتلل دی، په کومه ورځ چې زمکه به په دوی باندې اوشلیږی، داسې حالت کښې چې دوی به توندی کونکی وی، تشقق، د شین تخفیف او تشدید سره، تاء ثانی په اصل کښې مدغم کولو سره، نو په منډه به روځی، سراعا د سریع جمع ده، سراعا د مقدر نه حال دی، أی فیخرجون مسرعین دا راجمع کول مونږ ته دیر اسان دی، په دې کښې د صفت او موصوف په مینځ کښې د صفت د متعلق فصل دی، اختصاص د پاره، او دا (فصل) مضر نه دی، او (ذلک) سره د حشر د هغې طرف ته اشاره ده، کوم چې د (ذلک) مخبربه دی، او هغه معنی (د فناء نه پس ژوندې کول او د پیشئ او حساب د پاره راجمع کول دی) مونږ ته ښه معلوم دی څه چه کفارِ مکه وائی او تاسو په دوی باندې زبردستی کونکی نه ئې، چې دوی په ایمان راوړلو باندې مجبور کړئې، او دا حکم د جهاد د اجازت نه مخکښې وو، نو تاسو د قرآن په ذریعه پوهه کوئ هغه چا لره چې زما د وعید نه اویریدل او هغه مومنان دی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: یوم: ناصبه ظلام، د یوم منصوب کیدو دوه وجې کیدې شی، اول دا چې (اذکر) فعل محذوف ناصب وی، دویم دا چې په مخکښې آیت کښې ظلام ناصب وی، مفسر علام دویم صورت اختیار کړې دې.

**قوله**: هل امتلأت: استفهام تحقیقی یعنی تقریری دی، الله تعالی چې د جهنم سره کومه د ډکولو وعده کړې ده د هغې د پورا کولو او ثابتولو د پاره، یعنی ما چې تاسره د ډکولو کومه وعده کړې وه هغه پوره شوه؟ جهنم به د استفهام سوالی په توګه جواب ورکړی، آیا نور شته؟ یعنی اوس نور په ما کښې ځائې نشته، جواب اګر که په صورت د استفهام دی، خو سوال په معنی د خبر دی، چې د هغې طرف ته مفسر علام په (قد امتلأت) سره اشاره کړې ده.

**سوال**: د جهنم د سوال په صورت کښې په جواب ورکولو کښې څه فائده ده؟

**جواب**: چه په سوال اوجواب کښې مطابقت اوشی.

**قوله**: مکاناً:

**سوال**: مکاناً محذوف منلو څه فائده ده؟

**جواب** : مکانا محذوف منلو سره دې خبرې ته اشاره اوشوه چې غیر بعید د جنة صفت نه دی، بلکه د مکانا محذوف صفت دی، ځکه چې که د جنت صفت وی نو غیر بعیدة به وو.

**قوله:** غَيْرَ بَعِيْدٍ: دأزلفت الجنة تاكيد دي، ځكه چې د دواړو مفهوم يو دې، لكه عرب وائي عَزِيْزٌ غَيْرَ ذَلِيْلٍ (يا) قَرِيْبٌ غَيْرَ بَعِيْدٍ.

**قوله:** لِكُلِّ اَوَّابٍ: د متقين نه په اعادې د جار سره بدل دې، او دا هم وئيلې شوې دي چې هذا موصوف او ماتوعدون ددې خبر دې، موصوف صفت مبتدأ، او كل اواب ددې خبرې دې.

**قوله:** غَائِبًا وَلَمْ يَرَهُ: ددې عبارت د اضافې مقصد دا خودل دي، چې بالغيب حال دې، يا مفعول، يعنى د رحمان نه حال دې، يعنى هغه د رحمن نه اويريدو، حال دا دې چې هغه رحمن د نظر نه غائب دې، يا د خَشِيَ د فاعل نه حال دې، يعنى هغه د الله نه ويريدلو، په داسې حال كښې چې الله ئې ليدلې نه دې.

**قوله:** لَهُمْ: دلهم داضافې مقصد دا خودل دي، چې لهم، محيص مبتدأ خبرِ محذوف دې، او (من)زائده دې، او استفهام انكارى دې، مطلب دا دې چې مخكښې اُمتيانو دنيا چاڼ كړه خو هغوى ته د مرګ نه ورته پناه ملاو نشوه، دغه شان اې د مكې اوسيدونكو تاسو ته به هم، د مرګ نه پناه ملاو نشي.

**قوله:** مِن لغوب: (من) په فاعل باندې زائد دې، لغوب(ن)مصدر دې، په معنى د (تعب) ستړيوالې.

**قوله:** لِعَدَمِ الْمُجَانسة: په بعضو نسخو كښې عدم المماثلة دې، يعنى د خالق او د مخلوق په مينځ كښې څه قسم جنسى ربط او تعلق نه كيدو د وجې دې.

**قوله:** مَقُوْلِي: مقولى مقدر منلو سره ئې اشاره اوكړه، چې مقولى د استمع مفعول دې.

**قوله:** يَعْلَمُوْنَ عَاقِبَةَ تَكْذِيبِهِمْ: دا د (يوم ينادِ المناد) عامل ناصب دې، د مفسر رحمه الله د پاره بهتره دا وه چې عامل ئې د معمول سره ذكر كړې وې،

**قوله:** يوم تشق: دا د خپل ماقبل (يوم الخروج)نه بدل دې، او إِنَّا نَحْنُ نحي په مينځ كښې جمله معترضه ده.

**قوله:** بِإِدغام: التاء الثانية في الأصل فيها، تتشقق اصل كښې تتشقق وو، اصل كښې تاء ثانيه په شين كښې مدغم كړې شوه.

**قوله:** سِرَاعًا: ديخرجون د ضمير نه حال دې، او د [عنهم] د ضمير نه هم حال كيدې شي.

**قوله:** فِيهِ فَصْلٌ بَيْنَ الموصوف والصفة بِمُتَعَلِّقِهَا: علينا د موصوف او صفت په مينځ كښې فاصل دې، تقديرى عبارت دا دې، ذلك حشر يسير علينا د اختصاص د پاره علينا جار مجرور

مقدم کړي شو، يعنى دا راجمع کول هم زمونږ د پاره آسان دى، او فصل چونکه د اجنبى نه دي، ځکه مضر هم نه دي.

**قوله**: ذٰلِكَ إِشَارَةٌ إِلَى مَعْنَى الحشر المخبر به عنه: د مذکوره عبارت راوړلو مقصد د يو سوال جواب دي،

**سوال**: ذلك حشر علينا يسير کښې مخبرعنه او مخبربه دواړه يو دى، ځکه چې د ذلک مشاراليه حشر دي، کوم چې مخبرعنه دي، او يسير مخبربه دي، او حشر موصوف يسير ئې صفت او موصوف صفت يو څيز وى، نو په دې طريقې سره مخبربه او مخبر عنه دواړه يو شو، حالانکه دا جدا پکار دى؟

**جواب**: خلاصه دا ده چې د ذلک مشاراليه حشر نه دي، بلکه ددې معنى ده، يعنى إحياء بعد الفناء او جمع بين الجزاء المتفرقة کوم چې مخبرعنه دي، او يسير مخبربه دي، دغه شان دواړه جدا شول، فلا اعتراض عليه.

## [٥١] سورة الذاريات

### سورة الذاريات مكية ستون اية

سورة الذاريات مکى دې په دې کښې شپېته آيتونه دى.

[اياتونه: ١ - ٢٣]

﴿وَالذّٰرِيٰتِ﴾ الرِّيَاحِ تَذْرُو التُّرَابَ وَغَيْرَهُ ﴿ذَرْوًا﴾ مَصْدَرٌ وَيُقَالُ تَذْرِيهِ ذَرْيًا تَهُبُّ بِهِ ﴿فَالْحٰمِلٰتِ﴾ السُّحُبِ تَحْمِلُ الْمَاءَ ﴿وِقْرًا﴾ ثِقْلًا مَفْعُولُ الحاملات ﴿فَالْجٰرِيٰتِ﴾ السُّفُنِ تَجْرِي عَلَى وَجْهِ الْمَاءِ ﴿يُسْرًا﴾ بِسُهُولَةٍ مَصْدَرٌ فِي مَوْضِعِ الْحَالِ أَيْ مُيَسَّرَةً ﴿فَالْمُقَسِّمٰتِ أَمْرًا﴾ الْمَلَائِكَةِ تُقَسِّمُ الْأَرْزَاقَ وَالْأَمْطَارَ وَغَيْرَهَا بَيْنَ الْبِلَادِ وَالْعِبَادِ ﴿إِنَّمَا تُوعَدُونَ﴾ مَا مَصْدَرِيَّةٌ أَيْ وَعْدُهُمْ بِالْبَعْثِ وَغَيْرِهِ ﴿لَصَادِقٌ﴾ لَوَعْدٌ صَادِقٌ ﴿وَإِنَّ الدِّينَ﴾ الْجَزَاءَ بَعْدَ الْحِسَابِ ﴿لَوَاقِعٌ﴾ لَا محالة ﴿وَالسَّمَاءِ ذَاتِ الْحُبُكِ﴾ جَمْعُ حَبِيكَةٍ كَطَرِيقَةٍ وَطُرُقٍ أَيْ صَاحِبَةِ الطُّرُقِ فِي الْخِلْقَةِ كَالطَّرِيقِ فِي الرمل ﴿إِنَّكُمْ﴾ يَا أَهْلَ مَكَّةَ فِي شَأْنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْقُرْآنِ ﴿لَفِي قَوْلٍ مُّخْتَلِفٍ﴾ قِيلَ شَاعِرٌ سَاحِرٌ كَاهِنٌ شِعْرٌ سِحْرٌ كهانة ﴿يُؤْفَكُ﴾ يُصْرَفُ ﴿عَنْهُ﴾ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْقُرْآنِ أَيْ عَنِ الْإِيمَانِ بِهِ ﴿مَنْ أُفِكَ﴾ صُرِفَ عَنِ الْهِدَايَةِ فِي عِلْمِ اللهِ تعالى ﴿قُتِلَ الْخَرّٰصُونَ﴾ لُعِنَ الْكَذَّابُونَ أَصْحَابُ الْقَوْلِ الْمُخْتَلِفِ ﴿الَّذِينَ هُمْ فِي غَمْرَةٍ﴾ جَهْلٍ يَغْمُرُهُمْ ﴿سَاهُونَ﴾ غَافِلُونَ عَنْ أَمْرِ الْآخِرَةِ ﴿يَسْأَلُونَ﴾ النَّبِيَّ اسْتِفْهَامَ اسْتِهْزَاءٍ ﴿أَيَّانَ يَوْمُ الدِّينِ﴾ أَيْ مَتَى مَجِيئُهُ وَجَوَابُهُمْ يَجِيءُ ﴿يَوْمَ هُمْ عَلَى النَّارِ يُفْتَنُونَ﴾ أَيْ يُعَذَّبُونَ فِيهَا وَيُقَالُ لَهُمْ حِينَ التَّعْذِيبِ ﴿ذُوقُوا فِتْنَتَكُمْ﴾ تَعْذِيبَكُمْ ﴿هٰذَا﴾ التَّعْذِيبُ ﴿الَّذِي كُنْتُمْ بِهِ تَسْتَعْجِلُونَ﴾ فِي الدُّنْيَا اسْتِهْزَاءً ﴿إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنّٰتٍ﴾ بَسَاتِينَ ﴿وَعُيُونٍ﴾ تَجْرِي فِيهَا ﴿آخِذِينَ﴾ حَالٌ مِنَ الضَّمِيرِ فِي خَبَرِ إِنَّ ﴿مَا آتٰهُمْ﴾ أَعْطَاهُمْ ﴿رَبُّهُمْ﴾ مِنَ الثَّوَابِ ﴿إِنَّهُمْ كَانُوا قَبْلَ ذٰلِكَ﴾ أَيْ دُخُولِهِمْ

الْجَنَّةَ ﴿مُحْسِنِينَ﴾ فِي الدُّنْيَا ﴿كَانُوا قَلِيلًا مِنَ اللَّيْلِ مَا يَهْجَعُونَ﴾ يَنَامُونَ وَمَا زَائِدَةٌ وَيَهْجَعُونَ خَبَرُ كَانَ وَقَلِيلًا ظَرْفٌ أَيْ يَنَامُونَ فِي زَمَنٍ يَسِيرٍ مِنَ اللَّيْلِ ويصلون اكثره ﴿وَبِالْأَسْحَارِ هُمْ يَسْتَغْفِرُونَ﴾ يَقُولُونَ اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لَنَا ﴿وَفِي أَمْوَالِهِمْ حَقٌّ لِلسَّائِلِ وَالْمَحْرُومِ﴾ الَّذِي لَا يَسْأَلُ لتعففه ﴿وَفِي الْأَرْضِ﴾ مِنَ الْجِبَالِ وَالْبِحَارِ وَالْأَشْجَارِ وَالثِّمَارِ وَالنَّبَاتِ وَغَيْرِهَا ﴿آيَاتٌ﴾ دَلَالَاتٌ عَلَى قُدْرَةِ اللّٰهِ سبحانه وتعالى ووحدانيته ﴿لِلْمُوقِنِينَ﴾ ﴿وَفِي أَنْفُسِكُمْ﴾ آيَاتٌ أَيْضًا مِنْ مَبْدَإِ خَلْقِكُمْ إِلَى مُنْتَهَاهُ وَمَا فِي تَرْكِيبِ خَلْقِكُمْ مِنَ الْعَجَائِبِ ﴿أَفَلَا تُبْصِرُونَ﴾ ذٰلِكَ فَتَسْتَدِلُّونَ بِهِ عَلَى صانعه وقدرته ﴿وَفِي السَّمَاءِ رِزْقُكُمْ﴾ أَيِ الْمَطَرُ الْمُسَبَّبُ عَنْهُ النَّبَاتُ الَّذِي هُوَ رِزْقٌ ﴿وَمَا تُوعَدُونَ﴾ مِنَ الْمَآبِ وَالثَّوَابِ وَالْعِقَابِ أَيْ مَكْتُوبٌ ذٰلِكَ فِي السماء ﴿فَوَرَبِّ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ إِنَّهُ﴾ أَيْ مَا تُوعَدُونَ ﴿لَحَقٌّ مِثْلَ مَا أَنَّكُمْ تَنْطِقُونَ﴾ بِرَفْعِ مِثْلُ صِفَةٌ وَمَا مَزِيدَةٌ وَبِفَتْحِ اللَّامِ مُرَكَّبَةٌ مَعَ مَا الْمَعْنَى مِثْلَ نُطْقِكُمْ فِي حَقِيقَتِهِ أَيْ مَعْلُومِيَّتِهِ عِنْدَكُمْ ضَرُورَةً صُدُورِهِ عَنْكُمْ

---

**ترجمه**: شروع کوم د الله په نوم سره چې ډير مهربانه او ډير رحم کولو والا دې، قسم دې په هغه هواګانو باندې چې دوړې وغيره لره خورې کړی، ﴿ذروا﴾ مصدر دې، او وئيلې شی تذريه ذريا يعنی هواګانې دوړو لره الوزوی، بيا قسم دې د هغه اوريځو چې د اوبو دروندوالې اوچتونکې دی، ﴿وقرا﴾ د حاملات مفعول دې بيا قسم دې، د هغه کشتيانو چې د اوبو په سطح باندې په سهولت سره ګرځی، يُسْرًا مصدر دې، د حال په ځاې باندې، يعنی حال دا چې هغه په تيزرفتارئ سره روانې وی، بيا قسم دې په هغه فرشتو باندې چې يو لوئ کار لره يعنی رزق باران وغيره د بندګانو او ښاريو په مينځ کښې تقسيمونکې دی او کومه چې تاسو سره وعده کيږی، ﴿ما﴾ مصدريه ده، يعنی دوی سره د بعث وغيره وعده رشتونې ده، او د حساب نه پس د اعمالو بدله بې شکه راتلونکې ده، او قسم دې د لارو والا اسمان باندې حُبُک د حبيکة جمع ده، څنګه چه طُرُق د طريقة جمع ده، يعنی هغه اسمان پيدائشی توګه باندې لارو والا دې، څنګه چې په شکه کښې لارې وی، بې شکه تاسو اې مکې والوا د حضور ﷺ او قرآن په شان کښې مختلف خبرې کوئ، د نبی عليه السلام په باره کښې اووئيلې شول، چې جادوګر دې، کاهن دې، او د قرآن په باره کښې اووئيلې شول چې شعر دې، جادو دې، کهانت دې، د دې نه يعنی د نبی عليه السلام او د قرآن نه، يعنی په دوی باندې ايمان نه هغه کس اړولې شی کوم کس چې د الله په علم کښې د هدايت نه اوريدلې شوې وی، تباه دې شی، بې سنده په اټکل سره خبرې کونکې، لعنتی شول مختلف خبرو والا، دروغژن کوم چې په جهالت کښې غرق دی، چا لره چې جهالت غرق کړې دی، او د آخرت د کار نه غافل دی، د نبی عليه السلام نه د استهزاء په توګه تپوس کوی چې د قيامت ورځ به کله وی؟ يعنی هغه به کله راځی؟ ددې جواب دا دې چې قيامت به په هغه ورځ راځی په کومه ورځ چې دوی په اور کښې ويريت کړې شی، يعنی دوی ته به په اور کښې عذاب

ورکولې شي، او عذاب ورکولو وخت کښې به دوی ته اوونيلې شي د خپلې سزا مزه اوڅکئ، دا هغه عذاب دې چې په هغې کښې به تاسو په دنيا کښې د توقو په توګه توندي کوله، بې شکه تقوی والا به په باغونو کښې او چينو کښې وي، کومې چې به په باغونو کښې جاري وي، ددوی رب چې دوی ته څه ثواب ورکړی، هغه به اخلي، دوی خو د دې نه مخکښې په دنيا کښې نيکان وو، او دوی به د شپې دير کم خوب کولو، يَهجعون په معنی د يَنامون دې، او يهجعون د (کان) خبر دې، او قليلا ظرف دې، يعنی د شپې به په کمه حصه کښې اوده کيدل، او په اکثره حصه کښې به ئې مونځ کولو، اود سحر په وخت به ئې استغفار کولو، دا به ئې وئيل اللهم اغفرلنا او ددوی په مالونو کښې د غوښتونکو او د نه غوښتونکو حق دې، او محروم هغه کس دې چې د سوال نه د بچ کيدو د وجه نه سوال نه کوی، (چې د هغې په نتيجه کښې محروم پاتې شي) او په زمکه کښې د يقين کونکو د پاره په غرونو، سيندونو، اونو، ميوو او فصلونو وغيره کښې ديرې نښې دی، کومې چې د الله په قدرت او وحدانيت باندې دلالت کوی، او خپله ستاسو په ذات کښې هم نښې دی، ستاسو د پيدائش د شروع نه واخله تر د آخره پورې، او هغه چې ستاسو په تخليق کښې د عجائبات دی، آيا تاسو په دې کښې غور نه کوئ، چې تاسو ددې نه د هغه په صنعت او قدرت باندې استدلال اوکړئی، او په اسمانونو کښې ستاسو رزق يعنی باران چې د فصل سبب دې، او هغه رزق دې، او هغه څه دی د څه چې تاسو سره وعده کيږی، د اسمانونو او د زمکې د پروردګار قسم دا يعنی د څه وعده چه تاسو سره کيږی، بالکل حق دی، لکه څنګه چې ستاسو خبرې کوئ. مثل په رفع سره، د (حق) صفت دې، او (ما) زائده ده، او د (مثل) لام په فتحې سره، د (ما) سره مرکب دې، او معنی دا ده چې د څه تاسو سره وعده کيږی هغه په حقيقت کيدو کښې داسې دی لکه څنګه چې ستاسو خبرې کول حقيقت دی، يعنی څنګه چې ستاسو په نيز ستاسو خبرې په معلوميدو کښې يقينی دی، ددې خبرو ستاسو نه بالبداهت صادريدو د وجې، دغه شان تاسو سره شوې وعده هم حقيقت دې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: والذّٰرِيٰت: واؤ قسميه دې، ذاريت د ذارية جمع ده، الوزونکې، خورونکې، ددې موصوف الرياح محذوف دې، أي الرياح الذاريات خورونکې هواګانې، دا ذَرَى يَذْرُوْهُ ذَرْوًا باذَرَى يَذْرِى ذَرْيًا معتل لام واوی يا يائی نه مشتق دې، (ض، ن) والذاريات مقسم به دې.

**قوله**: وَيُقَالُ ذَرَى يَذْرِى ذَرْيًا: دې سره يائی کيدو طرف ته اشاره ده.

**قوله**: تَهُبُّ بِه: ددې اضافه کول د معنی د بيان د پاره دی هوا هغه خوروی، الوزوئ،

**قوله**: إنّما تُوعدون: علامه محلی (ما) مصدريه ګرځولې ده، يعنی د (وعد) په معنی

کښې دي، تقديري عبارت دا دي إِنَّ وَعْدَكُمْ لَوَعْدٌ صَادِقٌ

**قوله:** إنما توعدون لصادق: معطوف عليه دي، او إن الدين لواقع معطوف دي، معطوف او معطوف عليه جمله جوابِ قسم دي، او دا هم صحيح ده چې په (إنما) کښې (ما) موصوله وي، او توعدون صله وي عائد محذوف أي به جمله د (إنّ) اسم، او لصادق د (إن) خبر، او (إنّ) حرف مشبه بالفعل دي.

**قوله:** والسّماء ذاتِ الحُبُك: واؤ قسميه دي، جاره په معنى د أقسم السماء موصوف، الحبک صفت، موصوف صفت جمله جوابِ قسم.

**قوله:** حُبك: حبيكة جمع ده، لکه طرق د طريقة جمع ده، په معنى د لارې، د اوبو چپه، او په شګه کښې د هوا د وجې نه جوړې شوې نښې، او بعضې حضراتو حبک د حِباک جمع ګرځولې ده، لکه مُثُل د مِثال جمع ده، حبيکة وحباک د ستورو لارې ته هم وائي.

**قوله:** في الخِلقة کالطرق في الرمل: ددې عبارت د راوړلو فائده دا ده چې دا اسماني لارې خيالي يا معنوي نه دي، بلکه محسوس او موجود في الخارج دي، اګر چې د دير لرېوالي د وجې نه په نظر نه راځي،

**قوله:** يُؤْفَكُ عنهُ: يؤفك واحد مذکر غائب مضارع (إفک(ض) اړولې شي.

**قوله:** صُرِف عن الهداية في علم الله تعالى: ددې عبارت د راوړلو مقصد د يو سوالِ مقدر جواب ورکول دي.

**سوال:** د يؤفك عنه من افك نه معلوميږي چې څوک اوړيدلې وي، هغه به اړولې کيږي، دا خو تحصيل د حاصل دې، ځکه چې څوک اوړيدلې وي د هغه د اړولو هيڅ مطلب نشته؟

**جواب:** څوک چې د الله تعالى په علم ازلي کښې اړولې شوې وي، هغه به په خارج او په ظاهر کښې باندې اړولې شي.

پاره نمبر-٢٧ [قَالَ فَمَا خَطْبُكُمْ]

[اياتونه: ٢٤-٤٦]

(هَلْ أَتَاكَ) خِطَاب لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (حَدِيثُ ضَيْفِ إِبْرَاهِيمَ الْمُكْرَمِينَ) وَهُمْ مَلَائِكَةٌ اثْنَا عَشَر أَوْ عَشَرَة أَوْ ثَلَاثَة مِنْهُمْ جِبرِيل (إِذْ) ظَرْف لِحَدِيثِ ضَيْف (دَخَلُوا عَلَيْهِ فَقَالُوا سَلَامًا) اَيْ هٰذَا اللَّفْظ (قَالَ سَلَامٌ) اَيْ هٰذَا اللَّفْظ (قَوْمٌ مُّنكَرُونَ) لَا نَعْرِفُهُمْ قَالَ ذٰلِكَ فِي نَفْسِه وَهُوَ خَبَر مبتدا مُقَدَّر اَيْ هؤلاء (فَرَاغَ) مَالَ (إِلَىٰ أَهْلِهِ) سِرًّا (فَجَاءَ بِعِجْلٍ سَمِينٍ) وَفِي سُوْرَةِ هُود (بِعِجْلٍ حَنِيذٍ) اَيْ مَشْوِي (فَقَرَّبَهُ إِلَيْهِمْ قَالَ أَلَا تَأْكُلُونَ) عَرَضَ عَلَيْهِمُ الْأَكْل فَلَمْ يُجِيبُوا (فَأَوْجَسَ) أَضْمَرَ فِي نَفْسِه (مِنْهُمْ خِيفَةً قَالُوا لَا تَخَفْ) إِنَّا

رُسُل رَبِّك ﴿وَبَشَّرُوهُ بِغُلَامٍ عَلِيمٍ﴾ ذِي عِلْم كَثِير وَهُوَ إِسْحَاق كَمَا ذُكِرَ فِي هُود ﴿فَأَقْبَلَتِ امْرَأَتُهُ﴾ سَارَة ﴿فِي صَرَّةٍ﴾ صَيْحَة حَال أَيْ جَاءَتْ صَائِحَة ﴿فَصَكَّتْ وَجْهَهَا﴾ لَطَمَتْهُ ﴿وَقَالَتْ عَجُوزٌ عَقِيمٌ﴾ لَمْ تَلِد قَطُّ وَعُمْرهَا تِسْع وَتِسْعُونَ سَنَة وَعُمْر إبْرَاهِيم مِائَة سَنَة أَوْ عُمْره مِائَة وَعِشْرُونَ سَنَة وَعُمْرهَا تِسْعُونَ سَنَة ﴿قَالُوا كَذَٰلِكِ﴾ أيْ مِثْل قَوْلنَا فِي الْبِشَارَة ﴿قَالَ رَبُّكِ إِنَّهُ هُوَ الْحَكِيمُ﴾ فِي صُنْعه ﴿العليم﴾ بخلقه ﴿قَالَ فَمَا خَطْبُكُمْ﴾ شأنكم ﴿أيها المرسلون﴾ ﴿قَالُوا إِنَّا أُرْسِلْنَا إِلَىٰ قَوْمٍ مُجْرِمِينَ﴾ كَافِرِينَ هُمْ قَوْم لُوط ﴿لِنُرْسِلَ عَلَيْهِمْ حِجَارَةً مِنْ طِينٍ﴾ مَطْبُوخ بِالنَّارِ ﴿مُسَوَّمَةً﴾ مُعَلَّمَة عَلَيْهَا اسْم مَنْ يُرْمَى بِهَا ﴿عِنْدَ رَبِّكَ﴾ ظَرْف لَهَا ﴿لِلْمُسْرِفِينَ﴾ بِإِتْيَانِهِمْ الذُّكُور مع كفرهم ﴿فَأَخْرَجْنَا مَنْ كَانَ فِيهَا﴾ أَيْ قُرَى قَوْم لُوط ﴿مِنَ الْمُؤْمِنِينَ﴾ لِإِهْلَاكِ الْكَافِرِينَ ﴿فَمَا وَجَدْنَا فِيهَا غَيْرَ بَيْتٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ﴾ وَهُمْ لُوط وَابْنَتَاهُ وُصِفُوا بِالْإِيمَانِ وَالْإِسْلَام أَيْ هُمْ مُصَدِّقُونَ بِقُلُوبِهِمْ عَامِلُونَ بِجَوَارِحِهِمْ الطَّاعَات ﴿وَتَرَكْنَا فِيهَا﴾ بَعْد إهْلَاك الْكَافِرِينَ ﴿آيَةً﴾ عَلَامَة عَلَى إهْلَاكهمْ ﴿لِلَّذِينَ يَخَافُونَ الْعَذَابَ الْأَلِيمَ﴾ فَلَا يَفْعَلُونَ مِثْل فِعْلهمْ ﴿وَفِي مُوسَىٰ﴾ مَعْطُوف عَلَى فِيهَا الْمَعْنَى وَجَعَلْنَا فِي قِصَّة مُوسَى آيَة ﴿إِذْ أَرْسَلْنَاهُ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ﴾ مُلْتَبِسًا ﴿بِسُلْطَانٍ مُبِينٍ﴾ بِحُجَّةٍ وَاضِحَة ﴿فَتَوَلَّىٰ﴾ أَعْرَضَ عَنْ الْإِيمَان ﴿بِرُكْنِهِ﴾ مَعَ جُنُوده لِأَنَّهُمْ لَهُ كَالرُّكْنِ ﴿وَقَالَ﴾ لِمُوسَى هُوَ ﴿سَاحِرٌ أَوْ مَجْنُونٌ﴾ ﴿فَأَخَذْنَاهُ وَجُنُودَهُ فَنَبَذْنَاهُمْ﴾ طَرَحْنَاهُمْ ﴿فِي الْيَمِّ﴾ الْبَحْر فَغَرِقُوا ﴿وَهُوَ﴾ أَيْ فِرْعَوْن ﴿مُلِيمٌ﴾ آتٍ بِمَا يُلَام عَلَيْهِ مِنْ تَكْذِيب الرُّسُل وَدَعْوَى الرُّبُوبِيَّة ﴿وَفِي﴾ إهْلَاك ﴿عَادٍ﴾ آيَة ﴿إِذْ أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الرِّيحَ الْعَقِيمَ﴾ هِيَ الَّتِي لَا خَيْر فِيهَا لِأَنَّهَا لَا تَحْمِل الْمَطَر وَلَا تُلَقِّح الشَّجَر وهي الدبور ﴿مَا تَذَرُ مِنْ شَيْءٍ﴾ نَفْس أَوْ مَال ﴿أَتَتْ عَلَيْهِ إِلَّا جَعَلَتْهُ كَالرَّمِيمِ﴾ كَالْبَالِي الْمُتَفَتِّت ﴿وَفِي﴾ إهْلَاك ﴿ثَمُودَ﴾ آيَة ﴿إِذْ قِيلَ لَهُمْ﴾ بَعْد عَقْر النَّاقَة ﴿تَمَتَّعُوا حَتَّىٰ حِينٍ﴾ إلى انقضاء آجالكم كما في آية ﴿تمتعوا في داركم ثلاثة أيام﴾ ﴿فَعَتَوْا﴾ تَكَبَّرُوا ﴿عَنْ أَمْرِ رَبِّهِمْ﴾ أَيْ عَنْ امْتِثَاله ﴿فَأَخَذَتْهُمُ الصَّاعِقَةُ﴾ بَعْد مُضِيّ الثَّلَاثَة أَيَّام أَيْ الصَّيْحَة الْمُهْلِكَة ﴿وَهُمْ يَنْظُرُونَ﴾ أَيْ بِالنَّهَارِ ﴿فَمَا اسْتَطَاعُوا مِنْ قِيَامٍ﴾ أَيْ مَا قَدَرُوا عَلَى النُّهُوض حِين نُزُول الْعَذَاب ﴿وَمَا كَانُوا مُنْتَصِرِينَ﴾ عَلَى مَنْ أَهْلَكَهُمْ ﴿وَقَوْمَ نُوحٍ﴾ بِالْجَرِّ عَطْف عَلَى ثَمُود أَيْ وَفِي إهْلَاكهمْ بِمَا فِي السَّمَاء وَالْأَرْض آيَة وَبِالنَّصْبِ أَيْ وَأَهْلَكْنَا قَوْم نُوح مِنْ قَبْل أي قبل إهلاك هؤلاء المذكورين ﴿إنهم كانوا قوما فاسقين﴾.

**ترجمه:** اې محمد ﷺ آیا د ابراهیم عليه السلام د عزتمندو میلمانو واقعه تاته رارسیدلې ده؟ او هغه دولس یا لس یا درې کسان وو، په هغوی کښې جبرائیل عليه السلام هم وو، چې کله هغه میلمانه دوی ته راغلل إذ د حدیث ضیف ظرف دې، نو هغوی سلام اوکړو، یعنی لفظ سلاما ئې اووئیلو، ابراهیم عليه السلام هم په جواب کښې لفظ د سلام اووئیلو، ابراهیم عليه السلام خپل زړه کښې اووئیل دا خو نااشنا خلق دی، قوم منکرون، د مبتدأ مقدر خبر دې، او هغه هؤلاء دي، بیا هغوی په پټه پټه باندې خپل کورونو ته لاړل او یو (وریت شوې) سورب سخې راوړو او په سورة هود کښې دی جَاءَ بِعِجْلٍ حَنِيذٍ یعنی وریت شوې سخې ئې راوړو، او د هغوی په مخکښې ئې

کیخودلو او وې وئیل چې تاسو خوراک ولې نه کوئ؟ یعنی د هغوی په مخکښې ئې خوراک کیخودلو خو هغوی توجه اونکړه، نو په زړه کښې ددوی نه ویریدلو، یعنی په خپل زړه کښې ئې د هغوی نه ویره محسوس کړه، نو هغه میلمانو اوؤئیل چې ویریږه مه، بې شکه مونږ ستا د پروردګار د طرف نه رالیږلې شوې یو، هغوی ابراهیم علیه السلام ته د یو پوهه هوښیار هلک زیری ورکړ، یعنی د ډیر علم والا هلک او هغه اسحق علیه السلام وو، څنګه چې سوره هود کښې ذکر دی، نو د هغه بی بی ساره چغه کړه او مخې ته راغله، (فِي صَرَّةٍ) حال دې، یعنی په حیرانتیا سره ئې چغه کړه، او مخې ته راغله، او مخ ئې اووهلو، او وې وئیل چې بوډهئ شنډه چا چې چرته یو ماشوم هم زیګولې نه دې، او د هغوی عمر یوکم سل کاله وو، او د ابراهیم علیه السلام عمر سل کاله وو، یا یوسل او شل کاله وو، او ددوی د بی بی عمر لس کم سل کاله وو، فرشتو اووئیل چې ستا رب هم داسې فرمائیلې دی، یعنی زمونږ د زیری په شان ابراهیم علیه السلام اوفرمائیل، تاسو په کوم کار کښې رالیکلې شوې ئې؟ فرشتو جواب ورکړو مونږ مجرم قوم طرف ته رالیږلې شوې یو، یعنی د لوط علیه السلام قوم طرف ته، چې مونږ په هغوی باندې په اور کښې پوخ شوې د خاورې کاڼې اوورو، په کوم باندې چې ستا د رب د طرف نه نښې لګیدلې دی د حد نه تیریدونکو خلقو دپاره، د اغلام بازئ په وجه دهغوی سره یعنی چه کوم کس به په کوم کاڼې سره هلاکولې شی په هغې باندې ددوی د نوم علامت لګیدلې وو، یعنی ددوی نوم پرې لیکلې شوې دې، عِندَ رَبِّكَ د مسومة ظرف دې، نو چې څومره ایمان دار هلته یعنی د قوم لوط په کلی کښې موجود وو، مونږ اوویستل، د کافرانو د هلاکولو د پاره، مونږ هلته د مسلمانانو صرف یو کور اومندلو، او هغه د لوط علیه السلام او د هغه د لونړو کور وو، د کور والو د ایمان او اسلام سره صفت بیان شوې دې، یعنی په خپلو زړونو سره تصدیق کونکی او په خپلو اندامونو سره تابعداری کونکی، او مونږ په دغه کلی کښې د کافرانو هلاکولو نه پس، د هغوی په هلاکت د هغه خلقو د پاره کوم چې د دردناک عذاب نه ویریږی نښه پریخودله، چې ددوی په شان حرکت اونکړی، او د موسی علیه السلام په قصه کښې هم ددې عطف په فیها باندې دې، او معنی ئې دا ده او مونږ موسی علیه السلام په قصه کښې هم علامت اویخودې دې، مونږ هغه واضح دلیل سره فرعون ته اولیږلو، نو فرعون سره د خپل لښکر نه د ایمان نه مخ واړولو، (لښکر ته ئې رکن اووئیلو) خکه چې لښکر د هغه د پاره د رکن په شان وو، او فرعون د موسی علیه السلام په باره کښې اووئیل چې هغه خو جادوګر یا لیونې دې، نو په آخر کښې مونږ هغه او د هغه لښکر اونیولو او په سمندر کښې مو غرق کړو، نو هغوی ټول غرق شول، او هغه فرعون د ملامتیا قابل وو یعنی داسې حرکت کونکې وو چې په هغې باندې هغه ملامت کړې شی، او هغه د رسولانو تکذیب او د خدائې دعوی وه، او د قوم عاد په هلاکولو کښې هم نښه ده، چې کله مونږ په هغوی باندې شنډه بې فیضه سیلئ رااولیږله، هغه داسې هوا وه چې

په هغې کښې څه خیر نه وو، ځکه چې هغه هوا نه باران راوستونکې وه او نه اونو لره میوه جوړونکې وه، وئیلې شوی دی چې هغه جنوبی هوا وه، چې په کوم څیز به تیریدله که انسان به وو، یا څه مال هغه به ئې د روست شوې هډوکی په شان ریزه ریزه کړو، او د ثمود کښې هم نښه ده، چې کله دوی ته د اوښې د هلاکولو نه پس اووئیلې شو چې څو ورځې یعنې د خپلې ژوند موده پوره کیدو پورې مزه واخلئ ځنګه چې آیت تمتعوا فی دارکم ثلاثة ایام کښې دی، خو هغوی د خپل رب حکم یعنی د هغې د پورا کولو نه اعراض اوکړو، چې په هغې باندې هغوی لره د درې ورځو تیریدو نه پس عذاب اونیول یعنی یو هلاک کونکې چغې او هغوی عذاب لره په روښانه ورځ کښې په کولاؤ سترګو سره کتلو، نو نه خو هغوی اودریدل یعنی د عذاب د نازلیدو په وخت کښې هغوی په اودریدلو باندې قادر نه شول، او نه هغوی ددوی د هلاک کونکی نه بدله واخستله، او ددوی نه مخکښې د قوم نوح هم دا حال شوې دې، یعنی دې ذکر شوو مکذبینو لره د هلاکولو نه پس او هغه ډیر نافرمانه خلق وو.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** هَلْ أَتٰكَ حَدِيْثُ ضَيْفِ إِبْرَاهِيْمَ: هل دلته د شوق راوستلو، دلچسپی پیدا کولو او ددې قصې عظمت شان بیانولو د پاره دی، او دا هم وئیلې شوې دی، چې هل په معنی د (قد) دې، لکه ځنګه چې د اللہ تعالیٰ قول هَلْ أَتَىٰ عَلَى الْإِنْسَانِ حِيْنٌ مِّنَ الدَّهْرِ الخ، دلته هم په معنی د (قد) کښې استعمال دې.

**سوال:** د ابراهیم علیہ السلام په خدمت کښې د راتلونکی میلمنو تعداد د دریو نه زیات وو، چې د هغې د پاره ضیوف د جمع صیغه استعمالول پکار وو، حالانکه دلته ضیف د مفرد صیغه استعمال شوې ده؟

**جواب:** ضیف په اصل کښې مصدر دې، چې د هغې اطلاق په واحد تثنیه جمع ټولو باندې کیږی، لهذا څه اعتراض نشته.

**قوله:** إِذْ دَخَلُوْا: بعضې حضراتو وئیلی دی چې إذ دخلوا د (اذکر) فعل محذوف ظرف دې، او هم هغه ددې ناصب دې، او بعضې حضراتو حدیث ددې عامل ګرځولې دې، أی هل أتٰك حدیثهم الواقع فی وقت دخولهم علیه او بعضې حضراتو الْمُكْرَمِيْنَ ددې ناصب ګرځولې دې، ځکه چې ابراهیم علیہ السلام د میلمنو د داخلیدو په وخت د هغوی اکرام کړې وو.

**قوله:** فَقَالُوْا سَلَامًا: سلاما مفعول مطلق دې، ددې فعل ناصب سلمت محذوف دې، أی سلمت سلاما یا اسلم علیکم سلاما دې، مصدر د فعل هم قائم مقام وو، په دې وجه فعل حذف کړې شو.

**قوله**: قَالَ سَلَامًا : ابراهيم ﷺ اوفرمائيل سلام، سلام نكره كيدو باوجود مبتدأ جوړيدل صحيح دى، ځكه چې سلام د دعا معنى لره متضمن دې، (لغات ال قرآن، درويش) په ثبات او دوام باندې دلالت كولو د پاره د رفع طرف ته ئې عدول كړې دې، چې د ابراهيم ﷺ سلام د ميلمنو د سلام نه بهتر شي.

**قوله**: فَأَوْجَسَ: هغه اومونده، هغه محسوس كړه، دا د ايجاس نه ماضى واحد مذكر غائب دې، د ايجاس معنى ده په زړه كښې محسوس كول، او په زړه كښې پټ اواز راتلل.

**قوله**: أضمرفى نفسه: ددې اضافه صرف د معنى بيانولو د پاره ده.

**قوله**: صَرَّةٍ: سختې چغې ته وائى، صريرالباب د دروازې آواز، صريرالقلم د قلم ليكلو آواز، أقبلت صائحة اى جاءت صائحة په چغو چغو راغله، او بعضې حضراتو د أقبلت ترجمه أخذت سره كړې ده، يعنى ساره چغې وهل شروع كړل، دا د أقبلت تفعلى د قبيلې نه دې، يعنى تا ماته كنځل كول شروع كړل

**قوله**: فَصَكَّتْ وَجْهَهَا: يعنى ساره په بوډهاوالى كښې د ځوى خوشخبرى اوريدو سره د حيرانتيا نه مخ اووهلو، قالت عجوز عقيم اى أنا عجوز عقيم فكيف ألد.

**قوله**: كذلك: دا د مصدر محذوف صفت كيدو د وجې نه جه نه منصوب دې، أى قال قولا مثل ذلك الذى قلنا.

**قوله**: قال فما خطبكم أيها المرسلون: دا جمله مستانفه ده، او د يو سوال مقدر جواب دې، گويا دا اوئيلى شو چې ابراهيم ﷺ د فرشتو سره د مذكوره خبرو نه پس څه اوفرمائيل:

جواب ئې وركړو قال فما خطبكم أيها المرسلون

**قوله**: خطب: د خطب معنى شان، قصه، امر عظيم او اهم كار دې،

**قوله**: حِجَارَةً مِنْ طِينٍ مطبوخ بالنار: حجارة دا د حجر جمع ده.

**سوال**: د (من طين) د اضافې څه مقصد دې؟

جواب: ددې اضافې مقصد د مجاز احتمال لره دفع كول دى، ځكه چې بعضې وخت حجارة او حجر گلئ ته هم وئيلې شى، كه د حجارة مجازى معنى مراد وى نو سره مطلب به دا وى چې قوم لوط د گلئ په ذريعه هلاک شوې وو، حالانكه داسې نه ده، دا بالكل هم داسې ده لكه چه الله تعالى اوفرمائيل طائر يطير بجناحيه په دې كښې د يطير بجناحيه د اضافې مقصد د مجاز احتمال لره دفع كول دى، ځكه چې بعضې وخت تيزرفتار كس ته

هم مجازاً طائر ونيلې شي

**سوال** مفسر علام د مطبوخ بالنار اضافه د څه مقصد د وجې کړې ده؟

**جواب** ددې شبهې جواب دې چې حجارة خو د خاورې نه وي نو بيا دلته د خاورې کانړې ولې ونيلې شوې دې؟ دلته د **حجارة من طين** نه په اور کښې پخه کړې شوې خاوره مراد ده چې په سختئ او کلک والي کښې د کانړي په شان وي، دې ته **سجيل** ونيلې شي چه د سنګ ګل معرب دې، چې هغې ته کود کانړي هم ونيلې شي.

**قوله** مُسَوَّمَةً: **د مسومة معنى معلمة** يعنى نښه کړې شوې، مسومة يا خو د حجارة د صفت د وجې نه منصوب دې، يا د حجارة نه حال کيدو د وجه نه منصوب دې

**قوله** عندربك: دا د مسومة ظرف دې، **أي معلمة عنده.**

**قوله** فَأَخْرَجْنَا مَن كَانَ فِيهَا: دې ځائ نه د الله تعالى کلام شروع کيږي. وړاندې د ابراهيم عليه السلام او د فرشتو د خبرو ذکر وو.

**سوال** د فيها مرجع قُرٰى قوم لوط دې، حالانکه په ماقبل کښې ددې ذکر نشته. په دې کښې إضمار قبل الذکر لازم يږي؟

**جواب** چونکه قُرٰى قوم لوط معروف او معهود فى الذهن وو، څکه ضمير راوړل صحيح دي، لکه چې لاندې اشعارو کښې شاعر فرمائي،

پو پھوٹتے نہ اٹھا آگے بڑھے چلے       ہوا کسی گلی میں فتنہ جگا ہوا

**قوله** وَفِي مُوسٰى: ددې عطف په (فيها) باندې دې، او د ترکنا لاندې دې، څنګه چې مفسر علام **جعلنا في قصة موسى آية** ونيلو سره اشاره اوکړه، يعنى مونږ د زړه سترګو لرونکو د پاره د موسٰى عليه السلام په قصه کښې د عبرت سامان ايخودې دې.او د (وفى موسى) عطف په (فيها) باندې دې.

**قوله** مَعَ جُنُودِهِ: اضافه کولو سره ئ اشاره اوکړه چې بِرُكْنِهٖ کښې باء په معنى مع ده.

**قوله** سَاحِرٌ أَوْ مَجْنُونٌ: او په معنى د (واو) هم کيدې شي، او هم دا زياته غوره معلوميږي، څکه چې موسى عليه السلام به هغوى په دواړه لقبونو سره يادولو ، قرآن کريم يو ځل د فرعونيانو قول نقل کولو سره اوفرمائيل **إن هذا لساحر عليم** او بل ځائې د فرعونيانو قول د موسى عليه السلام په باره کښې نقل کولو سره اوفرمائيل **رسولكم الذي أرسل إليكم لمجنون**، ددې نه معلوميږي چې او په معنى د (مع) دې، او دا احتمال هم دې، چې **أو على بابها** وي، او مراد قوم په شک کښې غورزول او هغوى لره په دهوکه کښې اچول وي

**قوله** وَجُنودَه: دا هم صحيح ده چې د (أخذناه) په ضميرِ مفعولي (ه) باندې عطف وي، چه دا مفعول معه وي، او هم دا ظاهره ده

**قوله** عقيم: شنډه بنځه، الريح العقيم نه مراد هغه هوا ده چې بې فيض وي او نقصان والا وي، او نه د باران سبب وي اونه مثمرِ شجر وي، د ډيرو مفسرينو خيال دې چې هغه هوا (دَبُور) وه، د حديث نه هم ددې تائيد كيږي، نبي عليه السلام اوفرمائيل نصرت بالصباء واهلكت عاد بالدبور او بعضو جنوبي هوا هم مراد اخستلې ده

**قوله** لاتلقح: إلقاح نه يعنې حامله كول، باأور كول، ماده لقح ده، ﷺ لقحا، حامله كيدل

**قوله** الصعقة: صاعقه آسماني بجلئ ته هم وائي، او چغې سورو ته هم وائي، دلته هم دويمه معنى مراد ده، چې بل آيت إن عذابهم الصيحة مخالف نشي

**قوله** علىٰ من أهلكهم: دا د ما كانوا منتصرين تفسير دې، يعنې هغوى په هلاک كونكي باندې غالب رانغلل، يا د هغه نه ئې انتقام وانخستلو، خو دا معنى صحيح نه ده، ځكه چې د الله تعالى نه بدله اخستلو باندې څوک هم قادر نه دى، او نه په هغه باندې څوک غالب راتلې شي، لهذا بهتر به وه چې علامه محلي د على من اهلكهم په ځاې باندې وما كانوا دافعين عن أنفسهم العذاب فرمائيلې وو

[اياتونه: ٤٧-٦٠]

(وَالسَّمَاءَ بَنَيْنَاهَا بِأَيْدٍ) بِقُوَّةٍ (وَإِنَّا لَمُوسِعُونَ) قَادِرُونَ يُقَال آدَ الرَّجُل يَئِيد قَوِيَ وَأَوْسَعَ الرَّجُل صَارَ ذَا سَعَة وَقُوَّة (وَالْأَرْض فَرَشْنَاهَا) مَهَّدْنَاهَا (فَنِعْمَ الْمَاهِدُونَ) نَحْنُ (وَمِنْ كُلّ شَيْء) مُتَعَلِّق بِقَوْلِهِ خَلَقْنَا (خَلَقْنَا زَوْجَيْنِ) صِنْفَيْنِ كَالذَّكَرِ وَالْأُنْثَى وَالسَّمَاء وَالْأَرْض وَالشَّمْس وَالْقَمَر وَالسَّهْل وَالْجَبَل وَالصَّيْف وَالشِّتَاء وَالْحُلْو وَالْحَامِض وَالنُّور وَالظُّلْمَة (لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ) بِحَذْفِ إِحْدَى التَّاءَيْنِ مِنَ الْأَصْل فَتَعْلَمُونَ أَنَّ خَالِق الْأَزْوَاج فَرْد فَتَعْبُدُوهُ (فَفِرُّوا إِلَى اللَّه) أَيْ إِلَى ثَوَابه مِنْ عِقَابه بِأَنْ تُطِيعُوهُ وَلَا تَعْصُوهُ (إِنِّي لَكُمْ مِنْهُ نَذِير مُبِين) بَيِّن الْإِنْذَار (وَلَا تَجْعَلُوا مَعَ اللَّه إِلَهًا آخَر إِنِّي لَكُمْ مِنْهُ نَذِير مُبِين) يُقَدَّر قَبْل فَفِرُّوا قُلْ لَهُمْ (كَذَلِكَ مَا أَتَى الَّذِينَ مِنْ قَبْلهمْ مِنْ رَسُول إِلَّا قَالُوا) هُوَ (سَاحِر أَوْ مَجْنُون) أَيْ مِثْل تَكْذِيبهمْ لَك بِقَوْلِهِمْ إِنَّك سَاحِر أَوْ مَجْنُون تَكْذِيب الْأُمَم قَبْلهمْ رُسُلهمْ بِقَوْلِهِمْ ذَلِكَ (أَتَوَاصَوْا) كُلّهمْ (بِهِ) اِسْتِفْهَام بِمَعْنَى النَّفْي (بَلْ هُمْ قَوْم طَاغُونَ) جَمَعَهُمْ عَلَى هَذَا الْقَوْل طُغْيَانهمْ (فَتَوَلَّ) أَعْرِضْ (عَنْهُمْ فَمَا أَنْتَ بِمَلُومٍ) لِأَنَّك بَلَّغْتهمْ الرِّسَالَة (وَذَكِّرْ) عِظْ بِالْقُرْآنِ (فَإِنَّ الذِّكْرَى تَنْفَع الْمُؤْمِنِينَ) مَنْ عَلِمَ اللَّه تَعَالَى أَنَّهُ يُؤْمِن (وَمَا خَلَقْت الْجِنّ وَالْإِنْس إِلَّا لِيَعْبُدُونِ) وَلَا يُنَافِي ذَلِكَ عَدَم عِبَادَة الْكَافِرِينَ لِأَنَّ الْغَايَة لَا يَلْزَم وُجُودهَا كَمَا فِي قَوْلك بَرَيْت هَذَا الْقَلَم لِأَكْتُب بِهِ فَإِنَّك قَدْ لَا تَكْتُب بِهِ (مَا أُرِيد مِنْهُمْ مِنْ رِزْق) لِي وَلِأَنْفُسِهِمْ وَغَيْرهمْ (وَمَا أُرِيد أَنْ

يُطْعِمُونِ﴾ وَلَا أَنْفُسَهُمْ وَلَا غَيْرَهُمْ ﴿إِنَّ اللّٰهَ هُوَ الرَّزَّاقُ ذُو الْقُوَّةِ الْمَتِيْنِ﴾ الشَّدِيْد ﴿فَإِنَّ لِلَّذِيْنَ ظَلَمُوْا﴾ أَنْفُسَهُمْ بِالْكُفْرِ مِنْ أَهْلِ مَكَّةَ وَغَيْرِهِمْ ﴿ذَنُوْبًا﴾ نَصِيْبًا مِنَ الْعَذَابِ ﴿مِثْلَ ذَنُوْبِ﴾ نَصِيْبِ ﴿أَصْحَابِهِمْ﴾ الْهَالِكِيْنَ قَبْلَهُمْ ﴿فَلَا يَسْتَعْجِلُوْنَ﴾ بِالْعَذَابِ إِنْ أَخَّرْتُهُمْ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ ﴿فَوَيْلٌ﴾ شِدَّةُ عَذَابٍ ﴿لِلَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ﴾ فِي ﴿يَوْمِهِمُ الَّذِيْ يُوْعَدُوْنَ﴾ أَيْ يَوْمِ الْقِيَامَةِ

**ترجمه** او اسمان مونږ په خپل قدرت قوت سره جوړ کړو، او بې شک مونږ ډير قدرت والا يو، يعنی مونږ په دې باندې قادر يو. أَدَّ الرَّجُلُ يَئِدُ سرې مضبوط شو. او وئيلې کيږی. أَوْسَعَ الرَّجُلُ وسعت او قدرت والا شو. او مونږ زمکه خوره کړه، نو اوګوره مونږ څومره ښه خورونکی يو، او مونږ هر څيز جوړې جوړې جوړ کړو، مثلا نر او ماده، آسمان او زمکه، نمر او سپوږمئ، ميدان او غر، ګرمی او يخنی، خوږ او تريخ، رڼرا او تياره، چې تاسو سبق حاصل کړئ، (تذکرون) کښې په اصل کښې د دوو تاء نه يو تاء حذف کولو سره. چې تاسو ته پته اولګی، چې د ازواج خالق، فرد دې لهذا د هغه بندګی اوکړئ. (اې محمد ﷺ تاسو دوی ته اووايئ) يقينا ځه تاسو له د هغه د طرف نه صفا صفا خبردارونکې يم، او هغه سره بل څوک معبود مه جوړوئ، ځه د هغه د طرف نه ستاسو طرف ته ښکاره ويرونکې يم. فقروانه مخکښې به قل لهم مقدر اومنلې شی. دغه شان کوم خلق چې مخکښې تير شوی دی، هغوی ته چې کوم يو رسول هم راغلې وو، د هغه باره کښې ئې اووئيل چې دا جادوګر دې، يا ليونې. يعنی څنګه چې دا خلق د خپل قول إِنَّكَ سَاحِرٌ أَوْ مَجْنُوْنٌ په ذريعې سره ستا تکذيب کوی، دغه شان هم دې الفاظو سره ددوی نه مخکښې امتونو هم د خپلو پيغمبرانو تکذيب کړې وو، آيا دوی ددې خبرې يو بل ته وصيت کولو سره مرې؟ دا استفهام په معنی د نفې دې. (نا) بلکه دا ټول په ټول سرکش خلق دی، ددوی سرکشئ دوی په دې خبرې يوځائ کړی دی، نو تاسو ددوی نه مخ واړوئ، په تاسو باندې هيڅ ملامتی نشته. څکه چې تاسو دوی ته پيغام اورسولو. او تاسو د قرآن په ذريعه نصيحت کوئ، يقينا دا نصيحت به ايمان والو ته نفع ورکړی، د چا باره کښې چه الله تعالی ته علم دې، چې هغوی به ايمان راوړی، ما جنات او انسانان صرف دې د پاره پيداکړی دی، چې هغوی صرف ځما بندګی اوکړی او دا (مقصد تخليق) د کافرانو د عبادت نه کولو سره منافی نه دې، څکه چې د غايت وجود لازم نه وی، لکه چې اووائی، ما دا قلم جوړ کړو د ليکلو د پاره، او کله داسې هم کيدې شی، چې ته په دې قلم باندې ليکل نه کوې، نه ځه د دوی نه د خپل خان د پاره روزی غوارم، نه خپله دوی د پاره، او نه د دوی د غير د پاره، او نه ځه دا غوارم چې هغوی ما باندې خوراک اوکړی، او نه خپله، او نه د هغې غير باندې، او الله خو پخپله ټولو ته رزق ورکونکې دې، ډير طاقت ور دې، بې شکه، مکې وغيره د هغه خلقو د پاره چا چې د کفر په ذريعه په خپل ځان باندې ظلم اوکړو، د

عذاب نمبر دې، ددوی د هم مشربو د نمبر په شان، کوم چې د دوی نه مخکښې هلاک شوی دی. لهذا هغوی دې زما د عذاب په غوښتلو کښې جلدی نه کوی، که څه دوی ته د قیامت ورځې پورې مهلت ورکړم ددې کافرانو د پاره ډیره خرابی ده، یعنی سخت عذاب به وی، د هغه ورځ په راتلو سره د کومې چې دوی سره وعده شوې ده، یعنی د قیامت ورځ.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: وَالسَّمَاءَ بَنَيْنٰهَا: جمهورو په والسماء باندې، او والارض باندې علی سبیل الاشتغال نصب وئیلې دې، تقدیری عبارت به دا وی، وبنینا السماء بنیناها وفرشنا الأرض فرشناها او ابو السماک او ابن مقسم په دواړو ځایونو کښې د مبتدأ د وجې نه رفع وئیلې ده، او ددې دواړو مابعد ددوی خبر دې، اول یعنی نصب اولی دې، د جمله فعلیه عطف په جمله فعلیه باندې کیدو د وجه نه.

**قوله**: وَإِنَّا لَمُوْسِعُوْنَ: دا جمله د شارح د تقریر په بنا حالِ مؤکده دې، ځکه چې شارح دا خبره متعین کړې ده، چې موسعون د قادرون په معنی کښې دې، لهذا موسعون د لوسع د لازم نه وی، او دا داسې ده لکه چې وئیلې شی، أورق الشجر أی صار ذا ورق کله چې دا خبره په عقل کښې راغله، چې لموسعون د شارح د تقریر مطابق لازم دې نو بیا د جلالین په کومو نسخو کښې چې د لموسعون نه پس (لها) دې، هغه صحیح نه دې، البته د هغه خلقو په نیز چا چې لموسعون ته متعدی وئیلې دی، د هغوی په نیز به (لها) صحیح وی، او په دې صورت کښې به لموسعون حالِ مؤسسه وی، کوم چې یوه نوې فائده ورکوی.

**قوله**: خَلَقْنَا زَوْجَيْنِ

**سوال**: د زوجین اووه مثالونه ئې ولې ورکړل؟ حالانکه یو مثال هم کافی وو؟

**جواب**: ډیر مثالونه ورکولو سره ئې دې خبرې ته اشاره اوکړه چې د جوړو او د ازواجو چې کومه خبره ده دا محسوساتو پورې محدود ده، چې عرش، کرسی، قلم، لوح محفوظ باندې اعتراض رانشی.

**قوله**: استفهام بمعنی النفی: مطلب دا دې چې اولین او آخرین د نبیانو په تکذیب کښې یو والې، او په یو خبره باندې جمع کولو والا څیز، یو بل ته وصیت کول نه دی، ځکه چې زمانې مختلف دی، لهذا وصیت کول ممکن نه دی، بلکه اصل سبب او علت مشترکه بغاوت، بغض او دشمنی ده، کوم چې په دواړه فریقو کښې بدرجه اتم موجود دې.

**قوله**: لِأَنَّ الْغَايَةَ لَا يَلْزَمُ: د شارح مقصد ددې عبارت نه دا شبه لرې کول دی، چې په لیعبدون کښې لام د علت باعثه د پاره دې، یعنی د جناتو او د انسانانو پیدا کولو علت

او غرض عبادت دې، ددې نه لازميږي چې د الله تعالى افعال معلل بالاغراض وي، حالانکه د الله تعالى يو فعل معلل بالاغراض نه دې، ددې جواب ئې ورکړو چې ليعبدون کښې لام عاقبت او صيرورت د پاره دې، چې هغې ته علتِ غائيه هم وئيلې شي، نه چې د علتِ باعثه د پاره.

**قوله** ولاينافي ذلك عدم عبادة الكافرين: ددې عبارت اضافې مقصد د يو سوال جواب دې.

**سوال:** چې کله د جناتو او د انسانانو علت غائيه عبادت دې، نو بيا هر انسان له عبادت کول پکار دي، حالانکه مونږ گورو چې کافر د الله تعالى عبادت نه کوي؟

**جواب:** د غايت وقوع ضروري او لازم نه وي، مثلا يو قلم وي د ليکلو د پاره، خو بعض وختونو په هغې باندې ليکل نه کيږي، حالانکه د قلم جوړولو غرض او غايت هم ليکل دي، دويم جواب بعضې حضراتو دا ورکړې دې چې دلته د عباد نه مراد عباد مومنين دي، کوم چې د تعميم بعد التخصيص د قبيلې نه دې، او مومنان د ايمان په اعتبار سره عبادت گزار وي.

**قوله:** لِأَنفسهم: ددې کلمې د اضافې مقصد د يوې شبهې جواب کول دي.

**شبه:** په عام توگه د دنيا د سردارانو او د غلامانو د مالکانو دا عادت او طريقه وي چې د غلام اخستلو مقصد ددوی نه د خپل ځان د پاره او د پخپله د غلامانو د نفقې د پاره کار اخستل وي، نو آيا د الله تعالى هم دا مقصد دې،؟

**دفع:** د عام مالکانو پشان د الله تعالى نه دا عادت دې، او نه ئې ضرورت دې، بلکه هغه خو خپله بندگانو ته روزي ورکوي،

**قوله:** ذَنُوبًا: د ذال فتح سره د (ذنب) جمع ده، غټې دولچې ته وائي، په اصطلاحي او عرفي معنى کښې حصه، او نمبر ته وائي.

## [٥٢] سورة الطور

### سورة الطور مكية تسع و اربعون اية

سورة الطور مکي دې، په دې کښې نهه څلويښت (٤٩) آيتونه دي.

### [اياتوله: ١-١٠]

(وَالطُّورِ) أَيِ الْجَبَلِ الَّذِي كَلَّمَ اللهُ عَلَيْهِ موسى (وَكِتَابٍ مَّسْطُورٍ (فِي رَقٍّ مَّنشُورٍ) أَيِ التَّوْرَاةِ أَوِ الْقرآن (وَالْبَيْتِ الْمَعْمُورِ) هُوَ فِي السَّمَاءِ الثَّالِثَةِ أَوِ السَّادِسَةِ أَوِ السَّابِعَةِ بِحِيَالِ الْكَعْبَةِ يَزُورُهُ كُلَّ يَوْمٍ سَبْعُونَ أَلْفَ مَلَكٍ بِالطَّوَافِ وَالصَّلَاةِ لَا يَعُودُونَ إِلَيْهِ أَبَدًا (وَالسَّقْفِ الْمَرْفُوعِ) أَيِ السَّمَاءِ (وَالْبَحْرِ الْمَسْجُورِ) أَيِ الْمَمْلُوءِ (إِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ لَوَاقِعٌ) لَنَازِلٌ بِمُسْتَحِقِّهِ (مَا لَهُ مِن دَافِعٍ) عَنْهُ (يَوْمَ) مَعْمُول لِوَاقِع (تَمُورُ السَّمَاءُ مَوْرًا)

تَتَحَرَّك وتدور ﴿وَتَسِيرُ الْجِبَالُ سَيْرًا﴾ تصير هَبَاء مَنْثُورًا وَذَلِكَ فِي يَوْمِ الْقِيَامَة ﴿فَوَيْلٌ﴾ شدة عذاب ﴿يَوْمَئِذٍ لِلْمُكَذِّبِينَ﴾ للرسل ﴿الَّذِينَ هُمْ فِي خَوْضٍ﴾ بَاطِل ﴿يَلْعَبُونَ﴾ أَيْ يَتَشَاغَلُونَ بِكُفْرِهِمْ ﴿يَوْمَ يُدَعُّونَ إِلَىٰ نَارِ جَهَنَّمَ دَعًّا﴾ يُدْفَعُونَ بِعُنْفٍ بَدَل مِنْ يَوْم تَمُور وَيُقَال لَهُمْ تَبْكِيتًا ﴿هَٰذِهِ النَّارُ الَّتِي كُنْتُمْ بِهَا تُكَذِّبُونَ﴾ ﴿أَفَسِحْرٌ هَٰذَا﴾ الْعَذَاب الَّذِي تَرَوْنَ كَمَا كُنْتُمْ تقولون في الوحي هذا سحر ﴿أَمْ أَنْتُمْ لَا تُبْصِرُونَ﴾ ﴿اصْلَوْهَا فَاصْبِرُوا﴾ عَلَيْهَا ﴿أَوْ لَا تَصْبِرُوا﴾ صَبْرُكُمْ وَجَزَعكُمْ ﴿سَوَاءٌ عَلَيْكُمْ﴾ لِأَنَّ صَبْرَكُمْ لَا يَنْفَعكُمْ ﴿إِنَّمَا تُجْزَوْنَ مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ﴾ أَيْ جَزَاءَهُ ﴿إن المتقين في جنات ونعيم﴾ ﴿فَاكِهِينَ﴾ مُتَلَذِّذِينَ ﴿بِمَا﴾ مَصْدَرِيَّة ﴿آتَاهُمْ﴾ أعطاهم ﴿رَبُّهُمْ وَوَقَاهُمْ رَبُّهُمْ عَذَابَ الْجَحِيمِ﴾ عَطْفًا عَلَى آتَاهُمْ أَيْ بِإِتْيَانِهِمْ وَوِقَايَتهمْ وَيُقَال لَهُمْ ﴿كُلُوا وَاشْرَبُوا هَنِيئًا﴾ حَال أَيْ مُهَنَّئِينَ ﴿بِمَا﴾ الباء سببية ﴿كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ﴾ ﴿مُتَّكِئِينَ﴾ حَال مِنْ الضَّمِير الْمُسْتَكِنّ فِي قَوْله ﴿فِي جَنَّاتٍ﴾ ﴿عَلَىٰ سُرُرٍ مَصْفُوفَةٍ﴾ بَعْضهَا إِلَى جَنْب بَعْض ﴿وَزَوَّجْنَاهُمْ﴾ عُطِفَ عَلَى جَنَّات أَيْ قَرَنَّاهُمْ ﴿بِحُورٍ عِينٍ﴾ عِظَام الْأَعْيُن حِسَانهَا ﴿والذين آمنوا﴾ مبتدأ ﴿وَأَتْبَعْنَاهُمْ﴾ وَفِي قِرَاءَة وَاتَّبَعَتْهُمْ مَعْطُوف عَلَى آمَنُوا ﴿ذريتهم﴾ وَفِي قِرَاءَة ذُرِّيَّاتهمْ الصِّغَار وَالْكِبَار ﴿بِإِيمَانٍ﴾ مِنَ الكبار ومن اولادهم الصغار والخبر ﴿ألحقنا بهم ذرياتهم﴾ الْمَذْكُورِينَ فِي الْجَنَّة فَيَكُونُونَ فِي دَرَجَتهمْ وَإِنْ لَمْ يَعْمَلُوا تَكْرِمَة لِلْآبَاءِ بِاجْتِمَاعِ الْأَوْلَاد إِلَيْهِمْ ﴿وَمَا أَلَتْنَاهُمْ﴾ بِفَتْحِ اللَّام وَكَسْرهَا نَقَصْنَاهُمْ ﴿مِنْ عَمَلِهِمْ مِنْ﴾ زَائِدَة ﴿شَيْءٍ﴾ يُزَاد فِي عَمَل الْأَوْلَاد ﴿كُلُّ امْرِئٍ بِمَا كَسَبَ﴾ مِنْ عَمَل خَيْر أَوْ شَرّ ﴿رَهِينٌ﴾ مَرْهُون يُؤَاخَذ بِالشَّرِّ ويجازي بالخير ﴿وَأَمْدَدْنَاهُمْ﴾ زِدْنَاهُمْ فِي وَقْت بَعْد وَقْت ﴿بِفَاكِهَةٍ وَلَحْمٍ مِمَّا يَشْتَهُونَ﴾ وَإِنْ لَمْ يُصَرِّحُوا بِطَلَبِهِ ﴿يَتَنَازَعُونَ﴾ يَتَعَاطَوْنَ بَيْنهمْ ﴿فِيهَا﴾ أَيْ الْجَنَّة ﴿كَأْسًا﴾ خَمْرًا ﴿لَا لَغْوٌ فِيهَا﴾ أَيْ بِسَبَبِ شُرْبهَا يَقَع بَيْنهمْ ﴿وَلَا تَأْثِيمٌ﴾ بِهِ يَلْحَقهُمْ بِخِلَافِ خمر الدنيا ﴿وَيَطُوفُ عَلَيْهِمْ﴾ لِلْخِدْمَةِ ﴿غِلْمَانٌ﴾ أرقاء ﴿لَهُمْ كَأَنَّهُمْ﴾ حُسْنًا وَلَطَافَة ﴿لُؤْلُؤٌ مَكْنُونٌ﴾ مَصُون فِي الصَّدَف لِأَنَّهُ فِيهَا أَحْسَن مِنْهُ فِي غَيْرهَا ﴿وَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ يَتَسَاءَلُونَ﴾ يَسْأَل بَعْضهمْ بَعْضًا عَمَّا كَانُوا عَلَيْهِ وَمَا وَصَلُوا إِلَيْهِ تَلَذُّذًا وَاعْتِرَافًا بِالنِّعْمَةِ ﴿قَالُوا﴾ إِيمَاء إِلَى عِلَّة الْوُصُول ﴿إِنَّا كُنَّا قَبْلُ فِي أَهْلِنَا﴾ فِي الدُّنْيَا ﴿مُشْفِقِينَ﴾ خَائِفِينَ مِنْ عَذَاب اللَّه ﴿فَمَنَّ اللَّهُ عَلَيْنَا﴾ بِالْمَغْفِرَةِ ﴿وَوَقَانَا عَذَابَ السَّمُومِ﴾ النَّار لِدُخُولِهَا فِي الْمَسَامّ وَقَالُوا إِيمَاء أَيْضًا ﴿إِنَّا كُنَّا مِنْ قَبْلُ﴾ أَيْ فِي الدُّنْيَا ﴿نَدْعُوهُ﴾ نَعْبُدهُ مُوَحِّدِينَ ﴿إِنَّهُ﴾ بِالْكَسْرِ اسْتِئْنَافًا وَإِنْ كَانَ تَعْلِيلًا مَعْنًى وَبِالْفَتْحِ تَعْلِيلًا لَفْظًا ﴿هُوَ الْبَرُّ﴾ الْمُحْسِن الصَّادِق فِي وَعْده ﴿الرَّحِيمُ﴾ الْعَظِيم الرحمة.

**ترجمه**: شروع كوم د الله په نوم سره، چې دير مهربانه او دير رحم كولو والا دې، قسم دې په (طور) باندې يعنى په هغه غر باندې په كوم چې موسى عليه السلام ته د الله تعالى سره د خبرو شرف حاصل شوې دې، او قسم دې په هغه ليكلې شوې كتاب باندې، كوم چې په نبكاره كاغذ كښې دې. يعنى د تورات يا د قرآن او قسم دې په بيت المعمور باندې چې هغه په دريم يا اووم آسمان باندې كعبې ته بالكل مخامخ دې، روزانه د طواف او د مونځ د پاره اوويا زره فرښتې ددې زيارت د پاره حاضريږى او آئنده به ددوى نمبر كله هم رانشى، او قسم دې په

اوچت جهت باندې يعنى آسمان باندې او قسم دې په هغه ډک کړې شوى سمندر باندې، بې شک ستا د رب عذاب د هغې په مستحق باندې نازليدونکې دې، د هغې څوک بندونکې نشته، په کومه ورځ چې آسمان په خوځيدو شى، يعنى حرکت او چکر وهل شروع کړى او غرونه د خپل ځائې نه روان شى، او د الوتو دورو په شان شى، او دا به د قيامت په ورځ وى، نو هلاکت يعنى سخت عذاب دې په دغه ورځ د رسولانو تکذيب کونکو د پاره، کوم چې په باطل کښې لوبې کوى، يعنى په خپل کفر کښې مشغول دى، په کومه ورځ چې په ديکو ديکو د جهنم اور ته بوتللې شى، په سختئ سره به ديکې ورکولې شى، يوم‌ئذنه بدل دې، او ددوى لاجواب کولو د پاره به اوونيلې شى، دا هغه دوزخ دې کوم ته چې تاسو دروغ وئيل، نو آيا دا عذاب کوم ته چې تاسو دروغ وئيل جادو دې، څنګه چې به په تاسو د وحى باره کښې وئيل. چې دا جادو دې، يا تاسو نه پوهيږئ، دوزخ ته داخل شئ په دې باندې صبر کوئ او که نه کوئ، ستاسو صبر کول او نه کول دواړه برابر دى، ځکه چې ستاسو صبر کول تاسو ته څه فائده نه ورکوى، تاسو ته به هغه شان بدله ملاويږى څنګه چې تاسو عمل کولو، يعنى هم ستاسو د عمل بذله به ملاويږى، متقيان به بې شکه په باغونو کښې او د عيش په سامانونو کښې مزې اخلى، خوند به اخلى، د هغه څيزونو نه کوم چې ددوى رب دوى ته ورکړى وى، او ددوى پروردګار به دوى د جهنم د عذاب نه اوساتى، ووقاهم،عطف په آتاهم باندې دې، يعنى دوى ته ورکولو سره، او ددوى حفاظت کولو سره، او دوى ته به وئيلې شى، خورئ، څکئ، په مزو سره، هَنِيْئاً، حال دې، په معنى د متهنئين د خپلو اعمالو په وجه هغوى به برابر په تختونو باندې ډډه وهلى ناست وى، متکئين، د الله تعالى قول فِيْ جَنّٰت کښې د ضمير مستتر نه حال دې، او ددوى به ډير ښکلې سترګو والا حورو سره جوړه اوترو، او کومو خلقو چې ايمان راوړو، دا مبتدأ ده، او په ايمان کښې ددوى بالغ او نابالغ اولاد د دوى تابعدارى اوکړه، واتبعتهم عطف په آمنوا باندې دې، بالغان به خپله ددوى د ايمان د وجې نه، او ماشومان به ددوى د مورپلار د ايمان د وجې نه په جنت کښې د دوى سره يوځائې کړو، چې د هغې د وجې نه به ددوى اولاد ددوى د مورپلار په درجه کښې وى، د مورپلار د اکرام په توګه باندې ددوى اولاد دوى سره جمع کولو سره، اګرچه دې بچو د مورپلار په شان عمل نه وو کړې، او د اجر چې کوم مقدار ددوى د اولاد په حق کښې زيات شوې دې، هغه مقدار به مونږ ددوى د مورپلار د اجر نه نه کموو، اَلَتْنٰهم کښې لام په فتحې، او کسرې سره دې، من‌شئ کښې من زائده دې، هر کس د خپل اعمال په عوض کښې ګانړه دې، که د خير عمل وى، يا د شر، رهين په معنى د مرهون دې، د بدو عملونو په وجه به نيول کيږى، او د نيکو عملونو په وجه به اجر ورکولې شى، او مونږ ددوى د پاره تازه ميوه، او د غوښے، کوم قسم چې دوى ته خوښى

وی، اگرچې په ظاهره به ئې غوښتنه کړې نه وی، خه پراخی به اوکړو، او په جنت کښې به د خوش طبعی د پاره د شرابو جام یوبل نه اخلی راخلی، او دوی به د شراب څکلو د وجې نه نه بیهوده خبرې کوی، او نه بدکرداری، چې د شرابو د وجې دوی ته اولګی، په خلاف د دنیا د شرابو نه، او دوی ته به د خدمت د پاره داسې هلاکان څی راڅی، چې خاص ددوی د پاره به وی، او هغوی به په حسن او پاکوالی کښې داسې وی لکه په صدف کښې چې ملغلره پرته وی، څکه چې هغه موتی کوم چې په صدف کښې وی د هغه موتی نه بهتر وی کوم چې په صدف کښې نه وی، او دوی به یو بل ته متوجه کیدو سره خپلو کښې خبرې کوی، یعنی خپلو کښې به د هغه کارانو کوم چې دوی په دنیا کښې کړې وی، بحث کوی، او د هغه څیزونو په باره کښې هم کوم چې دوی ته ورکړې شول، او دا تول به د لذت حاصلولو د پاره او د نعمت اعتراف کولو په طور وی، او د سبب وصول علت طرف ته اشاره کولو سره به وائی، مونږ ددې نه مخکښې په دنیا کښې د الله د عذاب نه ډیر ویریدلو، نو الله تعالی زمونږ بخښنه کولو سره په مونږ باندې لوئې احسان اوکړو، او مونږ ئې د جهنم د اور نه بچ کړو، د جهنم اور ته سَموم څکه وائی چې هغه مسامات ته داخلیږی، او بطور اشاره دا به هم وائی، چې مونږ خو ددې نه مخکښې په دنیا کښې هم هغه ته اواز کولو یعنی د هغه بندګی مو کوله، او هغه واقعی لوئې محسن او مهربان دې، لوئې رحمت والا دې، (انه) په کسرې سره استئناف دې، اګرچه معنی تعليل وی، او (انه) په فتحې سره لفظا تعليل دې، د (البر) معنی ده هغه محسن کوم چې په خپله وعده کښې رشتونې وی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** **والطور:** د عربئ په ژبه کښې غر ته وائی، بعضې اهل لغت تصریح کړې ده، چې طور شین غر ته وائی، چې کله په دې باندې الف لام داخل شی نو په جزیره نمائے سینا کښې یو مخصوص غر مراد وی، دا هغه غر دې، کوم چې د مصر او مدین په مینځ کښې واقع دې، موسی علیه السلام ته هم په دې غر باندې تجلی شوې وه، او هم په دې غر باندې ورته د کلام شرف حاصل شوې وو. (لغات ال قرآن)

**قوله:** **فِیْ رَقٍّ مَّنْشُوْرٍ:** رق کاغذ، جهلئ، ددې جمع رقوق، **بالفتح کثیرا وبالکسر قلیلا**

**قوله:** **المسجور:** اسم مفعول واحد مذکر، ډک، ددې معنی د ډیر ګرم هم راځی، (ن) سجورا، ګرمول، ډکول

**قوله:** **یُدَعُّوْنَ:** دعٌ نه جمع مذکر غائب مضارع مجهول، دوی به په دیکو سره شړلې شی

**قوله:** **یوم یدعون:** د **تمور السماء مورا** نه بدل دې،

**قوله:** **تمور** (ن) مورًا، شلیدل، رقیدل

**قوله:** بما: لهغي (ما) مصدريه.

**سوال:** (ما) ته مصدريه ولې اووئيلې شو؟

**جواب:** (ما) ته مصدريه ځکه اووئيلې شوه که چرې (ما) موصوله اوګرځولې شي نو په معطوف کښې به صله يعني، دوقاهم به د عائد نه خالي کيدل لازم شي، ځکه چې فعل خپل مفعول (هو) واخستلو، او صله بغير د عائد نه پاتې شوه، حالانکه صله چې کله جمله وي نو د عائد راوړل ضروري وي، او دا هم صحيح ده چې ما موصوله وي، او جمله ووقاهم جمله مستانفه په تقدير د قد سره حاليه وي.

**قوله:** وان كأنه تعليلا معنىً: إنه که چرې په کسرې سره اووئيلې شي، نو دا جمله به مستانفه وي خو د معنى په اعتبار سره به د ندعوه علت وي، مطلب دا چې مونږ د هغه بندګی ځکه کوله چې هغه محسن او رحيم دې، او که انه په فتحې سره اووئيلې شي. نو د ندعوه به لفظا علت وي.

**[اياتونه: ٢٩ - ٤٩]**

(فَذَكِّرْ) دُمْ عَلَى تَذْكِيرِ الْمُشْرِكِينَ وَلَا تَرْجِع عَنْهُ لِقَوْلِهِمْ لَكَ كَاهِن مَجْنُون (فَمَآ أَنتَ بِنِعْمَتِ رَبِّكَ) بِإِنعَامِهِ عَلَيْك (بِكَاهِنٍ) خَبَر مَا (وَلَا مَجْنُونٍ) مَعْطُوف عَلَيْهِ (أَمْ) بَلْ (يَقُولُونَ) هُوَ (شَاعِرٌ نَّتَرَبَّصُ بِهِ رَيْبَ الْمَنُونِ) حَوَادِث الدَّهْر فَيَهْلَك كَغَيْرِهِ مِنَ الشُّعَرَاء (قُلْ تَرَبَّصُوا) هَلَاكِي (فَإِنِّي مَعَكُم مِّنَ الْمُتَرَبِّصِينَ) هَلَاكَكُمْ فَعُذِّبُوا بِالسَّيْفِ يَوْم بَدْر وَالتَّرَبُّص الِانْتِظَار (أَمْ تَأْمُرُهُمْ أَحْلَامُهُم) عُقُولهمْ (بِهَٰذَا) قَوْلهمْ لَهُ سَاحِر كَاهِن مَجْنُون أَيْ لَا تَأْمُرهُمْ بِذَلِكَ (أَمْ) بَلْ (هُمْ قَوْمٌ طَاغُونَ) بِعِنَادِهِمْ (أَمْ يَقُولُونَ تَقَوَّلَهُ) اخْتَلَقَ الْقُرْآن لَمْ يَخْتَلِقهُ (بَل لَّا يُؤْمِنُونَ) اسْتِكْبَارًا فَإِنْ قَالُوا اخْتَلَقَهُ (فَلْيَأْتُوا بِحَدِيثٍ) مُخْتَلَق (مِّثْلِهِ إِن كَانُوا صَادِقِينَ) فِي قَوْلهمْ (أَمْ خُلِقُوا مِنْ غَيْرِ شَيْءٍ) مِنْ غَيْر خَالِق (أَمْ هُمُ الْخَالِقُونَ) أَنْفُسهمْ وَلَا يُعْقَل مَخْلُوق بِغَيْرِ خَالِق وَلَا مَعْدُوم يَخْلُق فَلَا بُدّ لَهُمْ مِنْ خَالِق هُوَ اللَّه الْوَاحِد فَلِمَ لَا يُوَحِّدُونَهُ وَيُؤْمِنُونَ بِرَسُولِهِ وَكِتَابه (أَمْ خَلَقُوا السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ) وَلَا يَقْدِر عَلَى خَلْقهمَا إِلَّا اللَّه الْخَالِق فَلِمَ لَا يَعْبُدُونَهُ (بَل لَّا يُوقِنُونَ) بِهِ وَإِلَّا لَآمَنُوا بِنَبِيِّهِ (أَمْ عِندَهُمْ خَزَائِنُ رَبِّكَ) مِنَ النُّبُوَّة وَالرِّزْق وَغَيْرهمَا فَيَخُصُّوا مَنْ شَاءُوا بِمَا شَاءُوا (أَمْ هُمُ الْمُسَيْطِرُونَ) الْمُتَسَلِّطُونَ الْجَبَّارُونَ وَفِعْله سَيْطَرَ وَمِثْله بَيْطَر وَبَيْقَر (أَمْ لَهُمْ سُلَّمٌ) مَرْقَى إِلَى السَّمَاء (يَسْتَمِعُونَ فِيهِ) أَيْ عَلَيْهِ كَلَام الْمَلَائِكَة حَتَّى يُمْكِنهُمْ مُنَازَعَة النَّبِيّ بِزَعْمِهِمْ إِنِ ادَّعَوْا ذَلِكَ (فَلْيَأْتِ مُسْتَمِعُهُم) مُدَّعِي الِاسْتِمَاع عَلَيْهِ (بِسُلْطَانٍ مُّبِينٍ) بِحُجَّةٍ بَيِّنَة وَاضِحَة وَلِشَبَهِ هَذَا الزَّعْم بِزَعْمِهِمْ أَنَّ الْمَلَائِكَة بَنَات اللَّه قَالَ تَعَالَى (أَمْ لَهُ الْبَنَاتُ) بِزَعْمِكُمْ (وَلَكُمُ الْبَنُونَ) تَعَالَى اللَّه عَمَّا زَعَمْتُمُوهُ (أَمْ تَسْأَلُهُمْ أَجْرًا) عَلَى مَا جِئْتهمْ بِهِ مِنَ الدِّين (فَهُم مِّن مَّغْرَمٍ) غُرْم ذَلِكَ (مُّثْقَلُونَ) فَلَا يُسْلِمُونَ (أَمْ عِندَهُمُ الْغَيْبُ) أَيْ عِلْمه (فَهُمْ يَكْتُبُونَ) ذَلِكَ حَتَّى يُمْكِنهُمْ مُنَازَعَة النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْبَعْث وَأُمُور الْآخِرَة

بزعمهم ﴿أَمْ يُرِيدُونَ كَيْدًا﴾ بك ليهلكوك في دار الندوة ﴿فَالَّذِينَ كَفَرُوا هُمُ الْمَكِيدُونَ﴾ المغلوبون المهلكون فحفظه الله منهم ثم أهلكهم ببدر ﴿أَمْ لَهُمْ إِلَٰهٌ غَيْرُ اللَّهِ سُبْحَانَ اللَّهِ عَمَّا يُشْرِكُونَ﴾ به من الآلهة والاستفهام بأم في مواضعها للتقبيح والتوبيخ ﴿وَإِن يَرَوْا كِسْفًا﴾ بعضا ﴿مِّنَ السَّمَاءِ سَاقِطًا﴾ عليهم كما قالوا ﴿فَأَسْقِطْ عَلَيْنَا كِسَفًا مِّنَ السَّمَاءِ﴾ أي تعذيبا لهم ﴿يَقُولُوا﴾ هذا ﴿سَحَابٌ مَّرْكُومٌ﴾ متراكب نروى به ولا يؤمنون ﴿فَذَرْهُمْ حَتَّىٰ يُلَاقُوا يَوْمَهُمُ الَّذِي فِيهِ يُصْعَقُونَ﴾ يموتون ﴿يَوْمَ لَا يُغْنِي﴾ بدل من يومهم ﴿عَنْهُمْ كَيْدُهُمْ شَيْئًا وَلَا هُمْ يُنصَرُونَ﴾ يمنعون من العذاب في الآخرة ﴿وَإِنَّ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا﴾ بكفرهم ﴿عَذَابًا دُونَ ذَٰلِكَ﴾ في الدنيا قبل موتهم فعذبوا بالجوع والقحط سبع سنين وبالقتل يوم بدر ﴿وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ﴾ أن العذاب ينزل بهم ﴿وَاصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ﴾ بإمهالهم ولا يضق صدرك ﴿فَإِنَّكَ بِأَعْيُنِنَا﴾ بمرأى منا نراك ونحفظك ﴿وَسَبِّحْ﴾ متلبسا ﴿بِحَمْدِ رَبِّكَ﴾ أي قل سبحان الله وبحمده ﴿حِينَ تَقُومُ﴾ من منامك أو من مجلسك ﴿وَمِنَ اللَّيْلِ فَسَبِّحْهُ﴾ حقيقة أيضا ﴿وَإِدْبَارَ النُّجُومِ﴾ مصدر أي عقب غروبها سبحه أيضا أو صل في الأول العشاءين وفي الثاني الفجر وقيل الصبح

**ترجمه:** او تاسو دوی پوه کوئ، یعنی د مشرکانو د پوهه کولو پابندی کوئ، او ددوی تاسو ته کاهن ویلو سره تاسو د دوی د پوهه کولو نه روستو کیږئ مه، ځکه چه ته د خپل رب په فضل سره یعنی تاسو د هغه په انعام سره نه کاهن ئې او نه مجنون، بکاهن د ما خبر دې، او لا مجنون په دې باندې معطوف دې، آیا کافران داسې وائی چې دې شاعر دې، نو مونږ په دوی باندې د زمانې د حوادثاتو انتظار کوو، نو د نورو شاعرانو په شان به دې هم هلاک شی، تاسو اووائې چې تاسو ځما د هلاکت انتظار کوئ، ځه هم تاسو سره ستاسو د هلاکت په انتظار یم، چناچنه د بدر په ورځ د توري په ذریعه دوی ته سزا ورکړې شوه، او د تربص معنی د انتظار ده، آیا ددوی عقل دوی ته دا وربنائی، یعنی ستاسو په باره کښې ساحر، کاهن، شاعر، او مجنون ورته ښائی، یعنی داسې نه ښائی، یا د خپل اعتماد د وجې نه دوی سرکش دی، آیا دوی دا وائی چې قرآن ده پخپله جوړ کړې دې، یعنی د خپل ځان نه ئې جوړ کړې دې، بلکه حقیقت دا دې چې دا خلق د تکبر د وجې نه ایمان نه راوړی، نو که ددوی دا خبره کول دی چې دا قرآن ده پخپله جوړ کړې دې، نو دوی دې هم ددې پشان یو کلام جوړ کړې راوړی، که چرې دوی په خپله خبره کښې رشتونې وی، آیا دا خلق بغیر د خالق نه پخپله پیدا شوې دی، یا دوی پخپله د پیدا کونکی دی، او دا خبره د عقل خلاف ده چې د یو مخلوق وجود دې د خالق نه بغیر وی، او نه دا خبره په عقل کښې د راتلو ده چې معدوم چا لره پیدا کړی، لهذا دا خبره ثابت شوه چې ددوی خامخا څوک خالق شته، او هغه یو اځې الله دې، نو بیا ولې د هغه د توحید منونکې نه جوړیږی، او د هغه په رسولانو او کتابونو باندې ایمان نه راوړی، آیا دوی آسمانونه او زمکې پیدا کړی دی؟ حالانکه ددې په تخلیق باندې د الله خالق

نه علاوه هيڅ څوک قادر نشته، نو بيا د هغه بندګی ولې نه کوی، بلکه حقيقت دا دې چې دا خلق يقين نه لری، ګنی د هغه په نبی باندې به ئې ايمان راوړې وو، آيا ددوی په قبضه کښې دی د نبوت او رزق وغيره ستا د رب خزانې چې دوی ئې د چا د پاره غواړی او څه چه غواړی خاص کړی، يا دا خلق حاکمان دی، يعنی مسلّط حاکمان دی، او ددې فعل صيطر دې، او ددې په شان بَيطر وبيطرد، بيطر، بيطارنه دې، د څانورو ډاکټر دې، او بيطر په معنی دهق واسد وأهلك دې، آيا دوی سره پوړۍ ده؟ آسمان ته د ختلو آله، چې په دهغې باندې ختلو سره د فرشتو خبرې اووری، تردې چې ددوی د پاره نبی ﷺ سره د دوی په خيال کښې منازغت ممکن شوې دې، که ددوی دا دعوی ده نو هغه د اوريدو دعويداردې په دې باندې څه واضح دليل پيش کړی، او ددې ګمان، ددوی د هغه ګمان سره مشابه کيدو د وجې چې فرشتې د الله لونړه دی، الله تعالی اوفرمائيل آيا د الله د پاره ستاسو په ګمان کښې لونړه دی، او ستاسو د پاره ځامن دی، الله تعالی هغه څه نه بری دې د څه چې دوی ګمان کوی، آيا تاسو دوی نه په هغه دين باندې کوم چې تاسو دوی ته راوړې دې څه بدله طلب کوئ؟ چې دوی د هغې د وزن نه درانه دی، چې د هغې د وجې نه دوی اسلام نه قبلوی، يا دوی سره غيب يعنی علم غيب دې کوم چې دوی ليکی، تردې چې ددوی د پاره د نبی ﷺ سره، ددوی په خيال کښې په بعث او د آخرت په معامله کښې نزاع کول ممکن شو. آيا دا خلق تا سره په دارالندوه کښې څه د دهوکې اراده کوی، چې تاسو هلاک کړی، نو تاسو يقين اوساتئ دهوکه خوړونکې مغلوب کيدلو والا هلاک کيدو والا هم دا کافران دی، نو دغه شان الله تعالی ددوی نه د حضور ﷺ حفاظت اوکړو، بيا ئې دوی په بدر کښې هلاک کړل، آيا د الله نه سوا ددوی بل معبود شته؟ سبحان الله هيڅ کله هم نه، الله تعالی د (معبودانِ باطله) نه د هر يو معبود نه پاک دې، کوم چې دوی د هغه سره شريک جوړوی، او استفهام (ام) سره په ټولو ځايونو کښې د تقبيح او توبيخ د پاره دې، که چرې دا خلق د آسمان يو ټکړه د خپله پاس نه راغورزيدونکې اوينی ځنګه چې دوی وئيلې وو، چې د اسمان يو ټکړه په مونږ باندې را اغورزوه، يعنی دوی ته عذاب ورکولو د پاره، نو اوبه وائی چې دا څو يو بل د پاسه اوريځې دی، يعنی ډيرې اوريځې دی، چې په هغې سره به مونږ خروب شو، او ايمان نه راوړی. نو تاسو دوی پرېږدئی تردې چې دوی د هغې ورځ سره مخامخ شی، په کومه ورځ چې به دوی ته مرګ راشی، په کومه ورځ به چې ددوی تدبيرونه هيڅ په کار رانشی، يَوْمَ لَا يُغْنِي دَيَوْمِهِمْ نه بدل دې، او نه به دوی ته مدد ملاوېږی، يعنی په آخرت کښې به ددوی نه عذاب نه لرې کيږی، او د هغه خلقو د پاره چا چې د کفر په ذريعه په ځان ظلم اوکړو، ددې عذاب نه مخکښې هم عذاب راتلونکې دې، يعنی په دنيا کښې ددوی د مرګ نه مخکښې، چنانچه د لوږې او د قحط په ذريعه اووه کاله په عذاب کښې مبتلا کړې شو، او په بدر کښې د قتل په ذريعه، خو

په دوی کښې ډیرو ته معلوم نه ده، چې په دوی باندې به عذاب نازلیږي، او تاسو د خپل رب په دې تجویز باندې صبر اوکړئ، دوی ته مهلت ورکولو سره، او ستاسو زړه دې نه تنګ نشي، ځکه چې ته زمونږ په حفاظت کښې یئ، یعنی ته زمونږ په نظر کښې یئ، مونږ تا ته ګورو، او ستا حفاظت کوو، او ته د خپل رب د اوده کیدو نه پس یا د مجلس نه د پاسیدو نه پس تسبیح او تحمید کوه، یعنی سبحان الله وبحمده وایه، او د شپې هم حقیقتا د هغه تسبیح کوه او د ستورو د ډوبیدو نه پس هم، إدبار مصدر دې، یعنی د ستورو د غروب کیدو نه پس تسبیح بیانوه، او اول کښې، د مغرب او د عشاء مونځ مراد دې، او د دویم نه د فجر سنت مراد دی، او دا هم وئیلې شوې دی چې د سحر مونځ مراد دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** ثُمَّ علی تَذکیرِ المشرکین: فذکر تفسیر په دې سره کولو کښې دې خبرې ته اشاره اوشوه، چې ذکرد انت په معنی دې، یعنی چې څنګه تاسو اوڅه پورې دوی ته نصیحت کولو دغه شان راروان وخت هم کوئ، ددوی د خبرو د وجې نه زړه تنګیدو سره ددوی نه بې رخی او کناره کشی مه کوئ.

**قوله:** بنعمة ربك: أی بفضل ربك

**قوله:** فما أنت بنعمة ربك بکاهن ولا مجنون: باء قسم د پاره، ربك مقسم به، کوم چې د (ما) د اسم (انت) او د خبر (کاهن) په مینځ کښې واقع دوې، تقدیری عبارت دا دې، ما أنت ونعمة ربك بکاهن ولا مجنون، کاهن هغه کس ته وائی، چې دعوی کوی چې زه بغیر د وحی نه غیب پیژنم، او بعضې حضراتو وئیلې دی، چې په بنعمة کښې (باء) سببیه ده، او جمله منفیه د مضمون سره متعلق ده، معنی دا ده، انتفی عنك الکهانة والجنون بسبب نعمة الله علیك یعنی ستاسو نه د الله په فضل سره کهانت او جنون منتفی دې.

**قوله:** أم بل یقولون: أم په دې ایتونو کښې پنځلس ځایونو کښې راغلې دې، په هر ځائې کښې ددې تقدیر په (بل) او همزه سره دې، او همزه استفهام انکاری توبیخی د پاره ده، لهذا د مفسر علام د پاره مناسب وه چې هر ځائې ئې (بل) او همزه استفهام سره مقدر منلې وی.

**قوله:** قُل تَرَبَّصُوا: امر د تهدید د پاره دې.

**قوله** أحلامُهم: حُلُمٌ او حِلمٌ د دواړو جمع ده، حُلم، په معنی د خوب، او د حلم بکسر الحاء معنی ده بردباری او صبر، او چونکه بردباری د عقل د وجه نه راځی، په دې وجه د حلم معنی د عقل هم کیږی، ګویا چې دلته مسبب وئیلو سره سبب مراد اخستلې شوې دې.

**قوله**: لَمْ يَخْتَلِقْهُ: په دې سره ئې اشاره اوکړه چې أَمْ يَقُولُونَ تَقَوَّلَهُ کښې همزه د استفهام انکاري د پاره ده.

**قوله**: فَإِن قَالُوا: دې سره ئې اشاره اوکړه چې فَلْيَأْتُوا بِحَدِيثٍ د شرطِ محذوف جزاء ده.

**قوله**: وَلِشَبَهِ هٰذَا الزَّعْمِ بِزَعْمِهِمْ أَنَّ الْمَلَائِكَةَ بَنَاتُ اللّٰهِ: ددې عبارت د اضافې مقصد د يوې شبهې ازاله کول دی، شبه دا ده چې د الله تعالى قول أَمْ لَهُ الْبَنَاتُ وَلَكُمُ الْبَنُونَ د ماقبل سره هيڅ ربط نشته.

**جواب**: د جواب خلاصه دا ده چې په مخکښې آيت کښې د مشرکينو هغه زعم بيان شوې دې چې محمد ﷺ د خپل ځان نه جوړ شوې قرآن خلقو ته پيش کوي، ددوی دا خيال فاسد او باطل دې،

په دويم ايت کښې د مشرکينو د دې زعم فاسد او د باطل ګمان ذکر دې چې ملائکه د الله تعالى لونړه دی، دواړه خيالونه او دواړه ګمانونه په فساد او باطلوالی کښې مشترک دی، او هم دغه وجه د اشتراک ده، په دواړو ايتونو کښې ربط ثابت شو.

**قوله**: غُرْمٍ مُّثْقَلُونَ تفسير په غرم سره کولو کښې ئې اشاره اوکړه چې مغرم مصدر ميمی دې.

**قوله**: فِي دَارِ النَّدْوَةِ: مفسر علام د پاره مناسب وه چې لفظ د دارالندوه ئې حذف کړې وو، ځکه چې په دارالندوه کښې د مشرکينو جمع کيدل د هجرت په شپه کښې شوې وو، چې په هغې د حضور ﷺ د قتل سازش جوړ شوې وو، او دا سورت مکی دې، کوم چې د هجرت نه مخکښې نازل شوې وو، لهذا سازش په دارالندوه سره مقيد کول مشکل دی، نو په دې وجه د دارالندوه قيد حذف کول بهتر دې، ځکه چې د مکر او سازش سلسله د بعثت د اول ورځې نه شروع ده.

**قوله**: فَأَسْقِطْ عَلَيْنَا كِسَفًا: دا ايت د قوم شعيب ﷺ په باره کښې نازل شوې دې، څنګه چې په سورة شعراء کښې ذکر دی، د مفسر علام د پاره مناسب وو چې د هغه ايت نه ئې استدلال کړې وو، کوم چې د قريشو باره کښې په سورة إسراء کښې نازل شوې دې، هغه دا دې، أَوْ تُسْقِطَ السَّمَاءَ كَمَا زَعَمْتَ عَلَيْنَا كِسَفًا

**قوله**: فَذَرْهُمْ: دا د شرط مقدر جزاء ده، شرط مقدر دا دې، إِذَا بَلَغُوا فِي الْعِنَادِ إِلَى هٰذَا فَذَرْهُمْ

......

## [٥٢] سورة النجم

### سورة النجم مكية ثنتان وستون اية

### سورة النجم مکی ده، په دې کښې دوه شپېته آيتونه دي.

### [ايا تونه: ١-٢٥]

﴿وَالنَّجْمِ﴾ الثُّرَيَّا ﴿إِذَا هَوَىٰ﴾ غَابَ ﴿مَا ضَلَّ صَاحِبُكُمْ﴾ مُحَمَّد عَلَيْهِ الصَّلَاة وَالسَّلَام عَنْ طَرِيق الْهِدَايَة ﴿وَمَا غَوَىٰ﴾ مَا لَابَسَ الْغَيّ وَهُوَ جَهْل مِنْ اعْتِقَاد فَاسِد ﴿وَمَا يَنْطِقُ﴾ بِمَا يَأْتِيكُمْ بِهِ ﴿عَنِ الْهَوَىٰ﴾ هوى نفسه ﴿إِنْ﴾ مَا ﴿هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ﴾ إِلَيْهِ ﴿علمه﴾ إياه ملك ﴿شديد القوى﴾ ﴿ذُو مِرَّةٍ﴾ قُوَّة وَشِدَّة أَوْ مَنْظَر حَسَن أَيْ جِبْرِيل عَلَيْهِ السَّلَام ﴿فَاسْتَوَىٰ﴾ اسْتَقَرَّ ﴿وَهُوَ بِالْأُفُقِ الْأَعْلَىٰ﴾ أُفُق الشَّمْس أَيْ عِنْد مَطْلَعهَا عَلَى صُورَته الَّتِي خُلِقَ عَلَيْهَا فَرَآهُ النَّبِيّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَ بِحِرَاءٍ قَدْ سَدَّ الْأُفُق إِلَى الْمَغْرِب فَخَرَّ مَغْشِيًّا عَلَيْهِ وَكَانَ قَدْ سَأَلَهُ أَنْ يُرِيه نَفْسه عَلَى صُورَته الَّتِي خُلِقَ عَلَيْهَا فَوَاعَدَهُ بِحِرَاءٍ فَنَزَلَ جِبْرِيل لَهُ فِي صُورَة الْآدَمِيِّينَ ﴿ثُمَّ دَنَا﴾ قَرُبَ مِنْهُ ﴿فَتَدَلَّىٰ﴾ زَادَ فِي القرب ﴿فَكَانَ﴾ مِنْهُ ﴿قَابَ﴾ قَدْر ﴿قَوْسَيْنِ أَوْ أَدْنَىٰ﴾ مِنْ ذَلِكَ حَتَّى أَفَاقَ وَسَكَنَ رَوْعَهُ ﴿فَأَوْحَىٰ﴾ تَعَالَى ﴿إِلَىٰ عَبْدِهِ﴾ جِبْرِيل ﴿مَا أَوْحَىٰ﴾ جِبْرِيل إِلَى النَّبِيّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ يَذْكُر الْمُوحَى تَفْخِيمًا لِشَأْنِهِ ﴿مَا كَذَبَ﴾ بِالتَّخْفِيفِ وَالتَّشْدِيد أَنْكَرَ ﴿الْفُؤَادُ﴾ فُؤَاد النَّبِيّ ﴿مَا رَأَىٰ﴾ بِبَصَرِهِ مِنْ صُورَة جِبْرِيل ﴿أَفَتُمَارُونَهُ﴾ تُجَادِلُونَهُ وَتَغْلِبُونَهُ ﴿عَلَىٰ مَا يَرَىٰ﴾ خِطَاب لِلْمُشْرِكِينَ الْمُنْكِرِينَ رُؤْيَة النَّبِيّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وسلم لجبريل ﴿ولقد رآه﴾ على صورته ﴿نزلة﴾ مرة ﴿أُخْرَىٰ﴾ ﴿عِنْدَ سِدْرَةِ الْمُنْتَهَىٰ﴾ لَمَّا أُسْرِيَ بِهِ فِي السَّمَاوَات وَهِيَ شَجَرَة نَبْق عَنْ يَمِين الْعَرْش لَا يَتَجَاوَزهَا أَحَد مِنَ الْمَلَائِكَة وَغَيْرهمْ ﴿عِنْدَهَا جَنَّةُ الْمَأْوَىٰ﴾ تَأْوِي إِلَيْهَا الْمَلَائِكَة وَأَرْوَاح الشهداء والمتقين ﴿إِذْ﴾ حين ﴿يَغْشَى السِّدْرَةَ مَا يَغْشَىٰ﴾ مِنْ طَيْر وَغَيْره وإذ معمولة لرآه ﴿مَا زَاغَ الْبَصَرُ﴾ مِنَ النَّبِيّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ﴿وَمَا طَغَىٰ﴾ أَيْ مَا مَالَ بَصَره عَنْ مَرْئِيّه الْمَقْصُود لَهُ وَلَا جَاوَزَهُ تلك الليلة ﴿لقد رأى﴾ فيها ﴿مِنْ آيَاتِ رَبِّهِ الْكُبْرَىٰ﴾ الْعِظَام أَيْ بَعْضهَا فَرَأَى مِنْ عَجَائِب الْمَلَكُوت رَفْرَفًا أخضر سَدَّ افق السماء وجبريل له ستمائة جناح ﴿أفرأيتم اللات والعزى﴾ ﴿وَمَنَاةَ الثَّالِثَةَ﴾ لِلَّتَيْنِ قَبْلهَا ﴿الْأُخْرَىٰ﴾ صِفَة ذَمّ لِلثَّالِثَةِ وَهِيَ أَصْنَام مِنْ حِجَارَة كَانَ الْمُشْرِكُونَ يَعْبُدُونَهَا وَيَزْعُمُونَ أَنَّهَا تَشْفَع لَهُمْ عِنْد اللّٰه ومفعول افرايتم الأول اللات وَمَا عُطِفَ عَلَيْهِ وَالثَّانِي مَحْذُوف وَالْمَعْنَى أَخْبِرُونِي أَلِهَذِهِ الْأَصْنَام قُدْرَة عَلَى شَيْء مَا فَتَعْبُدُونَهَا دُون اللّٰه الْقَادِر عَلَى مَا تَقَدَّمَ ذِكْره وَلَمَّا زَعَمُوا أَيْضًا أَنَّ الْمَلَائِكَة بَنَات اللّٰه مع كراهتهم البنات نزلت ﴿ألكم الذكر وله الأنثى﴾ ﴿تلك إذا قسمة ضيزى﴾ جَائِرَة مِنْ ضَازَهُ يَضِيزهُ إِذَا ظَلَمَهُ وجار عليه ﴿إِنْ هِيَ﴾ أَيْ مَا الْمَذْكُورَات ﴿إِلَّا أَسْمَاءٌ سَمَّيْتُمُوهَا﴾ اي سميتم بها ﴿أنتم وآباؤكم﴾ أَصْنَامًا تَعْبُدُونَهَا ﴿مَا أَنْزَلَ اللّٰهُ بِهَا﴾ أَيْ بِعِبَادَتِهَا ﴿مِنْ سُلْطَانٍ﴾ حُجَّة وَبُرْهَان ﴿إِنْ﴾ مَا ﴿يَتَّبِعُونَ﴾ فِي عِبَادَتِهَا ﴿إِلَّا الظَّنَّ وَمَا تَهْوَى الْأَنْفُسُ﴾ مِمَّا زَيَّنَ لَهُمْ الشَّيْطَان مِنْ أَنَّهَا تَشْفَع لَهُمْ عِنْد اللّٰه تَعَالَى ﴿وَلَقَدْ جَاءَهُمْ مِنْ رَبِّهِمُ الْهُدَىٰ﴾ عَلَى لِسَان النَّبِيّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْبُرْهَانِ الْقَاطِع فَلَمْ يَرْجِعُوا عَمَّا هُمْ عَلَيْهِ

(أَمْ لِلْإِنْسَانِ) أي لِكُلِّ إنسان مِنهُمْ (مَا تَمَنَّى) مِن أنَّ الأَصْنَام تَشْفَع لَهُمْ لَيْسَ الأمر كذلك (فَلِلّٰهِ الْآخِرَةُ وَالْأُولَى) أي الدُّنْيَا فَلا يَقَع فيها إلَّا مَا يُرِيدهُ تَعَالَى

**ترجمه:** شروع کوم د الله په نوم سره چې ډير مهربان او ډير رحم کولو والا دې، قسم دې، په ثريا ستورې باندې، هر کله چې راوغورزيږي، يعني غائب شي، ستاسو ملګرې محمد ﷺ د هدايت د لارې نه اوړيدلې نه دې، يعني هغه په عقيده کښې کوږوالي اختيار کړې نه دې، او دا (يعني غی)، د فاسدې عقيدې نه پيدا کيدونکې جهالت دې، او څه چې هغه تاسو ته بيانوی د خپل نفس د خواهش نه ئې نه بيانوی، هغه خو صرف وحی ده، کوم چې د هغه طرف ته نازليږی، ددې وحی هغه ته يو فرشته تعليم ورکوی، کومه چې ډيره طاقتوره او زور وره ده، يعنی قوت او شدت والا ده، يا حسين المنظر ده، يعنی جبرئيل ﷺ بيا هغه نيغه اودريده په داسې حالت کښې چې هغه د مشرق په اوچت افق باندې وو، يعنی د نمر د راختو په ځائې، په خپل اصلی صورت کښې په کوم چې هغه پيدا شوې دې، حضور ﷺ هغه اوليدو او هغه وخت حضور ﷺ په غار حراء کښې وو، په داسې حال کښې چې د مغرب پورې هغه ټول افق ډک کړې وو، بيا حضور ﷺ بيهوشه راپريوتلو، او دوی ﷺ د جبرئيل ﷺ نه سوال کړې وو چې ماته ځان په هغه صورت کښې اوښايه په کوم چې پيدا شوې يې، نو دغه شان جبرئيل ﷺ د نبی عليه السلام سره په حراء په ځائې کښې د دې وعده اوکړه، نو هلته جبرئيل په اصل شکل کښې ځان ښکاره کړو، بيا هغه د حضور ﷺ نيزدې شو بيا راکوز شو، يعنی ډير نيزدې شو، نو حضور ﷺ ته د دوو قوسونو په اندازه يا ددې نه هم زيات نزدې شو، تردې چې حضور ﷺ د بيهوشې نه هوش کښې راغې، او د هغوی ويره هم لاړه، بيا الله تعالی خپل بنده جبرئيل طرف ته وحی اوکړه، کومه چې جبرئيل ﷺ حضور ﷺ ته رااورسوله، او د (مُوحَى بِه) ذکر ئې اونکړو، يعنی د عظمت شان د ښکاره کولو د پاره ئې مبهم اوساتلو، د حضور ﷺ زړه مبارک ددې صورت ترديد اونکړو، کوم صورت چې حضور ﷺ په خپل نظر سره د جبرئيل اوليدلو، کذب په تخفيف او تشديد سره دې، نو آيا تاسو ددې پيغمبر په ليدلی شوی څيز مجادله کوئ، او په هغه باندې د غالب کيدو کوشش کوئ، دا خطاب هغه مشرکانو ته دې کوم چې د نبی عليه السلام جبرئيل ﷺ لره د ليدلو نه منکر وو، او هغه ئې خو په اصل صورت کښې يو ځل په سدرة المنتهی باندې هم کتلې وو، کله چې د شپې په وخت هغوی (نبی عليه السلام) آسمانونو ته بوتللې شوې وو، او د عرش په ښی طرف د بيرې اونه ده د هغې نه وړاندې فرشته وغيره مخکښې تلې نشی، د هغې سره جنت الماوی دې، په کوم ځائې چې فرشتې او د شهيدانو روحونه يا د متقيانو روحونه استوګنه کوی، کله چه سدرة المنتهی لره پټه کړه هغه څيزونو کوم په دې باندې خواره

وو، مرغۍ وغیره، او إذا د رأه معمول دې، د نبی علیه السلام نظر نه کوږ شو او نه تجاوز اوکړو، یعنی د نبی علیه السلام نظر په دغه شپه د مرکز نظر نه وانوړیدو، او نه ئې تجاوز اوکړو، یقینا هغه په دغه شپه کښې د خپل رب لوړو نښو کښې بعضې اولیدلې، هغوی ﷺ د عالم ملکوت په عجائباتو کښې شین قالین اوکتلو، کوم چې د آسمان افق ډک کړې وو، او جبرئیل علیه السلام ئې اوکتلو چې د هغه شپږ سوه وزرې وو، آیا تاسو لات او عزی او روستو منات کتلې دی، یعنی ددې باره کښې مو غور کړې دې، کوم چې د مخکښې دوؤ دریم دې، الأخری، د ثالثة صفت ذم دې، او هغه د کاڼړی بتان دی، مشرکینو به ددې عبادت کولو، او دا دعوی به ئې کوله چې دوی به الله تعالی ته زمونږ سفارش کوی، او د (اریتم) مفعول اول (اللات) دې، او په دې باندې چې د چا عطف شوې دې هغه دې، او دویم مفعول محذوف دې، او معنی دا ده، چې ماته اووائې چې آیا دې بتانو ته په څه څیز باندې قدرت حاصل دې؟ چې د هغې د وجې نه تاسو الله تعالی پریخودو او ددوی عبادت کوئ، کوم چې قادر دې، څنګه چې مخکښې ذکر شول او ددوی دعوی هم دا وه چې فرشتې د الله لونړه دی، باوجود ددې نه چې دوی خپله لونړه نه خوښوی، نو أَلَكُمُ الذَّكَرُ وَلَهُ الْأُنثَى (الآیة) نازل شو، یعنی ستاسو د پاره دې ځامن وی او د هغه د پاره دې لونړه، دا خو ډیر د ظلم تقسیم دې، یعنی ظالمانه دې، دا ضِيزَى ضازه يضيزه نه ماخوذ دې، چې په دوی باندې ظلم او زیاتې اوکړی، دا صرف څو نومونه دی کوم چې تاسو یعنی ددوی تاسو نومونه ایښې دی، او ستاسو پلارانو ددې بتانو لره ایښودلې دی، چې د هغې تاسو عبادت کوئ، ددوی د عبادت په باره کښې الله تعالی څه دلیل او حجت نازل کړې نه دې، دا خلق د هغه د بندګئ په باره کښې صرف د ګمان او د خواهشاتو تابعداری کوی، یعنی د هغه ګمانونو کوم چې شیطان ددوی د پاره خائسته کړې دی، دا چې دا بتان به د الله مخکښې ددوی شفاعت کوی، او یقینا دوی ته ددوی د رب د طرف نه د نبی ﷺ په ژبه مبارک په پوخ دلیل سره هدایت راغلې دې، بیا هم دوی د خپل اختیار کړی عادت نه منع نه شول، آیا د انسان د پاره یعنی په دوی کښې د هر یو انسان د پاره هغه میسر دی د څه چې هغه خواهش کوی، دا چې بتان به ددوی شفاعت اوکړی، خبره داسې نه ده، هغه جهان او دا جهان هم د هغه په قبضه کښې دې، لهذا په دواړه جهانونو کښې به صرف هغه کیږی څه چې هغه غواړی

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله** والنجم: واؤ قسمیه دې، النجم ستورې، (جمع) نجوم و أنجم اسم جنس دې، په دې باندې اسمیت غالب شوې دې، چې کله مطلق اووئیلې شی، نو ثریا ستورې مراد اخستلې شی، د النجم نه دلته څه مراد دې؟ په دې کښې څو اقوال دی.

(١) يو جماعت وئيلى دى چې جنسِ نجوم مراد دى،
(٢) ثريا ستورې مراد دې، (مفسر هم دا قول اختيار كړې دې) مجاهد وغيره هم دا مراد اخستې دې.
(٣) سدى وائى چې زهره ستورې مراد دې، د عربو يوې قبيلې به ددې عبادت كولو،
(۴) بعضې حضراتو څيلو والا گياه مراد اخستې ده، څنگه چې د الله تعالى قول والنجم والشجر يسجدان كښې د اخفش هم دا قول دې.
(۵) وئيلې شوې دى چې محمد ﷺ ترې مراد دې،
(٦) بعضې حضراتو قرآن مراد اخستې دې، د نَجْمًا نَجْمًا نازليدو د وجې نه، د مجاهد او د فراء هم دا قول دې، ددې نه علاوه نور هم ډير اقوال دى، خو راجح قول ثريا دې، (فتح القدير شوكانى) ثريا د اوؤه ستورو مجموعه ده، شپې په هغې كښې ښكاره دى او يو پټ دې، بعضې حضراتو د اوؤه نه هم زياته مجموعه وئيلى دى، خلق د ثريا نه د خپلو نظرونو امتحان اخلى، په شفاء كښې، قاضى عياض ليكلې دى، چې حضور ﷺ به د ثريا اووه ستورى ليدل، او د مجاهد نه هم داسې قول مروى دې.

قوله: إِذَا هَوٰى: (ض) أى سقط وغاب

قوله: مَا ضَلَّ صَاحِبُكُمْ وَمَا غَوٰى: دا د عطف الخاص على العام د قبيلې نه دې، ضلالت هر قسم گمراهى، كه اعتقادى وى او كه عملى، او غوايت اعتقادى گمراهى، او بعضې حضراتو وئيلې دى، ضلال علمى گمراهى، غوايت عملى گمراهى، او بعضې حضراتو دواړو ته مترادف وئيلې دى.

قوله: عَنِ الْهَوٰى: اسم مصدر (سمع) د نفس ناجائز رغبت، عَنِ الْهَوٰى، د مَا يَنْطِقُ سره متعلق دې، يعنى د نبى عليه السلام يو كلام هم د نفس د خواهش نه نه وى.

قوله: إِنْ هُوَ: د هو مرجع نطق دې، كوم چې د ينطق نه معلوميږى.

قوله: يُوْحٰى: دا د وحى صفت دې، د مجاز احتمال ختمولو د پاره

قوله: عليه إياه: ضمير منصوب متصل حضور ﷺ ته راجع دې، او مفعول اول دې، او دويم ضمير منصوب منفصل كوم چې مفسر علام محذوف گرځولې دې، هغه مفعول ثانى دې، او د وحى طرف ته راجع دې.

قوله: شَدِيْدُ الْقُوٰى، دا د موصوف محذوف صفت دې، كوم ته چې مفسر علام ملك محذوف منلو سره اشاره كړې ده، مراد جبرئيل عليه السلام دې.

قوله: ذُوْ مِرَّةٍ، مرة قوت باطنى ته وائى، لكه عزم، سرعت حركت، او بعضې حضراتو د مرانه

علم، او بعضو حسن او جمال مراد اخستې دي، مفطرحسن وئيلو سره هم دې معنى طرف ته اشاره شوې ده، هدید القوی ظاهری طاقت، یعنی الله تعالی جبرئیل علیه السلام ته ظاهری او باطنی قوت بدرجهٔ أتم ورکړی دی.

**قوله**: فَاسْتَوٰى: علمه شديد القوى باندې د دې عطف دې.

**قوله**: وهو بالأفق الأعلى: جمله حاليه ده،

**قوله**: فَتَدَلّٰى: تدلی نه ماضی واحد مذکر غائب، هغه راکوز شو، هغه زوړند شو، هغه نزدې شو، دا د دَلَّيْتُ الدَّلْوَ فِي الْبِئْرِ نه ماخوذ دې، ما په کوهی کښې دولچه زوړنده کړه. یا ورکوزه مې کړه.

**سوال**: نزدې کيدل د نازليدو نه پس راځی، لهذا دا وئيل چې نزدې شو، او بيا نازل شو. مناسب نه معلوميږی؟

**جواب**: مفسر علام د زاد في القرب اضافه کولو سره ددې شبهې جواب ورکړو يعنى جبرئيل علیه السلام نزدې شو او بيا نور هم زيات نزدې شو، او بعضې حضراتو د مذکوره شبهې جواب دا ورکړې دې چې په کلام کښې تقديم او تاخير دې، تقديری عبارت دا دې ثُمَّ تَدَلّٰى فَدَنٰى يعنى جبرئيل علیه السلام راکوز شو او نزدې شو.

**قوله**: قَابَ قَوْسَيْنِ: القاب والقيب والقاد القيد المقدار، په عربو کښې د ناپ او تول کولو مختلف طريقې دی، په هغې کښې يوه طريقه په قوس (کمان) سره د ناپ کولو هم وه، د قوس نه علاوه عربو به په نيزه يعنی کوړا، ذراع الباع، الخطوة (قدم) الشبر (لیشت) فتر، (د شهادت او غټې ګوتې د مينځ حصه، والأصبع (انګشته ګوته) سره به ئې هم ناپ کولو يعنى جبرئيل علیه السلام حضور ﷺ ته دومره نزدې شو چې صرف د دوؤ کمانو مقدار پاتې شو، بعضې حضراتو وئيلې دی چې قاب هغه فاصلې ته وائی کوم چې د کمان د لاسکی او ژائې په مينځ کښې وی، او د دوؤ کمانونو دوه قاب وی.

**قوله**: أَوْ أَدْنىٰ: کښې أو په معنى د بل دې، لکه د الله تعالى قول أو يزيدون کښې أو په معنى د بل دې، او که أو په خپله اصل معنى کښې وی، نو شک به د رائی (يعنی کتونکې) په اعتبار سره وی.

**قوله**: حَتّٰى أَفَاقَ: دا د محذوف غايت دې، تقديری عبارت دا دې، أی عمه الی سعی أفاق

**قوله**: مَا كَذَبَ بالتشديد والتخفيف: دواړه قراتونه سبعيه دی، د تشديد په صورت کښې به ترجمه وی (کوم څه چې نبی عليه السلام اوليدل زړه په هغې کښې شک اونکړو)

**قوله:** من صورة جبرئيل: دا د ما بيان دې،

**قوله:** وتغلبونه: د تمارون دويم تفسير په تغلبونه سره كولو كښې دا اشاره اوكړه چې تمارونه د تغلبونه معنى لره متضمن دې، او ددې صله (على) رواړل صحيح دى.

**قوله:** المأوٰى: مصدر او اسم ظرف دې قيام كول، سكونت اختيار رول، د اوسيدو ځائې (ض)، كه په صله كښې إلى راشى نو پناه اغستل او كه ددې صله لام وى نو مهربانى كول، لكه أوٰى له په هغه باندې ئې مهربانى اوكړه، په هغه ئې رحم اوكړو.

**قوله:** لقد رأى: لام په جواب قسم دې، او قسم (القسم) محذوف دې.

**قوله:** من آيات ربه الكبرٰى: من تبعيضيه دې، او د رأى مفعول دې، ښنګه چې مفسر علام اشاره اوكړه، او كبرى د آيات صفت دې.

**سوال:** الآيات موصوف جمع ده، او كبرى صفت واحد دې، په موصوف او صفت كښې مطابقت نشته؟

**جواب:** الآيات داسې جمع ده چې د هغې واحد مؤنث راوړل صحيح دى، ددې نه علاوه د فواصل رعايت ساتلو د پاره په دې كښې نور هم حسن پيدا شو.

په دې كښې دويم تركيب دا هم كيدې شى، چې الكبرى د رأىٰ مفعول به، او من آيات ربه حال مقدم، تقديرى عبارت دا دې، لقد رأى الآيات الكبرٰى حال كونها من جملة آيات ربه.

**قوله:** رَفْرَفاً: قالين، رفرفا خضرا شين قالين، څادر، شنه باغيچه، او ددې واحد رفرفة راځى. (لغات ال قرآن)

**قوله:** أفرأيتم اللات والعزّٰى: استفهام توبيخى دې، لات د هغه بت نوم دې، كوم چې په كعبه كښې نصب وو، بعضې حضراتو وئيلى دى چې دا بت په طائف كښې وو، او دا د بنو ثقيف ديوتا (معبود) وو، ددې په تحقيق كښې بعضې حضراتو وئيلى دى، چې دا د لتّ السويق نه ماخوذ دې، لات د اسم فاعل صيغه ده، اغړلو والا، ملاوولو والا، يو كس چې حجاجو ته به ئې ستوان جوړول او څكل به ئې پرې، كلبى وئيلى دى، چې د هغه اصل نوم صرمه بن غنم وو (خلاصة التفاسير)، هر كله چې د هغه انتقال اوشو نو په كوم كاڼرى چې به هغه كيناستو او ستوان به جوړول او څكول به ئې، خلقو د هغه كاڼرى نه يې يو غټ بت جوړ كړو، چې روستو خلقو د هغې عبادت شروع كړو، دا هم هغه لات وو. (خلاصة التفسير)

**قوله:** عُزّٰى: دا د أعز تانيث دې، دا د قبيلهٔ غطفان د بت نوم دې، او بعضو وئيلي دى چې دا د يو ببول اونې نوم دې، حضور ﷺ خالد بن وليد دا اونه كټ كولو د پاره ليږلې وو،

کله ئې چې دا کټ کړه نو ددې نه د بهوت په شکل کښې يو ښاپيرئ ببرو ويختو والا، او لاس په سر باندې ايخودلو سره او په تيزه تيزه چغې وهلو سره رااوتله، خالد بن وليد رضي الله عنه هغه قتل کړه، بيا هغوی حضور ﷺ ته اطلاع اوکړه نو حضور ﷺ اوفرمائيل چې هم دا عزی بت وو.

**قوله**: مَنَاةَ: دا يو کانړې وو، کوم چې د هذيل او د خزاعه بت وو، او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائيل چې دا د بنو ثقيف ديوتا (معبود) وو، دا د مَنّى يَمْنِي نه ماخوذ دې، او ددې معنی د بهيولو ده، چونکه په دهٔ سره به ډيرهٔ زيات ځناور ذبح کيدل، چې د هغې د وجې نه به ډيره وينه بهيدله، ددې وجې نه ددې نوم مناة کيخودلې شو.

**قوله**: الأخرٰی: دا د ثالثة صفت ذم دې، يعنی د رتبې په اعتبار سره دريم نمبر دې.

**سوال**: چې کله ثالثة يې اووئيل نو ددې أخرٰی کيدل خپله معلوم شو، نو بيا دلته د أخرٰی راوړلو څه ضرورت؟

**جواب**: الأخرٰی صفتِ ذم دې، ځکه چې مراد په رتبه کښې تاخير دې، نه چې په ذکر او شمير کښې، څنګه چې د الله تعالی قول دې قالت أخراهم لأولاهم أي ضعفاؤهم لرؤسائهم.

**قوله**: الثاني محذوف: اللات خپل معطوفاتو سره د أرأيتم بمعنى أخبروني مفعول اول، او ألكم الذكر وله الأنثى جمله استفهاميه مفعول ثاني دې.

**قوله**: تلك: ددې مشار اليه قسمة دې، کوم چې د ماقبل جمله استفهاميه نه مفهوم دې.

**قوله**: ضِيْزٰی: دا د ضيز نه ماخوذ دې، په معنی د ظلم، د (ياء) د رعايت د وجې نه د ضاد ضمه په کسرې سره بدله کړې شوه، ځکه چې په بيض کښې شوی دی، ځکه چې د (فعلی) وزن د صفت د پاره مستعمل نه دې.

**سوال**: مفسر علام د سميتموها تفسير په سميتم بها سره ولې اوکړو؟

**جواب**: ددې مقصد يو اعتراض جواب کول وو.

اعتراض دا دې چې د اسماء نوم نه کيخودلې کيږی، ځکه چې په ظاهره د سميتموها نه معلوميږی، بلکه د مسمی نوم ايخودلې شی؟

د جواب خلاصه دا ده چې په کلام کښې حذف دې، اصل کلام سميتم بها دې، او ددې مفعول محذوف دې، او هغه أصناما دې، ځکه چې مفسر علام ښکاره کړو.

———

[اياتونه: ٢٦ - ٣٢]

(وَكَمْ مِنْ مَلَكٍ) اي وَكَثِير مِنَ الْمَلائِكَة (فِي السَّمَاوَاتِ) وَمَا اَكْرَمَهُمْ عِنْدَ الله (لَا تُغْنِي شَفَاعَتُهُمْ شَيْئًا إِلَّا مِنْ بَعْدِ أَنْ يَأْذَنَ اللَّهُ) لَهُمْ فِيهَا (لِمَنْ يَشَاءُ) مِنْ عِبَادِه (وَيَرْضَى) عَنْهُ لِقَوْلِهِ وَلَا يَشْفَعُونَ إِلَّا لِمَنِ ارْتَضَى وَمَعْلُوم انَّهَا لَا تُوجَد مِنْهُمْ إِلَّا بَعْد الإِذْن فِيهَا مَنْ ذَا الَّذِي يَشْفَع عِنْده إِلَّا بِإِذْنِه (إِنَّ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ لَيُسَمُّونَ الْمَلَائِكَةَ تَسْمِيَةَ الْأُنْثَى) حَيْثُ قَالُوا هُمْ بَنَات الله (وَمَا لَهُمْ بِهِ) بِهٰذَا الْقَوْل (مِنْ عِلْمٍ إِنْ) مَا (يَتَّبِعُونَ) فِيهِ (إِلَّا الظَّنَّ) الَّذِي تَخَيَّلُوهُ (وَإِنَّ الظَّنَّ لَا يُغْنِي مِنَ الْحَقِّ شَيْئًا) اي عَنِ الْعِلْم فِيمَا الْمَطْلُوب فِيهِ العلم (فَأَعْرِضْ عَنْ مَنْ تَوَلَّى عَنْ ذِكْرِنَا) اي الْ قرآن (وَلَمْ يُرِدْ إِلَّا الْحَيَاةَ الدُّنْيَا) وَهٰذَا قَبْل الْأَمْر بِالْجِهَادِ (ذٰلِكَ) اي طَلَب الدُّنْيَا (مَبْلَغُهُمْ مِنَ الْعِلْمِ) اي نِهَايَة عِلْمهمْ انْ آثَرُوا الدُّنْيَا عَلَى الآخِرَة (إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِمَنْ ضَلَّ عَنْ سَبِيلِهِ وَهُوَ أَعْلَمُ بِمَنِ اهْتَدَى) عَالِم بِهِمَا فَيُجَازِيهِمَا (وَلِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ) هُوَ مَالِك لِذٰلِكَ وَمِنْهُ الضَّالّ وَالْمُهْتَدِي يُضِلّ مَنْ يَشَاء وَيَهْدِي مَنْ يَشَاء (لِيَجْزِيَ الَّذِينَ أَسَاءُوا بِمَا عَمِلُوا) مِنَ الشِّرْك وَغَيْره (وَيَجْزِيَ الَّذِينَ أَحْسَنُوا) بِالتَّوْحِيدِ وَغَيْره مِنَ الطَّاعَات (بِالْحُسْنَى) الْجَنَّة وَبَيَّنَ الْمُحْسِنِينَ بِقَوْلِهِ (الَّذِينَ يَجْتَنِبُونَ كَبَائِرَ الْإِثْمِ وَالْفَوَاحِشَ إِلَّا اللَّمَمَ) هُوَ صِغَار الذُّنُوب كَالنَّظْرَةِ وَالْقُبْلَة وَاللَّمْسَة فَهُوَ اسْتِثْنَاء مُنْقَطِع وَالْمَعْنَى لٰكِنَّ اللَّمَم يُغْفَر بِاجْتِنَابِ الْكَبَائِر (إِنَّ رَبَّكَ وَاسِعُ الْمَغْفِرَةِ) بِذٰلِكَ وَبِقَبُولِ التَّوْبَة وَنَزَلَ فِيمَنْ كَانَ يَقُول صَلَاتُنَا صِيَامُنَا حَجُّنَا (هُوَ أَعْلَمُ) اي عَالِم (بِكُمْ إِذْ أَنْشَأَكُمْ مِنَ الْأَرْضِ) اي خَلَقَ اَبَاكُمْ آدَم مِنَ التُّرَاب (وَإِذْ أَنْتُمْ أَجِنَّةٌ) جَمْع جَنِين (فِي بطون أمهاتكم فَلَا تُزَكُّوا أَنْفُسَكُمْ) لَا تَمْدَحُوهَا عَلَى سَبِيل الْإِعْجَاب أَمَّا عَلَى سَبِيل الِاعْتِرَاف بِالنِّعْمَةِ فَحَسَن (هو أعلم) اي عالم (بِمَنِ اتَّقَى)

**ترجمه**: او په آسمانونو کښې څومره فرښتې موجود دی، يعنی ډيرې فرښتې موجود دی، او د الله په نيز ډيرې عزت مندې هم دی، بيا به هم د هغوی سفارش څه فائده ورنکړی، خو روستو ددې نه چې الله دوی ته د شفاعت اجازت ورکړی، د خپلو بندګانو نه د چا د پاره چې اوغواړی او د هغه نه راضی شی، د الله تعالی قول ولا يشفعون الا لمن ارتضی د وجې نه، او دا خبره معلومه ده چې د فرښتو سفارش به د اجازت نه پس وی، د چا مجال دې چې د هغه په مخکښې د اجازت نه بغير سفارش اوکړی، ؟ بې شکه هغه خلق څوک چې په آخرت باندې يقين نه ساتی، نو هغوی د فرښتو د زنانو نومونه کېدی، په داسې توګه چې هغوی د فرښتو باره کښې وائی چې هغوی د الله لونړه دی، حالانکه دوی ته ددې مقولې باره کښې هيڅ علم نشته، او دوی په دې قول کښې د هغه خالی ګمان تابعداری کوی، کوم چې دوی کړې دې، او يقينا ګمان د علم په ځائې هيڅ فائده ورکولې نشی، يعنی کوم ځائې چې علم مطلوب وی هلته په ګمان کار چليدې نه شی، نو تاسو هم د هغه کس نه مخ واړوئ چا چې زمونږ د ذکر نه يعنی د قرآن نه مخ واړولو، او د هغه مقصد صرف د دنيا ژوند دې، او دا حکم د جهاد د حکم نه

مخکښې دې، او دا یعنی دنیا غوښتل د دوی د علم انتهاء ده، یعنی د دوی د علم آخری منزل هم دا دې، چې دنیا له په آخرت باندې ترجیح ورکړی، بې شکه ستا پروردګار د وی لره ډیر ښه پیژني، څوک چې د هغه د لارې نه واوړید و (ګمراه شو)، او د هغه چا نه هم پوره خبردار دې چا چې د هدایت لار اختیار کړه، یعنی دې دواړو نه خبردار دې، لهذا دې دواړو ته به جزاء ورکړی، او په آسمانونو او زمکه کښې چې څه دی هغه ټول د الله تعالی ملکیت دې، یعنی هغه د دې مالک دې، او په دې کښې ګمراه او هدایت موندونکی هم دی، هغه چې چالره اوغواړی ګمراه ئې کړی او چاته چې اوغواړی هدایت ورکړی، چې هغه کس ته سزا ورکړی چا چې د شرک او کفر په وجه بد عملونه اوکړل، او هغه خلقو ته د جنت صله ورکړی چا چې د توحید او طاعت په ذریعه نیک عملونه اوکړل، اود نیکانو بیان ئې په دې خپل قول الذین یجتنبون الخ سره اوفرمائیلو، نیکان هغه خلق دی چې د لوئې لوئې ګناهونو نه ځان ساتی، او د بې حیا کارونو نه هم، مګر د وړو وړو ګناهونو مرتکب کیږی، او لمم) وړو ګناهونو ته وائی، لکه یو نظر کتل، یو بوسه (مچو) اخستل، او یو ځل لاس وړل، دا استثناء منقطع ده، او معنی دا ده چې صغائر به د کبائرو نه د اجتناب کولو د وجه معاف کړې شی، او بې شکه ستا رب ډیر فراخه بښنه کونکې دې،، ددې په ذریعه او توبه قبلولو په ذریعه (راروان آیت د هغه کس په باره کښې نازل شو کوم کس چې د فخر په توګه اووئیل چې زمونږ مونځونه، روژې، زمونږ حج حالانکه هغه تاسو لره ډیر خه پیژنی، کله چې هغه تاسو د خاورې نه پیدا کړئی، یعنی ستاسو نیکه آدم علیه السلام ئې د خاورې نه پیدا کړو، هر کله چې تاسو د مور په خیټه کښې ماشومان وئ، أجنة د جنین جمع ده، لهذا تاسو د خپل ځانونو پاکی مه بیانوئ، او که د نعمت د اعتراف په توګه وی نو بیا خو حسن ده، متقیانو لره هغه ښه پیژنی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: كَمْ مِنْ مَلَكٍ: کم خبریه، د کثرت د بیان د پاره دې، لهذا ملک اګرچې مفرد دې، خو په معنی د جمع کښې دې، لهذا د لا تغنی شفاعتهم مطابق دې، او کم من ملک مبتدأ و لا تغنی د دې خبر، دواړه محلا مرفوع دی.

**قوله**: وَمَا أَكْرَمَهُمْ: جمله تعجبیه ده، د فرشتو د زیات عزت بیانولو د پاره راوړلې شوې ده.

**قوله**: وَمَعْلُومٌ أَنَّهَا لا توجد منهم إلا بعد الإذن فيها: ددې عبارت د اضافې مقصد دا شبه لرې کول دی چې لا تغنی شفاعتهم شیئا نه معلومیږ ی چې د ملائکو سفارش به وی خو هغه به فائده مند نه وی، حالانکه د سر نه به شفاعت نه وی، مذکوره عبارت سره مفسر علام جواب ورکړو، چې عدم إغناء شفاعته د عدم شفاعت په معنی کښې دې.

دویم مقصد دا خودل هم دی چې د شفاعت د پاره دوه خبرې ضروری دی، اول دا چې د

ځا د پاره شفاعت کیږي الله تعالی د هغه په سفارش باندې راضي هم وي، دا خبره د لا تغني شفاعتهم شيئا نه معلومیږي.

دویم دا چې شفاعت کونکی ته اجازت هم وي دا خبره د من ذا الذي يشفع عنده إلا بإذنه نه معلومیږي، چې کله دواړه خبرې جمع شي هله به سفارش کیدې شي ګني نه.

**قوله** أي عن العلم: په دې عبارت سره مفسر علام اشاره اوکړه چې مِنْ په معنی د عَنْ دې، او حق په معنی د علم دې.

**قوله**: ومنه الضال والمهتدي: ددې عبارت د اضافې مقصد د یو سوال جواب ورکول دي، سوال دا دې چه آسمانونو او د زمکې او د وما فيهما ملکیت د الله تعالی د پاره بالذات ثابت دې، او کوم څیز چې بالذات ثابت وي هغه څیز معلول بالعلة نه وي، حالانکه ليجزي الذين الخ ئې د ملك سموات والارض علت ګرځولې دې؟

د جواب حاصل دا دې چې لِيَجْزِي د إضلال او د هدایت تعلیل دې، کوم چې ملك السموات والارض وفيهما کښې شامل دې. تقدیري عبارت دا دې، يُضِلُّ ويَهْدِي لِيَجْزِي او دا هم صحیح ده چې لام د عاقبت وي، مطلب دا چې تخلیق د کائنات څکه دې چې په مخلوق کښې به نیکوکار هم وي او ګنهګار هم، نیکانو لره به نیکه بدله ورکړې کیږي آو بدکارو لره به بده بدله ورکړې کیږي.

**قوله**: الذين يجتنبون: الخ دا د الذين أحسنوا نه بدل دې، یا عطف بیان دې یا نعت دې، یا د أعني محذوف مفعول دې، یا د مبتدأ محذوف خبر دې، أي هم الذين

**قوله**: اللَّمَمَ: واړه ګناهونه، د لمم لغوي معنی کم او وړوکې کیدل، ددې دا استعمالات دي، ألمّ بالمكان لږ ساعت قیام ئې اوکړو، ألمّ بالطعام لږه شان روټې خوړل، دغه شان یو څیز له صرف لاس وړل، یا هغې ته نیزدې کیدل، یا یو کار یو یا دوه ځل کول، په هغې باندې دوام او استمرار نه کول، یا صرف په زړه کښې خیال تیریدل، دا ټول صورتونه په (لمم) کښې راځي، هم ددې مفهوم او استعمال په وجه ددې معنی وړه ګناه سره کیږي، یعنی د یو لوئې ګناه د مبادیاتو ارتکاب خو د لوئې ګناه نه ځان ساتل، یا یو ګناه لره یو یا دوه ځل کول، یا همیشه پریخودل، یا د یو ګناه خیال په زړه کښې راتلل، خو عملا دې ته نزدې نه ورتلل، دا ټول واړه ګناهونه دي، کوم چې به الله تعالی د لوئې ګناهونو نه د بچ کیدو د وجې معاف کړي.

**قوله** استثناء منقطع: یعنی إلا اللَّمَمَ مستثنی منقطع ده، یعنی په کبائرو کښې شامل نه دي، او که په کبائرو کښې شامل وي نو مستثنی به متصل وي.

[اياتوله: ۳۳ - ۶۲]

﴿أَفَرَأَيْتَ الَّذِي تَوَلَّى﴾ عَنِ الإيمان ارتَدَّ لَمَّا عُيِّرَ بِهِ وَقَالَ إِنِّي خَشِيتُ عِقَابَ اللّٰهِ فَضَمِنَ لَهُ الْمُعَيِّرُ لَهُ اَنْ يَحْمِلَ عَنْهُ عَذَابَ اللّٰهِ إِنْ رَجَعَ إِلَى شِرْكِهِ وَأَعْطَاهُ مِنْ مَالِهِ كَذَا فَرَجَعَ ﴿وَأَعْطَى قَلِيلًا﴾ مِنَ الْمَالِ الْمُسَمَّى ﴿وَأَكْدَى﴾ مَنَعَ الْبَاقِي مَأْخُوذٌ مِنَ الْكُدْيَةِ وَهِيَ أَرْضٌ صُلْبَةٌ كَالصَّخْرَةِ تَمْنَعُ حَافِرَ الْبِئْرِ إِذَا وَصَلَ إِلَيْهَا مِن الحفر ﴿أَعِنْدَهُ عِلْمُ الْغَيْبِ فَهُوَ يَرَى﴾ يَعْلَمُ مِنْ جُمْلَتِهِ اَنَّ غَيْرَهُ يَتَحَمَّلُ عَنْهُ عَذَابَ الآخِرَةِ لَا وَهُوَ الْوَلِيدُ بْنُ الْمُغِيرَةِ أَوْ غَيْرُهُ وَجُمْلَةُ أَعِنْدَهُ الْمَفْعُولُ الثَّانِي لِرَأَيْتَ بِمَعْنَى أَخْبِرْنِي ﴿أَمْ﴾ بَلْ ﴿لَمْ يُنَبَّأْ بِمَا فِي صُحُفِ مُوسَى﴾ أَسْفَارِ التَّوْرَاةِ أَوْ صُحُفٍ قَبْلَهَا ﴿وَ﴾ صُحُفِ ﴿إِبْرَاهِيمَ الَّذِي وَفَّى﴾ تَمَّمَ مَا أُمِرَ بِهِ نَحْوَ وَإِذِ ابْتَلَى إِبْرَاهِيمَ رَبُّهُ بِكَلِمَاتٍ فَأَتَمَّهُنَّ وَبَيَانُ مَا ﴿أَ﴾ نْ ﴿لَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَى﴾ إلخ وَأَنْ مُخَفَّفَةٌ مِنَ الثَّقِيلَةِ أَيْ لَا تَحْمِلُ نَفْسٌ ذَنْبَ غَيْرِهَا ﴿وَأَنْ﴾ أَيْ أَنَّهُ ﴿لَيْسَ لِلْإِنْسَانِ إِلَّا مَا سَعَى﴾ مِنْ خَيْرٍ فَلَيْسَ لَهُ مِنْ سَعْيِ غَيْرِهِ لِلْخَيْرِ شَيْءٌ ﴿وَأَنَّ سَعْيَهُ سَوْفَ يُرَى﴾ يُبْصَرُ فِي الآخِرَةِ ﴿ثُمَّ يُجْزَاهُ الْجَزَاءَ الْأَوْفَى﴾ الأَكْمَلَ يُقَالُ جَزَيْتُهُ سَعْيَهُ وَبِسَعْيِهِ ﴿وَأَنَّ﴾ بِالْفَتْحِ عَطْفًا وَقُرِئَ بِالْكَسْرِ اسْتِئْنَافًا وَكَذَا مَا بَعْدَهَا فَلَا يَكُونُ مَضْمُونُ الْجُمَلِ فِي الصُّحُفِ عَلَى الثَّانِي ﴿إِلَى رَبِّكَ الْمُنْتَهَى﴾ الْمَرْجِعُ وَالْمَصِيرُ بَعْدَ الْمَوْتِ فَيُجَازِيهِمْ ﴿وَأَنَّهُ هُوَ أَضْحَكَ﴾ مَنْ شَاءَ أَفْرَحَهُ ﴿وَأَبْكَى﴾ مَنْ شَاءَ أَحْزَنَهُ ﴿وَأَنَّهُ هُوَ أَمَاتَ﴾ فِي الدُّنْيَا ﴿وَأَحْيَا﴾ لِلْبَعْثِ ﴿وأنه خلق الزوجين﴾ الصنفين ﴿الذكر والأنثى﴾ ﴿مِنْ نُطْفَةٍ﴾ مَنِيٍّ ﴿إِذَا تُمْنَى﴾ تُصَبُّ فِي الرحم ﴿وَأَنَّ عَلَيْهِ النَّشْأَةَ﴾ بِالْمَدِّ وَالْقَصْرِ ﴿الْأُخْرَى﴾ الْخَلْقَةَ الأُخْرَى لِلْبَعْثِ بَعْدَ الْخَلْقَةِ الأُولَى ﴿وَأَنَّهُ هُوَ أَغْنَى﴾ النَّاسَ بِالْكِفَايَةِ بِالأَمْوَالِ ﴿وَأَقْنَى﴾ أَعْطَى الْمَالَ الْمُتَّخَذَ قِنْيَةً ﴿وَأَنَّهُ هُوَ رَبُّ الشِّعْرَى﴾ هُوَ كَوْكَبٌ خَلْفَ الْجَوْزَاءِ كَانَتْ تُعْبَدُ فِي الْجَاهِلِيَّةِ ﴿وَأَنَّهُ أَهْلَكَ عَادًا الْأُولَى﴾ وَفِي قِرَاءَةٍ بِإِدْغَامِ التَّنْوِينِ فِي اللَّامِ وَضَمِّهَا بِلَا هَمْزَةٍ وَهِيَ قَوْمُ عَادٍ وَالأُخْرَى قَوْمُ صَالِحٍ ﴿وَثَمُودَ﴾ بِالصَّرْفِ اسْمٌ لِلأَبِ وَبِلَا صَرْفٍ لِلْقَبِيلَةِ وَهُوَ مَعْطُوفٌ عَلَى عَادًا ﴿فَمَا أَبْقَى﴾ مِنْهُمْ أَحَدًا ﴿وَقَوْمَ نُوحٍ مِنْ قَبْلُ﴾ أَيْ قَبْلَ عَادٍ وَثَمُودَ أَهْلَكْنَاهُمْ ﴿إِنَّهُمْ كَانُوا هُمْ أَظْلَمَ وَأَطْغَى﴾ مِنْ عَادٍ وَثَمُودَ لِطُولِ لُبْثِ نُوحٍ فِيهِمْ فَلَبِثَ فِيهِمْ أَلْفَ سَنَةٍ إِلَّا خَمْسِينَ عَامًا وَهُمْ مَعَ عَدَمِ إِيمَانِهِمْ بِهِ يُؤْذُونَهُ وَيَضْرِبُونَهُ ﴿وَالْمُؤْتَفِكَةَ﴾ وَهِيَ قُرَى قَوْمِ لُوطٍ ﴿أَهْوَى﴾ أَسْقَطَهَا بَعْدَ رَفْعِهَا إِلَى السَّمَاءِ مَقْلُوبَةً إِلَى الأَرْضِ بِأَمْرِهِ جِبْرِيلَ بِذَلِكَ ﴿فَغَشَّاهَا﴾ مِنَ الْحِجَارَةِ بَعْدَ ذَلِكَ ﴿مَا غَشَّى﴾ أَبْهَمَ تَهْوِيلًا وَفِي هُودٍ جَعَلْنَا عَالِيَهَا سَافِلَهَا وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهَا حِجَارَةً مِنْ سِجِّيلٍ ﴿فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكَ﴾ أَنْعُمِهِ الدَّالَّةِ عَلَى وَحْدَانِيَّتِهِ وَقُدْرَتِهِ ﴿تَتَمَارَى﴾ تَتَشَكَّكُ أَيُّهَا الإِنْسَانُ أَوْ تُكَذِّبُ ﴿هَذَا﴾ مُحَمَّدٌ ﴿نَذِيرٌ مِنَ النُّذُرِ الْأُولَى﴾ مِنْ جِنْسِهِمْ أَيْ رَسُولٌ كَالرُّسُلِ قَبْلَهُ أُرْسِلَ إِلَيْكُمْ كَمَا أُرْسِلُوا إِلَى أَقْوَامِهِمْ ﴿أَزِفَتِ الْآزِفَةُ﴾ قَرُبَتِ الْقِيَامَةُ ﴿لَيْسَ لَهَا مِنْ دُونِ اللّٰهِ﴾ نَفْسٌ ﴿كَاشِفَةٌ﴾ أَيْ لَا يَكْشِفُهَا وَيُظْهِرُهَا إِلَّا هُوَ كَقَوْلِهِ ﴿لَا يُجَلِّيهَا لِوَقْتِهَا إِلَّا هُوَ﴾ ﴿أَفَمِنْ هَذَا الْحَدِيثِ﴾ أَيِ الْقُرْآنِ ﴿تَعْجَبُونَ﴾ تَكْذِيبًا ﴿وَتَضْحَكُونَ﴾ اسْتِهْزَاءً ﴿وَلَا تَبْكُونَ﴾ لِسَمَاعِ وَعْدِهِ وَوَعِيدِهِ ﴿وَأَنْتُمْ سَامِدُونَ﴾ لَاهُونَ غَافِلُونَ عَمَّا يُطْلَبُ مِنْكُمْ ﴿فَاسْجُدُوا لِلّٰهِ﴾ الَّذِي خَلَقَكُمْ ﴿وَاعْبُدُوا﴾ وَلَا تَسْجُدُوا لِلأَصْنَامِ وَلَا تَعْبُدُوهَا

ترجمه: آيا تا هغه كس ليدلې دې كوم چې د ايمان نه واوړيدو، يعنى مرتد شو، كله چې په ايمان باندې هغه ته پيغور وركړې شو، او وې وئيل چې ماته د الله د عذاب نه ويره راغله، ، نو ده د پاره پيغور وركونكې ددې خبرې ضامن شو چې هغه به دده د طرف نه د الله عذاب په خپل سر واخلى، كه هغه د خپل شرك نه واپس شي او د خپل مال نه به دومره وركړى، نو دغه شان دا كس مرتد شو، او هغه كس د مقرر شوى مال نه لږه حصه وركړه، او باقى مال ئې هيسار كړو، أكدٰى د كدية نه ماخوذ دې، كدية د كانړى په شان د زمكې هغه سخته حصه چې كوهى كنستو والا د كوهى د كنستلو نه بند كړى، كه چه هغه دې كانړى ته اورسى، آيا دوى سره د غيب علم دې چې ددې خبرې ورته پته ده او ددې علمونو نه يو علم دا هم دې چې دويم كس به د هغه عذاب په خپل سر واخلى، داسې نشى كيدې، او هغه كس وليد بن مغيره دې، يا دده نه علاوه بل څوک دى، او جمله أعنده رأيت عطف أعطى مفعول ثانى دې، آيا دوى ته د هغه څه خبر وركړې شوې نه دې كوم چې د موسى عليه السلام په صحيفو كښې دى، د تورات په سفر نامو كښې يا ددې نه مخكښې صحيفو كښې، او د ابراهيم عليه السلام په صحيفو كښې، چا چې هغه حق پوره كړو، د كوم چې دهٔ ته حكم وركړې شوې وو، او چې كله ابراهيم عليه السلام ره الله تعالى د يو څو خبرو په ذريعه امتحان اوكړو، كوم چې هغه پوره كړو، او ألا تزر وازرة وزر أخرى الخ د (ما) بيان دې، دا چې يو اوچتونكې به د بل وزن لره نه اوچتوى، او (ان مخففه عن الثقيله دې، أى أنه لا تحمل نفس ذنب غيرها) يقينا يو نفس به د بل نفس وزن اوچتولې نشى، او دا چې انسان ته به صرف د هغه د نيک عمل د كوشش صله ميلاويږى، د كوم چې هغه كوشش كړې وى، چنانچه هغه ته به د غير د سعى صله نه ملاويږى، او دا چې د هغه كوشش به ډير زر اوكتلې شى، يعنى په آخرت كښې به خپل سعى لره اووينى، او بيا به هغه ته پوره پوره بدله وركړې شى، وئيلې شى جزيته سعيه وبسعيه و(يعنى ما د هغه د سعى بدله وركړه) او دا چې ستا پروردگار طرف ته د هر څيز انتها ده، يعنى د مرګ نه پس ستا پروردگار طرف ته واپس كيدل دى، نو هغه به دوى ته بدله وركړى، او كه أن به فتحې سره وى نو په ألا تزر وازرة وزر أخرى باندې به عطف وى، او كه په كسرې سره وى نو جمله به مستانفه وى، او هم دا دواړه صورتونه به په مابعد كښې هم وى، يعنى وأنه هو أضحك نه هادن الأولى پورې، په دويم صورت كښې به د راروانو جملو مضمون په مذكوره صحيفو كښې نه وى، او دا چې هم هغه چا له چې اوغوارى خندوى ئې يعنى خوشحاله كوى ئې، او چا له چې اوغوارى ژړوى ئې، يعنى خفا كوى ئې، او دا چه هم هغه په دنيا كښې مرګ وركوى او ژوندى كوى، د بعث د پاره او دا چې هغه مذكر او مؤنث دواړه قسمونه د نطفې نه منى نه پيدا كړل، كله چې په رحم كښې واچولې شى، او دا چې د هغه په ذمه كښې دى په دويم

محل پیدا کول، نشأة په مد او قصر سره، یعنی د اول تخلیق نه پس دویم تخلیق او دا چې د مال د کفایت په ذریعه هغه خلقو لره مستغنی کړل، او مال ئې ورکړو، کوم چې هغه جمع کړو، او هم هغه د شِعرٰی رب دې، دا یو ستورې دې چې د جَوْزا نه پس راخی، چې د هغه په زمانهٔ جاهلیت کښې د دې عبادت کیدلو، او هغه عادِ اولٰی هلاک کړل، او په یو قرات کښې تنوین په لام کښې ادغام کولو سره، او د لام په ضمې سره بغیر د همزې نه دې، او دا قوم هود دې، (عاد) أخرٰی د صالح علیه السلام قوم دې، او ثمودیان ئې هلاک کړل، ثمود منصرف دې د پلار نوم کیدو د وجې نه، غیر منصرف دې د قبیلې نوم کیدو په صورت کښې، او هغه په عاد باندې معطوف دې، نو په دوی کښې ئې یو هم باقی پرې نخودلو، او د دوی نه مخکښې قوم نوح علیه السلام لره یعنی د ثمودیانو او عادیانو نه مخکښې مونږ هغه هلاک کړل، او بې شکه هغوی د عاد او ثمود نه زیات ظالمان او سرکشه وو، د نوح علیه السلام په دوی کښې د نَهٔ نیم سوه کاله ایساریدو په وجه، او هغوی د ایمان نه راوړلو سره سره هغه ته تکلیف هم رسولو، او هغه به ئې وهلو، او اولټه کړې شوې کلی او هغه د قوم لوط کلی وو، چخړې کړل، یعنی هغوی ئې د زمکې نه بره اوړلو نه پس په زمکه واپس راواچول، جبرئیل علیه السلام ته ددې حکم ورکولو سره، ددې نه پس ئې دې کلو لره په کاڼرو پټ کړل (مَا غَشّٰی) لره د هیبتناکې ښکاره کولو د پاره مبهم ساتلې دې، او په سوره هود کښې دی چې مونږ هغه کلی لاندې باندې کړو، او مونږ په هغوی باندې کاڼړی اوورول، نو ته دې انسانه د خپل رب په کوم کوم نعمتونو کښې کوم چې د هغه په وحدانیت او قدرت باندې دلالت کوی شک کوې، او هغه دروغ ګڼړې، اې انسان دا محمد ﷺ د مخکښې والو په شان ویرونکې دې، یعنی د دې د مخکښې رسولانو په شان دې، تاسو طرف ته رالیږلې شوې دې، څنګه چې هغوی خپلو قومونو ته لیږلې شوې وو، نژدې راتلونکې نژدې راغلو، یعنی قیامت نژدې راغلو، او د الله نه سوا دې لره بل څوک ښکاره کولو والا نشته، یعنی هم هغه به دا ښکاره کوی، څنګه چې د الله تعالی قول لایجلیها لوقتها الا هو دې وخت به هم الله ښکاره کړی، آیا تاسو دې کلام قرآن نه په حیرانتیا کښې یئ، او توقې کوئ، او د هغه په وعدو او وعیدونو اوریدو سره ژاړئ نه، او تاسو په غفلت کښې پراته یئ، یعنی ستاسو نه چې د کوم څیز طلب کیږی تاسو د هغې نه په غفلت کښې پراته یئ، نو تاسو الله ته سجده او کړئ، چا چې تاسو پیدا کړئ، او د هغه بندګی کوئ، او بتانو ته سجده مه کوئ، او مه د هغوی بندګی کوئ.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله** : أفرأیتَ الذي تَوَلّٰی: همزه استفهام تقریر د پاره ده.

**قوله** : رأیت بمعنی أخبرنی: الذی اسم موصول او صله مفعول اول.

**قوله** وأعطى قليلا وأكدى: أعطى په تولى باندې معطوف دې، او قليلا د مصدرِ محذوف صفت دې، أعطى إعطاءً قليلا، قليلا مفعول به كرځول هم صحيح دى.

**قوله**: أعنده علم الغيب: الخ: همزه د استفهام انكارى ده، او جمله د رأيت مفعول ثانى دې.

**قوله**: تَوَلّٰى: أى لسلم لمّا ارتّد: د اكثرو دا قول دې، چې ددې نه مراد وليد بن مغيره دې، او دا آيت هم د هغه باره كښې نازل شوې دې.

**قوله**: أعطاه من مّاله: أعطاه ضمير مستتر د تولى فاعل مستتر طرف ته راجع دې، او (ها) ضمير بارز د ضّمين دفاعل طرف ته راجع دې، يعنى ضامن په الذى تولى باندې دوه څيزونه لازم كړل، يو دا چې د توحيد پريخودلو سره شرک طرف ته راشى، دويم دا چې د ضمان په عوض د مال يو مخصوص مقدار هغه ته وركړى، او ضامن په خپل ځان باندې صرف يو څيز لازم كړو، او هغه په آخرت كښې د الله د عذاب ضمان دې.

**قوله**: تمم ما أمر به: ابراهيم عليه السلام دې احكامو لره په خوشحالئ سره پوره كړل د كومو چې هغه ته حكم شوې وو، كَذبحِ ولده و وقوع فى النار و بصال فطرته هجرت وطن وغيره

**قوله**: وبيان ما: ألا تزر وازرة وزر اخرى الخ، يعنى ألا تزر، الخ، عما كښې د ما نه بدل واقع كيدو د وجې نه محلا مرفوع دې، او مراد د مفسر علام د قول إلى آخره نه فبأى الاء ربك تتمارى پورې دې.

**قوله**: بالفتح: عطفاً وقرئ بالكسر استيناقا، يعنى د أن إلى ربك المنتهى په ان كښې دوه احتماله دى، اول دا چې په ألا تزر وازرة اخرى باندې عطف كړې شى، او أن منصوب اووئيلې شى په دې صورت كښې به فبأى آلاء ربك تتمارى پورې به د ما بيان وى، او آخر پورې به تول مضمون د صحفِ موسى او د صحف ابرهيم (عليهما السلام) كښې وى، او كه دا بالكسر اووئيلې شى، نو په دې صورت كښې به وان إلى ربك المنتهى نه آخر پورې جمله مستانفه به وي، او آخر پورې به مضمون په صحف ابرهيم او موسى (عليهما السلام) كښې نه وى، بلكه صرف اول درېو (١) ألا تزر وازرة وزر أخرى (٢) أن ليس للانسان إلا ما سعى (٣) أن سعيه سوف يُرى ثم يجزاه الجزاء الأوفى، مضمون په صحف ابراهيم عليه السلام او موسى عليه السلام كښې وى،

**قوله**: وكذا ما بعدها: د مابعد نه مراد وأنه أضحك وأبكى نه تر وانه خلق الزوجين الذكر والانثى پورې دې.

**ملحوظه**: عما فى صحف موسى كښې د ما په بيان كښې أن يوولس (١١) ځايونو كښې واقع شوې دې، دا په دې صورت كښې دى چې د ان إلى ربك المنتهى په ألا تزر وازرة الخ باندې عطف كولو

سره ان مفتوح اووئیلې شی، کنی خو صرف اول درې ځایونو کښې به ان مفتوح وی، او باقی اته ځایونو کښې به مکسور وی.

**قوله: وأقنى: إقناء** نه ماضی واحد مذکر غائب، هغه جمع کړو، أی أعطى المال الذي اتخذ قنية قنية هغه مال کوم چې جمع کړې شی، او د خرچ کولو اراده نه وی، د أقنى مفسرینو او اهل لغتو مختلف معنې بیان کړې دی، قتاده فرمائی چې ابن عباس رضی الله عنهما ددې معنی ارضى، راضی کول، اخستلې ده، عکرمه د ابن عباس نه ددې معنی قنّع روایت کړې ده، په معنی د مطمئن کول، امام رازی فرمائی چې د انسان د ضرورت نه زیات کوم مال چه هغه ته ورکړې شی هغه إقناء ده، د ابوعبیده او نورو اهل لغت قول دې چې أقنى د قُنْيَةٌ نه مشتق دې، چې د هغې معنی محفوظ او باقی پاتې کیدونکې مال، مثلاً مکان، زمکه، باغات وغیره، ابن زید، ابن کیسان او اخفش د أقنى معنی أفقر خودلې ده، یعنی هغهٔ فقیر کړو، ابن جریر هم دا معنی اخستلې ده، او همزه افعال ئې دسلب ماخذ د پاره اخستلې ده، لکه أشکى د سلب شکایت په معنی کښې دې، د سیاق او سباق نه هم دا معنی معلومیږی، ځکه چې د سابق نه د متقابل څیزونو ذکر راروان دې، چې هغه چاته اوغواړی غنی ئې کړی او چاته چې اوغواړی فقیر ئې کړی،

**قوله: هُوَرَبُّ الشِّعْرٰي**: شعری د اسمان د ټولو نه روښانه ستورې دې، دې ته کلب اکبر هم وئیلې شی، ددې نور هم مختلف نومونه دی، په انګریزئی کښې دې ته dog star وائی، په عربو کښې په ددې عبادت کیدلو، د قریشو قبیلې بنو خزاعه به په خاص توګه ددې عبادت کولو، وئیلې شی چې دا د نمر نه دریویش چنده زیاته رڼرا کونکې دې، خو د زمکې نه ددې فاصله اته نوری کالو نه هم زیاته ده، ځکه دا د نمر نه وړه او لږه رڼرا کونکې ښکاری، د رڼرا رفتار په یو سیکنډ کښې یو لاکه چهیاسی هزار فی میل دې، ددې د عبادت ابتداً ابوکبشه کړې وو، کوم چې د سادات قریش نه وو، دې د حضور ﷺ د امهات د طرف نه جد اعلى دې، ځکه به قریشو حضور ﷺ ته ابن ابی کبشه وئیلو، په دې مناسبت سره چې کله حضور ﷺ د عربو د دین خلاف دعوت شروع کړو، نو خلقو بیا دوی ته ابن ابی کبشه وئیل شروع کړل، یعنی چې څنګه ابوکبشه په خپله زمانه کښې د بت پرستئ مخالف کولو سره ستاره پرستی شروع کړه، دغه شان حضور ﷺ د بت پرستئ مخالفت کولو سره د خداپرستئ دعوت ورکول شروع کړل، دا په سخته ګرمې موسم کښې د جوزا نه پس راخیژی، دې ته شعری یمانی هم وئیلې شی و ددې په مقابل کښې یوشعری شامی دې، هغه هم د رڼراکونکې ستورو نه دې، هغې ته کلب اصغر وائی.

**قوله: المؤتفكة: ایتفاك (افتعال)** نه اسم فاعل واحد مؤنث، جمع «المؤتفكات» الټه کړې

شوی کلی، مراد د لوط علیه السلام د قوم کلی دی، کوم چې د موجوده بحیره مردار په خاتې باندې آباد دی، چې د هغې د ټولو نه لوئې ښار سندوم یا سدوم وو، د حضرت لوط علیه السلام حکم نه منلو او د ظلم او لواطت په وجه الله تعالی دوی الټه کړل، او د کاڼړو په باران سره ئې تباه او برباد کړل.

**قوله:** وفي هود: فجعلنا، صحیح دا وه چې وفي هود فلما جآء أمرنا جعلنا عاليها سافلها ئې فرمائيلي وو، يا ئې وفي الحجر فجعلنا عاليها سافلها فرمائيلي وو،

**قوله:** تشك: تتمارى: تفسير په تشک سره کولو کښې ئې اشاره اوکړه چې تفاعل د تعدد في الفاعل نه خالي دې.

**قوله:** نفس: مفسر علام نفس محذوف منلو سره اشاره اوکړه چې کاشفه د موصوف محذوف صفت دې،

**قوله:** سامدون: السمود اللهو (ن) وقيل الاعراض وقيل الاستكبار، وقيل هو الغناء (لوبې، سندرې)

## [٥٤] سورة القمر

### سورة القمر مكية الا سيهزم الجمع (اية) وهي خمس وخمسون اية

سورة القمر مکی دې، سوا د آیت: سیهزم الجمع نه، اوپه دې کښې پنځه پنځوس آیتونه دی.

**[اياتونه: ١-٢٢]**

﴿اقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ﴾ قَرُبَتْ الْقِيَامَة ﴿وَانْشَقَّ الْقَمَرُ﴾ انْفَلَقَ فِلْقَتَيْنِ عَلَى أَبِي قُبَيْسٍ وَقُيَيْقِعَانَ آيَةً لَهُ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ سُئِلَهَا فَقَالَ اشْهَدُوا رَوَاهُ الشَّيْخَانِ ﴿وَإِنْ يَرَوْا﴾ أَيْ كُفَّار قُرَيْش ﴿آيَةً﴾ مُعْجِزَة لَهُ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ﴿يُعْرِضُوا وَيَقُولُوا﴾ هَذَا ﴿سِحْرٌ مُسْتَمِرٌّ﴾ قَوِيّ مِنَ الْمِرَّة الْقُوَّة او دائم ﴿وَكَذَّبُوا﴾ النَّبِيّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ﴿وَاتَّبَعُوا أَهْوَاءَهُمْ﴾ فِي الْبَاطِل ﴿وَكُلُّ أَمْرٍ﴾ مِنَ الْخَيْر وَالشَّرّ ﴿مُسْتَقِرٌّ﴾ بِأَهْلِهِ فِي الْجَنَّة أَوْ النَّار ﴿وَلَقَدْ جَاءَهُمْ مِنَ الْأَنْبَاءِ﴾ أَخْبَار إِهْلَاك الْأُمَم الْمُكَذِّبَة رُسُلهم ﴿مَا فِيهِ مُزْدَجَرٌ﴾ لَهُمْ اسْم مَصْدَر أَوْ اسْم مَكَان وَالدَّال بَدَل مِنْ تَاء الِافْتِعَال وَازْدَجَرْته وَزَجَرْته نَهَيْته بِغِلْظَةٍ وَمَا مَوْصُولَة أَوْ مَوْصُوفَة ﴿حِكْمَةٌ﴾ خَبَر مبتدأ مَحْذُوف أَوْ بَدَل مِنْ مَا أَوْ مِنْ مُزْدَجَر ﴿بَالِغَةٌ﴾ تَامَّة ﴿فَمَا تُغْنِ﴾ تنفع فيهم ﴿النُّذُرُ﴾ جَمْع نَذِير بِمَعْنَى مُنْذِر أَيْ الْأُمُور المنذرة لهم وما لِلنَّفْيِ أَوْ لِلِاسْتِفْهَامِ الْإِنْكَارِيّ وَهِيَ عَلَى الثَّانِي مفعول مقدم ﴿فَتَوَلَّ عَنْهُمْ﴾ هُوَ فَائِدَة مَا قَبْله وَتَمَّ به الكلام ﴿يَوْمَ يَدْعُ الدَّاعِ﴾ هُوَ إِسْرَافِيل وَنَاصِب يَوْم يَخْرُجُونَ بَعْد ﴿إِلَى شَيْءٍ نُكُرٍ﴾ بِضَمّ الْكَاف وَسُكُونهَا أَيْ مُنْكَر تنكره النفوس وهو الحساب ﴿خَاشِعًا﴾ أَيْ ذَلِيلًا وَفِي قِرَاءَة خُشَّعًا بِضَمّ الْخَاء وَفَتْح الشِّين مُشَدَّدَة ﴿أَبْصَارُهُمْ﴾ حَال مِنَ الْفَاعِل ﴿يَخْرُجُونَ﴾ أَيْ النَّاس ﴿مِنَ الْأَجْدَاثِ﴾ الْقُبُور ﴿كَأَنَّهُمْ جَرَادٌ مُنْتَشِرٌ﴾ لَا يَدْرُونَ أَيْنَ يَذْهَبُونَ مِنَ الْخَوْف وَالْحَيْرَة وَالْجُمْلَة حَال مِنْ فَاعِل يَخْرُجُونَ وَكَذَا قوله ﴿مُهْطِعِينَ﴾ مُسْرِعِينَ مَادِّينَ أَعْنَاقهمْ ﴿إِلَى الدَّاعِ يَقُولُ الْكَافِرُونَ﴾ مِنْهُمْ ﴿هَذَا يَوْمٌ عَسِرٌ﴾ صَعْب عَلَى

الكافرين كما في المدثر (يوم عسير على الكافرين) (كذبت قبلهم) قبل قريش (قوم نوح) تانيث الفعل لمعنى قوم (فكذبوا عبدنا) نوحا (وقالوا مجنون وازدجر) انتهروه بالسب وغيره (فدعا ربه أني) بالفتح اي باني (مغلوب فانتصر) (ففتحنا) بالتخفيف والتشديد (أبواب السماء بماء منهمر) منصب انصبابا شديدا (وفجرنا الأرض عيونا) تنبع (فالتقى الماء) ماء السماء والأرض (على أمر) حال (قد قدر) قضى به في الأزل وهو هلاكهم غرقا (وحملناه) اي نوحا (على) سفينة (ذات ألواح ودسر) وهو ما تشد به الألواح من المسامير وغيرها واحدها دسار ككتاب (تجري بأعيننا) بمرأى منا اي محفوظة (جزاء) منصوب بفعل مقدر اي اغرقوا انتصارا (لمن كان كفر) وهو نوح عليه السلام وقرئ كفر بالبناء للفاعل اي اغرقوا عقابا لهم (ولقد تركناها) ابقينا هذه الفعلة (آية) لمن يعتبر بها اي شاع خبرها واستمر (فهل من مدكر) معتبر ومتعظ بها وأصله مذتكر ابدلت التاء دالا مهملة وادغمت فيها (فكيف كان عذابي ونذر) اي إنذاري استفهام تقرير وكيف خبر كان وهي للسؤال عن الحال والمعنى حمل المخاطبين على الإقرار بوقوع عذابه تعالى بالمكذبين لنوح موقعه (ولقد يسرنا القرآن للذكر) سهلناه للحفظ وهيأناه للتذكر (فهل من مدكر) متعظ به وحافظ له والاستفهام بمعنى الأمر أي احفظوه واتعظوا به وليس يحفظ من كتب الله عن ظهر القلب غيره. (كذبت عاد) نبيهم هودا فعذبوا (فكيف كان عذابي ونذر) إنذاري لهم بالعذاب قبل نزوله اي وقع موقعه وقد بينه بقوله (إنا أرسلنا عليهم ريحا صرصرا) اي شديدة الصوت (في يوم نحس) شؤم (مستمر) دائم الشؤم أو قويه وكان يوم الأربعاء آخر الشهر (تنزع الناس) تقلعهم من حفر الأرض المندسين فيها وتصرعهم على رؤوسهم فتدق رقابهم فتبين الرأس عن الجسد (كأنهم) وحالهم ما ذكر (أعجاز) أصول (نخل منقعر) منقطع ساقط على الأرض وشبهوا بالنخل لطولهم وذكر هنا وأنث في الحاقة (نخل خاوية) مراعاة للفواصل في الموضعين (فكيف كان عذابي ونذر) (ولقد يسرنا القرآن للذكر فهل من مدكر)

**ترجمه**: شروع کوم د الله په نوم سره چې ډير مهربانه او رحم والا دې، قيامت نزدې راغلو او سپوږمي اوشليده، يعنى ټکړې ټکړې شوه، يو ټکړه په جبل ابى قبيس باندې او بله په جبل قعيقعان باندې وه، د حضور د معجزې په توګه، کله چې د حضور ﷺ نه د معجزې سوال اوکړې شو نو وئ فرمائيل چې ګواه شئ، (رواه الشيخان) او که د قريشو کافران د نبى عليه السلام يو معجزه اوګورى لکه شق القمر نو اعراض کوى او وائى چې دا لوئې جادو دې، طاقتور جادو دې، دا مرةٌ بمعنى قوة يا بمعنى دائم (د مخکښې نه راروان)، او دې خلقو د نبى (ص تکذيب اوکړو او په باطل کښې ئې د خپلو خواهشاتو تابعدارى اوکړه، او هر يو کار که د خير وى او که د شر، ددې په مستحقينو باندې په جنت يا دوزخ کښې واقع کيدونکې دې، او يقينا دوى ته د خپلو رسولانو د تکذيب کونکو خلقو خبر راغلې دې، چې په هغې کښې ددوى د پاره خبردارې دې، مزدجر اسم مصدر دې يا اسم مکان دې، او دال په

تاء افتعال سره بدل کړې شوې دې، او (ازدجرته) د (زجرته) په معنی کښې دې، یعنی ما هغه په سختئ سره اورټلو، او (ما) موصوله ده یا موصوفه، او قرآن د کامل عقل خبره ده، خو دوی ته ویرولو والا خبرو هم څه فائده ورنکړه، نذر د نذیر جمع ده، په معنی د منذر، یعنی هغه خبرې چې دوی لره ویرونکې وې او (ما) د نفی د پاره دې، یا استفهام انکاری ده، په دویم صورت کښې به د تغن مفعول مقدم وی، نو اې نبی ﷺ تاسو دوی نه مخ واړوئ، یا د ماقبل فائده ده، او په دې باندې کلام تام شو، په کومه ورځ چې آواز کونکې یو ناخوښه څیز طرف ته آواز اوکړی، او هغه اسرافیل علیه السلام د ې، او د یوم ناصب روستو راتلونکې یخرجون دې، نُکُر د کاف په ضمې او سکون سره دې، یعنی ناخوښه څیز کوم لره به چې نفسونه د هغې د سختوالې د وجې نه ناخوښه ګڼړی، او هغه حساب دې، دا خلق به ذلت سره نظرونه ښکته کړې او په یو قراءت کښې خُشَّعًا د خاء په ضمې او شین مشدد سره، د قبرونو نه په تیزئی سره را اوځی، خُشَّعًا د یخرجون د ضمیر فاعل نه حال دې، ګویا چې هغوی خواره ملخان دی، هغوی ته به د ویرې د وجې نه دا پته نه لګی چې هغوی کوم طرف ته روان د ی، او جمله د یخرجون د فاعل نه حال دې، او دغه شان د الله تعالی قول مهطعین دې، یعنی په تیزئی سره به د اواز کونکی طرف ته ځی، په دوی کښې به کافران اووائی دا سخته ورځ ده، یعنی په کافرانو باندې سخته ده، څنګه په سورة مدثر کښې یوم عسیر علی الکافرین دی۔ ددوی نه یعنی د قریشو نه مخکښې قوم نوح هم زمونږ بنده (نوح علیه السلام) دروغ ګڼړلې وو، او مجنون وئیلو سره ئې رټلې وو، یعنی کنځلو وغیره سره ئې رټلې وو، نو هغه خپل رب ته سوال اوکړه انی په فتحې سره، یعنی بأنی دې څه بې بس یم، ځما مدد اوکړه، نو مونږ د اسمان دروازې د تیز بهیدونکې اوبو د پاره کولاؤ کړې، ففتحنا کښې تاء په تخفیف سره او تشدید سره، نو مونږ د زمکې چینو لره جاری کړې نو د زمکې چینې رااوختکیدلې، بیا اوبه ملاؤ شوې یعنی د زمکې او آسمان اوبه په داسې حالت باندې شوې چې په کوم حالت باندې د ازل نه مقدر شوې وې، او هغه حالت ددوی غرق کیدل او هلاکیدل وو، او مونږ نوح علیه السلام د تختو او میخونو والا کشتئ کښې سور کړو، دُسُر هغه څیز دې چې د هغې په ذریعې سره تختې یوځائې کولې شی، میخونه وغیره، ددې واحد دِسَار دې، لکه کتب د کتاب جمع ده، کومه چې زمونږ په نګرانئ کښې زمونږ د نظرونو مخې ته یعنی زمونږ په حفاظت کښې چلیدله، هغوی د هغه کس په انتقام کښې غرق کړې شو د چا چې ناشکری شوې وه، جزاء د فعل مقدر د وجې نه منصوب د ې، أی أغرقوا انتصاراً (انتقاماً) او هغه کس نوح علیه السلام وو، کفر معروف هم وئیلې شوې دې، یعنی دوی غرق کړې شول د هغه د نافرمانی کولو د وجې نه، بې شک مونږ دې لره یعنی دا کار (واقعه) نښه جوړولو سره باقی اوساتله، د هغه کس د

پاره چې ددې واقعې نه عبرت حاصل کړي، يعنې ددې واقعې خبر خور شو، او باقي پاتې شو، نو آيا څوک شته نصيحت حاصلونکې، يعنې عبرت او نصيحت حاصلونکې، د مذکر اصل مذتکر دې، تاء په دال مهمله سره بدله کړې شوه، دغه شان ذال معجمه په دال سره بدل کړې شو، او بيا دال په دال کښې ادغام کړې شو، نو څنګه وو زمونږ عذاب، او ويرول، نذر بمعنی إنذاري استفهام تقريري دې، او کيف د کان خبر دې، او کيف د حالت نه سوال کولو د پاره دې، او معنی د ايت مخاطبينو لره د نوح عليه السلام په مکذبينو باندې د عذاب د واقع کيدلو اقرار باندې آماده کوي، چې عذاب په ځائې باندې واقع شوې دې، او دا ئې خپل قول إنا أرسلنا الخ سره بيان کړو، چه مونږ په دوی باندې په يو منحوس ورځ کښې د هميشه نحوست والا يو تيزه مسلسل چليدونکې طاقتوره سيلۍ رااوليږله، يعنې سخت اواز والا، او هغه د مياشتې آخري چارشنبه وه، چه په کندو کښې پټ خلقو لره ئې هم بهر اوويشتل، او دوی ئې سر د لاندې راويشتل، او ددوی څټونه به ئې ماتول، چې د هغې د وجې نه به ددوی سرونه د جسم نه جدا کيدل، يعنې ددوی مذکوره حالت داسې وو، ګويا چې هغوی په زمکه باندې پرتې د کټ کړې شوو کهجورو تنې وې، او ددوی اږدو قد کيدو د وجې نه ددوی مشابهت ئې کهجورو تنو سره ورکړو، نخل دلته مذکر او په سورة حاقه کښې مونث، په دواړه ځايونو کښې د فواصل د رعايت د وجې نه، نخل خاوية مؤنث ذکر کړو، نو څنګه وو زمونږ عذاب او ويرول، او بې شکه مونږ قرآن د نصيحت د پاره آسان کړې دې، نو شته څوک نصيحت حاصلونکې؟

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** قربت القيامة: د اقترب تفسير په قرب کښې ئې کولو سره اشاره اوکړه چې مزيد په معنی د مجرد دې. لکه اقتدر بمعنی قدر

**سوال:** مجرد د مزيد سره ولې تعبير کړې شو؟

**جواب:** د قرب په معنی کښې مبالغه ښکاره کولو د پاره، ځکه چه د حروف زياتوالې د معنی په زياتوالې باندې دلالت کوي.

**قوله:** انشق القمر: قمر د ديارلسمې او څورلسمې شپې مينځنۍ سپوږمۍ ته وائي، ددې نه مخکښې سپوږمۍ ته هلال، او څورلسمې شپې ته بدر وائي.

قمر نظام شمسي ته د ټولو نه نزدې سياره ده، د سابقه تحقيق مطابق قمر د زمکې نه دوه لاکهه خلوينښت زره ميله لرې ده، خو اوس د نوې تحقيق مطابق د زمکې نه د قمر فاصله دوه لاکهه شپږيشت زره نهه سوه اويا عشاريه نهه ميله ده، ددې نه مخکښې دومره

صحيح ناپ شوې نه وو، کوم چې د کيلي فورنيا (امريکه) يونيورسټي د رصد گاه نه خوشې کړې شوې اپالوگياره کښې لگيدلې د پيمائش آلې په ذريعه معلوم کړې شوې دي، اپالوگياره ١٩ جولائي د چارشنبې په ورځ ١٩٦٩ء کښې په خلائي سفر باندې راون شوې وو.

**قوله**: **قوي أو دائم**: ددې اضافې مقصد د مستمر معنی بيانول وو، مفسر علام د مستمر دوه معنې بيان کړې دی، اول بمعنی قوی، په دې صورت کښې به د مرة نه ماخوذ وی، ځکه چې د مرة معنی د قوت ده، چې يو کار قوی او مستحکم شی نو وئيلې شی **استمر الشئ** **ای قوی واستحکم**، مطلب دا دې چې دا ډير طاقتور جادو دې، دويم په معنی د **دائم** سره، په دې صورت کښې به د استمرار نه مشتق وی، ددې معنی ده دائمی يا چه دمخکښې نه راروان وی.

مطلب دا چې حضور ﷺ د شپې او ورځې چې کومه جادوگری شروع کړې ده، دا هم د هغې يو کړئ ده، د مذکوره معانيو نه علاوه د مستمر دوه نورې هم معنې دی، کومې چې بعضې مفسرينو اختيار کړې دی، اول تيريدونکې، فنا کيدونکې، باقی نه پاتې کيدونکې، په دې صورت کښې به مستمر د **مارٌ** په معنی د ذاهب نه ماخوذ وی، په دې صورت کښې به مطلب دا وی چې ځنگه نور جادو تير شو داسې به داهم تير شی، او د دې اثر به هم ډير وخت پاتې نشی، دويمه معنی د ناخوشگوار، بې مزې، د ترېو کيږی، په دې صورت کښې به د مُرّنه مشتق وی، چې د هغې معنی ده ترېخ، په دې صورت کښې به مطلب دا وی چې ځنگه يو ترېخ څيز د حلق نه لاندې نه ځی، دغه شان د محمد ﷺ خبرې هم زمونږ د حلق نه لاندې نه ځی.

**سوال**: د کذبوا عطف په **يعرضوا** باندې دې، معطوف عليه مضارع دې، او معطوف ماضی، په دې کښې څه نکته ده؟

**جواب**: په دې کښې دا نکته ده چې د ماضی صيغه راوړلو سره ئې دا اشاره اوکړه چې تکذيب او د خواهشاتو تابعداری ددوی زوړ عادت دې، دا څه نوې نه دې.

**قوله**: **وَلَقَدْ جَآءَهُم مِّنَ الْاَنبَآءِ مَا فِيهِ مُزْدَجَرٌ**: کښې (من) بتعيضيه دې، مراد د امم مکذبه هغه خبرونه دی کومې چې په قرآن کښې بيان شوې دی.

**قوله**: **مُزْدَجَر**: مصدر ميمی دې، په معنی دازدجار دې، اسم مکان هم کيدې شی يعنی دوی ته داسې خبرونه راغلل کوم چې په مقام د **ازدجار** کښې دی، **من الانباء** د حال کيدو د وجې نه په محل د نصب کښې دې، او (ما) ذوالحال دې، (ما) موصوله او موصوفه دواړه

کیدې شي، او په دواړه صورتونو کښې (ما) د (جاء) فاعل دې، او (فیه) خبر مقدم، او مزدجر مبتدأ مؤخر، او جمله د (ما) صله ده

**قوله** خبرُ مبتدأ محذوف: أي هو حکمة.

**قوله** مُهطِعِین: اهطاع نه اسم فاعل دی، او د یخرجون د ضمیر نه حال دې، معنی ئې به نې اوچت کړې وی او په منډه به خی

**قوله** يَقُولُ الكافرون: دا جمله مستانفه ده، په دې صورت کښې به د يو سوال مقدر جواب وی، د قیامت د ورځې دسختوالې او هیبتناکئ د بیان نه سوال پیدا کیږی، چې په دغه وخت به د کافرانو څه حالت وی؟

جواب ئې ورکړو چې هغوی به وائی چې دا خو ډیره سخته ورځ ده او بعضې حضراتو د یخرجون د ضمیر نه حال ګرځولې دې، خو په دې صورت کښې به یو سوال پیدا کیږی، چې جمله کله حال وی نو په دې کښې رابط ضروری وی، حالانکه دلته څه رابط نشته؟

**جواب:** مفسر علام منهم مقدر منلو سره ددې سوال جواب ورکړې دې.

**قوله:** أنّثَ الفعل لمعنی قوم: په دې عبارت سره هم د يو سوال مقدر جواب مقصود دې.

**سوال:** قوم کوم چې مذکر دې، د کذبت فاعل دې، په فعل او فاعل کښې مطابقت نشته؟

**جواب:** قوم د معنی په اعتبار سره مؤنث دې، یعنی د امة په معنی کښې دې، په افراد کثیره باندې د مشتمل کیدو د وجې نه مؤنث معنوی دې.

**قوله:** فجرنا الارض عیونا: عیونا تمیز کیدو د وجې نه منصوب دې، کوم چې د مفعول نه محول دې، تقدیری عبارت دا د ي فجرنا عیون الارض او بعضې حضراتو د فاعل نه محول ګرځولې دې، تقدیری عبارت به دا وی، انفجرت عیون الارض:

**[ایاتونه: ٢٣-٤٠]**

(کَذَّبَتْ ثَمُودُ بِالنُّذُرِ) جمع نذیر بمعنی منذر أي بالأمور التي انذرهم بها نبيهم صالح إن لم يؤمنوا به ويتبعوه (فَقَالُوا أَبَشَرًا) منصوب على الاشتغال (مِّنَّا وَاحِدًا) صفتان لبشرا (نَّتَّبِعُهُ) مفسر للفعل الناصب له والاستفهام بمعنى النفي المعنى كيف نتبعه ونحن جماعة كثيرة وهو واحد منا وليس بملك أي لا نتبعه (إِنَّا إِذًا) إن اتبعناه (لَّفِي ضَلَالٍ) ذهاب عن الصواب (وَسُعُرٍ) جنون (أَأُلْقِيَ) بتحقيق الهمزتين وتسهيل الثانية وإدخال ألف بينهما على الوجهين وتركه (الذِّكْرُ) الوحي (عَلَيْهِ مِن بَيْنِنَا) أي لم يوح إليه (بَلْ هُوَ كَذَّابٌ) في قوله إنه أوحي إليه ما ذكر (أَشِرٌ) متكبر بطر قال تعالى (سَيَعْلَمُونَ غَدًا) في الآخرة (مَّنِ الْكَذَّابُ الْأَشِرُ) وهو هم بأن يعذبوا على تكذيبهم نبيهم صالحا (إِنَّا مُرْسِلُو النَّاقَةِ) مخرجوها من الهضبة الصخرة كما سألوا

(فِتْنَةً) مِحْنَةً (لَّهُمْ) لِنَخْتَبِرَهُمْ (فَارْتَقِبْهُمْ) يَا صَالِح أيْ انْتَظِرْ مَا هُمْ صَانِعُونَ وَمَا يُصْنَع بِهِمْ (وَاصْطَبِرْ) الطَّاء بَدَل مِنْ تَاء الِافْتِعَال أيْ اصْبِرْ عَلَى أذَاهُمْ (وَنَبِّئْهُمْ أَنَّ الْمَاءَ قِسْمَةٌ) مَقْسُوم (بَيْنَهُمْ) وَبَيْنَ النَّاقَة يَوْم لَهُمْ وَيَوْم لَهَا (كُلُّ شِرْبٍ) نَصِيب مِنَ الْمَاء (مُّحْتَضَرٌ) يَحْضُرهُ الْقَوْم يَوْمهمْ وَالنَّاقَة يَوْمهَا فَتَمَادَوْا عَلَى ذَلِكَ ثُمَّ مَلُّوهُ فَهَمُّوا بِقَتْلِ النَّاقَة (فَنَادَوْا صَاحِبَهُمْ) قُدَارًا لِيَقْتُلهَا (فَتَعَاطَى) تَنَاوَلَ السَّيْف (فَعَقَرَ) بِهِ النَّاقَة أيْ قَتَلَهَا مُوَافَقَة لَهُمْ (فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِي وَنُذُرِ) إنْذَارِي لَهُمْ بِالْعَذَابِ قبل نزوله اي وقع موقعه وبينه بقوله (إِنَّا أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ صَيْحَةً وَاحِدَةً فَكَانُوا كَهَشِيمِ الْمُحْتَظِرِ) هُوَ الَّذِي يَجْعَل لِغَنَمِهِ حَظِيرَة مِنْ يَابِس الشَّجَر وَالشَّوْك يَحْفَظهُنَّ فِيهَا مِنَ الذِّئَاب وَالسِّبَاع وَمَا سَقَطَ مِنْ ذَلِكَ فَدَاسَتْهُ هُوَ الْهَشِيم (ولقد يسرنا ال قرآن للذكر فهل من مدكر) (كَذَّبَتْ قَوْمُ لُوطٍ بِالنُّذُرِ) بِالْأُمُورِ الْمُنْذِرَة لَهُمْ على لسانه (إِنَّا أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ حَاصِبًا) رِيحًا تَرْمِيهِمْ بِالْحَصْبَاءِ وَهِيَ صِغَار الْحِجَارَة الْوَاحِد دُون مِلْء الْكَفّ فَهَلَكُوا (إِلَّا آلَ لُوطٍ) وَهُمْ ابْنَتَاهُ مَعَهُ (نَّجَّيْنَاهُم بِسَحَرٍ) مِنَ الْأَسْحَار وَقْت الصُّبْح مِنْ يَوْم غَيْر مُعَيَّن وَلَوْ أُرِيدَ مِنْ يَوْم مُعَيَّن لَمُنِعَ مِنَ الصَّرْف لِأَنَّهُ مَعْرِفَة مَعْدُول عَنِ السَّحَر لِأَنَّ حَقّه أنْ يُسْتَعْمَل فِي الْمَعْرِفَة بِأَلْ وَهَلْ أُرْسِلَ الْحَاصِب عَلَى آل لُوط أَوْ لَا قَوْلَانِ وَعَبَّرَ عَنِ الِاسْتِثْنَاء عَلَى الْأَوَّل بِأَنَّهُ مُتَّصِل وَعَلَى الثَّانِي بِأَنَّهُ مُنْقَطِع وَإِنْ كَانَ مِنَ الْجِنْس تَسَمُّحًا (نِّعْمَةً) مَصْدَر أيْ إنْعَامًا (مِّنْ عِنْدِنَا كَذَٰلِكَ) أيْ مِثْل ذَلِكَ الْجَزَاء (نَجْزِي مَنْ شَكَرَ) أَنْعُمَنَا وَهُوَ مُؤْمِن أَوْ مَنْ آمَنَ بِاللَّه ورسوله واطاعهما (وَلَقَدْ أَنْذَرَهُمْ) خَوَّفَهُمْ لوط (بَطْشَتَنَا) أَخْذَتَنَا إيَّاهُمْ بِالْعَذَابِ (فَتَمَارَوْا) تَجَادَلُوا وَكَذَّبُوا (بِالنُّذُرِ) بِإِنْذَارِهِ (وَلَقَدْ رَاوَدُوهُ عَنْ ضَيْفِهِ) أنْ يُخَلِّي بَيْنهمْ وَبَيْنَ الْقَوْم الَّذِينَ أَتَوْهُ فِي صُورَة الْأَضْيَاف لِيَخْبُثُوا بِهِمْ وَكَانُوا مَلَائِكَة (فَطَمَسْنَا أَعْيُنَهُمْ) أَعْمَيْنَاهَا وَجَعَلْنَاهَا بِلَا شَقّ كَبَاقِي الْوَجْه بِأَنْ صَفَقَهَا جِبْرِيل بِجَنَاحِهِ (فَذُوقُوا) فَقُلْنَا لَهُمْ ذُوقُوا (عَذَابِي وَنُذُرِ) إنْذَارِي وَتَخْوِيفِي أيْ ثَمَرَته وَفَائِدَته (وَلَقَدْ صَبَّحَهُم بُكْرَةً) وَقْت الصُّبْح مِنْ يَوْم غَيْر مُعَيَّن (عَذَابٌ مُّسْتَقِرٌّ) دَائِم مُتَّصِل بِعَذَابِ الْآخِرَة (فذوقوا عذابي ونذر) (ولقد يسرنا ال قرآن للذكر فهل من مدكر)

**ترجمه**: ثمودیانو د ویروونکی څیزونو یعنی د تنبیهاتو تکذیب اوکړو، نذر د نذیر جمع ده، یعنی د هغه امورو په کومو چې د هغوی نبی صالح علیه السلام دوی اویرول، که هغوی په هغې ایمان راونړو او د هغې تابعداری ئې اونکړه، نو هغوی اووئیل چې آیا مونږ د داسې کس اتباع اوکړو چې زمونږ نه یو فرد دې، **بشراً** د **ما أضمر** قاعدې د وجې منصوب دې، منا، او واحدا دواړه د بشراً صفتونه دی، او **نتبعه** د **بشراً** د فعل ناصب مفسر دې، او استفهام په معنی د نفی دې. معنی دا ده چې مونږ د هغه ولې اتباع اوکړو او مونږ لوئې جماعت یو، او هغه په مونږ کښې یو دې، او فرشته هم نه ده، یعنی مونږ به د هغه اتباع نه کوو، او که مونږ د هغه اتباع اوکړه نو په ګمراهې کښې، یعنی د نیغې لارې نه به اوړیدلې یو او په حالت د لیونتوب کښې به یو آیا په مونږ کښې په ده باندې وحی نازله شوه؟ یعنی ده طرف ته وحی

راليږلې شوې نه ده، ﴿أَأُلْقِيَ﴾ د دواړو همزو تحقيق سره، او د دويمې تسهيل سره، او په دواړه صورتونو کښې ددې په مينځ کښې همزه داخلولو سره، او إدخال پريخودلو سره، بلکه دوی په دې خپله دعوی کښې کومه چې دوی بيان کړه، چه دهٔ ته د وحی په ذريعه راليږلې شوې ده؟ دروغژن تکبر کونکې شيخی کونکې دې، الله تعالی اوفرمائيل دوی ته به ډير زر يعنی د قيامت په ورځ معلومه شی، چې دروغژن او شيخی کونکی څوک دې.؟ حالانکه دوغژن دوی خپله دی، څکه چې دوی ته به د خپل نبی صالح عليه السلام په تکذيب باندې عذاب ورکولې شی،مونږ د دوی د امتحان د پاره يوه اوښه ددوی د مطالبې مطابق د کاڼړی نه راويستونکې يو، چې مونږ ددوی امتحان واخلو، اې صالح عليه السلام ته ددوی انتظار کوه، چې دوی څه کونکې دی، او دوی سره څه معامله کيدونکې ده، او ته ددوی په تکليفونو باندې صبر کوه، د اصطبر طاء د تاء افتعال نه بدل راغلې ده، او دوی ته اووايه چې اوبه ددوی او د اوښې په مينځ کښې تقسيم شوې دی يو ورځ ددوی نمبر دې، او يو ورځ د اوښې، هر يو به په خپل خپل نمبر باندې حاضريږی، قوم به په خپل نمبر او اوښه په خپل نمبر، هغه خلق په دې طريقه باندې يو زمانه پورې قائم وو، بيا دوی ددې نه تنگ شول او د اوښې د قتلولو اراده ئې اوکړه، نو هغوی خپل ملگرې قدار ته ددې اوښې د قتل د پاره اواز ورکړو، نو هغه توره واخستله، او په دې تورې سره د اوښې خپې کټ کړې، يعنی د هغوی په موافقت او مشورې ئې اوښې لره قتل کړه، نو بيا څنگه وو ځما عذاب او ويرول؟ يعنی ځما دوی لره د عذاب نازليدو نه مخکښې د عذاب نه ويرول څنگه وو، يعنی په برحقه واقع شو، او دې عذاب لره الله تعالی په خپل قول إنا أرسلنا عليهم صيحة الخ سره بيان کړو، نو مونږ په دوی باندې يو چغه راواليږله، نو دوی داسې شول لکه د باړه جوړونکې پاتې شوې گياه، محتظر هغه کس چې د خپلو بيزو گډو د پاره د اوچې گياه او ازغو وغيره نه باړه جوړه کړی، په هغې کښې د شرمخ او درندگانو نه د چيلو حفاظت کوی او ددې گياه نه چه څه اوغورزيږی نو بيزې هغه په خپلو خپو سره دَل دُل کړی، هم دا هشيم دې، بې شکه مونږ قرآن د نصيحت د پاره آسان کړې دې، څوک شته نصيحت حاصلونکې، قوم لوط هم هغه ځيزونو ته دروغ اووئيل چې هغې سره دوی د لوط عليه السلام په ژبه اويرولې شول، بې شکه مونږ په دوی باندې کاڼړی ورولو والا هوا راواليږله، يعنی داسې هوا چې په دوی باندې به ئې کاڼړی ورول، او هغه به د وړو کاڼړو نه يو وو، نه چې تولهٔ لپه، نو دوی هلاک شول، سوا د ال لوط عليه السلام نه او آل لوط سره د لوط عليه السلام ددوی دوه لونړه وې، مونږ دوی ته دلو سحر په وخت خلاصې ورکړو، يعنی د غير متعين ورځې سحر کښې، او که د يوم معين سحر مراد وی نو غير منصرف به وی، څکه چې دا معرفه ده او د السحر نه معدول دې، څکه ددې حق دا دې چې په معرفه کښې په الف لام سره استعمال شی، پاتې شوه دا خبره چې په اهل لوط باندې کاڼړې ورونکی هوا

نازله شوه او که نه، نو په دې کښې دوه قوله دي، اول صورت يعنې د هوا ليږلو په صورت کښې به دا تعبير استثناء متصل وي، او دويم صورت يعنې نه ليږلو په صورت کښې به دا تعبير استثناء منقطع به وي، تَساهلاً، (سترګو پټولو سره) که مستثنى د مستثنى منه د جنس نه وي زمونږ د خصوصي انعام احسان په توګه باندې نعمة مصدر دې، د إنعاما په معنى کښې دې، مونږ هم داسې يعنې د دې په شان هر هغه کس ته بدله ورکوو، چې زمونږ د نعمتونو شکريه ادا کوي، حال دا چې هغه کس مومن وي يا هغه کس چه په الله او د هغه په رسول باندې ئې ايمان راوړې وي، او د هغه تابعداري ئې کړې وي، او دوی لره لوط عليه السلام زمونږ د عذاب نه اويرول، نو په جهګړه شول او د هغه د ويرولو تکذيب ئې اوکړو او د لوط عليه السلام نه ئې د هغه د ميلمنو مطالبه اوکړه، يعنې د هغوی نه ئې د دې خبرې مطالبه اوکړه چې د دوی او د دې خلقو په مينځ کښې دې حائل نه جوړيږې کوم چې د ده خواه له د ميلمنو په شکل کښې راغلې وو، چې هغوی سره دوی دا خبيث عمل اوکړي، او هغه ميلمانه فرشتې وې، نو مونږ د هغوی سترګې ورانې کړې، يعنې هغوی مو رانده کړل، او سترګو لره مو بغير د کندو نه مخ سره يو شان کړې، په داسې طريقه چې جبرئيل عليه السلام دوی په مخ باندې اووهل، او مونږ دوی ته اوونيل څما عذاب او ويرول اوس اوڅکئ، يعنې څما د عذاب او ويرولو ثمره او نتيجه اوڅکئ،او بې شکه دوی لره يو ورځ سحر وختي يو دائمي عذاب اونيول، يعنې د آخرت د عذاب سره ملاويدونکی عذاب، دوی اونيول، نو څما د عذاب او د ويرولو مزه اوڅکئ، او بې شکه مونږ قرآن د نصيحت د پاره آسان کړې دې، شته څوک نصيحت حاصلونکې؟

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: بالأمور التي أنذرهم بها: د منذر تفسير په الأمور المنذر بها سره کولو کښې ئې اشاره اوکړه چې دلته د منذر نه مراد انبياء نه دي، بلکه هغه امور مراد دي د کومو نه چې ويرولې شوې دي، دويم صورت دا هم کيدې شي چې نذر،د نذير بمعنى رسل جمع وي، او د نذر نه مراد رسولان وي، او د نذير په ځائ نذر د جمع صيغه راوړلو کښې دا نکته ده چې د يو رسول تکذيب د ټولو رسولانو تکذيب دې.

**قوله**: منصوب على الاشتغال: يعني بشرًا منا أمر عامله د قاعدې د وجې نه منصوب دې، تقديري عبارت دا دې أنتبع بشرًا منا واحدًا نتبعه فعل ناصب د محذوف مفسر دې.

**قوله**: جُنُون:د سعر تفسير په جنون سره کولو کښې ئې اشاره اوکړه چې سعر مفرد دې، جمع نه ده، د دې معنى د عقل سپکوالې . وئيلې شي، ناقة مسعورة د مجنون په شان تلونکې اوښه، او د سعر په معنى د اور، جمع کيدې شي. په أألقي کښې خلور قراتونه

دی، او څلور واره سبعیه دی.

**قوله** فتنة: فتنة د مرسلوا مفعول له دې، یعنی مونږ ددوی امتحان د پاره د یو کانړی نه اوښه رااوباسو

**قوله** وَبَيْنَ النَّاقَةِ: د مفسر علام مقصد ددې اضافې نه يوه شبه لرې كول وو، چې د الله تعالى د قول الماءُ قِسمةٌ بينهم نه معلوميږی چې د اوبو نمبر د صالح عليه السلام د قوم په مينځ كښې وو، حالانكه د اوبو نمبر د اوښې او د قوم په مينځ كښې وو؟ ددې شبهې لرې كولو د پاره ئې وبين الناقة اضافه اوكړه.

**قوله** موافقة لهم: ددې عبارت د اضافې مقصد ددې ايت او د سوره شعراء په ايت كښې تطبيق كول دی، په سوره شعراء كښې فعقروها د جمع صيغې سره ده، او دلته فعقر واحد صيغې سره دې؟

د تطبيق صورت دا دې چې قاتل بالمباشر خو قدار وو، خو د قتل په مشوره كښې ټول شريک وو، څكه دلته بالمباشر قاتل طرف ته نسبت اوكړې شو، او په سورة شعراء كښې ئې بالواسطه قاتلان هم په قتل كښې شريک كولو د پاره د جمع صيغه راوړه.

**قوله** هشيم: صيغه د صفت مشبه په معنى د مهشوم، اسم مفعول، ريزه ريزه شوې، خراب كړې شوې.

**قوله** من الأسحار: ددې اضافې مقصد دا خودل دی، چې سحر نكره ده، يعنى د غير معين ورځې سحر،

**قوله** ولوأريد مِنْ يَوْمٍ مُّعِينٍ لِمَنْعِ مِنَ الصَّرف، الخ: ددې اضافې مقصد دا ښودل دی، چې بِسَحرٍ منصرف دې، څكه چې دا نكره منلو په صورت كښې د اسباب منع صرف نه صرف يو سبب (عدل) په دې كښې موندلې شی، څكه چې سحر د السحر نه معدول شوې دې، او كه ددې نه د معين ورځې سحر مراد واخستلې شی نو په دې كښې علميت هم موجود وی، په دې صورت كښې به دوه اسبابو يعنى عدل او علميت د وجې غير منصرف وی.

**قوله** تَسَمُّحاً: په يوه نسخه كښې تسامحا دې، مطلب دا دې چې إلا آل لوط مستثنى منقطع ګرځول د چشم بوشی د وجې نه كيدې شی، ګنی ددې بل صورت نشته، څكه چې آل لوط هم د قوم افراد دی، چې د هغې د وجې په مستثنى منه كښې داخل دې، لهذا دا به مستثنى متصل وی، خو په ظاهر حال باندې نظر كولو سره دا مستثنى منقطع ګرځولې شوې ده.

**قوله** نعمةً مصدر: يعنى نعمة د نجينا مفعول مطلق، بغير لفظه تاكيد د پاره دې، څكه چې

نجينا د انعمنا په معنى كښې دې، او د نجينا مفعول له هم كيدې شى، او د فعل محذوف مفعول مطلق بلفظه هم كيدې شى، أى انعاما نعمة

**قوله**: أَوْمَنْ آمن بالله ورسوله وأطاعهم: دا ټوله جمله د وهومومن عطف تفسيرى دې.

**قوله**: تجادلوا وكذبوا: دا د تماروا تفسير دې، ددې مقصد يو شبه دفع كول دى، شبه دا ده چې د تماروا صله باء نه راځي، حالانكه دلته صله باء واقع شوې ده؟

**جواب**: خلاصه دا ده چې تماروا د تجادلوا و د كذبوا معنى لره متضمن دې، چې د هغې د وجې نه د باء په ذريعې سره تعديه صحيح ده.

**[اياتونه: ٤١-٥٥]**

{وَلَقَدْ جَاءَ آلَ فِرْعَوْنَ} قَوْمه مَعَهُ {النُّذُرُ} الْإِنْذَار عَلَى لِسَان مُوسَى وَهَارُون فَلَمْ يُؤْمِنُوا بل {كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا كُلِّهَا} التِّسْع الَّتِي أُوتِيَهَا مُوسَى {فَأَخَذْنَاهُمْ} بِالْعَذَابِ {أَخْذَ عَزِيزٍ} قَوِيّ {مُقْتَدِرٍ} قَادِر لَا يُعْجِزهُ شَيْء {أَكُفَّارُكُمْ} يَا قُرَيْش {خَيْرٌ مِنْ أُولَئِكُمْ} الْمَذْكُورِينَ مِنْ قَوْم نُوح إِلَى فِرْعَوْن فَلَمْ يُعَذَّبُوا {أَمْ لَكُمْ} يَا كُفَّار قُرَيْش {بَرَاءَةٌ} مِنَ الْعَذَاب {فِي الزُّبُرِ} الْكُتُب وَالِاسْتِفْهَام فِي الْمَوْضِعَيْنِ بِمَعْنَى النَّفْي أَيْ لَيْسَ الْأَمْر كَذَلِكَ {أَمْ يَقُولُونَ} أَيْ كُفَّار قُرَيْش {نَحْنُ جَمِيعٌ} جمع {مُنْتَصِرٌ} على محمد وَلَمَّا قَالَ أَبُو جَهْل يَوْم بَدْر إِنَّا جمع منتصر نزل {سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ} فَهُزِمُوا بِبَدْرٍ وَنُصِرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ {بَلِ السَّاعَةُ مَوْعِدُهُمْ} بِالْعَذَابِ {وَالسَّاعَةُ} أَيْ عَذَابهَا {أَدْهَى} أَعْظَم بَلِيَّة {وَأَمَرُّ} أَشَدّ مَرَارَة مِنْ عذاب الدنيا {إِنَّ الْمُجْرِمِينَ فِي ضَلَالٍ} هَلَاك بِالْقَتْلِ فِي الدُّنْيَا {وَسُعُرٍ} نَار مُسَعَّرَة بِالتَّشْدِيدِ أَيْ مُهَيَّجَة فِي الآخرة {يَوْمَ يُسْحَبُونَ فِي النَّارِ عَلَى وُجُوهِهِمْ} فِي الْآخِرَة وَيُقَال لَهُمْ {ذُوقُوا مَسَّ سَقَرَ} إصابة جهنم لكم {إِنَّا كُلَّ شَيْءٍ} مَنْصُوب بِفِعْلٍ يُفَسِّرهُ {خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ} بِتَقْدِيرٍ حَال مِنْ كُلّ أَيْ مُقَدَّرًا وقرئ كل بالرفع مبتدأ خبره خلقناه {وَمَا أَمْرُنَا} لِشَيْءٍ نُرِيد وُجُوده {إِلَّا} مَرَّة {وَاحِدَةٌ كَلَمْحٍ بِالْبَصَرِ} فِي السُّرْعَة وَهِيَ قَوْل كُنْ فَيُوجَد إِنَّمَا أمره إِذَا أَرَادَ شَيْئًا أَنْ يَقُول لَهُ كُنْ فَيَكُون {وَلَقَدْ أَهْلَكْنَا أَشْيَاعَكُمْ} أَشْبَاهكُمْ فِي الْكُفْر مِنَ الْأُمَم الْمَاضِيَة {فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ} اسْتِفْهَام بِمَعْنَى الْأَمْر أَيْ اُذْكُرُوا وَاتَّعِظُوا {وَكُلُّ شَيْءٍ فَعَلُوهُ} أَيْ الْعِبَاد مَكْتُوب {فِي الزُّبُرِ} كُتُب الْحَفَظَة {وَكُلُّ صَغِيرٍ وَكَبِيرٍ} مِنَ الذَّنْب أَوْ الْعَمَل {مُسْتَطَرٌ} مَكْتُوب فِي اللَّوْح الْمَحْفُوظ {إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّاتٍ} بَسَاتِين {وَنَهَرٍ} أُرِيدَ بِهِ الْجِنْس وَقُرِئَ بِضَمِّ النُّون وَالْهَاء جَمْعًا كَأَسَدٍ وَأُسُد وَالْمَعْنَى أَنَّهُمْ يَشْرَبُونَ مِنْ أَنْهَارهَا الْمَاء وَاللَّبَن وَالْعَسَل وَالْخَمْر {فِي مَقْعَدِ صِدْقٍ} مَجْلِس حَقّ لَا لَغْو فِيهِ وَلَا تَأْثِيم أُرِيدَ بِهِ الْجِنْس وَقُرِئَ مَقَاعِد الْمَعْنَى أَنَّهُمْ فِي مَجَالِس مِنَ الْجَنَّات سَالِمَة مِنَ اللَّغْو وَالتَّأْثِيم بِخِلَافِ مَجَالِس الدُّنْيَا فَقَلَّ أَنْ تَسْلَم مِنْ ذَلِكَ وَأُعْرِبَ هَذَا خَبَرًا ثَانِيًا وَبَدَلًا وَهُوَ صَادِق بِبَدَلِ الْبَعْض وَغَيْره {عِنْدَ مَلِيكٍ} مِثَال مُبَالَغَة أَيْ عَزِيز الْمُلْك وَاسِعه {مُقْتَدِرٍ} قَادِر لَا يُعْجِزهُ شَيْء وهو الله تعالى وعند إِشَارَة إِلَى الرُّتْبَة وَالْقُرْبَة مِنْ فَضْله تَعَالَى

**ترجمه** : او فرعونیانو یعني د فرعون قوم ته سره د فرعون نه، ویرونکي د ویرولو خبرې، د موسی علیه السلام او د هارون علیه السلام په ژبه راغلې، خو هغوی ایمان راونړو. بلکه د ټولو نبوتي تکذیب اوکړو، کومې چې موسی علیه السلام ته ورکړې شوې وې، نو دغه شان مونږ هغوی په عذاب کښې اونیول، د طاقتور او قدرت لرونکی د نیولو په شان چې هغه لره هیڅ یو څیز عاجزه کولې نشي، اې قریشیو! آیا ستاسو کافران د هغه کافرانو نه کوم چې د قوم نوح نه د قوم فرعون پورې ذکر شول ښه دي؟ چې دوی ته به عذاب ورکولې نشي، یا ستاسو د پاره اې د قریشو کافرانو په کتابونو کښې د عذاب نه خلاصیدل لیکلې شوي دي؟ او استفهام په دوارو ځایونو کښې په معنی د نفی دې، یعني داسې خبره نه ده، آیا د قریشو کافران دا وائي چې مونږ په محمد ﷺ باندې غالب راتلونکې ډله یو او چې کله د بدر په ورځ ابوجهل اونیول چې مونږ غالب راتلونکې ډله یو، نو ایت سیهزم الجمع ویولون الدبر نازل شو ډیر زر به دا ډله شکست خوړلو سره په شاه اوتختي، نو دغه شان په بدر کښې دوی ته شکست اوشو، او محمد ﷺ په دوی باندې غالب شو بلکه قیامت د دوی سره د عذاب د وعدې وخت دې، او قیامت یعني د هغې عذاب لوئې مصیبت او د دنیا د عذاب نه ډیر سخت ناخوښه دې، بې شکه مجرمان په ګمراهې کښې یعني په دنیا کښې د قتل په ذریعه په هلاکت کښې د ی او لمبې وهونکې اور کښې دی، سعرا تشدید سره دې، یعني په آخرت کښې شعلې وهونکې اور، په کومه ورځ به چې دوی په پړ مخې اور ته راښکلې شي، یعني په آخرت کښې، او دوی ته به اوونیلې شي د دوزخ د اور مزه اوڅکې، ستاسو جهنم ته داخلیدو د وجې نه، مونږ هر یو څیز په اندازه سره پیدا کړې دې، د کُلَّ شَيْءٍ فعل ناصب هغه فعل مقدر دې چې د هغې تفسیر خَلَقْنٰهُ کوی، بِقَدَرٍ د کُلَّ شَيْءٍ نه حال دې، أي مقدرا، او کل د مبتدأ کیدو د وجې نه مرفوع هم لوستلې شوې دې، او د هغې خبر خَلَقْنٰهُ دې، او زمونږ حکم د هغه څیز د پاره د کوم د وجود چې مونږ اراده کوو، صرف یو ځل وی، په تیزې کښې د سترګو د رپ په شان. او هغه حکم کلمه د (کن) ده، نو هغه څیز بغیر د هیسارید و نه موجود شي، او د هغه حکم به هغه وخت وی چې کله هغه د یو څیز د پاره د کن اراده اوکړی، نو هغه څیز موجود شي، او مونږ په مخکښې امتونو کښې په کفر کښې ستاسو په شان خلق هلاک کړل، نو څوک شته نصیحت حاصلونکې؟ استفهام په معنی د امر دې یعني چه نصیحت حاصل کړئ، کوم عملونه چې دا خلق کوی هغه په اعمال نامو کښې یعني د حفاظت کونکې فرشتو په کتابونو کښې لیکلې شوې دی، هر وړه او لویه ګناه یا عمل په لوح محفوظ کښې لیکلې شوې دې، یقینا زمونږ نه ویریدونکی به د باغونو او د نهرونو په فضا کښې وی، د نهر نه د جنس اراده کړې شوې ده، او د جمع په توګه د نون او د هاء په ضمې سره هم وئیلې شوې دې، لکه أسد، او اسد

بضم الف، معنى دا ده چې هغوی به د اوبو، پیو، شهدو او د شرابو نهرونو نه څکل کوی، په یو بنه ځائې یعنی مجلس حق کښې به وی نه به هلته لغوه خبرې وی او نه به د ګناه خبرې، د (مقعد) نه د جنس اراده کړې شوې ده، او مقاعد هم وئیلې شوې دې، معنی دا ده چې هغوی به په جنت کښې په داسې مجلسونو کښې وی چې د لغویاتو او د ګناهونو نه به پاک وی، په خلاف د دنیا د مجلسونو، چې هغه د داسې قسم خبرو نه ډیر کم پاک وی او مَقعَدِ صِدقٍ ته د إن خبر ثانی په طور هم اعراب ورکړې شوې دې، او د جَنّٰت نه د بدل په توګه هم، او هغه په بدل البعض وغیره باندې صادق راځی، د قدرت والا بادشاه سره، یعنی عندَ مليكٍ مثال په طور د مبالغې دې، حقیقة عندیت مراد نه دې، یعنی هغه غالب وسعت والا بادشاه داسې قدرت لرونکې دې، چې هیڅ یو څیز هغه لره عاجز کولې نه شی، او هغه الله تعالى دې، او د عند نه په رتبه کښې نزدیکت طرف ته اشاره ده، او قدرت (قرینة) د الله په فضل سره دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** الإنذار: مفسر علام د نذر تفسیر په الإنذار سره کولو کښې اشاره اوکړه چې نُذُر مصدر دې، په معنی د ویرولو ویرونکې، دلته د نُذُر جمع هم کیدې شی، ویروونکی.

**الآیات التسع:** العصا، ٢ الید البیضاء، ٣ والسنین، ٤ الطمس، ٥ الجراد، ٦ القمل، ٧ الضفادع، ٨ الدم، ٩ الطوفان

**قوله:** خیر من اولٰئکم: یعنی اې قریش، آیا ستاسو کافران د مخکښې کافرانو نه په قوت کښې زیات دی، ښکاره خبره ده چې نه دی.

**قوله:** أَدْهٰی: دا د داهیة نه اسم تفضیل دې،

**قوله:** أَمَرُّ: سخت، ډیر تریخ

**قوله:** سُعُر: أی نار مسعرة شغله وهونکې اور

**قوله:** يَوْمَ يُسْحَبُونَ: یوم د فعل مقدر ظرف دې، تقدیری عبارت دا دې ويقال لهم يوم الخ او د سُعُر هم ظرف کیدې شی.

**قوله:** إنا كُلَّ شيءٍ منصوبٌ بفعلٍ الخ: د كل په نصب سره د ما أضمر د قاعدې مطابق د جمهورو قرات دې، او هم دا راجح دې، ځکه چې د کل رفع اعتقاد فاسد طرف ته موهم ده، په داسې توګه چې کل مبتدأ شی، او خلقناه جمله د شیء صفت وی، او بقدر ددې خبر، اوس به ترجمه دا وی، هر هغه څیز چې الله تعالی پیدا کړې دې په اندازې سره دې، ددې نه دا وهم پیدا کیږی چې بعضې څیزونه داسې هم دی چې د الله تعالی مخلوق نه دی،

حالانکه د اهل سنت والجماعة عقیده ده چې هر یو څیز د الله مخلوق دې، او په اندازې سره دې، او د نصب په صورت کښې به ترجمه دا وی چې مونږ هر یو څیز یو منصوبې او اندازې سره پیدا کړې دې.

**خلاصه کلام. إنا کلّ شئ خلقنه بقدر:** کل کښې دوه احتماله دی، رفع او نصب، او بیا د رفع په صورت کښې دوه احتماله دی، یو صحیح او بل فاسد، **خلقناه** د کل خبر جوړ کړې شی، نو دا صورت به صحیح وی، معنی به دا وی چې هر څیز مونږ په اندازې سره پیدا کړې دې، هم دا د اهل السنة والجماعة مسلک دې، خو د رفع په صورت کښې یو بل احتمال هم دې، کوم چې فاسد دې او هغه دا دې، چې خلقناه د شئ صفت وی، او بِقَدر د کل خبر وی، نو دا معنی د اهل السنة والجماعة په نیز باطل ده، ددې مطلب به دا وی چې هر هغه څیز چې مونږ پیدا کړې دې په اندازې سره دې، نو ددې نه دا مفهوم کیږی چې بعضې څیزونه داسې هم دی چې د غیر الله پیدا کړې شوې دی، او هغه په اندازې سره نه دی، دا مذهب د معتزله دې، په خلاف د دې که په **کلّ** باندې نصب شی، چې په دې کښې د فاسدې معنی احتمال نشته، او د نصب صورت به دا وی چې کل به د فعل محذوف مفعول وی، چې د هغې تفسیر روستو فعل **خَلَقنٰهُ** کوی، دې ته باب اشتغال او د **ما اضمر عامله علی شریطة التفسیر** قاعده وئیلې شی، **بقدر دتقدیر** په معنی کښې دې، او فعل سره متعلق دې، په دې صورت کښې **خلقناه د کل شئ** صفت جوړولو احتمال نشته، چې د فساد معنی وهم راشی، ځکه چې صفت په موصوف کښې عامل کیدې نشی، او کوم چې عامل نه وی هغه دعامل تفسیر هم کولې نشی.

**قوله: وَكُلُّ شَيْءٍ فَعَلُوهُ فِي الزُّبُرِ:** دلته د مخکښې خلاف په **کل** باندې رفع متعین ده، ځکه چې د نصب په صورت کښې د معنی فساد ښکاره دې، ځکه که په کل باندې نصب اووئیلې شی نو تقدیری عبارت به دا وی **فعلوا کل شئ فی الزبر**، هغوی هر یو څیز په لوح محفوظ کښې داخل کړې دې، حالانکه په لوح محفوظ کښې د داخلو کار دالله تعالی دې، نه چې د مخلوق، دغه شان په لوح محفوظ کښې د عاملینو د اعمالونه علاوه نور هم ډیر څیزونه دی، چې د هغې د عاملینو سره هیڅ تعلق نشته، او د رفع د قرامت په صورت کښې به مطلب دا وی چې کوم عمل هم هغوی کوی هغه په لوح محفوظ کښې محفوظ دی.

**قوله: أريد به الجنس:** نهر اګرچه واحد دې، خو جنت چونکه جمع ده لهذا د هغې مناسبت سره جنس مراد دې، چې په هغې کښې د جمع د معنې لحاظ اوکړې شی، د فواصل د رعایت د پاره مفرد راوړلې شوې دې، او په بعضې قراتونو کښې نهر، بضم نون، جمع هم راوړلې شوې ده.

قوله: في مَقْعَدِ صدق: أي مقام حسن د موصوف اضافت د صفت طرف ته شوې دې، په دې کښې دوه ترکيبونه کيدې شی، اول دا چې د إنَّ خبرثانی وی، او في جنّات خبر اول وی، دويم دا چې د جنات نه بدل البعض وی، ځکه چې مَقْعدِ صدقِ د جنات بعض دې.

قوله: وغيره: دا اشاره ده چې في مقعد صدق بدل الاشتمال هم کيدې شی، ځکه چې جنات په مقد صدق باندې مشتمل دې.

قوله: عِنْدَ مليكٍ: که مقعد صدق بدل جوړ کړې شی نو عند مليك به د إن خبر ثانی وی، او که مقعد صدق د إن خبرثانی جوړ کړې شی نو عند مليك به خبرثالث وی.

قوله: عند إشارة إلى الرُّتبة: عند مليك کښې عنديت بطور د مبالغې د تقرب في المرتبة تمثيل دې، او د عند نه قُرب رُتبې بيانول مقصود دی، ځکه چې الله تعالی ته قربِ مکانی مقصود نه د ی، ځکه چې هغه د جسم نه پاک دې، او قربِ مکانی د جسم او جسميات خاصه ده.

## [٥٥] سورة الرحمن

سورة الرحمن مكية او الا يساله من في السموت والارض (الاية) فمدنية وهي ست او ثمان وسبعون اية

سورة الرحمن مکی دې سوا د آيت: الا يسئله من في السموت والارض دا مدنی دې، او په دې کښې شپږ اويا، يا اته اويا آياتونه دی.

[اياتونه: ١-٢٥]

(الرحمن) الله تعالى (علّم) من شاء (ال قرآن) (خَلَقَ الْإِنْسَانَ) أي الجنس (عَلَّمَهُ الْبَيَانَ) النطق (الشَّمْسُ وَالْقَمَرُ بِحُسْبَانٍ) يَجْرِيَانِ (وَالنَّجْمُ) مَا لَا سَاقَ لَهُ مِنَ النَّبَاتِ (وَالشَّجَرُ) مَا لَهُ سَاق (يَسْجُدَانِ) يَخْضَعَانِ لِمَا يُرَادُ مِنْهُمَا (وَالسَّمَاءَ رَفَعَهَا وَوَضَعَ الْمِيزَانَ) أَثْبَتَ الْعَدْلَ (أَلَّا تَطْغَوْا) أي لِأَجْلِ أَنْ لَا تَجُورُوا (فِي الْمِيزَانِ) مَا يُوزَنُ بِهِ (وَأَقِيمُوا الْوَزْنَ بِالْقِسْطِ) بِالْعَدْلِ (وَلَا تُخْسِرُوا الْمِيزَانَ) تنقصوا الموزون (وَالْأَرْضَ وَضَعَهَا) أَثْبَتَهَا (لِلْأَنَامِ) لِلْخَلْقِ الإنس وَالْجِنّ وغيرهم (فِيهَا فَاكِهَةٌ وَالنَّخْلُ) الْمَعْهُود (ذَاتُ الْأَكْمَامِ) أَوْعِيَة طلعها (وَالْحَبُّ) كالحنطة والشعير (ذُو الْعَصْفِ) التبن (وَالرَّيْحَانُ) الْوَرَق الْمَشْمُوم (فَبِأَيِّ آلَاءِ) نِعَم (رَبِّكُمَا) أَيُّهَا الْإِنْس وَالْجِنّ (تُكَذِّبَانِ) ذُكِرَتْ إِحْدَى وَثَلَاثِينَ مَرَّةً وَالِاسْتِفْهَام فِيهَا لِلتَّقْرِير لِمَا رَوَى الْحَاكِم عَنْ جَابِر قَالَ قَرَأَ عَلَيْنَا رَسُول اللّٰه صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُورَة الرَّحْمَن حَتَّى خَتَمَهَا ثُمَّ قَالَ مَالِي أَرَاكُمْ سُكُوتًا لَلْجِنّ كَانُوا أَحْسَن مِنْكُمْ رَدًّا مَا قَرَأْت عَلَيْهِمْ هَذِهِ الْآيَة مِنْ مَرَّة (فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ) إِلَّا قَالُوا وَلَا بِشَيْءٍ مِنْ نِعَمك رَبّنَا نُكَذِّب فَلَك الحمد (خَلَقَ الْإِنْسَانَ) آدم (مِنْ صَلْصَالٍ) طِين يَابِس يُسْمَع لَهُ صَلْصَلَة أَيْ صَوْت إِذَا نُقِرَ (كَالْفَخَّارِ) وهو ما طبخ من الطين (وَخَلَقَ الْجَانَّ) أَبَا الْجِنّ وَهُوَ إِبْلِيس (مِنْ مَارِجٍ مِنْ نَارٍ) هُوَ لَهَبهَا الْخَالِص مِنَ الدخان (فبأي آلاء ربكما تكذبان) (رَبُّ الْمَشْرِقَيْنِ) مَشْرِق الشِّتَاء وَمَشْرِق الصَّيْف (وَرَبُّ المغربين) كذلك (فبأي آلاء ربكما تكذبان) (مَرَجَ) أَرْسَلَ (الْبَحْرَيْنِ) الْعَذْب وَالْمِلْح (يَلْتَقِيَانِ) فِي

رأي العين (بَيْنَهُمَا بَرْزَخٌ) حاجز من قدرته تعالى (لَّا يَبْغِيَانِ) لا يبغي واحد منهما على الآخر فيختلط به (فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ) (يَخْرُجُ) بالبناء للمفعول والفاعل (مِنْهُمَا) من مجموعهما الصادق بأحدهما وهو الملح (اللُّؤْلُؤُ وَالْمَرْجَانُ) خرز احمر او صغار اللؤلؤ (فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ) (وَلَهُ الْجَوَارِ) السفن (الْمُنشَآتُ) المحدثات (فِي الْبَحْرِ كَالْأَعْلَامِ) كالجبال عظما وارتفاعا (فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ)

**ترجمه:** شروع کوم د الله په نوم سره چې ډير مهربانه او ډير رحم کولو والادې، رحمن چې ځانته اوغوښتل قرآن ئې ورته اوښودلو، انسان يعنې جنس انسان ئې پيدا کړو، او هغه ته ئې د خبرو چل اوښودلو، نمر او سپوږمې په مقرر حساب سره ګرځي. او بوټي يعنې هغه ګياه چې د هغې تنه نه وي، او اونې يعنې تنې والا اونې، چې څه د دوى نه مطلوب دى د هغې تابعدار دى او هم هغه آسمان اوچت کړو، او تله ئې کيخودله، يعنې انصاف ئې قائم کړو چې تاسو خلق په تول کښې تجاوز اونکړئ، او تاسو په انصاف سره وزن برابر کړئ، او په تول کښې کم مه ورکوئ، يعنې په وزن کښې کمې مه کوئ، او مخلوق يعنې جن او انس د پاره ئې زمکه خوره کړه، چې په هغې کښې د ميوو او د کهجورو اونې دى، چې معلوم دى، چې د هغې ميوو باندې غلاف دې، اکمام، د وګى غلاف، او غله لکه غنم، او جوار، بهوس والا، او پاڼړو والا، او خوشبو والا ګلونه ئې پيدا کړل، نو اې جناتو او انسانانو! تاسو به د خپل رب د کوم کوم نعمت نه انکار کوئ.؟ دا ايت يو ديرش خله ذکر شوې دې، او استفهام په دې کښې د تقرير د پاره د ې، ځنګه چې حاکم د جابر ﷺ نه روايت کړې دې فرمائى چې رسول اکرم ﷺ موږ ته ټول سوره رحمن اولوستلو بيا ئې اوفرمائيل چې څه خبره ده څه تاسو خاموشه وينم؟ جنات د جواب په اعتبار سره يقينا تاسو نه ښه وو، ما چې کله هم هغوى ته دا ايت فبأى آلاء ربكما تكذبان اورولې دې، چرته داسې شوې نه ده چې هغوى ولا بشيء من نعمك ربنا نكذب فلك الحمد ونيلې نه وى، چې اې خمونږ ربه! موږ ستا د يو نعمت هم ناشکرى نه کوو، هم تالره ټول تعريفونه دى، هم هغه انسان ادم ﷺ د يو داسې خاورې نه چې ټهيکرى پشان ټنګيدله پيدا کړو، يعنې داسې اوچې خاورې نه چې په هغې کښې آواز وو، او داسې خاورې نه چې هغه پخه کړې شوې وه، او جناتو لره يعنې د جناتو پلار، او هغه ابليس دې، د خالص اور نه پيداکړو او مارج هغه شغله ده چې په هغې کښې لوګې نه وى، نو اې جناتو او انسانانو! تاسو به د خپل رب د کوم کوم نعمت نه انکار کوئ.؟ حاکم ٦/٢٤٠

شور او خوږ دوه سيندونه ئې جارى کړل، چې په ښکاره يو ځائ شوى وو، په حقيقت کښې په دې دواړو کښې فاصل دې، يعنې د الله تعالى د قدرت مانع دې، چې دواړه مخکښې کيدې نشى، يعنې په دې دواړو کښې يو په بل باندې تجاوز نه کوى، چې هغه سره ملاوشى، نو اې جناتو او انسانانو! تاسو به د خپل رب د کوم کوم نعمت نه انکار کوئ.؟ او د دې دواړو نه يعنې د دواړو د مجموعې نه

ملغلري او مرجان راوځي د مجموعې اطلاق په يو باندې هم کيږي، او هغه د شور سيند دي، يخرج معروف او مجهول دواړه دي، لؤلؤ غټې ملغلرې، مرجان ورې ملغلرې، نو اې جناتو او انسانانو! تاسو به د خپل رب د کوم کوم نعمت نه انکار کوئ.؟ هم د الله په ملکيت کښې دي هغه جهازونه کشتئ چې په سيند کښې د غر پشان اوچتې دي، يعنی په بلندی او لئی والی کښې د غر پشان دی، نو اې جناتو او انسانانو! تاسو به د خپل رب د کوم کوم نعمت نه انکار کوئ.؟

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: الرَّحْمٰنُ :مبتدأ، مابعد ددې خبر، د تعديد او حجت قائمولو په توګه خبر بغير د عطف نه متعدد هم کيدې شی، څنګه چې دلته بغير د عطف دې، الرحمن مبتدأ، او مابعد ددې خبر، دا د هغه خلقو په نيز دی څوک چې الرحمن پوره ايت نه منی، او کوم خلق چې ئې پوره ايت منی، د هغوی په نيز الرحمن د مبتدأمحذوف خبر دې، اى الله الرحمن باالرحمن مبتدأ ده، او ربنا ددې خبر محذوف دې.

**قوله**: من شاء :ددې عبارت په اضافې سره ئې اشاره اوکړه چې علم متعدی په دوو مفعولو سره دې، او مفعول اول ددې محذوف دې.

**قوله**: النطق :ګويائی (خبرې کول)، اظهار ما فی الضمير، دا قوت په حيواناتو (ځناورو) کښې نشته.

**قوله**: بِحُسبانٍ :دا د حسب مصدر مفرد دې، بمعنی حساب، لکه غُفران وکُفران او دا هم کيدې شی چې د حساب جمع وی، لکه د شِهَاب جمع شُهْبان، او د رَغِيف جمع رُغفان، (وره شان روټې) مطلب دا دې چې نمر او سپوږمئ په خپل حساب سره په خپل برجونو کښې ګرځی، د ويخته برابر هم خپله ډيوټی نه پريګدی.

**فائده**: د نمر قطر ٨٦٦٥٠٠ (اته لاکهه، شپږ شپته زره پنځه سوه ميله) دې، او هغه د ديارلس لاکهه زمکو برابر دې، نمر د زمکې په شان کلک (مائع) نه د ې، او نه د اوبو په شان بهيدونکې (سيال) دې، بلکه د اوبو نه يونيم چنده ټينګ (کثيف)، د شهدو په شان، (فلکيات جديدة)

**قوله**: أي لأجل أن لَا تَطْغَوْا :دا دې خبرې ته اشاره ده چې په ألا تطغوا کښې أن مصدريه دې، نه چې نافيه، او د أن نه مخکښې لام علت مقدر دې.

**قوله**: الْأَكْمَامِ :أكمام جمع دكُمّ په معنی د شګوفه (غلاف)، جالې.

**قوله**: آلاءِ :نعمتونه، واحد إلیً و ألیً، لکه معیً، و حَصیً وإلیٰ الیٰ.

**قوله**: رَبُّ الْمَشْرِقَيْنِ :رب په رفع سره، د رفع درې وجې کيدې شی،

① دا چې رب المشرقین په ترکیب اضافي سره مبتدأ، او مرج البحرین ددې خبر، او د مبتدأ او خبر په مینځ کښې جمله معترضه وی.
② چې رب المشرقین دمبتدأ محذوف خبر وی، أی هو رب المشرقین
③ د خلق د فاعل نه بدل وی، او بعضې حضراتو من ربکما نه بدل منلو سره مجرور هم وئیلې دي.
**قوله** یَلْتَقِیَانِ: دا د بحرین نه حال دې.
**قوله** مجموعهما الصادق بأحدهما: د شارح دا وئیل چې د دوارو په مجموعه باندې د واحد اطلاق صحیح دی، صحیح نه ده، ځکه چې د مجموعې نه بعض هغه وخت مراد اخستل صحیح وی چې کله د بعض نه متعدد مراد وی، کنی جمع وئیلو سره واحد مراد اخستل بالکل صحیح نه دی.

**[ایاتوله:٢٦-٤٥]**

﴿كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا﴾ أيْ الأَرْض مِنَ الْحَيَوَان ﴿فَانٍ﴾ هَالِك وَعَبَّرَ بِمَنْ تَغْلِيبًا لِلْعُقَلَاءِ ﴿وَيَبْقَى وَجْهُ رَبِّكَ﴾ ذَاته ﴿ذُو الْجَلَالِ﴾ الْعَظَمَة ﴿وَالإِكْرَامِ﴾ للمؤمنين بانعمه عليهم ﴿فبأي آلاء ربكما تكذبان﴾ ﴿يَسْأَلُهُ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾ بِنُطْقٍ أَوْ حَال مَا يَحْتَاجُونَ إِلَيْهِ مِنَ الْقُوَّة عَلَى الْعِبَادَة وَالرِّزْق وَالْمَغْفِرَة وَغَيْر ذَلِكَ ﴿كُلَّ يَوْمٍ﴾ وَقْت ﴿هُوَ فِي شَأْنٍ﴾ أَمْر يُظْهِرهُ عَلَى وَفْق مَا قَدَّرَهُ فِي الْأَزَل مِنْ إِحْيَاء وَإِمَاتَة وَإِعْزَاز وَإِذْلَال وَإِغْنَاء وَإِعْدَام وَإِجَابَة دَاعٍ وإعطاء سائل وغير ذلك ﴿فبأي آلاء ربكما تكذبان﴾ ﴿سَنَفْرُغُ لَكُمْ﴾ سَنَقْصِدُ لِحِسَابِكُمْ ﴿أَيُّهَ الثَّقَلَانِ﴾ الإنس والجن ﴿يَا مَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ إِنِ اسْتَطَعْتُمْ أَنْ تَنْفُذُوا﴾ تخرجوا ﴿مِنْ أَقْطَارِ﴾ نَوَاحِي ﴿السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ فَانْفُذُوا﴾ أَمْر تَعْجِيز ﴿لَا تَنْفُذُونَ إِلَّا بِسُلْطَانٍ﴾ بقوة ولا قوة لكم على ذلك ﴿فبأي آلاء ربكما تكذبان﴾ ﴿يُرْسَلُ عَلَيْكُمَا شُوَاظٌ مِنْ نَارٍ﴾ هُوَ لَهَبهَا الْخَالِص مِنَ الدُّخَان أَوْ مَعَهُ ﴿وَنُحَاسٌ﴾ أَيْ دُخَان لَا لَهَب فِيهِ ﴿فَلَا تَنْتَصِرَانِ﴾ تَمْتَنِعَانِ من ذلك بل يسوقكم إلى المحشر ﴿فبأي آلاء ربكما تكذبان﴾ ﴿فَإِذَا انْشَقَّتِ السَّمَاءُ﴾ انْفَرَجَتْ أَبْوَابًا لِنُزُولِ الْمَلَائِكَة ﴿فَكَانَتْ وَرْدَةً﴾ أَيْ مِثْلهَا مُحْمَرَّة ﴿كَالدِّهَانِ﴾ كَالْأَدِيمِ الْأَحْمَر عَلَى خِلَاف الْعَهْد بِهَا وَجَوَاب إِذَا فما اعظم الهول ﴿فبأي آلاء ربكما تكذبان﴾ ﴿فَيَوْمَئِذٍ لَا يُسْأَلُ عَنْ ذَنْبِهِ إِنْسٌ وَلَا جَانٌّ﴾ عَنْ ذَنْبه وَيُسْأَلُونَ فِي وَقْت آخَر ﴿فَوَرَبِّكَ لَنَسْأَلَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ﴾ وَالْجَانّ هُنَا وَفِيمَا سَيَأْتِي بمعنى الجني والإنس فيهما بمعنى الإنسي ﴿فبأي آلاء ربكما تكذبان﴾ ﴿يُعْرَفُ الْمُجْرِمُونَ بِسِيمَاهُمْ﴾ سَوَاد الْوُجُوه وَزُرْقَة الْعُيُون ﴿فَيُؤْخَذُ بِالنَّوَاصِي وَالْأَقْدَامِ﴾ ﴿فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ﴾ تُضَمّ نَاصِيَة كُلّ مِنْهُمْ إِلَى قَدَمَيْهِ مِنْ خَلْف أَوْ قُدَّام وَيُلْقَى فِي النَّار وَيُقَال لَهُمْ ﴿هٰذه جهنم التي يكذب بها المجرمون﴾ ﴿يَطُوفُونَ﴾ يَسْعَوْنَ ﴿بَيْنَهَا وَبَيْنَ حَمِيمٍ﴾ مَاء حَارّ ﴿آنٍ﴾ شَدِيد الْحَرَارَة يَسْقَوْنَهُ إِذَا اسْتَغَاثُوا مِنْ حر النار وهو منقوص كقاض ﴿فبأي آلاء ربكما تكذبان﴾

**ترجمه**: څه چې په دې باندې يعنى په زمكه باندې دى ټول فنا كيدونكى دى، . ذوى العقول ته غلبه وركولو سره په (من) سره ئې تعبير اوكړو، صرف ستا باعظمت په مومنانو باندې د خپلو انعاماتو احسان كونكى رب ذات به باقى پاتې شى، نو اې جناتو او انسانانو! تاسو به د خپل رب د كوم كوم نعمت نه انكار كوئ.؟ او ټولو اسمانونو او زمكې والا هم د هغه نه غوښتل كوى، يعنى په زبان حال يا په زبان قال سره ترې غواړى، د كوم څيز چې هغوى ته حاجت وى كه په عبادت باندې قدرت وى يا رزق يا مغفرت وغيره، هغه هر وخت په يو شان كښې وى، يعنى هغه په داسې شغل كښې وى كوم چې هغه په پوره عالم كښې، د هغه مطابق ظاهروى كوم چې ئې په ازل كښې مقدر كړې دې مثلا ژوند وركول، مرګ وركول، عزت وركول، او ذليله كول، او مالدار او غريب كول، او د دعا كونكى دعا قبلول، او سوال كونكى ته وركول وغيره وغيره نو اې جناتو او انسانانو! تاسو به د خپل رب د كوم كوم نعمت نه انكار كوئ.؟ تامكمل ٦/٣٣٥

اې د انسانو او د جناتو ډلې! كه تاسو د اسمانونو او د زمكې د حدودو نه وتلې شئ نو اوځئ، امر د تعجيز د پاره دې، تاسو د طاقت نه بغير وتلې نشئ، او تاسو سره هغه طاقت نشته، نو اې جناتو او انسانانو! تاسو به د خپل رب د كوم كوم نعمت نه انكار كوئ.؟ هغه به ستاسو د پاسه د اور شعلې(لمبې) پريږدى، شواظ د اور هغه شعله (لمبه) چې په هغې كښې لوګې نه وى، يا لوګې وى پكښې، او خالص لوګى به پريږدى، يعنى داسې لوګې چې په هغې كښې شعله نه وى، بيا به تاسو د هغه مقابله كولې نشئ، بلكه هغه به تاسو محشر طرف ته راكاږى، نو اې جناتو او انسانانو! تاسو به د خپل رب د كوم كوم نعمت نه انكار كوئ.؟ پس كله چې اسمان اوشليږى يعنى د فرشتو د راكوزيدو د پاره دروازې كولاو كړې شى او د څرمنې په شان سور شى، لكه سره څرمن، يعنى د مخكښينى حالت په خلاف، او د اذا جواب فما اعظم الهول محذوف دې، يعنى څومره د ويرې منظر به وى؟ نو اې جناتو او انسانانو! تاسو به د خپل رب د كوم كوم نعمت نه انكار كوئ.؟ په دغه ورځ به د انسانانو او د جناتو د ګناهونو تپوس نه كيږى، او په بل وخت كښې به كيږى، څنګه چې ئې اوفرمائيل فوربك لنسئلنهم اجمعين، يعنى قسم دې ستا د ربّ! مونږ به خامخا د دوى نه تپوس كوو، او جَانٌّ دلته هم او دينه مخكښې د جِنِّیْ په معنى كښې دې، او انس هم په مذكوره ځايونو كښې د إِنْسِیِّ په معنى كښې دې، نو اې جناتو او انسانانو! تاسو به د خپل رب د كوم كوم نعمت نه انكار كوئ.؟ مجرمان به د خپلو حليو (علامو) نه پيژندلې كيږى، يعنى د مخونو د توروالى نه او د سترګو د شينوالى نه د دوى د تندى ويښتو او ددوى د قدمونو به نيولې كيږى، نو اې جناتو او انسانانو! تاسو به د خپل رب د كوم كوم نعمت نه انكار كوئ.؟ يعنى په دوى كښې به د هر يو تندې د مخكښې يا د روستو نه د قدمونو سره ملاو كړې شى، او په جهنم كښې به اوغورځولې شى او دوى ته به وئيلې

شي دغه دي هغه جهنم د کوم چې مجرمانو تکذيب کولو د جهنم او د سختو گرمو اوبو په مينځ کښې به دوی چکر لګوی، يعنی منډې به وهي، او چې کله د اور د ګرمئ نه فرياد اوکړی نو دوی باندې به ګرمې اوبه څکلولې شي، (آنٍ) د قاض په شان منقوص دې، نو اې جنّاتو او انسانانو! تاسو به د خپل رب د کوم کوم نعمت نه انکار کوئ.؟

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله** أي الأرض من الحيوان: مفسر علام د عليها تفسير په أي الأرض سره کولو کښې اشاره اوکړه چې جنت او دوزخ، حورې او غلمان به فنا کيږی نه، بلکه د زمکې څيزونه به فنا کيږی، او كل يوم هو في شأن سره په يهودو باندې رد اوکړې شو چې د هغوی عقيده ده چې الله تعالى په شپږو ورځو کښې ټول کائنات پيدا کړو، د جمعه په ورځ په آخری وخت کښې ئې د آدم عليه السلام تخليق اوکړو، او د هفتې په ورځ ئې هيڅ کار اونکړو، هم دا وجه ده چې يهود د خالی په ورځ چهټی کوی.

**قوله** سَنَقْصِدُ: سنفرغ لكم تفسير ئې په سنقصد سره کولو کښې اشاره اوکړه چې د فراغت نه مراد توجه او قصد کول دی، ځکه چې الله تعالى ته داسې مصروفيت نه وی چې په نورو کارونو کښې د مشغوليدو نه مانع وی، داسې قسم کارونو کښې مشغوليدل د مخلوق سره خاص دی.

**قوله** ثقلان: جن او انس ته ثقلان ځکه وائی چې دوی په ژوند او مرګ دواړو کښې په زمکه باندې ثقل وی.

**قوله** فَانْفُذُوا: امر د تعجيز د پاره دې، يعنی که تاسو د سلطنت د حدونو نه وتلې شئ نو اوځئ، دا داسې ده لکه فأتوا بسورة من مثله.

**قوله** كَالدِّهَانِ: د كانت خبر ثانی هم کيدې شی او د وردة صفت هم کيدې شی، او د كانت دا اسم نه حال هم، دِهَان، دُهْنٌ جمع ده، لکه رُمحٌ ورِمَاحٌ، په دې صورت کښې به دهان د تلچهټ په معنی کښې وی، (تلچهټ هغه څيز ته وائی چه په تيلو کښې يو څيز پوخ شی او تيل ترينه لرې کړې شی بيا چه د تيلو په ويخ کښې څه پاتې شی هغې ته تلچهټ وائی) لکه ځنګه چې په بل آيت کښې اسمان لره د تلچهټ سره تشبيه ورکړې شوې ده، كما قال الله تعالى يوم تكون السماء كالمهل، او مهل د تيل تلچهټ ته وئيلې شی، دويم صورت دا دې چې دهان اسم مفرد وی، ځنګه چې زمحشری وئيلې دی، دهان لما يدهن به.

**قوله** والجان ههنا وفيما سيأتي بمعنى الجني والانس فيهما بمعنى الانسي: د دې ټول عبارت راوړلو مقصد د مفسر علام د يو سوال جواب ورکول دی.

**سوال**: دا دې چې جان او انس دا دواړه اسم جنس دی، او سوال د جنس نه نه کیږی بلکه د افرادو د جنس نه کیږی؟

**جواب**: د دې سوال جواب ورکولو د پاره مفسر علام اوفرمائیل چې جان، دجن په معنی کښې، او انس، انسی په معنی کښې دې، او دا دواړه د جنس د افرادو نه دی. ذا دواړه د هغه الفاظو نه دی چې د هغې په جنس او فرد کښې امتیاز د یاء په اضافې سره کیږی. لکه زنج، وزنجی.

**قوله**: زرقة العیون: اسمانی رنګ سترګې، دې ته د پیشو سترګې هم وئیلې شی، او دې ته کرنجی سترګې هم وئیلې شی

**قوله**: آنٍ: دا د إنى نه د اسم فاعل صیغه ده، یشیدلې اوبه.

**[ایاتونه: ٤٦-٧٨]**

{وَلِمَنْ خَافَ} أيْ لِكُلِّ مِنْهُمْ أوْ لِمَجْمُوعِهِمْ {مَقَامَ رَبِّه} قِيَامه بَيْن يَدَيْهِ لِلْحِسَابِ فَتَرَكَ معصيته {جَنَّتَان} {فبأي آلاء ربكما تكذبان} {ذَوَاتَا} تَثْنِيَة ذَوَات عَلَى الْأَصْل وَلَامهَا يَاء {أفنان} اغصان جمع فنن كطلل {فبأي آلاء ربكما تكذبان} {فيهما عينان تجريان} {فبأي آلاء ربكما تكذبان} {فِيهِمَا مِنْ كُلِّ فَاكِهَة} فِي الدُّنْيَا أوْ كُلّ مَا يُتَفَكَّه بِهِ {زَوْجَانِ} نَوْعَانِ رَطْب وَيَابِس وَالْمُرّ مِنْهُمَا فِي الدُّنْيَا كَالْحَنْظَلِ حُلْو {فبأي آلاء ربكما تكذبان} {مُتَّكِئِينَ} حَال عَامِله مَحْذُوف أيْ يَتَنَعَّمُونَ {عَلَى فُرُش بَطَائِنهَا مِنْ إسْتَبْرَق} مَا غَلُظَ مِنَ الدِّيبَاج وَخَشُنَ وَالظَّهَائِر مِنَ السُّنْدُس {وَجَنَى الْجَنَّتَيْنِ} ثَمَرهمَا {دَانٍ} قَرِيب يَنَالهُ الْقَائِم وَالْقَاعِد وَالْمُضْطَجِع {فبأي آلاء ربكما تكذبان} {فِيهِنَّ} فِي الْجَنَّتَيْنِ وَمَا اشْتَمَلَتَا عَلَيْهِ مِنَ الْعَلَالِيّ وَالْقُصُور {قَاصِرَات الطَّرْف} الْعَيْن عَلَى أزْوَاجهنَّ الْمُتَّكِئِينَ مِنَ الْإِنْس وَالْجِنّ {لَمْ يَطْمِثْهُنَّ} يَفْتَضّهُنَّ وَهُنَّ مِنَ الْحُور أوْ مِنْ نِسَاء الدُّنْيَا المنشآت {إنس قبلهم ولا جان} {فبأي آلاء ربكما تكذبان} {كأنهن الياقوت} صفاء {والمرجان} اللؤلؤ بياضا {فبأي آلاء ربكما تكذبان} {هَلْ} مَا {جَزَاء الْإِحْسَان} بِالطَّاعَةِ {إلَّا الْإِحْسَان} بالنعيم {فبأي آلاء ربكما تكذبان} {ومن دونهما} الْجَنَّتَيْنِ الْمَذْكُورَتَيْنِ {جَنَّتَانِ} أيْضًا لِمَنْ خَافَ مَقَام ربه {فبأي آلاء ربكما تكذبان} {مدهامتان} سوداوان من شدة خضرتهما {فبأي آلاء ربكما تكذبان} {فيهما عينان نضاختان} فوارتان بالماء {فبأي آلاء ربكما تكذبان} {فِيهِمَا فَاكِهَة وَنَخْل وَرُمَّان} هُمَا مِنْهَا وَقِيلَ من غيرها {فبأي آلاء ربكما تكذبان} {فيهن} اي الجنتين وما فيهما {خيرات} اخلاقا {حسان} وجوها {فبأي آلاء ربكما تكذبان} {حُور} شَدِيدَات سَوَاد الْعُيُون وَبَيَاضهَا {مَقْصُورَات} مَسْتُورَات {فِي الْخِيَام} مِنْ دُرّ مُجَوَّف مُضَافَة إلَى الْقُصُور شَبِيهَة بالخدور {فبأي آلاء ربكما تكذبان} {لم يطمثهن إنس قبلهم} قبل ازواجهن {ولا جان} {فبأي آلاء ربكما تكذبان} {مُتَّكِئِينَ} أيْ أزْوَاجهمْ وَإِعْرَابه كَمَا تَقَدَّمَ {عَلَى رَفْرَف

خُضْرٍ، جَمْع زَفْرَفَةٍ أي بُسُط أَوْ وَسَائِد (وَعَبْقَرِيٍّ حِسَانٍ) جَمْع عَبْقَرِيَّة أَيْ طَنَافِس (فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ) (تَبَارَكَ اسْمُ رَبِّكَ ذِي الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ) تَقَدَّمَ ولفظ اسم زائد

**ترجمه** او د هغه کس د پاره یعنی په دوی کښې د هر یو د پاره یا د دوی د مجموعې د پاره چې د خپل رب په مخکښې د حساب د پاره د ولاړې نه اویریدو، او د هغه نافرمانی ئې پریخوده، دوه باغونه دی، نو اې جناتو او انسانانو! تاسو به د خپل رب د کوم کوم نعمت نه انکار کوئ.؟ دواړه باغونه به د ګڼړو څانګو والا وی، ذواتا، دذوات تثنیه ده، د اصل مطابق، او او ددې لام یاء ده، افنان، دفان جمع ده، لکه أطلال چه طلل جمع ده، نو اې جناتو او انسانانو! تاسو به د خپل رب د کوم کوم نعمت نه انکار کوئ.؟ په دې دواړو باغونو کښې دوه بهیدونکې چینې دی نو اې جناتو او انسانانو! تاسو به د خپل رب د کوم کوم نعمت نه انکار کوئ.؟ په دې دواړه باغونو کښې د دنیا د هر قسم میوو یا د هر هغه میوې د کوم نه چې خوند اخستلې شی، دوه جوړې دی، لونداو اوچ او په دې دواړه قسم میوو کښې چه په دنیا کښې کومه تروه ده هغه به خوګه شی، لکه حنظل، (مره غونې) نو اې جناتو او انسانانو! تاسو به د خپل رب د کوم کوم نعمت نه انکار کوئ.؟ جنتیانو به په داسې فرشونو باندې دده لګولې وی چې د هغې استر به د شنو ریخمو وی، متکئین حال دې، ددې عامل یتنعمون محذوف دې، استبرق: ریخمو هغه کپړې ته وئیلې شی چې پیړو او دانې دار وی، او أبرا، یعنی بره والا کپړا به د سندس وی، یعنی د باریک ریخمو. او ددې دواړو باغونو میوې به بالکل نزدې نزدې وی، چې هغه به ملاست کس، ناست کس او ولاړ کس تول اخستلې شی، نو اې جناتو او انسانانو! تاسو به د خپل رب د کوم کوم نعمت نه انکار کوئ.؟ په دې باغونو کښې او په څه چې دا باغونه مشتمل وی، یعنی محلات او بالاخانې وغیره، به داسې ښځې وی چې خپل نظرونه به ئې د جن(پیری) او انس نه، په خپلو خاوندانو باندې ښکته کړې وی، ددوه به ئې لګولې وی. ددې نه مخکښې به هیڅ یو انسان په دوی کښې تصرف نه وی کړې. او نه به جناتو، یعنی دې سره به چا وطی کړې نه وی، او دا به د حورو د قبیلې نه وی، یا به د دنیا د ښځو د قبیلې نه وی کومې چې به د ولادت د واسطې نه بغیر پیدا شوې وی، نو اې جناتو او انسانانو! تاسو به د خپل رب د کوم کوم نعمت نه انکار کوئ.؟ هغه حورې به په صفائی کښې د یاقوت او په سپینوالی کښې به د ملغلرو په شان وی، نو اې جناتو او انسانانو! تاسو به د خپل رب د کوم کوم نعمت نه انکار کوئ.؟ تاً مکل ٦/٢٥٠

مذکوره دواړو باغونو نه علاوه دوه نور باغونه هم دی چې په درجه کښې به ددې نه کم وی، د هغه چا د پاره څوک چې د الله په مخکښې د ولاړې نه اویریدلو، نو اې جناتو او انسانانو! تاسو به د خپل رب د کوم کوم نعمت نه انکار کوئ.؟ دواړه باغونه به د شوخ شین رنګ وی، ددې

شين والي د زياتوالي د وجې نه نو اې جناتو او انسانانو! تاسو به د خپل رب د کوم کوم نعمت نه انکار کوئ.؟ دې دواړو باغونو کښې به دوه چينې وي چې د داسې اوبو سره به جوش وهي، چې کله به ختميږي نه، نو اې جناتو او انسانانو! تاسو به د خپل رب د کوم کوم نعمت نه انکار کوئ.؟ ،او په دې دواړو باغونو کښې ميوې، کهجورې او انار به وي هغه دواړه يعنې کهجورې او انار به د ميوو نه وي، او وئيلې شوي دي چې ددې نه علاوه به وي، نو اې جناتو او انسانانو! تاسو به د خپل رب د کوم کوم نعمت نه انکار کوئ.؟ او د دې باغونو په کورونو کښې به ښکلې ښځې وي، نو اې جناتو او انسانانو! تاسو به د خپل رب د کوم کوم نعمت نه انکار کوئ.؟ ، هغه ښځې به سپين رنګ والا، او د هغوی د سترګو تورې والې به ډير تور، او سپين والې به ئې ډير سپين وي، هغوی به د ملغلرو په خيمو کښې پټې وي، حال دا چې هغه خيمې به په محلونو باندې د زياتې خادر په شان وي، نو اې جناتو او انسانانو! تاسو به د خپل رب د کوم کوم نعمت نه انکار کوئ.؟ ددوی نه مخکښې به په دوی باندې نه يو انسان تصرف کړې وي او نه يو جن، يعنې د دې خاوندانو نه مخکښې، نو اې جناتو او انسانانو! تاسو به د خپل رب د کوم کوم نعمت نه انکار کوئ.؟ ددوی خاوندان شنه تختونو او خائسته متکو باندې دده وهلې ناست وي، او ددې اعراب په ماقبل کښې د تير شوي په شان دې، رفرف د رفرفة جمع ده، شنو بالختونو ته وائی، نو اې جناتو او انسانانو! تاسو به د خپل رب د کوم کوم نعمت نه انکار کوئ.؟ ،ستا د پروردګار نوم برکت والا دې، کوم چې د عزت او جلال والا دې، او لفظ اسم زائد دې.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله**: قِيامه: دا د مقام تفسير دې، په دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چې مقام دلته مصدر دې.

**قوله**: ذَوَاتٰا على الأصل ولامها یاء: ذات په تثنيه کښې دوه لغت دي، يو د اصل په اعتبار سره، او دويم د لفظ په اعتبار سره، د ذات اصل ذَوَيَة دې، په دې کښې عين کلمه واؤ دې، او لام کلمه ياء ده، ددې مفرد په اصل کښې ذوات دې، د اصل مطابق ددې تثنيه ذواتان دې، د اضافت د وجې نه نون د تثنيه ساقط شوې دې، چې د هغې د وجې نه ذواتا پاتې شو، او مفرد ئې خلاف اصل ذات استعمال کړو.

**قوله**: جمع فَنَنٍ: لکه أطلال جمع د طلل، ددې اضافې سره د مفسر علام مقصد دا بيان دې چې أفنان د فَنَن جمع ده، نه چې د فَنّ، څنګه چې اطلال د طلل جمع ده نه چې د طَلّ.

**قوله**: جَنَا الجنتين دانٍ: جنا الجنتين مبتدأ او دان ددې خبر، جَنٰى بمعنى مجنى، او دان به اصل کښې دانو وو.

**قوله**: فى الجنتين وما اشتملتا، الخ: دا د فيهن تفسير دې، ددې تفسير مقصد د يو سوال جواب ورکول دي.

**سوال** د فيهن مرجع جنتان دې، كوم چې تثنيه دہ، لهذا دې طرف ته راجع كيدونكې ضمير به هم د تثنيه وى، چې په ضمير او مرجع كښې مطابقت راشي؟ مفسر علام د **وما اشتملتا عليه من العلالى والقصور** اضافه كولو سره ددې سوال جواب وركړو.

**جواب** خلاصه دا دہ چې د فيهن مرجع صرف جنتان نه دې، بلكه هغه څه هم مرجع دہ څه ته چې جنتان شامل دى، مثلاً محلات، بالاخانې وغيره.

**قوله:** **من نساء الدنيا المنشئآت: المنشأت د نساء الدنيا صفت المنشأت** راوړلو سره ئې اشاره اوكړه چې د دنيا ښځې به هم جنت والا ته ملاويږى، خو دوى به دوباره جوړولې شى. يعنى دوباره به ددوى تخليق اوكړې شى، خو دا تخليق به د ولادت په واسطه نه وى. بلكه الله تعالى به په خپل دست قدرت سره جوړ كړى.

**قوله:** **صفاءً وبياضاً**: جنتى ښځو لره په صفائى كښې د ياقوت سره، او په سپين والى كښې د ملغلرو سره تشبيه وركول مقصود دى، نه چې ددې په ټولو صفتونه كښې

**قوله:** **هل ما جزاء الإنسان إلا الإحسان**: د هل استعمال په څلورو طريقو سره كيږى.

① د الله تعالى قول **هل اتى على الانسان**،

② بمعنى استفهام لكه د الله تعالى قول: **فهل وجدتم ما وعد ربكم حقا**،

③ بمعنى امر لكه د الله تعالى قول **فهل انتم منتهون**

④ بمعنى نفى لكه د الله تعالى قول **فهل على الرسل إلا البلاغ المبين**، دلته هم هل د نفى په معنى كښې دې.

**قوله:** **مُدْهَامَّتَان**: دا د الدهمة نه ماخوذ دې، ددې معنى دہ، توروالې، هم ددې نه **فرس أدهم** دې، او شين والې چې كله ډير شى نو توروالى ته مائل شى.

**قوله:** **وهما منها**: يعنى نخل او رمان، دا دواړه د امام ابويوسف او محمد (رحمهما الله) په نيز په ميوو كښې شامل دى، او د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په ميوو كښې شامل نه دې، ځكه چې عطف مغائرت غواړى.

**قوله:** **من درّ مجوف مضافة إلى القصور شبها بالخدور**: يعنى هغه خيمې به د خالى ملغلرو وى، يعنى دومره غټې ملغلرې به وى چې هغه به دننه خالى كولو سره د خيمې جوړولو قابل وى، او **مضافة إلى القصور** مطلب دا دې چې هغه خيمې به د محل په مينځ كښې وى، او په منزله د څادر به وى، څنګه چې په كور كښې ښځې وى، او د هغوى په سرونو باندې څادرې وى.

**قوله:** عَبْقَرِي: دا عبقر طرف ته منسوب دې، د عربو دا خيال دې چې دا د جناتو يو کلې دې، لهذا هر عجيب او غريب څيز دې طرف ته منسوب کوی او په قاموس کښې دی چې عبقر هغه ځايې ته وائی کوم ځائې چې جنات په کثرت سره وی، او عبقری هغې ته وائی چې په هر طريقې سره کامل وی

## [٥٦] سورة الواقعة

### سورة الواقعة مكية إلا: افبهذا الحديث (الاية) وثلة من الاولين (الاية) وهي ست او سبع او تسع وتسعون اية

سورة الواقعه مکی دې، سوا د آيت: أفبهذا الحديث، او آيت: وثلة من الاولين، او دا شپږ نوی، يا اووه نوی يا نهه نوی آيتونه دی.

**[اياتونه: ١ - ٣٨]**

﴿إِذَا وَقَعَتِ الْوَاقِعَةُ﴾ قَامَتْ الْقِيَامَة ﴿لَيْسَ لِوَقْعَتِهَا كَاذِبَةٌ﴾ نفس تَكْذِب بِأَنْ تَنْفِيهَا كَمَا نَفَتْهَا فِي الدُّنْيَا ﴿خَافِضَةٌ رَّافِعَةٌ﴾ أَيْ هِيَ مُظْهِرَة لِخَفْضِ أَقْوَام بِدُخُولِهِمْ النَّار وَلِرَفْعِ آخَرِينَ بِدُخُولِهِمْ الْجَنَّة ﴿إِذَا رُجَّتِ الْأَرْضُ رَجًّا﴾ حُرِّكَتْ حَرَكَة شَدِيدَة ﴿وَبُسَّتِ الْجِبَالُ بَسًّا﴾ فُتِّتَتْ ﴿فَكَانَتْ هَبَاءً﴾ غبارا ﴿مُّنبَثًّا﴾ منتشرا وإذا الثانية بدل من الأولى ﴿وَكُنتُمْ﴾ في القيامة ﴿أَزْوَاجًا﴾ أصنافا ﴿ثَلَاثَةً﴾ ﴿فَأَصْحَابُ الْمَيْمَنَةِ﴾ وَهُمْ الَّذِينَ يُؤْتَوْنَ كُتُبهمْ بِأَيْمَانِهِمْ مبتدأ خبره ﴿مَا أَصْحَابُ الْمَيْمَنَةِ﴾ تعظيم لِشَأْنِهِمْ بدخولهم الجنة ﴿وَأَصْحَابُ الْمَشْأَمَةِ﴾ أَيْ الشِّمَال بِأَنْ يُؤْتَى كُلّ مِنْهُمْ كِتَابه بِشِمَالِهِ ﴿مَا أَصْحَابُ الْمَشْأَمَةِ﴾ تحقير لِشَأْنِهِمْ بِدُخُولِهِمْ النَّار ﴿وَالسَّابِقُونَ﴾ إِلَى الْخَيْر وَهُمْ الْأَنْبِيَاء مبتدأ ﴿السَّابِقُونَ﴾ تاكيد لتعظيم شانهم ﴿أُولَٰئِكَ الْمُقَرَّبُونَ﴾ ﴿فِي جَنَّاتِ النَّعِيمِ﴾ ﴿ثُلَّةٌ مِّنَ الْأَوَّلِينَ﴾ مبتدأ أَيْ جَمَاعَة مِنْ الأمم الماضية ﴿وَقَلِيلٌ مِّنَ الْآخِرِينَ﴾ مِنْ أُمَّة مُحَمَّد صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُمْ السَّابِقُونَ مِنْ الْأُمَم الْمَاضِيَة وَهَذِهِ الْأُمَّة وَالْخَبَر ﴿عَلَىٰ سُرُرٍ مَّوْضُونَةٍ﴾ مَنْسُوجَة بِقُضْبَانِ الذَّهَب وَالْجَوَاهِر ﴿مُّتَّكِئِينَ عَلَيْهَا مُتَقَابِلِينَ﴾ حَالَانِ مِنْ الضَّمِير فِي الْخَبَر ﴿يَطُوفُ عَلَيْهِمْ﴾ لِلْخِدْمَةِ ﴿وِلْدَانٌ مُّخَلَّدُونَ﴾ عَلَى شَكْل الْأَوْلَاد لَا يَهْرَمُونَ ﴿بِأَكْوَابٍ﴾ أَقْدَاح لَا عُرَا لَهَا ﴿وَأَبَارِيقَ﴾ لَهَا عُرًا وَخَرَاطِيم ﴿وَكَأْسٍ﴾ إِنَاء شُرْب الْخَمْر ﴿مِّن مَّعِينٍ﴾ أَيْ خَمْر جَارِيَة مِنْ مَنْبَع لَا يَنْقَطِع ابدا ﴿لَّا يُصَدَّعُونَ عَنْهَا وَلَا يُنزِفُونَ﴾ بِفَتْحِ الزَّاي وَكَسْرهَا مِنْ نَزَفَ الشَّارِب وَأَنْزَفَ أَيْ لَا يَحْصُل لَهُمْ مِنْهَا صُدَاع وَلَا ذَهَاب عَقْل بخلاف خمر الدنيا ﴿وَفَاكِهَةٍ مِّمَّا يَتَخَيَّرُونَ﴾ ﴿وَلَحْمِ طَيْرٍ مِّمَّا يَشْتَهُونَ﴾ و﴿لهم﴾ للاستمتاع ﴿وَحُورٌ﴾ نِسَاء شَدِيدَات سَوَاد الْعُيُون وَبَيَاضهَا ﴿عِينٌ﴾ ضِخَام الْعُيُون كُسِرَتْ عَيْنه بَدَل ضَمّهَا لِمُجَانَسَةِ الْيَاء وَمُفْرَده عَيْنَاء كَحَمْرَاء وَفِي قِرَاءَة بِجَرِّ حور عين ﴿كَأَمْثَالِ اللُّؤْلُؤِ الْمَكْنُونِ﴾ المصون ﴿جَزَاءً﴾ مَفْعُول لَهُ أَوْ مَصْدَر وَالْعَامِل الْمُقَدَّر أَيْ جَعَلْنَا لَهُمْ مَا ذُكِرَ لِلْجَزَاءِ أو جزيناهم ﴿بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾ ﴿لَا يَسْمَعُونَ فِيهَا﴾ فِي الْجَنَّة ﴿لَغْوًا﴾ فَاحِشًا مِنْ الْكَلَام ﴿وَلَا تَأْثِيمًا﴾ مَا يُؤْثِم ﴿إِلَّا﴾ لَكِنْ ﴿قِيلًا﴾ قَوْلًا ﴿سَلَامًا سَلَامًا﴾ بَدَل من قيلا فإنهم يسمعونه ﴿وَأَصْحَابُ الْيَمِينِ مَا

أصحاب اليمين) (في سدر) شجر النبق (مخضود) لا شوك فيه (وطلح) شجر الموز (منضود) بالحمل من أسفله إلى أعلاه (وظل ممدود) دائم (وماء مسكوب) جار دائما (وفاكهة كثيرة) (لا مقطوعة) في زمن (ولا ممنوعة) بثمن (وفرش مرفوعة) على السرر (إنا أنشأناهن إنشاء) اي الحور العين من غير ولادة (فجعلناهن أبكارا) عذارى كلما أتاهن أزواجهن وجدوهن عذارى ولا وجع (عربا) بضم الراء وسكونها جمع عروب وهي المتحببة إلى زوجها عشقا له (أترابا) جمع ترب اي مستويات في السن (لأصحاب اليمين) صلة أنشأناهن أو جعلناهن

**ترجمه**: شروع کوم د الله په نوم سره چې ډير مهربانه او بې انتهاء رحم کولو والا دې، چې کله واقع کيدونکې واقع شي، يعنی چې قيامت قائم شي، د هغې د وقوع به هيڅ يو نفس تکذيب کونکې نه وی، چې د هغې انکار اوکړی، څنګه چې ئې په دنيا کښې د هغې نه انکار کولو، هغه به اوچتونکې او راغورزونکی وی، هغه به د قومونو زوال ښکاره کړی، د هغوی په جهنم کښې د داخليدو سره، او د نورو قومونو اوچتوالې به هم ښکاره کړی، د هغوی په جنت کښې داخليدو سره. هر کله چې زمکه پوره طريقې سره اوړقولې شی، يعنی سخت حرکت به ورکړې شی، او غرونه به ريزه ريزه کړې شی، او هغه به د خورې دورې په شان شی، دويم إذا اول اذانه بدل دې، اوتاسو به په قيامت کښې درې قسمه ولې شئ، نو ښی لاس والا او دا به هغه خلق وی چاته چې عملنامه په ښی لاس کښې ورکړې شی، فأصحب الميمنة مبتدأ ده، او ما أصحب الميمنة ددې خبر، څه بهتر به وی ښی لاس والا ددوی جنت کښې داخليدو د وجې نه، ددوی د اوچت شان بيان دې، او ګس لاس والا په داسې توګه چې به دوی کښې به هر يو ته عملنامه په ګس لاس کښې ورکړې شی، څه خراب دی ګس لاس والا، ددوی دوزخ کښې داخليدو د وجې نه، ددوی د سپک شان بيان دې، او د خير طرف ته مخکښې کيدونکې او هغه انبياء (عليهم السلام) دی، مبتدأ ده، مخکښې والې کونکې دی، ددوی د اوچت شان تاکيد دې، هم دغه خلق دی مقرب د نعمتونو والا جنت کښې، يو لويه ډله د مخکښې خلقو والا نه، ثلة من الأولين مبتدأ ده، يعنی په مخکښې امتونو کښې يو لويه ډله د رومبنو، (ثلة من الأولين) مبتداء ده يعنی د تيرو شوو امتونو نه يو لوئې جماعت، او روستنو کښې يوه وړه ډله د امت محمد ﷺ نه. او دا د تير شوو امتونو نه ، او ددې امت نه سبقت کونکی دی، په داسې بسترو باندې به وی، چې د سرو او د جواهراتو نه به ښرولې شوې وی، په هغې باندې به ډډه وهونکې يو بل ته مخامخ ناست وی، د خبر د ضمير نه دواړه حال دی، دوی ته به داسې هلکان چې هميشه به هلکان وی، يعنی د هلکانو په شکل کښې به وی، بوډاګان کيږی به نه، داسې د اوبو لوخې به ئې راخستې وی چه په هغې کښې به لاسکی نه وی او لوټې چه په هغې کښې به لاسکی، او سخسوره (نلکه) وی. تلل راتلل کوی، د بهيدونکی شرابو نه به د ډکو جامونو

سره، تلل راتلل کوی، کاس د شراب څکلو لوښی ته وائی، یعنی د داسې چينو شراب چې کله به هم نه ختمیږی، نه به دې سره په سر باندې درد راځی، او نه به عقل کښې کمې راځی، ينزفون د زاء په فتحې او کسرې سره، دا د نزف الشارب وانزف نه ماخوذ دې، یعنی نه به دوی باندې د سر درد راځی او نه به ئې عقل زائل کیږی، په خلاف د دنيا د شرابو ، او داسې ميوې چې دوی ته خوښې وی، او د مرغو غوښه کومه چې دوی ته خوښه وی، او ددوی د فائدې د پاره غټې غټې سترګو والا حورې ، یعنی داسې حورې چې د هغوی د سترګو تور والې ډير تور، او سپينوالې به ئې ډير سپين وی، عيون کښې عين ته د ضمې په عوض کسره ورکړې شوه، د ياء د موافقت د وجې ددې واحد عيناء دې، څنګه چې د حمر واحد حمراء دې، او په يو قراءت کښې حور عين جر سره دې، چې د محفوظ ملغلرو په شان به وی، دا صله ده د هغوی د اعمالو، جزاء مفعول له دې، یا مصدر دې، او عامل محذوف دې، تقديری عبارت دا دې جعلنا لهم ما ذکر للجزاء باحسناهم نه به هلته یعنی په جنت کښې بکواس وی، یعنی فحش خبرې اوری، او نه به د ګناهونو خبرې اوری، صرف د سلام سلام اواز به اوری، سلاما سلاما د قيلاً نه بدل دې، یعنی هغوی به دا اواز اوری، او ښی لاس والا، او څه ښه دی ښی لاس والا، هغوی به بغير د غنو والا بيرو کښې وی، سدر د بيرې اونې ته وائی، او لاندې باندې کيلو کښې به وی، طلح د کيلې اونې ته وئيلې شی، چې د لاندې نه بره پورې به ډکې وی، او اوږدو اوږدو هميشه پاتې کيدونکې سورو کښې به وی، او هميشه جاری اوبو کښې به وی، او په ډيرو ميوو کښې به وی، نه به يو وخت هغه ختميږی، او نه به د قيمت ادا کولو د پاره بندول وی، او په تولايانو باندې په اوچتو اوچتو تختونو باندې به وی، مونږ دا حورې خاص توګه باندې د ولادت نه بغير پيدا کړې دی، او مونږ دا باکره جورې کړې دی، یعنی داسې پيغلې چې کله هم دوی ته ددوی خاوند راتګ کوی نو دوی په باکرې مومی، او څه تکليف به هم نه وی، محبت کونکی يو عمر والا به وی، عُرُبا د راء په ضمې او سکون سره، ښځې د ښی لاس والو د پاره، لاصحب اليمين، انشأناهن نه سره متعلق دې، یا د جعلناهن سره متعلق دې، (یعنی دا تول ښځونه به د اصحب اليمين د پاره وی).

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

قوله: إذا وقعت الواقعة: واقعه د قيامت په ډيرو نومونو کښې يو نوم دې، قيامت ته واقعه ځکه وئيلې شی چې دا به خامخا واقع کيږی، إذا وقعت الواقعة کښې په إذا کښې څو وجوهات دی، په هغې کښې بعضې دا دی، چې إذا د ظرف محض د پاره دې، یعنی په دې کښې د شرط معنی نشته، او ددې عامل ليس دې، ددې معنی نفی لره متضمن کيدو د وجه نه، ګويا چې اووئيلې شول انتفى التكذيب وقت وقوعها، یا شرطيه دې، ددې جواب

محذوف دي، تقديری عبارت دا دي اذا وقعت الواقعة كان كيت وكيت او هم دا په دې كښې عامل دي،

**قوله** ليس لوقعتها: په معنى د فی کښې دې، مضاف محذوف دې، تقديری عبارت دا دې ليس نفس كاذبة توجد في وقت وقوعها، د كاذبة موصوف نفس محذوف دې،

**قوله** خافضةٌ رافعة: هی د مبتدأ محذوف خبر دې، څنګه چې مفسر علام د هی اضافه کولو سره اشاره اوکړه، د مُظهرُ لفظ سره ئې اشاره اوکړه چې خفض او رفع د علم ازلی په اعتبار سره مقدر شوې دې، خو قیامت به دا را ښکاره کړی.

**قوله** اذا رجت الارض: یا خو د اول إذا نه بدل دې، څنګه چې مفسر علام مختاره کړې ده، یا دویم إذا د اولی د تاکید دپاره دې، یا شرطیه دې، او د عامل ئې مقدر دې، او دا هم کیدې شی، چې ددې نه پس فعل رُجّت ددې عامل وی،

**قوله** فاصحب الميمنة ما اصحب الميمنة: اصحب الميمنة مبتدأ اول، وما استفهاميه مبتدأ ثاني. اصحب الميمنة جمله د مبتدأ ثاني خبر، مبتدأ ثاني خپل خبر سره د مبتدأ اول د پاره خبر

**سوال**: خبر چې کله جمله وی نو په دې کښې عائد راوړل ضروری وی، او دلته عائد نشته دې څه وجه ده؟

**جواب**: اسم ظاهر د ضمير قائم مقام دې، لهذا د عائد ضرورت نشته، د روستو جملې به هم دا ترکيب وی، (ما) اګرچې د څيز د حقيقت باره کښې د سوال د پاره راځی خو کله ددې په ذريعې سره د صفت او د حالت سوال هم مطلوب وی، لکه ته چې وائی ما زيد؟ فيقال عالم او طبيب

**قوله**: ثلة: په ضمې سره د انسانانو لوئې ډلې ته، او په فتحې سره د چيلو کنډک ته وائی

**قوله** مَوضونة، الوَضن بمعنى نَضْدُ الدِّرْعِ: زغره جوړول، دلته مطلق د بنړلو په معنی کښې دې،

**قوله** على سرر موضونة: دا د ثُلّةٌ من الأولين د مستقرين متعلق کيدو سره د مبتدأ خبر دې، او متكئين عليها متقابلين دا دواړو د مستقرين د ضمير نه حال دی.

**قوله** يطوف عليهم: دا جمله مستانفه ده، او دا هم جائز ده چې د مُقرّبون نه حال وی، المعنی يَدُور حولهم للخدمة غلمان لا يهرمون ولا يتغيرون

**قوله**: لايهرمون: دا د مخلدون تفسير دې،

**قوله** أباريق: د إبريق جمع لوټا، دا د برق نه مشتق دې، لوټې به چونکه ډير برق والا وی. څکه دې ته إبريق وائی،

**قوله** حورعين: مبتدأ ده، ددې خبر محذوف دې، چې هغې طرف ته مفسر علام د خپل قول للاستمتاع سره اشاره كړې ده،

**قوله** مخضود: خضد الشجر خضداً نه ماخوذ دې، (ض) ازغى شوكول،

**قوله** بثمن: كه مفسر علام بثمن فرمائيلې وو نو ډيره به ښه وه، ځكه چې صرف د ثمن او د قيمت د وجې نه نه، بلكه په طريقې سره به جنتيان منع كولې نشى.

**[اياتونه: ٣٩ - ٧٤]**

وَهُمْ (ثلة من الأولين) (وثلة من الآخرين) (وأصحاب الشمال ما أصحاب الشمال) (في سَمُوم) ريح حارة من النار تنفذ في المسام (وَحَمِيم) ماء شديد الحرارة (وَظِلّ مِنْ يَحْمُوم) دخان شديد السواد (لَا بَارِد) كغيره من الظلال (وَلَا كَرِيم) حسن المنظر (إِنَّهُمْ كَانُوا قَبْل ذَلِكَ) في الدنيا (مُتْرَفِينَ) منعمين لا يتعبون في الطاعة (وكانوا يُصِرُّونَ عَلَى الْحِنْث) الذنب (الْعَظِيم) أي الشرك (وكانوا يقولون أإذا متنا وكنا ترابا وعظاما أئنا لَمَبْعُوثُونَ) في الهمزتين في الموضعين التحقيق وتسهيل الثانية وإدخال ألف بينهما على الوجهين (أو آباؤنا الأولون) بفتح الواو للعطف والهمزة للاستفهام وهو في ذلك وفيما قبله للاستبعاد وفي قراءة بسكون الواو عطفا بأو والمعطوف عليه محل إن واسمها (قل إن الأولين والآخرين) (لَمَجْمُوعُونَ إِلَى مِيقَات) لوقت (يَوْم مَعْلُوم) أي يوم القيامة (ثم إنكم أيها الضالون المكذبون) (لآكلون من شجرة مِنْ زَقُّوم) بيان للشجر (فمالئون منها) من الشجر (البطون) (فشاربون عليه) أي الزقوم المأكول (من الحميم) (فَشَارِبُونَ شُرْب) بفتح الشين وضمها مصدر (الْهِيم) الإبل العطاش جمع هيمان للذكر وهيمى للأنثى كعطشان وعطشى (هَذَا نُزُلهمْ) ما أعد لهم (يَوْم الدِّين) يوم القيامة (نَحْنُ خَلَقْنَاكُمْ) أوجدناكم من عدم (فَلَوْلَا) هلا (تُصَدِّقُونَ) بالبعث إذ القادر على الإنشاء قادر على الإعادة (أَفَرَأَيْتُمْ مَا تُمْنُونَ) تريقون من المني في أرحام النساء (أَأَنْتُمْ) بتحقيق الهمزتين وإبدال الثانية ألفا وتسهيلها وإدخال ألف بين المسهلة والأخرى وتركه في المواضع الأخرى (تخلقونه) أي المني بشرا (أم نحن الخالقون) (نَحْنُ قَدَّرْنَا) بالتشديد والتخفيف (بَيْنكُمْ الْمَوْت وَمَا نَحْنُ بِمَسْبُوقِينَ) بعاجزين (عَلَى) عن (أَنْ نُبَدِّل) نجعل (أَمْثَالكُمْ) مكانكم (وَنُنْشِئكُمْ) نخلقكم (فِي مَا لَا تَعْلَمُونَ) من الصور كالقردة والخنازير (وَلَقَدْ عَلِمْتُمْ النَّشْأَة الْأُولَى) وفي قراءة بسكون الشين (فَلَوْلَا تَذَكَّرُونَ) فيه إدغام التاء الثانية في الأصل في الذال (أَفَرَأَيْتُمْ مَا تَحْرُثُونَ) تثيرون في الأرض وتلقون البذر فيها (أأنتم تزرعونه) تنبتونه (أم نحن الزارعون) (لَوْ نَشَاء لَجَعَلْنَاهُ حُطَامًا) نباتا يابسا لا حب فيه (فَظَلْتُمْ) أصله ظللتم بكسر اللام حذفت تخفيفا أي أقمتم نهارا (تَفَكَّهُونَ) حذفت منه إحدى التاءين في الأصل تعجبون من ذلك وتقولون (إِنَّا لَمُغْرَمُونَ) نفقة زرعنا (بل نحن محرومون) ممنوعون رزقنا (أفرأيتم الماء الذي تشربون) (أَأَنْتُمْ أَنْزَلْتُمُوهُ مِنْ الْمُزْن) السحاب جمع مزنة (أم

نحن المنزلون) (لَوْ نَشَاءُ جَعَلْنَاهُ أُجَاجًا) مِلحًا لا يُمكِن شربه (فلولا) هلا (تشكرون) (أَفَرَأَيْتُمُ النَّارَ الَّتِي تُورُونَ) تُخرِجُونَ مِنَ الشَّجَرِ الاخضر (أَأَنتُمْ أَنشَأْتُمْ شَجَرَتَهَا) كالمَرْخِ والعَفَارِ والكَلخ (أَمْ نَحْنُ المنشئون) (نَحْنُ جَعَلْنَاهَا تَذْكِرَةً) لِنَارِ جَهَنَّم (وَمَتَاعًا) بلغة (لِّلْمُقْوِينَ) لِلمُسَافِرِينَ مِنَ القوى القوم اي صَارُوا بِالقِوى بِالقَصْرِ وَالمَدّ اي القَفر وَهُوَ مَفَازَة لا نَبَات فِيهَا وَلَا مَاء (فَسَبِّحْ) نزّه (بِاسْمِ) زَائِدَة (رَبِّكَ الْعَظِيمِ) الله

**ترجمه**: يو لوئې جماعت به د اولينو نه وى او يو لوئې جماعت به د آخرينو نه وى، او اصحاب الشمال څه خراب دى، يعنى ګس لاس والا، دا خلق به د اور په ګرما هوا يعنى (لو ، دوب)کښې وى، کومه چې به په مساماتو کښې ننوځى، او يشيدلې اوبو کښې به وى، او د تور لوګى په سورى کښې به وى، يحموم هغه لوګې چې ډير زيات تور وى، چې يخيږى به نه، څنګه چې نور سورې يخ وى، او نه خوشحالى رسونکې يعنى خوش منظر، دا خلق ددې نه مخکښې په دنيا کښې ډير په خوشحالۍ کښې اوسيدل، د طاعت د پاره به ئې مشقت نه اوچتولو، غټه په غټو ګناه باندې به ئې اصرار کولو يعنى شرک باندې او دا به ئې وئيل چې کله مونږ مره شو، او هډوکى او خاورې شو نو آيا مونږ به دوباره ژوندى کيږو؟ او واؤ مفتوح سره عطف د پاره، او همزه د استفهام د پاره ده، او دا استفهام دلته او ددې نه مخکښې د استبعاد د پاره دې، او په يو قراءت کښې د واؤ په سکون سره، د عطف په توګه باندې، او معطوف عليه إن او د هغې د اسم محل دې، تاسو ورته اووايئ، مخکښنى روستنى ټول به جمع کړې شى، يو معين وخت باندې، يعنى د قيامت په ورځ بيا به تاسو اې ګمراهانو او دروغ ګڼرنکو، د د اونې نه به خوراک کوئ، مِن زَقُوم د شجر بيان دې، بيا به ددې نه خيټه ډکول وى، بيا به په دې باندې يعنى د زقوم د خوراک نه پس يشيدلې اوبه څکل وى، او بيا دا څکل به هم د تږى اوښانو په شان وى شُرب د شين په ضمې او فتحې سره، مصدر دې، الهِيم تږې اوښ ته وائى، دا د هَيمانَ جمع ده، هَيمیٰ ددې مونث دې، تږې اوښه، لکه عَطشانَ وعَطشیٰ،غرض دا چې دا به ددوى ميلمستيا وى، کوم چې په قيامت کښې ددوى د پاره تيار کړې شوې دې، مونږ تاسو پيدا کړئ، يعنى د عدم نه مو وجود ته راوستئ، بيا تاسو ولې د بعث بعد الموت د مرګ نه پس د راژوندى کيدو تصديق نه کوئې؟ څکه چې کوم ذات ابتداً پيدا کولو باندې قادر دې هغه په اعادې باندې هم قادر دې، آيا تاسو په دې خبره باندې غور کړې دې چې د منى کومه نطفه تاسو د ښځو په رحم کښې رسوئ، آيا تاسو ددې منى نه انسان جوړوئ؟ أأنتم کښې د دوارو همزو تحقيق او د دويم په الف سره بدلولو سره، او د هغې تسهل سره، او مسهله، او د دويم همزې په مينځ کښې الف داخلولو سره، او نه داخلولو سره، څلور واړه ځايونو کښې او مونږ په تاسو کښې د هر يو د مرګ وخت مقرر کړې دې، قَدَّرنا د دال په تخفيف

او تشديد سره، او مونږ ددې نه عاجز نه يو، چې مونږ ستاسو په ځاى باندې ستاسو په شان پيدا کړو، او ستاسو داسې شکلونه جوړ کړو چې تاسو ئې پيژنئ هم نه، لکه بيزو او خنزير او تاسو ته داول پيدائش علم شه، او په يو قرامت کښې نَشاة د شين په سکون سره، تاسو ولې نه پوهيږئ؟ په تذکرون کښې د تاء ثانيه په اصل کښې په ذال کښې ادغام دې، آيا تاسو جرته په دې خبره باندې غور کړې دې څه چې تاسو کرئ؟ يعنى زمکه اړوئ او په دې کښې تخم کرئ، آيا تاسو دا راټوکوئ؟ يا ئې مونږ راټوکوو که جرې مونږ اوغواړو نو دا پيداوار به زره زره کړو، يعنى اوچه ګياه به ترې جوړه کړو چې په هغې کښې يو دانه هم نه وى، نو تاسو به ټوله ورځ په حيرانتيا کښې پاتې شئ، د ظلتم اصل ظللتم، د لام په کسرې سره دې، لام تخفيفا حذف کړې شوې دې، يعنى تاسو به ټوله ورځ حيرانه پاتې شئ، په تفکهون کښې يو تاء حذف کړې شوې ده يعنى تاسو ته به دا خبره عجيبه ښکاره شى، او دا به اووائى چه مونږ باندې خو د پتى د خرچې هم تاوان راغلو، بلکه مونږ خو د رزق نه بالکل محروم پاتې شو، او يا تاسو چرته په هغه اوبو کښې غور کړې نه دې؟ کومې چې تاسو څکې، آيا دا د اوريځو نه تاسو نازلوئ؟ يا ئې مونږ نازلوو، مُزن، د مُزنَة جمع ده، په معنى د وريځ، که مونږ اوغواړو نو دا به مالګيجن کړو، چې د هغې څکل به ممکن نه وى، نو تاسو شکر والې نه کوئ؟ آيا تاسو چرته په هغه اور باندې غور کړې دې کوم چې تاسو روښانه کوى؟ يعنى تاسو ئې د شنې اونې نه راوباسئ آيا تاسو دا اونه پيدا کړې ده لکه مرخ، غفار او کلخ يا مونږ پيدا کونکى يو مونډا يعنى دې اونو لره د جهنم د اور د پاره د ياد راوستلو د پاره، او د مسافرو د پاره پورا د فائدې څيز جوړ کړې دې، مُقوين، د أقوى القوم نه ماخوذ دې، يعنى هموار (شړ) ميدان ته اورسيدو، القوى د قاف په کسرې سره، او د ياء مد سره، يعنى قَفْر (هموار ميدان) داسې ځنګل کوم ځاى چې ګياه او اوبه نه وى، نو د خپل عظيم الشان رب يعنى د الله تعالى پاکى بيان کړه، د اسم لفظ زائد دې.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله**: هم لله من الاولين: الخ، دا هم د مبتدأ محذوف خبر دې، څنګه چې مفسر علام اشاره کړې ده،

**قوله**: سموم: لُو (دوپ)، تيز لوګې، هغه ګرمه هوا چې د زهرو په شان اثر کوى، مونث سماعى دې، (جمع) سمائم، سموم ته سموم ځکه وائى چې هغه د جسم مساماتو ته داخليږى، او هم ددې نه السم په معنى زهر د ماخوذ دې، ځکه چې زهر هم مساماتو ته داخليدو سره د انسان د هلاکت سبب ګرځى،

**قوله**: انهم کانوا قبل ذلك مترفين: دا جمله د ماقبل د علت کيدو د وجې نه تعليليه ده،

يعنى اصحاب شمال به د مذكوره عذاب ځكه مستحق وى چې هغوى به په خپله خوشحالئ كښې مست كيدو سره سره په شرک او كفر باندې كوم چې دټولو نه لوئ گناهونه دى، هميشوالي كولو، او د بعث بعد الموت نه انكار كونكى وو.

**قوله**: إدخالُ ألفٍ بينهما على الوجهين: د مفسر علام د پاره مناسب وه چې د «وتركه» اضافه ئې كړې وه، چې څلور قرأتونه شى، د مفسر علام د عبارت نه صرف دوه قراتونه مفهوم كيږى.

**قوله**: والمعطوف عليه مَحَلُّ إن واسْمِها: إن واسمها كښې واؤ په معنى د مع دې، يعنى اٰباؤنا الاولون عطف د إن په محل باندې دې، سره د خپل اسم، هم په دې وجې اٰباؤنا الاولون مرفوع دې، دا په دې صورت كښې دى چې كله معطوف د انا په خبر لمبعثون باندې عطف كړې شى، تقديرى عبارت دا دې أإنا وأباؤنا لمبعوثون، گنى عطف به د لمبعوثون په ضمير مرفوع مستتر باندې وى.

**سوال**: ضمير مرفوع مستتر متصل باندې د عطف د پاره ضرورى ده چې د ضمير مرفوع منفصل په ذريعه تاكيد راوړې شى، كوم چې دلته موجود نه دى، تقديرى عبارت په لمبعوثون نحن پكار دې؟

**جواب**: د ضمير مرفوع منفصل په ذريعه تاكيد هغه وخت ضرورى دې كله چې دمعطوف او معطوف عليه په مينځ كښې فصل نه وى، گنى ضرورى نه دې، دلته أوَآباؤنا كښې د همزه استفهام فصل موجود دې.

**قوله**: لِوقت: أى فى وقت ميقات په معنى د وقت دې، او لام په معنى د فى دې.

**سوال**: د لمجموعون صله فى راځى، نه چې إلى، حالانكه دلته الى راوړلې شوې ده؟

**جواب**: لمجموعون د لمسوقون معنى ته متضمن كيدو د وجې نه ددې صله إلى راوړلې شوې ده.

**قوله**: مالِئُون منها: د منها ضمير شجر طرف ته راجع دې د اسم جنس كيدو د وجې نه، ځكه چې په اسم جنس كښې د مذكر او مؤنث دواړو گنجائش وى.

**قوله**: الهِيْم: سخت تږې اوښ ته وائى، هيام د استسقاء مرض په كوم كښې تنده زياته لگى، په اوبو سره ئې تنده نه ماتيږى، دې مرض ته جلندهر هم وائى، د مفسر علام د وينا مقصد دا دې چې هيم د هَيْمان مذكر، او د هَيْمَى د مونث دواړو جمع ده، د مفسر علام هيم د هيمان لره جمع جوړول سبقت قلم دې، صحيح دا ده چې أهيم جمع ده، ځكه چې هُيْم په اصل كښې هيم وو، د هاء په ضمې سره، په وزن د حمر، د هاء ضمې لره د ياء د

موافقت د پاره په کسرې سره بدله کړې شو ، او د فُعل أفعل جمع ده ، لکه حمر د أحمر جمع ده

**قوله:** لونشاء جعلناه أجاجا

**سوال:** د لو په جواب کښې لام راوړل ضروري وي، لهذا لجعلناه پکار دې. لام تاکيد د څه مصلحت د پاره حذف کړې شوې دې؟

**جواب:** دلته د لام تاکيد حاجت نشته، ځکه چې د اوريځو ملکيت او ددې اوبه ترځې جوړول دا د هيڅ انسان په قدرت کښې نشته، دا کار خو د مالک الکل الله رب العلمين دې، په خلاف د پټي او د زمکې نه، په هغې د ملک شائبه شته، ځکه مخکښې په لونشاء لجعلناه حطاما کښې لام تاکيد راوړلې شوې دې.

**[اياتونه:٧٥-٩٦]**

﴿فَلَآ أُقْسِمُ﴾ لَا زَائِدَة ﴿بِمَوَاقِعِ النُّجُومِ﴾ بِمَسَاقِطِهَا لغروبها ﴿وَإِنَّهُ﴾ أَيِ الْقَسَم بِهَا ﴿لَقَسَمٌ لَّوْ تَعْلَمُونَ عَظِيمٌ﴾ لَوْ كُنْتُمْ مِنْ ذَوِي الْعِلْمِ لَعَلِمْتُمْ عِظَمَ هَذَا الْقَسَم ﴿إنه﴾ اي المتلو عليكم ﴿ل قرآن كريم﴾ ﴿فِي كِتَابٍ﴾ مَكْتُوب ﴿مَّكْنُونٍ﴾ مَصُون وَهُوَ الْمُصْحَف ﴿لَّا يَمَسُّهُ﴾ خَبَر بِمَعْنَى النَّهْي ﴿إِلَّا الْمُطَهَّرُونَ﴾ الَّذِينَ طَهَّرُوا أَنْفُسهمْ مِنَ الْأَحْدَاث ﴿تنزيل﴾ منزل ﴿من رب العالمين﴾ ﴿أَفَبِهَٰذَا الْحَدِيثِ﴾ ال قرآن ﴿أَنتُم مُّدْهِنُونَ﴾ مُتَهَاوِنُونَ مُكَذِّبُونَ ﴿وَتَجْعَلُونَ رِزْقَكُمْ﴾ مِنَ الْمَطَر أَيْ شُكْره ﴿أَنَّكُمْ تُكَذِّبُونَ﴾ بِسُقْيَا اللَّه حَيْثُ قُلْتُمْ مُطِرْنَا بِنَوْءِ كذا ﴿فَلَوْلَا﴾ فَهَلَّا ﴿إِذَا بَلَغَتِ﴾ الرُّوح وَقْت النَّزْع ﴿الْحُلْقُومَ﴾ هُوَ مَجْرَى الطَّعَام ﴿وأنتم﴾ يا حاضري الميت ﴿حينئذ تنظرون﴾ إليه ﴿وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنكُمْ﴾ بِالْعِلْمِ ﴿وَلَٰكِن لَّا تُبْصِرُونَ﴾ مِنَ الْبَصِيرَة أَيْ لَا تَعْلَمُونَ ذَلِكَ ﴿فَلَوْلَا﴾ فَهَلَّا ﴿إِن كُنتُمْ غَيْرَ مَدِينِينَ﴾ مَجْزِيِّينَ بِأَنْ تُبْعَثُوا أَيْ غَيْر مَبْعُوثِينَ بِزَعْمِكُمْ ﴿تَرْجِعُونَهَا﴾ تَرُدُّونَ الرُّوح إِلَى الْجَسَد بَعْد بُلُوغ الْحُلْقُوم ﴿إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ﴾ فِيمَا زَعَمْتُمْ فَلَوْلَا الثَّانِيَة تَأْكِيد لِلْأُولَى وَإِذَا ظَرْف لِتَرْجِعُونَ الْمُتَعَلِّق بِهِ الشَّرْطَانِ وَالْمَعْنَى هَلَّا تَرْجِعُونَهَا إِنْ نَفَيْتُمْ الْبَعْث صَادِقِينَ فِي نَفْيه أَيْ لِيَنْتَفِيَ عَنْ مَحِلّهَا الْمَوْت كَالْبَعْثِ ﴿فَأَمَّا إِن كَانَ﴾ الميت ﴿من المقربين﴾ ﴿فروح﴾ اي فله استراحة ﴿وريحان﴾ رزق حسن ﴿وَجَنَّتُ نَعِيمٍ﴾ وَهَلْ الْجَوَاب لِأَمَّا او لإن او لهما اقوال ﴿وأما إن كان من أصحاب اليمين﴾ ﴿فَسَلَامٌ لَّكَ﴾ أَيْ لَهُ السَّلَامَة مِنَ الْعَذَاب ﴿مِنْ أَصْحَابِ الْيَمِينِ﴾ مِنْ جِهَة أَنَّهُ مِنْهُمْ ﴿وأما إن كان من المكذبين الضالين﴾ ﴿فنزل من حميم﴾ ﴿وتصلية جحيم﴾ ﴿إِنَّ هَٰذَا لَهُوَ حَقُّ الْيَقِينِ﴾ مِنْ إِضَافَة الْمَوْصُوف إِلَى صِفَته ﴿فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ﴾ تَقَدَّمَ

**ترجمه:** نو زه قسم خورم، د پټيدونکي ستورو د غائب کيدو، که تاسو پوهيږئ نو دا يعنې دا قسم يو لوئې قسم دې، يعنې که تاسو علم والا ئې نو ددې قسم د عظمت به درته پته اولګي، دا يعنې چې څه تاسو ته اوروليې شي، قرآن دې کوم چې په محفوظ کتاب کښې دې، او هغه مصحف دې، پاک خلق دې لاس وړي، لا يمسه کښې نهي په معنی د خبر دې، يعنې هغه خوک چې خپل ځان ئې د احداث نه پاک کړو ، د رب العالمين د طرف نه نازل شوې دې، نو آيا

دا کلام یعنی قرآن یو سرسری کلام گنړئی، یعنی اهمیت نه ورکوئ تکذیب ئې کوئ، آیا تاسو ددې تکذیب لره غذا (دهندا) جوړه کړې ده، او تاسو د باران په ذریعه د هغه د رزق د شکر په ځائې باندې ناشکری کوئ، یعنی د الله تاسو لره خروب کولو نه پس مُطِرْنَا بِنَوْءِ كَذَا وئیلو سره ناشکری کوئ، یعنی د فلانی ستوری د طلوع یا د غروب د وجه نه باران اوشو، نو چې کله روح د زنکدن په وخت کښې مرئ ته رااورسی، او دا د خوراک نالئ ده اې مری ته حاضریدونکو خلقو! تاسو دې مری ته گورئی او مونږ د مرکیدونکی ته ستاسو په نسبت د علم په اعتبار سره ډیر زیات نزدې یو، خو تاسو کتلې نشئ، تبصرون د بصیرت نه ماخود د ې، یعنی تاسو ته زمونږ د موجودگئ علم نه وی، پس که تاسو ژوندی کولو سره ستاسو حساب کتاب اخستل نه ئې یعنی ستاسو د عقیدې مطابق که تاسو ژوندی کولې نشئ نو ولې تاسو روح حلق ته د رسیدو نه پس جسم ته واپس نه کړو که چرې تاسو په خپله دعوې کښې رشتونې یئ، دویم لولا د اول لولا تاکید دې، او په إذا بلغت کښې إذا د ترجعون ظرف دې، او ترجعون سره دوه شرطونه متعلق دی، یعنی که د بعث په نفی کښې تاسو رشتونې یئ نو دا ولې نه واپس کوئ چې مرگ د نفس د محل نه منتفی شی، اوس که چرې مړې د مقربینو نه وی نو د هغه د پاره راحت دې، او رزق حسن د ې او آرام والا جنت دې، فروح یا خو د أما جواب دې، یا د إن، یا ددواړو، په دې کښې درې اقوال دی، او کوم کس چې د اصحاب الیمین نه وی تو ستا د پاره یعنی د اصحاب الیمین د پاره د عذاب نه سلامتی ده، دې وجې نه چې هغه د اصحاب الیمین نه دې، خو که څوک دروغ گنړونکو او د گمراهانو نه وی نو د یشیدلې اوبو میلمستیا ده، او دوزخ ته تلل دی، دا خبر سراسر حق قطعا یقینی دې، موصوف د خپل صفت طرف ته د اضافت د قبیلې نه دې، نو ته د خپل عظیم الشان رب تسبیح بیان کړه، څنګه چې مخکښې ذکر شو.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** فَلَا أُقْسِمُ بِمَوَاقِعِ النُّجُومِ: لا د جمهورو مفسرینو په نیز د تاکید د پاره زائد ده، په معنی د فأقسم دې، لکه لاوالله او بعضو دا توجیه کړې ده چې لا د مخاطب د گمان د نفی د پاره، او منفی مخذوف دې، او هغه دکفارو کلام دې، او دا د لیس کما تقول په معنی کښې دې، فراء وئیلې دی چې دا لا د نفی د پاره ده، او د لیس الأمر کما تقولون په معنی کښې دې، بعضې حضراتو دې ته ضعیف وئیلې دې،

**قوله:** مَوَاقِع: د موقع جمع ده، چې د هغې معنی ده د ستورو د ډوبیدو ځائې یا وخت، او بعضې حضراتو د دې نه د نجوم منزلونه، او بعضو ترې نزول قرآن مراد اخستې دې، څکه چې قرآن مجید هم رو رو (بتدریج) په حضور (ص) باندې نازل شوې وو.

**قوله** وانه لقسم لو تعلمون عظيم: لا اقسم قسم دې، او لقُرآن کريم جواب قسم دې، او انه لقسم لو تعلمون عظيم د قسم او جوابِ قسم په مينځ کښې جمله معترضه ده، او په جمله معترضه کښې هم د موصوف او صفت په مينځ کښې جمله معترضه راغلې ده او هغه لو تعلمون ده.

**قوله** لعلمتم عظم هذا القسم: ددې په اضافې سره مفسر علام د جواب لو د حذف طرف ته اشاره کړې ده.

**قوله** وهُوالمُصْحَف: بعضې حضراتو د کتاب مَکنُون نه لوح محفوظ مراد اخستې دې، په دې صورت کښې به د لا يمسه معنی وی لا يطلع عليه الا الملائكة المطهرون په دې صورت کښې به دا ايت بغير د طهارت د قرآن دِ مسح کولو د جواز دليل نه وی.

**قوله** خبر بمعنی النهی: ددې اضافې مقصد د يو سوال جواب دې.

**سوال**: په قرآن کښې وئيلې شوې دی لا يمسه الا المطهرون دا خلاف واقعه ده ځکه چې ډير خلق قرآن بغير د طهارت مسح کوی، او قرآن د خلافِ واقعه خبر نشی ورکولې؟

**جواب**: خبر په معنی د نهی دې.

**قوله** مُنَزَّل: په ددې سره ئې اشاره اوکړه چې تنزيل مصدر په معنی د منزل اسم مفعول استعمال دې.

**قوله** افبهذا الحديث: کښې استفهام توبيخی دې، يعنی ستاسو د پاره دا مناسب نه ده.

**قوله** مدهنون: دا د إدهان نه دې، ادهان د تدهين په معنی کښې دې، يو څيز باندې تيل لګولو سره نرمول، مداهنت فی الدين هم ددې نه دې، په دين کښې مداهنت اختيارول، او ددې لازم معنی نفاق هم ده، کوم څيز چې تيل لګولو باندې نرميږی، د هغې باطن د ظاهر نه خلاف وی، د بره نه نرم معلوميږی خو دننه ددې برعکس وی، په نفاق کښې هم داسې وی، دلته مراد مطلقا کفر دې، او قرآن له سرسری او معمولی ګڼړل، او دې ته اهميت نه ورکول هم د إدهان مصداق دې.

**قوله** مِن المَطر: په دې کښې اشاره ده چې د رزق نه مراد سبب د رزق دې، او أی شکره سره ئې اشاره اوکړه چې عبارت د مضاف په حذف سره دې، تقديری عبارت داسې دې تکذبون شکر المطر، يعنی د الله تعالی د نعمتونو ناشکری کول تاسو خپله مشغله او خوراک جوړ کړې دې. تردې چې خدائی باران د بعضو ستورو پريوتلو او راختلو طرف ته منسوب کوئ.

**قوله**: بِسُقيا الله: دا مصدر خپل فاعل طرف ته مضاف دي، په اصل کښې سقى الله دي

**قوله**: إذا ظرف لترجعون: اذا بلغت الحلقوم، د ترجعون ظرف مقدم دې، ترجعون سره دوه شرطونه متعلق دی، او هغه ان كنتم غير مدينين وان كنتم صادقين دی. د متعلق کيدو مطلب دا دي چې هغه د دوارو جزا ده.

**فائده**: په کلام کښې قلب دی او معنی دا ده هلا ترجعونها ان كنتم البعث صادقين في نفيه

**قوله**: فله رَوحٌ: په دې کښې اشاره ده چې روح مبتدأ ده، او فله خبر مقدم دې.

**قوله**: هل الجواب لأما أولان أولهما: فروح، الخ، جواب دې، په دې کښې درې اقوال دی. ①د أما جواب، ②د ان جواب، ③او د دوارو جواب دی، راجح دا ده چې د فروح وريحان الخ د اما جواب دې، او د إن جواب محذوف دې، ځکه چې د إن د جواب حذف كثير الوقوع دې.

**قوله**: أي له السلامةُ من العذاب: په دې کښې اشاره ده چې سلام په معنی د سلامت دې

**قوله**: مِن جهة أنه منهم: په دې کښې اشاره ده چې من اصحب اليمين کښې من تعليليه دې، أي من أجل أنه منهم

**قوله**: تقدم: يعنى سبح تكرار او لفظ اسم زائد دې.

## [٥٧] سورة الحديد

### سورة الحديد مكية او مدنية تسع و عشرون اية

سورة الحديد مكى يا مدنى دې، په دې کښې يو کم ديرش (٢٩) آيتونه دی.

**[اياتونه: ١-١٠]**

{سَبَّحَ لِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ} أيْ نَزَّهَهُ كُلّ شَيْء فَاللَّام مَزِيدَة وَجِيء بِمَا دُون مَنْ تَغْلِيبًا لِلْأَكْثَرِ {وَهُوَ الْعَزِيزُ} فِي مُلْكه {الْحَكِيمُ} فِي صُنْعه {له ملك السماوات والأرض يحيى} بالإنشاء {ويميت} بعده {وهو على كل شيء قدير} {هُوَ الْأَوَّلُ} قَبْل كُلّ شَيْء بِلَا بِدَايَة {وَالْآخِرُ} بَعْد كُلّ شَيْء بِلَا نِهَايَة {وَالظَّاهِرُ} بالأدلة عليه {والباطن} عن إدراك الحواس {وهو بكل شيء عليم} {هُوَ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ} مِنْ أَيَّام الدُّنْيَا أَوَّلهَا الْأَحَد وَآخِرهَا الْجُمُعَة {ثُمَّ اسْتَوَى عَلَى الْعَرْشِ} الْكُرْسِيّ اسْتِوَاء يَلِيق بِهِ {يَعْلَمُ مَا يَلِجُ} يَدْخُل {فِي الْأَرْضِ} كَالْمَطَرِ وَالْأَمْوَات {وَمَا يَخْرُجُ مِنْهَا} كَالنَّبَاتِ وَالْمَعَادِن {وَمَا يَنْزِلُ مِنَ السَّمَاءِ} كَالرَّحْمَةِ وَالْعَذَاب {وَمَا يَعْرُجُ} يَصْعَد {فِيهَا} كَالْأَعْمَالِ الصَّالِحَة وَالسَّيِّئَة {وهو معكم} بعلمه {أين ما كنتم والله بما تعملون بصير} {لَهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَإِلَى اللَّهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ} الْمَوْجُودَات جَمِيعهَا {يُولِجُ اللَّيْلَ} يُدْخِلهُ {فِي النَّهَارِ} فَيَزِيد وَيَنْقُص اللَّيْل {وَيُولِجُ النَّهَارَ فِي اللَّيْلِ} فَيَزِيد وَيَنْقُص النَّهَار {وَهُوَ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ}

بما فيها من الأسرار والمعتقدات (آمِنُوا) داوموا على الإيمان (بِاللهِ وَرَسُولِهٖ وَأَنْفِقُوا) في سبيل الله (مِمَّا جَعَلَكُمْ مُسْتَخْلَفِيْنَ فِيْهِ) من مال من تقدمكم وسيخلفكم فيه من بعدكم نزل في غزوة العسرة وهي غزوة تبوك (فَالَّذِيْنَ آمَنُوْا مِنْكُمْ وَأَنْفَقُوْا) إشارة إلى عثمان رضي الله عنه (لهم أجر كبير) (وَمَا لَكُمْ لَا تُؤْمِنُوْنَ) خطاب للكفار أي لا مانع لكم من الإيمان (بِاللهِ وَالرَّسُوْلُ يَدْعُوْكُمْ لِتُؤْمِنُوْا بِرَبِّكُمْ وَقَدْ أَخَذَ) بضم الهمزة وكسر الخاء وبفتحها ونصب ما بعده (مِيْثَاقَكُمْ) عليه أي اخذه الله في عالم الذر حين اشهدهم على انفسهم (ألست بربكم قالوا بلى) (إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِيْنَ) أي مريدين الإيمان به فبادروا إليه (هُوَ الَّذِيْ يُنَزِّلُ عَلٰى عَبْدِهٖ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ) آيات القرآن (لِيُخْرِجَكُمْ مِنَ الظُّلُمَاتِ) الكفر (إلى النور) الإيمان (وإن الله بكم) في إخراجكم من الكفر إلى الإيمان (لرؤوف رحيم) (ومالكم) بعد إيمانكم (أَلَّا) فيه إدغام نون أن في لام لا (تُنْفِقُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللهِ وَلِلّٰهِ مِيْرَاثُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ) بما فيهما فتصل إليه أموالكم من غير أجر الإنفاق بخلاف ما لو أنفقتم فتؤجرون (لَا يَسْتَوِيْ مِنْكُمْ مَنْ أَنْفَقَ مِنْ قَبْلِ الْفَتْحِ) لمكة (وَقَاتَلَ أُولٰٓئِكَ أَعْظَمُ دَرَجَةً مِّنَ الَّذِيْنَ أَنْفَقُوْا مِنْ بَعْدُ وَقَاتَلُوْا وَكُلًّا) من الفريقين وفي قراءة بالرفع مبتدأ (وَعَدَ اللهُ الْحُسْنٰى) الجنة (وَاللهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ) فيجازيكم به

---

**ترجمه**: شروع كوم د الله په نوم سره چې ډير مهربانه او ډير رحم كولو والا دى، په زمكه او اسمان كښې چې څه دى د الله تعالى پاكى بيانوى، يعنى هر څيز د هغه پاكى بيانوى، په (لله) كښې لام زائد دې، د (من) په ځائې د (ما) استعمال اكثرو ته غلبې وركولو په اعتبار سره دې، او هغه په خپل ملک كښې زبردست او په خپل صنعت كښې حكمت والا دې، د زمكې او د اسمان بادشاهى هم د هغه ده، پيدا كولو سره ژوندى كول كوى د هغې نه پس مرگ وركوى او هغه په هر څيز باندې قادر دې او هم هغه اول دې، بغير دابتداء نه د هر څيز نه مخكښې او هم هغه آخر دې، يعنى بغير د انتهاء نه د هر څيز نه پس به هم وى، هم هغه ښكاره كونكى دې په هغه باندې دلائل موجوديدو د وجه نه او هغه د حواسو د ادراک نه مخفى دې، او هغه هر څيز باندې پوهيدونكې دې، چا چې اسمان او زمكه د دنيا د ورځو مطابق په شپږ ورځو كښې پيدا كړل، په دې كښې اول ورځ د اتوار او آخرى ورځ د جمعې وه، بيا هغه په عرش كرسى باندې مستوى شو داسې استواء چې د هغه د شان مناسب ده، او هر هغه څيز پيژنى كوم چه زمكه كښې داخليږى، لكه د باران اوبه، او مرى او په هغه باندې هم كوم چې د زمكې نه راوځى، لكه نباتات او معدنيات وغيره، او كوم چې د اسمان نه نازليږى، لكه رحمت او عذاب، او كوم څيز چې هغه طرف ته خيژى، لكه بد اعمال او صحيح اعمال، او تاسو چې چرته هم يئ هغه د علم په اعتبار سره تاسو سره دې، او تاسو چې څه كوئ الله هغه وينى، د اسمانونو او د زمكې بادشاهت هغه سره دې، او هم هغه طرف ته به ټول كارونه جمع كيږى، يعنى ټول موجودات هغه شپه په ورځ كښې داخلوى، نو ورځ لويه شى، او شپه كمه شى، او ورځ په شپه كښې داخلوى، نو شپه لويه

شی، او ورځ کمه شی، او هغه د سینو په رازونو باندې پوره عالم دې، یعنې په سینو کښې چې کوم رازونه او معتقدات دی هغه دیر ښه پیژنی، په الله تعالی او د هغه په رسول باندې ایمان راوړئ، یعنی په ایمان باندې قائم اوسئ، د الله په لاره کښې د هغه مال نه خرچ کوئ د کوم چې هغه تاسو نائب جوړ کړی ئې، د هغه خلقو په مال کښې کوم چې ستاسو نه مخکښې تیر شوی دی، او په هغې کښې به ستاسو نه پس خلق ستاسو خلیفه جوړ کړی، دا ایت دغزوه عسره په باره کښې نازل شوې دې، او هغه غزوه تبوک ده، نو په تاسو کښې چې کوم خلقو ایمان راوړو او د الله په لاره کښې ئې خرچ کړو د هغوی د پاره لوئې اجر دې، په دې کښې حضرت عثمان رضی الله عنه طرف ته اشاره ده تاسو په الله تعالی باندې ایمان ولې نه راوړئ، دا خطاب کافرانو ته دې، یعنی په الله تعالی باندې ایمان راوړلو کښې ستاسو مخې ته هیڅ مانع نشته، حالانکه پخپله رسول تاسو ته د ایمان راوړلو دعوت درکوی، او پخپله الله تعالی ستاسو نه دا وعده اخستلې ده، که چرې تاسو ایمان راوړئ، یعنی که په هغه باندې د ایمان راوړلو اراده وی نو د هغې طرف ته سبقت اوکړئ، أُخِذَ، د همزې په ضمې او د خاء په کسرې سره، او د دواړو په فتحې سره او ددې د مابعد په فتحې سره، یعنی الله تعالی د انسانانو نه په عالم ذرّ کښې کله چې دوی په خپل ځان باندې ګواه کړی وو په أَلَستُ بِرَبِّكُم سره، نو ټولو جواب ورکړو چې بَلٰی، هم هغه دې چې په خپل بنده باندې د قرآن واضح ایتونه نازلوی، چې تاسو دکفر د تیارو نه د ایمان رڼرا طرف ته راوباسی الله تعالی تاسو د کفر نه ایمان طرف ته ویستلو سره په تاسو باندې ډیره نرمی کولو والا، رحم کولو والا دې، په تاسو باندې څه شوی دی، چې د ایمان نه پس د الله په لاره کښې خرچ نه کوئ، د آسمانونو او د زمکې میراث سره د ټولو څیزونه چې کوم په دې کښې دی، د الله د پاره دې، ستاسو ټول مالونه بغیر د اجر د انفاق نه هغه طرف ته رسی، په خلاف د هغه مال کوم چې تاسو خرچ کړئ، نو په هغې باندې به تاسو ته اجر درکړې شی، په تاسو کښې چې کومو خلقو د فتح مکه نه وړاندې فی سبیل الله خرچ کړې دې، او فی سبیل الله جهاد ئې اوکړو، هم دا هغه خلق دې چې لوئ درجو والا دی، د هغه خلقو نه چا چې د فتح مکه نه پس خرچ کړو او قتال ئې اوکړو په دواړو فریقو کښې هر یو سره د الله تعالی د جنت وعده ده، او په یو قراءت کښې كُلٌّ په رفع سره مبتدأ ده، څه چې تاسو کوئ الله تعالی د هغې نه خبردار دې، نو هغه به تاسو ته د دې بدله درکړی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**سوال**: سَبَّحَ لِلّٰهِ کښې سبح متعدی په لام سره ګرځولې شوې دې، حالانکه سبح پخپله متعدی بنفسه استعمالیږی؟

**جواب**: لام زائد تاکید د پاره دې، لکه نَصَحْتُ لَهٗ وشَكَرْتُ لَهٗ یا د تعلیل د پاره دې، مفسر

علام د سبح لله تفسير په لژهه سره کولو کښې او فاللام مزيدة اضافه کولو کښې ددې اعتراض جواب ورکړې دې.

**قوله**: بالإنشاء: دې لفظ سره ئې اشاره اوکړه چې د يُحيى نه مراد ژوندې پرېښودل نه دي، څنګه چې نمرود به بعضو لره قتلول، او بعضې به ئې ژوندي پرېښودل، نمرود د ابراهيم عليه السلام سره محاجه کولو په وخت کښې انا أحيي وأميت اووئيل، او دوه کسان ئې راوغوښتل، چې په هغې کښې ئې يو قتل کړو، او دويم ئې ژوندې پرېښودلو او وئې وئيل انا أحيي وأميت بعضې قتلول ژوندی کول نه دي، بلکه د يحيى نه مراد إنشاء حيات دې،

**قوله**: الكرسي: مناسب وو چې د العرش تفسير په کرسی سره کولو په ځائې کښې په خپل حالت باندې پرېښودې وو.

**قوله**: استواء يليق به: دا د سلفو تفسير دې، خلف ددې تاويل په قهر او غلبې سره کوی.

**قوله**: والسيئة: بهتر به وه چې دا ئې حذف کړې وو، ځکه چې اسمان طرف ته کلمات طيبات خيژی، نه چې اعمال سيئه.

**قوله**: دُومُوا على الإيمان: ددې عبارت د اضافې مقصد د يو سوال جواب دې.

**سوال**: خطاب مومنين ته دې، لهذا آمنوا وئيل تحصيل د حاصل دې؟

**جواب**: د آمنوا نه مراد دوام او قرار على الإيمان دې، کوم چې د مومنين نه هم مطلوب دې

**قوله**: والرسول يدعوكم: د لاتومنون د ضمير نه حال دې.

**قوله**: وقد اخذ ميثاقكم: دا د يدعوكم د كم ضمير نه حال دي

**قوله**: أي مُريدين الإيمان: دا هم د يو سوال جواب دې.

**سوال**: اول يې اوفرمائيل لاتومنون بالله چې د هغې مقتضى دا ده چې خطاب مومنين ته نه دې، او د هغې نه پس ئې اوفرمائيل ان كنتم مومنين چې د هغې مقتضى دا ده چې خطاب مومنانو ته دې؟

**جواب**: مراد دا دې چې تاسو په الله او رسول محمد صلى الله عليه وسلم باندې ايمان راورئى، که چرې تاسو په موسى عليه السلام او عيسى عليه السلام باندې ايمان لرئ، ځکه چې دغه پيغمبرانو شريعت هم ددې خبرې مقتضي وو چې تاسو په محمد صلى الله عليه وسلم باندې ايمان راورئ.

**قوله**: فبَادِرُوا إليه: په دې کښې اشاره ده چې جوابِ شرط محذوف دې، او هغه فبادروا إليه الخ دې.

**قوله**: من أنفق من قبل: دا د لایستوی فاعل دی، او استوی د دوو څیزونو نه په کم کښې نه وی، معلومه شوه چې ددې مقابل دهغې د واضح کیدو د وجې نه حذف کړې شوې دې، او هغه من أنفق من بعد الفتح دې.

**قوله**: کُلًّا: دوعد الله مفعول مقدم دې، او ابن عامر کُلٌّ مبتدأ کیدو د وجې نه په رفع سره وئیلې دې او مابعد ددې خبر دې.

**[ایاتونه: ١١-١٩]**

{مَنْ ذَا الَّذِي يُقْرِضُ اللَّهَ} بِإِنْفَاقِ مَالِه فِي سَبِيلِ اللّٰه {قَرْضًا حَسَنًا} بِأَنْ يُنْفِقَهُ لِلّٰهِ {فَيُضَاعِفَهُ} وَفِي قِرَاءَةٍ فَيُضَعِّفُهُ بِالتَّشْدِيدِ {لَهُ} مِنْ عَشْرٍ إِلَى أَكْثَرَ مِنْ سَبْعِمِائَةٍ كَمَا ذُكِرَ فِي الْبَقَرَةِ {وَلَهُ} مَعَ الْمُضَاعَفَةِ {أَجْرٌ كَرِيمٌ} مُقْتَرِنٌ بِهِ رِضًا وَإِقْبَالٌ اُذْكُرْ {يَوْمَ تَرَى الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ يَسْعَى نُورُهُمْ بَيْنَ أَيْدِيهِمْ} أَمَامَهُمْ {وَ} يَكُونُ {بِأَيْمَانِهِمْ} وَيُقَالُ لَهُمْ {بُشْرَاكُمُ الْيَوْمَ جَنَّاتٌ} أي ادخلوها {تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا ذَلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ. يَوْمَ يَقُولُ الْمُنَافِقُونَ وَالْمُنَافِقَاتُ لِلَّذِينَ آمَنُوا انْظُرُونَا} أَبْصِرُونَا وَفِي قِرَاءَةٍ بِفَتْحِ الْهَمْزَةِ وَكَسْرِ الظَّاءِ أَمْهِلُونَا {نَقْتَبِسْ} نَأْخُذِ الْقَبَسَ وَالْإِضَاءَةَ {مِنْ نُورِكُمْ قِيلَ} لَهُمْ اسْتِهْزَاءً بِهِمْ {ارْجِعُوا وَرَاءَكُمْ فَالْتَمِسُوا نُورًا} فَرَجَعُوا {فَضُرِبَ بَيْنَهُمْ} وَبَيْنَ الْمُؤْمِنِينَ {بِسُورٍ} قِيلَ هُوَ سُورُ الْأَعْرَافِ {لَهُ بَابٌ بَاطِنُهُ فِيهِ الرَّحْمَةُ} مِنْ جِهَةِ الْمُؤْمِنِينَ {وَظَاهِرُهُ} من جهة المنافقين {مِنْ قِبَلِهِ الْعَذَابُ. يُنَادُونَهُمْ أَلَمْ نَكُنْ مَعَكُمْ} عَلَى الطَّاعَةِ {قَالُوا بَلَى وَلَكِنَّكُمْ فَتَنْتُمْ أَنْفُسَكُمْ} بِالنِّفَاقِ {وَتَرَبَّصْتُمْ} بِالْمُؤْمِنِينَ الدَّوَائِرَ {وَارْتَبْتُمْ} شَكَكْتُمْ فِي دِينِ الْإِسْلَامِ {وَغَرَّتْكُمُ الْأَمَانِيُّ} الْأَطْمَاعُ {حَتَّى جَاءَ أَمْرُ اللَّهِ} الْمَوْتُ {وَغَرَّكُمْ بِاللَّهِ الْغَرُورُ} الشَّيْطَانُ {فَالْيَوْمَ لَا يُؤْخَذُ} بِالْيَاءِ وَالتَّاءِ {مِنْكُمْ فِدْيَةٌ وَلَا مِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا مَأْوَاكُمُ النَّارُ هِيَ مَوْلَاكُمْ} أَوْلَى بِكُمْ {وَبِئْسَ الْمَصِيرُ} هِيَ {أَلَمْ يَأْنِ} يَحِنْ {لِلَّذِينَ آمَنُوا} نَزَلَتْ فِي شَأْنِ الصَّحَابَةِ لَمَّا أَكْثَرُوا الْمِزَاحَ {أَنْ تَخْشَعَ قُلُوبُهُمْ لِذِكْرِ اللَّهِ وَمَا نَزَّلَ} بِالتَّشْدِيدِ وَالتَّخْفِيفِ {مِنَ الْحَقِّ} الْقُرْآنِ {وَلَا يَكُونُوا} مَعْطُوفٌ عَلَى تَخْشَعَ {كَالَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ مِنْ قَبْلُ} هُمُ الْيَهُودُ وَالنَّصَارَى {فَطَالَ عَلَيْهِمُ الْأَمَدُ} الزَّمَنُ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ أَنْبِيَائِهِمْ {فَقَسَتْ قُلُوبُهُمْ} لَمْ تَلِنْ لِذِكْرِ اللّٰهِ {وَكَثِيرٌ مِنْهُمْ فَاسِقُونَ. اعْلَمُوا} خِطَابٌ لِلْمُؤْمِنِينَ الْمَذْكُورِينَ {أَنَّ اللَّهَ يُحْيِي الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا} بِالنَّبَاتِ فَكَذَلِكَ يَفْعَلُ بِقُلُوبِكُمْ يَرُدُّهَا إِلَى الْخُشُوعِ {قَدْ بَيَّنَّا لَكُمُ الْآيَاتِ} الدالة على قدرتنا بهذا وغيره {لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ. إِنَّ الْمُصَّدِّقِينَ} مِنَ التَّصَدُّقِ أُدْغِمَتِ التَّاءُ فِي الصَّادِ أَيِ الَّذِينَ تَصَدَّقُوا {وَالْمُصَّدِّقَاتِ} اللَّاتِي تَصَدَّقْنَ وَفِي قِرَاءَةٍ بِتَخْفِيفِ الصَّادِ فِيهِمَا مِنَ التَّصْدِيقِ وَالْإِيمَانِ {وَأَقْرَضُوا اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا} رَاجِعٌ إِلَى الذُّكُورِ وَالْإِنَاثِ بِالتَّغْلِيبِ وَعَطْفُ الْفِعْلِ عَلَى الْاِسْمِ فِي صِلَةِ أَلْ لِأَنَّهُ فِيهَا حَلَّ مَحَلَّ الْفِعْلِ وَذِكْرُ الْقَرْضِ بِوَصْفِهِ بَعْدَ التَّصَدُّقِ تَقْيِيدٌ لَهُ {يُضَاعَفُ} وَفِي قِرَاءَةٍ يُضَعَّفُ بِالتَّشْدِيدِ أَيْ قَرْضُهُمْ {لَهُمْ وَلَهُمْ أَجْرٌ كَرِيمٌ. وَالَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ أُولَئِكَ هُمُ الصِّدِّيقُونَ} الْمُبَالِغُونَ فِي التَّصْدِيقِ

(وَالشُّهَدَاءُ عِندَ رَبِّهِمْ) عَلَى الْمُكَذِّبِينَ مِنَ الْأُمَمِ (لَهُمْ أَجْرُهُمْ وَنُورُهُمْ وَالَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا) الدَّالَّةِ عَلَى وَحْدَانِيَّتِنَا (أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ الْجَحِيمِ) النَّارِ

**ترجمه**: کوم کس دې چې خپل مال الله ته قرض حسنه ورکړي، یعنې د الله تعالی په لاره کښې خرچ اوکړي په داسې توګه چې خالص د الله تعالی د پاره خرچ اوکړي، بیا الله تعالی د هغه کس د پاره دا قرض زیات کړي، او په قرات کښې فَيُضَعِّفَهُ په تضعیف سره دې چې هغه د لس چنده نه تر د اووه سوه چنده پورې دې، ځنګه چې په سورة بقره کښې ذکر دی، او د هغه د پاره د اجر زیاتیدو سره سره د عزتمند اجر هم دې، یعنې د هغه اجر سره رضامندی او قبولیت دې، د هغه ورځې ذکر اوکړه چې په کومه ورځ به تاسو مومنانو او مومناتو له اوګورې چې د هغوی نور د هغوی مخکښې دې، او د هغوی ښی طرف ته روان وی (مندې به وهی)، او دوی ته به وئیلې شی، نن ستاسو د پاره د داسې جنت دې یعنې په هغې کښې د د اخلیدو خوشخبری ده، چې د هغې لاندې به نهرونه جاری وی، چې په هغې کښې به همیشه ئی، دا لویه کامیابی ده، په کومه ورځ به چه منافق سړی او منافقې ښځې ایمان والو ته اووایی، لږ زمونږ طرف ته هم اوګورئ، او په یو قرات کښې د همزې په فتحې سره او د ظاء په کسرې سره، یعنې لږ زمونږ هم انتظار اوکړئ، چې مونږ هم ستاسو د نور نه لږه رڼړه حاصله کړو، او دوی ته به د ټوقو په توګه اووئیلې شی، تاسو واپس شئ او رڼړا تلاش کړئی، نو هغوی به واپس شی، نو د دوی او د مومنانو په مینځ کښې به دیوال حائل کړې شی، وئیلې شوی دی چې دا به د اعراف دیوال وی، د دې به یو دروازه وی، د دې په دننه حصه کښې د مومنانو طرف ته به رحمت وی، او د دې نه بهر د منافقانو طرف ته به عذاب وی، دا خلق به په چغو دوی ته وائی آیا په طاعت کښې مونږ تاسو سره نه وو؟ هغوی به وائی چې آو تاسو خو وئ خو تاسو خپل ځان د نفاق په فتنه کښې ګیر کړې وو، او په مومنانو باندې د حوادثاتو په انتظار کښې اوسیدلئ، او په دین اسلام کښې مو شک کولو او تاسو له ستاسو خواهشاتو په دهوکه کښې اچولې وئ، تر دې چې د الله تعالی حکم یعنې مرګ رااورسیدو، او تاسو د الله په باره کښې یو دهوکه باز شیطان په دهوکه کښې اچولې وئ، الغرض دا چې نن به نه ستاسو نه فدیه قبلولې شی په یاء او تاء سره دې، او نه به د کافرانو نه، ستاسو د ټولو ځائ دوزخ دې، او هم هغه ستاسو لائق دې، یعنې ستاسو د پاره بهتر دې، او هغه خراب ځائ دې، آیا د ایمان والو د پاره اوسه پورې هغه وخت رارسیدلې نه دې؟ دا ایت د صحابه کرامو ﷺ په شان کښې هغه وخت نازل شو چې کله هغوی مذاق او دل لګی زیاته شروع کړه، چې د هغوی زړونه د ذکر الهی او د دې حق یعنې قرآن سره نرم شی، کوم چې نازل شوې دې، نزل په تخفیف او تشدید سره دې، د هغه خلقو په شان چاته چې د دوی نه مخکښې کتاب ورکړې شوې وو، او هغه یهودیان او نصاریٰ دی، بیا چې کله دوی باندې یو

اوږده زمانه تيره شوه يعني د دوی او ددوی دانبياء په مينځ کښې، اوږده زمانه تيره شوه، نو ددوی زړونه سخت شول، د الله د ذکر د پاره نرم پاتې نه شول، او په دوی کښې ډير فاسقان دي، يقين اوکړه مومنانو مذکوره ته خطاب دې، چې الله زمکې لره گياه راتو کولو سره ددې د مرګ نه پس ژوندئی کوی، نو ستاسو زړونو سره به هم داسې اوکړی، هغې لره د خشوع طرف ته واپس کولو سره مونږ ستاسو د پاره ښکاره آيتونه بيان کړل، چې په هري طريقې سره زمونږ په قدرت باندې دلالت کوی، چې تاسو پوهه شئ، بې شکه صدقه ورکولو والا سړی دا د تصدق نه ماخود دې، تاء په صاد کښې مدغم کړې شوې ده، يعنی هغه خلق چا چې صدقه اوکړه، او هغه ښځې چا چې صدقه اوکړه او په يو قراءت کښې د صاد په تخفيف سره دې، د تصديق نه ماخود دې، او مراد ايمان دې، او څوک چې په خلوص سره قرض حسنه ورکوی، دا تغليبا نارينو او زنانوْ دواړو طرف ته راجع دې، او د فعل عطف په هغه اسم باندې دې کوم چې د الف لام په صله کښې دې، ځکه جائز دی چې اسم دلته د فعل په معنی کښې واقع وی، د تصدق د ذکر نه پس قرض ددې صفت سره ذکر کول د تصدق مقيد کولو د پاره دی، ددوی به قرض ددوی د پاره سره زيات کړې شی، او په يو قراءت کښې يضعف په تشديد سره دې، او ددوی د پاره خوښ (عزتمند) اجر دې، او کوم خلق چې په الله باندې او د هغه په رسول باندې ايمان راوړی، هم داسې خلق د خپل رب په نيز صديقين يعنی په تصديق کښې مبالغه کونکی دی، او مخښې تکذيب کونکو امتونو باندې گواه دی، ددوی د پاره د دوی اجر او د دوی نور دې، او چې کومو خلقو کفر اوکړو او زمونږ په وحدانيت باندې دلالت کونکی ايتونو ته ئې دروغ اوو ئيل، د هغوی د پاره د جهنم اور دې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: من ذالذي يقرض الله قرضاً حسناً: په دې کښې د ترکيب په اعتبار سره څلور صورتونه دی،

① من استفهاميه مبتدأ، ذا ددې خبر او الذی يقرض الله ددې صفت يا بدل.

② من ذا مبتدأ او الذی ددې خبر.

③ ذا مبتدأ موصوف، الذی يقرض الله موصول او صله صفت او من خبر مقدم، په دې معنی کښې استفهام کيدو د وجې نه مقدم کړې شو.

**قوله**: يُضاعفه: د فاء نه پس د أن مقدره په ذريعه جواب استفهام کيدو د وجې نه منصوب دې، استيناف يا يقرض باندې د عطف کيدو د وجې نه مرفوع دې.

**قوله**: رضاً او اقبالاً: معطوف عليه او معطوف د مقترن فاعل:

**قوله**: اذکر: مفسر علام اذکر محذوف منلو سره اشاره اوکړه چې يوم د فعل محذوف

ظرف دې، يعنى هغه ورځ ياد كړه، او دا هم كيدې شي چې د اجر كريم ظرف وي، يعنى په هغه ورځ اجر كريم دې، او دريم صورت دا هم جائز دې، چې د يسعى ظرف وي، يعنى ته به گورې چې د مومنانو او د مومناتو نور به په هغه ورځ ددوى مخې ته منډې وهى.

**قوله**: يسعى: جمله حاليه ده خو دا په هغه صورت كښې چې يسعى په يوم كښې عامل اونه گرځولې شي.

**قوله**: ويكون: يكون مقدر منلو سره ئې دا احتمال ختم كړو چې بأيمانهم، ديسعى ماتحت وي، او معنى دا وي چې نور به ددوى ښى طرف ته ددوى نه لرې وي، ځكه چې د أيمان نه جميع جهات دلته مراد دى.

**قوله**: دخولها: دې لره محذوف منلو سره ئې اشاره اوكړه چې جنت په حذف د مضاف سره دې، بشركم د مبتدأ خبر دې، تقديرى عبارت دا دې بشركم اليوم دخول الجنة.

**قوله**: ذلك: أى دخول الجنة

**قوله**: يوم يقول المنافقون: دا د يوم ترىٰ نه بدل دې.

**قوله**: له باب باطنه فيه الرحمة: له باب د نور صفت اول دې، او باطنه فيه الرحمة صفت ثانى دې،

**قوله**: الغرور بالفتح: په معنى د شيطان، كما قال المفسر وبالضم هذو ذا مصدر بمعنى الخِتراع بالباطل

**قوله**: مأواكم النار: مأواكم خبر مقدم، النار مبتدأ مؤخر، ددې عكس هم جائز دې.

**قوله**: هى مولاكم: مولا مصدر هم كيدې شى، أى ولايتكم أى ذات ولايتكم، يا بمعنى مكان نحو أى مكان ولايتكم، يا بمعنى أولى، نحو مولاة أى أولى هى ناصركم، هغه اور ددوى ناصر او مددگار دې، او دا استهزاءً ده.

**قوله**: ألم يأن للذين آمنوا: د جمهورو په نيز په سكون د همزې او د نون په كسرې سره أنى يأنى، (رمى يرمى) مضارع واحد مذكر غائب، بيا ياء كومه چې عين كلمه ده، د التقاء ساكنين د وجې نه حذف كړې شوې ده.

**قوله**: راجع إلى الذكور والاناث: ددې اضافې مقصد دې خبرې ته اشاره كول دى چې د وأقرضوا الله عطف په دواړو فعلونو يعنى المصدقين او المصدقات باندې دې، صرف په اول باندې د منلو په صورت كښې د صلې د تاميدو نه بغير عطف لازم شى كوم چې جائز نه دې.

**سوال**: د أقرضوا الله عطف په المصدقين باندې دې، كوم چې اسم دې، لهذا د فعل عطف په اسم باندې راځى كوم چې صحيح نه دې؟

**جواب**: په كوم اسم باندې چې الف لام بمعنى ألذى داخل وي، هغه اسم هم د فعل په

معنى كښې وى، لهذا عطف صحيح دې.

**قوله**: ذكر القرض بوصفه: ددې عبارت مقصد يو اعتراض جواب دې.

**اعتراض**: المصدقين په تشديد سره بمعنى صدقه وركونكى، بيا ئې ددې نه پس اوفرمائيل وأقرضوا الله قرضا حسنا، ددې مقصد هم صدقه وركول دى، نو د المصدقين ذكر كولو نه پس دواقرضوا الله قرضا حسنا د ذكر بيا څه ضرورت پاتې شو، دا خو تكرار دې؟

**جواب**: د جواب خلاصه دا ده چې ددې اضافې مقصد صدقه په صفت د حسن سره متصف كول دى، يعنى صدقه دې په اخلاص او للهيت سره دې وركړې شى، لهذا دا تكرار بې فائدې نه دې.

**قوله**: والذين آمنوا بالله ورسله اولئك هم الصديقون: والذين آمنوا مبتدأ، اولئك مبتدأ ثانى او په هم كښې دا هم جائز دى چې مبتدأ ثالث شى، او الصديقون ددې خبر، مبتدأ خبر د مبتدأ ثانى او مبتدأ ثانى د خپل خبر سره خبر شو د مبتدأ اول، او دا هم جائز ده چې هم ضمير د فصل وى، او اولئک او د هغې خبر د مبتدأ اول خبر شى.

**[اياتونه: ۲۰-۲۵]**

{اعْلَمُوا أَنَّمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا لَعِبٌ وَلَهْوٌ وَزِينَةٌ} تَزْيِين {وَتَفَاخُرٌ بَيْنَكُمْ وَتَكَاثُرٌ فِي الْأَمْوَالِ وَالْأَوْلَادِ} أَيْ الِاشْتِغَال فِيهَا وَأَمَّا الطَّاعَات وَمَا يُعِين عَلَيْهَا فَمِنْ أُمُور الْآخِرَة {كَمَثَلِ} أَيْ هِيَ فِي إعْجَابهَا لَكُمْ وَاضْمِحْلَالهَا كَمَثَلِ {غَيْثٍ} مَطَر {أَعْجَبَ الْكُفَّارَ} الزُّرَّاع {نَبَاتُهُ} النَّاشِئ عَنْهُ {ثُمَّ يَهِيجُ} يَيْبَس {فَتَرَاهُ مُصْفَرًّا ثُمَّ يَكُونُ حُطَامًا} فُتَاتًا يَضْمَحِلّ بِالرِّيَاحِ {وَفِي الْآخِرَةِ عَذَابٌ شَدِيدٌ} لِمَنْ آثَرَ عَلَيْهَا الدُّنْيَا {وَمَغْفِرَةٌ مِنَ اللَّهِ وَرِضْوَانٌ} لِمَنْ لَمْ يُؤْثِر عَلَيْهَا الدُّنْيَا {وَمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا} ما التمتع فيها {إِلَّا مَتَاعُ الْغُرُورِ} {سَابِقُوا إِلَى مَغْفِرَةٍ مِنْ رَبِّكُمْ وَجَنَّةٍ عَرْضُهَا كَعَرْضِ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ} لَوْ وُصِلَتْ إحْدَاهُمَا بِالْأُخْرَى وَالْعَرْض السَّعَة {أُعِدَّتْ لِلَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ ذَلِكَ فَضْلُ اللَّهِ يُؤْتِيهِ مَنْ يَشَاءُ وَاللَّهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيمِ} {مَا أَصَابَ مِنْ مُصِيبَةٍ فِي الْأَرْضِ} بِالْجَدْبِ {وَلَا فِي أَنْفُسِكُمْ} كَالْمَرَضِ وَفَقْد الْوَلَد {إِلَّا فِي كِتَابٍ} يَعْنِي اللَّوْح الْمَحْفُوظ {مِنْ قَبْلِ أَنْ نَبْرَأَهَا} نَخْلُقهَا وَيُقَال فِي النِّعْمَة كَذَلِكَ {إِنَّ ذَلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرٌ} {لِكَيْلَا} كَيْ نَاصِبَة لِلْفِعْلِ بِمَعْنَى أَنْ أَيْ أَخْبَرَ تَعَالَى بِذَلِكَ لِئَلَّا {تَأْسَوْا} تَحْزَنُوا {عَلَى مَا فَاتَكُمْ وَلَا تَفْرَحُوا} فَرَح بَطَر بَلْ فَرَح شُكْر عَلَى النِّعْمَة {بِمَا آتَاكُمْ} بِالْمَدِّ أَعْطَاكُمْ وَبِالْقَصْرِ جَاءَكُمْ مِنْهُ {وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ} مُتَكَبِّر بِمَا أُوتِيَ {فَخُورٍ} بِهِ عَلَى النَّاس {الَّذِينَ يَبْخَلُونَ} بِمَا يَجِب عَلَيْهِمْ {وَيَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبُخْلِ} بِهِ لَهُمْ وَعِيد شَدِيد {وَمَنْ يَتَوَلَّ} عَمَّا يَجِب عَلَيْهِ {فَإِنَّ اللَّهَ هُوَ} ضَمِير فَصْل وَفِي قِرَاءَة بِسُقُوطِهِ {الْغَنِيُّ} عَنْ غَيْره {الْحَمِيدُ} لأوليائه {لَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا} الْمَلَائِكَة إلَى الْأَنْبِيَاء {بِالْبَيِّنَاتِ} بِالْحُجَجِ الْقَوَاطِع {وَأَنْزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتَابَ} بِمَعْنَى الْكُتُب {وَالْمِيزَانَ} الْعَدْل {لِيَقُومَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ وَأَنْزَلْنَا الْحَدِيدَ} أَخْرَجْنَاهُ مِنَ الْمَعَادِن {فِيهِ بَأْسٌ شَدِيدٌ} يُقَاتَل بِهِ {وَمَنَافِعُ

لِلنَّاسِ وَلِيَعْلَمَ اللَّهُ) عِلْم مُشَاهَدَة مَعْطُوف عَلَى لِيَقُومَ النَّاس (مَنْ يَنْصُرُهُ) بِأَنْ يَنْصُر دِينه بِآلَاتِ الْحَرْب مِنَ الْحَدِيد وَغَيْره (وَرُسُلَه بِالْغَيْبِ) حَال مِنْ هَاء يَنْصُرُهُ أَيْ غَائِبًا عَنْهُم فِي الدُّنْيَا قَالَ بن عَبَّاس يَنْصُرُونَهُ وَلَا يُبْصِرُونَهُ (إِنَّ اللَّهَ قَوِيٌّ عَزِيزٌ) لَا حَاجَة لَهُ إِلَى النُّصْرَة لَكِنَّهَا تَنْفَع مَنْ يَأْتِي بِهَا

ترجمه: بنه پوهه شئ چې د دنیا ژوند صرف لوبې توقې زینت او په خپل مینځ کښې د فخر او مال او دولت د یو بل نه د زیاتولو کوشش دې، یعنی په دې کښې مشغولیدل دی، خو طاعت او هغه څیزونه چې په دې کښې معاون دی مثلا توبه د آخرت د امورو نه ده، د مذکوره څیزونو مثال، ددې څیزونو مثال ستاسو د پاره د حیرانتیا سبب جوړیدو او زر فنا کیدو کښې داسې دی لکه څنګه چې باران ته پیدا شوې غله زمیندار لره خوشحالوی، بیا چې کله هغه اوچ شی، نو ته دې لره زیړ وینې، بیا هغه زره زره شی، بیا د هوا په ذریعه نیست و نابود شی، او په آخرت کښې د هغوی د پاره سخت عذاب دې، کوم خلق چې په آخرت باندې دنیا ته ترجیح ورکوی او د الله د طرف نه نصرت او خوشنودی ده د هغه کس دپاره چا چې آخرت لره په دنیا باندې ترجیح ورکړه، او د دنیا ژوند یعنی ددې نه فائده اخستل، صرف د دهوکې سامان دې، د خپل رب مغفرت طرف ته او د جنت طرف ته منډه کړئ، چې د هغې فراخوالې د زمکې او آسمان برابر دې، که یو بل سره ملاو کړې شی، او دعرض نه مراد وسعت دې، نه چې پلنوالې، دا د هغه خلقو د پاره جوړ کړې شوې دې څوک چې په الله او رسول باندې ایمان راوړی، دا د الله فضل دې چاته چې اوغواړی ور ئې کړی، او الله لوئې فضل والا دې، نه په دنیا کښې څه مصبت راځی یعنی قحط وغیره او نه خاص ستاسو په نفسونو کښې لکه ماشومان وغیره مره کیدل، او مرض، خو دا چې هغه په کتاب یعنی لوح محفوظ کښې لیکلې شوې دی، ددې نفسونو د پیدا کولو نه مخکښې او په نعمت کښې به هم داسې وئیلې شی، څنګه چې د مصیبت په باره کښې اوئیلې شول، دا کار د الله د پاره ډیر آسان دې، په لکَیلا کښې کَی د فعل ناصب د ې، د أن په معنی کښې، یعنی الله تعالی ددې خبر ورکړو، چې تاسو په فوت شوې څیزونو باندې خفه نشئ، او نه تاسو په هغه نعمت باندې کوم چې تاسو ته درکړې شوې دی، د فخر په توګه د خوشحالئ اظهار اوکړئ، بلکه په نعمت باندې د شکریه په توګه د خوشحالئ اظهار اوکړئ، أتکم مد سره، د أعطاکم په معنی کښې دې، او په قصر سره د جاءکم معه په معنی کښې دې، او الله تعالی په ورکړې شوې نعمتونو باندې تکبر کونکې او په دې نعمت باندې په خلقو باندې فخر کونکې نه خوښوی، هغه خلق چې خپل ځان باندې د واجباتو باره کښې بخل کوی. او په دې کښې خلقو ته هم د بخل تعلیم ورکوی، نو د هغوی د پاره سخت وعید دې، واورئ کوم کس چې په خپل ځان باندې د واجباتو نه مخ واروی، بې شکه الله تعالی هو ضمیر فصل دې او په یو قراءت کښې د هو په سقوط سره دې، بې نیازه او د خپلو دوستانو د حمد او ثناء سزاوار (لائق) دې، یقینا مونږ خپل رسولان ملائکو لره د انبیاء طرف ته یقنی دلائلو

ورکولو سره راولیږل، او مونږ د هغوی سره کتاب بمعنی کُتُب او تله یعنی عدل لره نازل کړو، چې خلق په عدل باندې قائم نشی، او مونږ اوسپنه نازله کړه، یعنی د زمکې د کانونو نه مو راوایستله، چې په هغې کښې سخت هیبت دې، د هغې په ذریعې قتال کولې شی، او د خلقود پاره نورې هم ډیرې فائدې دی، دا ځکه چې الله د مشاهدې په توګه معلوم کړی د لِیَعلم عطف په لِیَقوم باندې دې، چې څوک د هغه او د هغه د رسول بغیر لیدلو نه مدد کوی، یعنی چې څوک د هغه د دین د اوسپنې په آلاتو وغیره سره مدد کوی؟ (بالغیب) د ینصره د باء نه حال دې یعنی په دنیا کښې دهغوی نه غائبانه طور باندې، حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائیلی دی چه دهغوی مدد کوی حالانکه هغوی ئې لیدلی نه وی، بې شکه الله تعالی قوت والا او زبردست دې، هغه ته د مدد حاجت نشته، مګر څوک چې مدد کوی نو هم هغه ته به ئې فائده وی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** أي الإشتغال فیها: په دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چې مال او اولاد فی نفسه خراب څیزونه نه دی خو په دې کښې انهماک، مشغولیدل، ناخوښه او منع دی

**قوله:** أي هی: په دې کښې اشاره ده چې فی إعجابها، دهی مبتدأ محذوف خبر دې.

**قوله:** الزراع: په دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چې کفار د کافر په معنی زارع جمع ده، حضرت ابن مسعود رضی الله عنه فرمائی المراد بالکفار الزراع زهری وائی چې عرب زارع ته کافر وائی، ځکه چې هغه تخم لره په خاورو کښې پټوی، یکفُرعنی یستر،

**قوله:** التمتع فیها: د دې اضافې مقصد دې خبرې ته اشاره ده چې ما الحیوة الدنیا په حذف د مضاف سره دې چې د متاع الغرور حمل په حیوة الدنیا باندې اوشی.

**قوله:** والعرض السعة: دا ددې سوال جواب دې چې د جنت عرض یعنی د پلنوالی ذکر ئې اوکړو او د اوږدوالی ذکر ئې اونکړو؟

**جواب:** د جواب ماحصل دا دې چې دلته د العرض نه مراد پلنوالې نه دې کوم چې د اوږدوالې مقابل دې، بلکه مطلقا وسعت مراد دې، چې په هغې کښې اوږدالې او پلنوالی دواړه شامل دی.

**قوله:** ویقال في النعمة کذلك: یعنی څرنګه چه په نفس اومال کښې مصیبتونه او ازمائشونه د الله تعالی دطرفه راځی همدغسې نعمتونه او راحتونه هم دهغه په تقدیر او حکم سره راځی.

**قوله:** منه: أی من فضل الله.

**قوله** له وعيد شديد: په دې سره اشاره ده چه: الذين يبخلون الخ مبتداء ده ددې خبر لهم وعيد شديد محذوف دې.

**قوله** ومن يتول: من شرطيه دې ددې جواب محذوف دې او هغه فالوبال عليه دې.

**[اياتونه: ۲۶ - ۲۹]**

(ولقد أرسلنا نوحا وإبراهيم وجعلنا في ذريتهما النبوة والكتاب) يعني الكتب الأربعة التوراة والإنجيل والزبور والفرقان فإنها في ذرية إبراهيم (فمنهم مهتد وكثير منهم فاسقون) (ثم قفينا على آثارهم برسلنا وقفينا بعيسى بن مريم وآتيناه الإنجيل وجعلنا في قلوب الذين اتبعوه رأفة ورحمة ورهبانية) هي رفض النساء واتخاذ الصوامع (ابتدعوها) من قبل أنفسهم (ما كتبناها عليهم) ما أمرناهم بها (إلا) لكن فعلوها (ابتغاء رضوان) مرضاة (الله فما رعوها حق رعايتها) إذ تركها كثير منهم وكفروا بدين عيسى ودخلوا في دين ملكهم وبقي على دين عيسى كثير منهم فآمنوا بنبينا (فآتينا الذين آمنوا) به (منهم أجرهم وكثير منهم فاسقون) (يا أيها الذين آمنوا) بعيسى (اتقوا الله وآمنوا برسوله) محمد صلى الله عليه وسلم وعيسى (يؤتكم كفلين) نصيبين (من رحمته) لإيمانكم بالنبيين (ويجعل لكم نورا تمشون به) على الصراط (ويغفر لكم والله غفور رحيم) (لئلا يعلم) أي أعلمكم بذلك ليعلم (أهل الكتاب) التوراة الذين لم يؤمنوا بمحمد صلى الله عليه وسلم (أن) مخففة من الثقيلة واسمها ضمير الشأن والمعنى أنهم (لا يقدرون على شيء من فضل الله) خلاف ما في زعمهم أنهم أحباء الله وأهل رضوانه (وأن الفضل بيد الله يؤتيه) يعطيه (من يشاء) فآتى المؤمنين منهم أجرهم مرتين كما تقدم (والله ذو الفضل العظيم)

**ترجمه**: بې شکه مونږ نوح عليه السلام او ابراهيم عليه السلام لره پيغمبر جوړولو سره را اوليږل، مونږ ددې دواړو په اولاد کښې کتاب او نبوت جاري کړو يعنې څلور واړه کتابونه تورات، زبور، انجيل او قرآن، دا ټول د ابراهيم عليه السلام په اولاد کښې دی، په دوی کښې څوک لاره موندنکی وو او اکثر نافرمان وو، بيا هم مونږ هغوی پسې پړله پسې رسولان ليږل او د دوی نه پس مو عيسی ابن مريم عليه السلام اوليږلو، او هغوی ته مو انجيل ورکړو، او د هغه منونکو په زړه کښې مو رحمت او شفقت پيدا کړو او رهبانيت هغه ښځو لره پريښودل دی او خلوت خانې ته جوړول دی، نو هغوی په خپله ايجاد کړو مونږ په هغوی باندې واجب کړې نه وو، يعنې مونږ هغوی ته ددې حکم کړې نه وو، خو هغه خلقو رهبانيت لره د الله تعالی رضا لټولو د پاره اختيار کړو نو هغوی ددې پوره طريقې سره رعايت اونکړو، کله چه په دوی کښې ډيرو دا پريښودلو، او د عيسی عليه السلام د دين نه منکر شول، او د خپلو بادشاهګانو دين يې اختيار کړو، او ډير د عيسی عليه السلام په دين باندې قائم وو، بيا ئې زمونږ په نبی صلی الله عليه وسلم ايمان راوړو، نو په دوی کښې چې کومو په نبی عليه السلام باندې ايمان راوړو مونږ هغوی ته اجر ورکړو، او زيات تر په هغوی کښې نافرمان

وو، اې خلقو چې چا په عيسى عليه السلام باندې ايمان راوړې دې، دالله نه اويرېږئ، او د هغه په رسول محمد ﷺ باندې ايمان راوړو، الله به تاسو په خپل رحمت سره ستاسو په دوؤ نبيانو باندې د ايمان راوړلو د وجې دوه حصې (اجر) درکړي، او الله تعالى به تاسو ته داسې نور درکړي چې د هغې د وجې سره به تاسو په پل صراط باندې تيرېږئ، او هغه به تاسو ته مغفرت نصيب کړي، او هغه غفور او رحيم دې، او چې پته اولګي يعنى تاسو ئې د دې نه خبر کړئ، چې اهل کتاب ته يعنى تورات والو کومو چې په محمد ﷺ باندې ايمان رانوړو، او ان مخففه عن الثقيله دې، او ددې اسم ضمير شان دې، او معنى دا ده چې هغوى د الله د فضل نه په يو څيز باندې هم قادر نه دې، ددوى د ګمان په خلاف چې دوى د الله محبوب دى، او الله دوى نه راضى دې، بې شکه فضل د الله په قبضه کښې دې، چاته چې اوغواړي ورکړي، ددې اهل کتاب نه ايمان راوړونکو ته ئې به د دوؤ اجرونه ورکړل، څنګه چې مخکښې تير شوې دى، الله لوئې فضل والا دې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** ولقد ارسلنا نوحا وابرهيم: الآية، واؤ عاطفه دې، معطوف عليه لقد أرسلنا رسلنا دې، لام جواب قسم د پاره دې، او قسم يعنى اهٔ قسم محذوف دې، د اعتناء او د تعظيم د زياتوالى د پاره قسم مکرر راوړې شوې دې.

**سوال:** حضرت نوح عليه السلام او ابراهيم عليه السلام ولې خاص کړې شول؟

**جواب:** مذکوره دواړه حضراتو بطور خاص څکه ذکر شول چې ټول انبياء هم د ددوى د اولاد نه دى، حضرت نوح عليه السلام ابوالثانى دې، او ابراهيم عليه السلام ابو العرب والروم و بنى اسرائيل دې.

**قوله:** وجعلنا في ذريتهما: د مفعول ثانى مقدم په محل کښې دې، النبوة مفعول اول دې.

**قوله:** الكتب: په دې کښې اشاره ده چې په الكتاب کښې الف لام د جنس دې.

**قوله:** ورهبانية: رهبانيت د اکثرو په نيز د باب اشتعال د قاعدې مطابق منصوب دې، تقديرى عبارت دا دې ابتدعوا رهبانية ابتدعوها او بعضې حضراتو په رأفة باندې د عطف د وجې منصوب وئيلې دې و او ابتدعوها د رهبانية صفت دې.

**قوله:** لكن: د إلا تفسير په لكن سره کولو کښې ئې اشاره اوکړه چې دا مستثنى منقطع ده، او وئيلې شوى دى چې مستثنى متصل ده، تقديرى عبارت دا دې ما كتبناها عليهم لشيء من الأشياء إلا لابتغاء مرضات الله په دې حالت کښې عموم د احوال نه استثناء ده، او کَتَبَ په معنى د قَضى دې.

قوله: رهبانية: درهبانية معنى په عبادت او رياضت كښې د حد نه مبالغه كول دى، او د خلقو نه ځانله كيدو سره په ګوټ كښې كيناستل دى، د راء په ضمې سره هم وئيلې شوې دې، په دې صورت كښې د رهبان طرف ته نسبت وى، كوم چې د راهب جمع ده، لكه ركبان چه راكب جمع ده.

قوله: أي أعلمكم بذلك ليعلم: په دې كښې اشاره ده، چې په لِئَلا كښې لا زائده ده، د تاكيد د پاره،

قوله: والله ذوالفضل العظيم: الله مبتدأ، ذو الفضل د دې خبر، العظيم الفضل صفت دې

## پاره نمبر-٢٨ [قَدْ سَمِعَ اللّٰهُ]

## [٥٨] سورة المجادلة

### سورة المجادلة مدنية ثنتان وعشرون اية

سورة المجادلة مدنى دې، په دې كښې دوه ويشت آياتونه دى.

[اياتونه: ١-٦]

{قَدْ سَمِعَ اللّٰهُ قَوْلَ الَّتِي تُجَادِلُكَ} تراجعك ايها النبي {فِي زَوْجِهَا} الْمُظَاهِرِ مِنْهَا وَكَانَ قَالَ لَهَا أَنْتِ عَلَيَّ كَظَهْرِ أُمِّي وَقَدْ سَأَلَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذٰلِكَ فَأَجَابَهَا بِأَنَّهَا حَرُمَتْ عَلَيْهِ عَلَى مَا هُوَ الْمَعْهُود عِنْدَهُمْ مِنْ أَنَّ الظِّهَار مُوجِبه فُرْقَة مُؤَبَّدَة وَهِيَ خَوْلَة بِنْت ثَعْلَبَة وَهُوَ أَوْس بْن الصَّامِت {وَتَشْتَكِي إِلَى اللّٰهِ} وَحْدَتَهَا وَفَاقَتَهَا وَصِبْيَة صِغَارًا إِنْ ضَمَّتْهُمْ إِلَيْهِ ضَاعُوا أَوْ إِلَيْهَا جَاعُوا {وَاللّٰهُ يَسْمَعُ تَحَاوُرَكُمَا} تراجعكما {إِنَّ اللّٰهَ سَمِيعٌ بَصِيرٌ} عالم {الَّذِينَ يُظَاهِرُونَ} أَصْله يَتَظَهَّرُونَ أُدْغِمَتْ التَّاء فِي الظَّاء وَفِي قِرَاءَة بِأَلِفٍ بَيْنَ الظَّاء وَالْهَاء الْخَفِيفَة وَفِي أُخْرَى كَيُقَاتِلُونَ وَالْمَوْضِع الثَّانِي كَذٰلِكَ {مِنْكُمْ مِنْ نِسَائِهِمْ مَا هُنَّ أُمَّهَاتِهِمْ إِنْ أُمَّهَاتُهُمْ إِلَّا اللَّائِي} بِهَمْزَةٍ وَيَاء وَبِلَا يَاء {وَلَدْنَهُمْ وَإِنَّهُمْ} بِالظِّهَارِ {لَيَقُولُونَ مُنْكَرًا مِنَ الْقَوْلِ وَزُورًا} كَذِبًا {وَإِنَّ اللّٰهَ لَعَفُوٌّ غَفُورٌ} لِلْمُظَاهِرِ بِالْكَفَّارَةِ {وَالَّذِينَ يُظَاهِرُونَ مِنْ نِسَائِهِمْ ثُمَّ يَعُودُونَ لِمَا قَالُوا} أَيْ فِيهِ بِأَنْ يُخَالِفُوهُ بِإِمْسَاكِ الْمُظَاهِرِ مِنْهَا الَّذِي هُوَ خِلَاف مَقْصُود الظِّهَار مِنْ وَصْف الْمَرْأَة بِالتَّحْرِيمِ {فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ} أَيْ إِعْتَاقهَا عَلَيْهِ {مِنْ قَبْلِ أَنْ يَتَمَاسَّا} بِالْوَطْءِ {ذٰلِكُمْ تُوعَظُونَ بِهِ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ} {فَمَنْ لَمْ يَجِدْ} رَقَبَة {فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَتَمَاسَّا فَمَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ} أَيْ الصِّيَام {فَإِطْعَامُ سِتِّينَ مِسْكِينًا} عَلَيْهِ أَيْ مِنْ قَبْل أَنْ يَتَمَاسَّا حَمْلًا لِلْمُطْلَقِ عَلَى الْمُقَيَّد لِكُلِّ مِسْكِين مُدّ مِنْ غَالِب قُوت الْبَلَد {ذٰلِكَ} أَيْ التَّخْفِيف فِي الْكَفَّارَة {لِتُؤْمِنُوا بِاللّٰهِ وَرَسُولِهِ وَتِلْكَ} أَيْ الْأَحْكَام الْمَذْكُورَة {حُدُودُ اللّٰهِ وَلِلْكَافِرِينَ} بِهَا {عَذَابٌ أَلِيمٌ} مُؤْلِم {إِنَّ الَّذِينَ يُحَادُّونَ} يُخَالِفُونَ {اللّٰهَ وَرَسُولَهُ كُبِتُوا} أُذِلُّوا {كَمَا كُبِتَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ} فِي مُخَالَفَتهمْ رُسُلهمْ {وَقَدْ أَنْزَلْنَا آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ} دَالَّة عَلَى صِدْق الرَّسُول {وَلِلْكَافِرِينَ} بِالْآيَاتِ {عَذَابٌ مُهِينٌ} ذُو إِهَانَة {يَوْمَ يَبْعَثُهُمُ اللّٰهُ جَمِيعًا فَيُنَبِّئُهُمْ بِمَا عَمِلُوا أَحْصَاهُ اللّٰهُ وَنَسُوهُ وَاللّٰهُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ}

**ترجمه:** شروع کوم د الله په نوم سره چې ډير مهربانه او ډير رحم کولو والا دې، اې نبي ﷺ يقيناالله تعالى د هغه ښځې خبرې واوريدلې، چې کومې تا سره د خپل ظهارکونکى خاوند په باره کښې تکرار (بحث) کولو، او د هغې خاوند هغې ته وئيلې وو، أنت علىّ کظهر امي ته خما د مور د ملا په شان په ما حرامه ئې، او دحضور ﷺ نه دې باره کښې هغه ښځې تپوس اوکړو، نو حضور (ص) هغې ته د عرف مطابق جواب ورکړو، چې ته په هغه باندې حرامه ئې، ځنګه چې د هغوى دستور وو، ظهار به د دائمى جدائى موجب منلې شو، او هغه خوله بنت ثعلبه وه، او د هغه خاوند اوس بن صامت وو، او الله تعالى ته ئې د خپل ځانلوالى، او د خپلې لوړې، او د ماشومانو شکايت کولو، که دا بچى خپل خاوند ته ورکړى نو د ضائع کيدو ويره وه، او که ځان سره ئې اوساتى نو د لوږې نه د مر کيدو ويره وه، او الله تعالى ستاسو د دواړو سوال او جواب اوريدلو، بې شکه الله تعالى اوريدو او کتلو والا دې، په تاسو کښې چې کوم خلق خپلو ښځو سره ظهار اوکړى، د يظهرون اصل يتظهرون دې، تآء په ظاء کښې ادغام کړې شوه، او په يو قراءت کښې د ظاء او هاء خفيفه په مينځ کښې الف سره، او په بل قراءت کښې يظاهرون د يقاتلون په وزن باندې دې، په نورو ځايونو کښې هم داسې ده، هغوى په اصل کښې ددوى ميندې نه جوړيږى، د هغوى ميندې خو هغه دى د چا نه چې دوى پيدا شوى دى، واللائى، همزه، او ياء او بغير د ياء نه دې، او کوم خلق چې ظهار کوى هغوى يو نامعقول او دروغ خبره کوى، او بې شکه الله تعالى مظاهر لره د کفارې په ذريعه بخښونکې او معاف کونکې دې، او کوم خلق چې د خپلو بيبيانو سره ظهار کوى، بيا په ظهار کښې د خپل قول نه رجوع کول غواړى، يعنى د ظهار په باره کښې وئيلې شوې خبرو نه رجوع کول غواړى، په داسې طريقه چې د وئيلې شوې خبرې خلاف کول غواړى، دا ظاهر کړې شوې ښځې په ساتلو سره کوم چې د ظهار د مقصد خلاف دى، او هغه مقصد ښځو لره د حرمت په وصف سره متصف کول دى، نو په هغه باندې ښځې ته لاس لګولو نه (جماع کولو نه) مخکښې يو غلام آزادول دى، په دې حکم (کفارې) سره تاسو ته نصيحت کيږى، او الله تعالى ستاسو د اعمالو نه خبردار دې، خو چې کوم کس غلام اونه مومى نو د يو ځائ کيدلو نه مخکښې دې مسلسل دوه مياشتې روژې اونيسى، او کوم کس چې د روژو هم طاقت نه لرى نو په هغه باندې د يو ځائ کيدلو نه مخکښې شپيته مسکينانو باندې خوراک کول دى، مطلق لره مقيد باندې محمول کولو سره، هر يو مسکين ته د يو مُد (د ښار د غالب خوراک په اعتبار سره) او په کفاره کښې دا اسانتيا ځکه دې د پاره چې تاسو په الله او د هغه په رسول باندې ايمان راوړئ، دا يعنى مذکوره احکام د الله بيان کړى حدود دى، او ددې احکامو د منکرينو د پاره دردناک عذاب دې، بې شکه کوم خلق چې د الله او د هغه د رسول مخالفت کوى هغوى به ذليله کړې شى، لکه ځنګه چه ددوى نه مخکښې خلق د خپلو رسولانو د مخالفت د

وجې نه ذلیله کړې شوی وو، او بې شکه مونږ واضحه ایتونه نازل کړې دی، کوم چې د رسول په صداقت باندې دلالت کوی، او ددې ایتونو انکار کوونکو د پاره سپکوونکې عذاب دې، په کومه ورځ چې الله تعالی دوی راپورته کړی ییا به دوی د خپلو کړې شوو عملونو په باره کښې خبر کړی، کوم چې الله تعالی شمیر کړې دی، او کوم چې دوی هیر کړې وو، او الله تعالی د هر څیز نه خبردار دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

سورت مجادله د تعدادِ سورت په اعتبار سره د د قرآن مجید د دویم نصف اول سورت دې، په قرآن کښې تول یو سل څورلس سورتونه دی، دا اته پنځوستسم(٥٨) سورت دې، ددې سورت خصوصیت دا دې چې په دې کښې یو ایت داسې نشته چې په هغې کښې یو یا دوه درې ځل د الله تعالی نوم اخستلې شوې نه وی، بلکه پنځه دیرش(٣٥) ځله په د بکښې د الله تعالی نوم دې.

**قوله**: قدسمع الله: أي أجاب الله قد د تحقیق د پاره د ې.

**قوله**: في زوجها: أي في شأن زوجها

**قوله**: لما قالوا: أي لقولهم، ما مصدریه ده.

**قوله**: فتحریر رقبة: أي إعتاقها علیه أي إعتاقها، د تحریر رقبة تفسیر د معنی د بیان د پاره دې، تجریر رقبة دا ترکیب اضافی مبتدأ ده، او علیه ددې خبر، ښه به وه چې مفسر د علیه په ځائې علیهم وئیلې وو، ځکه چې دا جمله د والذین یظهرون خبر دې، لهذا د خبر هم جمع کیدل ضروری دی، فتحریر رقبة باندې فاء ځکه داخله ده چې مبتدأ د شرط معنی لره متضمن ده.

**قوله**: بالوطي: د أن یتماسا تفسیر په وطی سره د امام شافعی رحمه الله د مسلک مطابق دې، د امام ابوحنیفه (رح) په نیز دواعی د وطی هم د وطی په معنی کښې دې.

**قوله**: حملاً للمطلق علی المقید: دا تفسیر د امام شافعی رحمه الله د مسلک مطابق دې، مطلب دا دې چې ځنګه غلام ازادول او روژې نیول د جماع نه مخکښې ضروری دی، دغه شان إطعام هم د جماع نه مخکښې کول پکار دی، په اطعام کښې اګرچې أن یتماسا قید نشته، خو دا هم دا په تحریر رقبة وصیام شهرین باندې قیاس کولو د وجې د قبل أن یتماسا قید سره مقید دې.

**قوله**: لکل مسکین مُدٌ غالب قوت البلد: دا تفسیر هم د امام شافعی د مسلک مطابق دې، ځکه چې د هغه په نیز هر یو مسکین ته یو مُد ورکول ضروری دی، که غنم وی یا جوار یا

كهجوري. د امام صاحب په نيز كه غنم وى نو نيم صاع او كه جوار وى نو يو صاع.

**قوله** اي التخفيف في الكفارة: په كفاره د ظهار كنبې چې كوم د دريو څيزونو په مينځ كنبې اختيار وركړې شوې دې، دا هم د تخفيف يو قسم او اسانتيا ده، ځكه كه يو قسم څيز مقرر شوې وو، نو يو قسم زحمت به وو.

**قوله** كُبِتوا: يقيني الوقوع د وجې د ماضي صيغه استعمال شوې ده.

**[اياتونه: ٧-١٢]**

{أَلَمْ تَرَ} تعلم {أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ مَا يَكُونُ مِنْ نَجْوَى ثلاثة إلا هو رابعهم} بعلمه {ولا خمسة إلا هو سادسهم ولا أدنى من ذلك ولا أكثر إلا هو معهم أين ما كانوا ثم ينبئهم بما عملوا يوم القيامة إن الله بكل شيء عليم} {أَلَمْ تَرَ} تنظر {إِلَى الَّذِينَ نُهُوا عَنِ النَّجْوَى ثُمَّ يَعُودُونَ لِمَا نُهُوا عَنْهُ وَيَتَنَاجَوْنَ بِالْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ وَمَعْصِيَةِ الرَّسُولِ} هُمُ الْيَهُود نَهَاهُمُ النَّبِيّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَمَّا كَانُوا يَفْعَلُونَ مِنْ تَنَاجِيهِمْ أَيْ تَحَدُّثِهِمْ سِرًّا نَاظِرِينَ إِلَى الْمُؤْمِنِينَ لِيُوقِعُوا فِي قُلُوبِهِمُ الرِّيبَة {وَإِذَا جاءوك حيوك} ايها النبي {بِمَا لَمْ يُحَيِّكَ بِهِ اللَّهُ} وَهُوَ قَوْلهمْ السَّام عَلَيْك أَيْ الْمَوْت {وَيَقُولُونَ فِي أَنْفُسِهِمْ لولا} هلا {يعذبنا الله بما نقول} مِنَ التَّحِيَّة وَأَنَّهُ لَيْسَ بِنَبِيّ إِنْ كَانَ نَبِيًّا {حَسْبُهُمْ جَهَنَّمُ يَصْلَوْنَهَا فَبِئْسَ الْمَصِيرُ} هي {يا أيها الذين آمنوا إذا تناجيتم فلا تتناجوا بالإثم والعدوان ومعصية الرسول وتناجوا بالبر والتقوى واتقوا الله الذي إليه تحشرون} {إِنَّمَا النَّجْوَى} بِالْإِثْمِ وَنَحْوه {مِنَ الشَّيْطَانِ} بِغُرُورِهِ {لِيَحْزُنَ الَّذِينَ آمَنُوا وَلَيْسَ} هُوَ {بِضَارِّهِمْ شَيْئًا إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ} اي إرادته {وعلى الله فليتوكل المؤمنون} {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا قِيلَ لَكُمْ تَفَسَّحُوا} تَوَسَّعُوا {فِي الْمَجْلِسِ} مَجْلِس النَّبِيّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالذِّكْر حَتَّى يَجْلِس مَنْ جَاءَكُمْ وَفِي قِرَاءَة الْمَجَالِس {فَافْسَحُوا يَفْسَحِ اللَّهُ لَكُمْ} فِي الْجَنَّة {وَإِذَا قِيلَ انْشُزُوا} قُومُوا إِلَى الصَّلَاة وَغَيْرهَا مِنَ الْخَيْرَات {فَانْشُزُوا} وَفِي قِرَاءَة بِضَمِّ الشِّين فِيهِمَا {يَرْفَعِ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا مِنْكُمْ} بِالطَّاعَةِ فِي ذَلِكَ {وَ} يَرْفَع {الذين أوتوا العلم درجات} فِي الْجَنَّة {والله بما تعملون خبير} {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نَاجَيْتُمُ الرَّسُولَ} أَرَدْتُمْ مُنَاجَاته {فَقَدِّمُوا بَيْنَ يَدَيْ نَجْوَاكُمْ} قَبْلهَا {صدقة ذلك خير لكم وأطهر} لِذُنُوبِكُمْ {فَإِنْ لَمْ تَجِدُوا} مَا تَتَصَدَّقُونَ بِهِ {فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ} لِمُنَاجَاتِكُمْ {رَحِيمٌ} بِكُمْ يَعْنِي فَلَا عَلَيْكُمْ فِي الْمُنَاجَاة مِنْ غَيْر صَدَقَة ثُمَّ نُسِخَ ذَلِكَ بِقَوْلِهِ {أَأَشْفَقْتُمْ} بِتَحْقِيقِ الْهَمْزَتَيْنِ وَإِبْدَال الثَّانِيَة أَلِفًا وَتَسْهِيلهَا وَإِدْخَال ألف بين المسهلة والأخرى وتركه اي خِفْتُمْ مِنْ {أَنْ تُقَدِّمُوا بَيْنَ يَدَيْ نَجْوَاكُمْ صَدَقَاتٍ} لِفَقْرٍ {فَإِذْ لَمْ تَفْعَلُوا} الصَّدَقَة {وَتَابَ اللَّهُ عَلَيْكُمْ} رَجَعَ بِكُمْ عَنْهَا {فَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَآتُوا الزَّكَاةَ وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ} أَيْ دَاوِمُوا على ذلك {والله خبير بما تعملون}

**ترجمه:** آيا تا په دې باندې غور كړې نه دې چې په اسمانونو او زمكه كنبې چې څه دي ټول د الله تعالى دي، ؟ د دريو كسانو پټې خبرې داسې نه دي چې څلورم د علم په اعتبار سره الله نه وي، او

نه د پنځو کسانو پټې خبرې، خو دا چې شپږم به دوی کښې الله تعالی نه وی، او نه ددې نه کم او نه ددې نه زیات، خو دا چې الله دوی سره وی، کوم ځائې کښې چې دوی وی، بیا به دې ټولو ته د قیامت په ورځ ددوی کړې شوی عملونه اوښائی، الله تعالی په هر څیز باندې خبردار دې، آیا تا هغه خلقو ته اونه کتل څوک چې د پټو خبرو (جرګو) نه منع کړې شوې وو، بیا هم دوی هغه منع کړې شوې کار کوی، او په خپل مینځ کښې د ګناه، د ظلم او زیاتئ، او د پیغمبر د نافرمانئ پټې خبرې کوی.او هغه یهود وو، حضور ﷺ دوی د پټو خبرو (جرګو) نه منع کړی وو، یعنی مومنانو ته په کتلو سره به ئې پټې پټې خبرې کولې چې مومنان په شک کښې واچوی، او اې نبی ﷺ چې کله دوی تاله راشی، نو تاته په هغه لفظونو سره سلام کوی په کوم لفظونو چې الله نه دې کړې. او ددوی هغه لفظ السام علیك دې یعنی په تاسو دې مرګ وی. او دوی په خپل مینځ کښې وائی چې الله تعالی مونږ ته په دې سلام باندې کوم چې مونږ کوو، سزا ولې نه راکوی، او دا چې دا نبی نه دې، که دې نبی وو نو الله تعالی به خامخا مونږ په عذاب کښې ګرفتار کړی وو. د دوی د پاره جهنم کافی دې کوم ته به چه دوی داخلیږی، نو هغه ډیر خراب ځائې د اوسیدو دې، اې مومنانو چې کله تاسو پټې خبرې کوئ، نو دا خبرې دې د ګناه، ظلم او زیاتی او د پیغمبر د نافرمانئ نه وی، بلکه دنیکئ او د پرهیزګارئ خبرې کوئ، او د الله نه ویریږئ چاته چې به تاسو ټول جمع کیږئ، د ګناه وغیره پټې خبرې شیطانی کارونه دی، د هغه فریب د وجه نه چې په هغې سره اهل ایمان نه خفګان رسی، اګرچه د الله د اجازت او ارادې نه بغیر د څوک هم هغوی ته نقصان رسولې نشی، او ایمان والو له پکار دی چې په الله تعالی باندې بهروسه اوساتی، اې ایمان والو، چې کله تاسو ته اووئیلې شی چې په مجلس کښې ځائې فراخه کړئ، د حضور(ص) په مجلس کښې یا د ذکر په مجلس کښې، چې روستو راتلونکې هم تاسو سره کینی، او په یو قرات کښې د مجلس په ځائې مجالس استعمال شوې دې. نو ځائې پریږدئ، نو الله تعالی به ستاسو د پاره په جنت کښې فراخی پیدا کړی، او چې کله تاسو ته اووئیلې شی، چې د مونځ وغیره یا د یو بل نیک کار کولو د پاره اودریږئ، نو اودریږئ، او په یو قرات کښې فانشزوا کښې دواړه یعنی شین او زاء په ضمې سره دې، او الله تعالی به په تاسو کښې د ایمان والو ددې حکم د اطاعت د وجې او د هغه خلقو چاته چې علم ورکړې شوې دې، په جنت کښې درجات اوچت کړی، او څه چې تاسو کوئ الله تعالی د هغې نه پوره خبردار دې، اې ایمان والو، چې کله تاسو رسول ﷺ سره پټې خبرې په تنهائې کښې مشوره کول غوارئ نو د خپلو پټو خبرو کولو نه مخکښې فقیرانو ته څه صدقه ورکړئ، د استاسو په حق کښې بهتره ده، ستاسو ګناهونو د پاره پاک والې دې، خو که د صدقه کولو څیز نه مومئ نو الله تعالی ستاسو پټو خبرو د پاره بخښونکې او مهربانه دې، یعنی د صدقې نه بغیر ستاسو په پټو خبرو کښې څه حرج نشته، بیا دا حکم د الله تعالی حکم أأشفقتم سره منسوخ شو، د دواړو همزو تحقیق او د دویم الف بدلولو سره، او دویم تسهیل سره، او د مسهله او د غیر مسهله په مینځ

کښې الف داخلولو سره او نه داخلولو سره، آيا تاسو د خپل پټو خبرو نه مخکښې د فقيرانو د پاره صدقه ورکولو نه اويريدئ، نو چې کله تاسو دا اونکړل يعنې صدقه مو ورنکړله او الله تعالى هم تاسو معاف کړئ، او په تاسو باندې ئې د هغې د وجوب نه رجوع اوکړه، نو اوس مونځونو لره قائم کړئ، او زکواة ادا کوئ، او د الله تعالى او د هغه د رسول اطاعت کوئ، يعنې د هغې پابندی کوئ، څه چې تاسو کوئ الله تعالى د هغې نه خبردار دې.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: ألم تر تعلم: دا تفسير په تعلم سره کولو کښې ئې اشاره اوکړه چې د رؤيت نه رؤيت قلبى مراد دې.

**قوله**: مـا يكون: ما نافيه ده، او يكون تامه ده، يعنې يوجد و يقع، من زائده دې، نجوى مصدر دې، د تناجى په معنى کښې دې، او د يكون فاعل دې، جمله ما يكون مستانفه د ماقبل د تاكيد د پاره ده، کوم چې د الله تعالى د وسعت علم تاكيد کوى، النجوى: التكلم سرًا پټې پټې خبرې کول، په نجوى ثلاثة کښې اضافة المصدر إلى الفاعل دې، دلته د إلا نه پس واقع کيدونکې جملې مستثنى متصل کيدو د وجې نه په محل د نصب کښې دی، او د عموم حال نه مستثنى دې، أى ما يوجد من هذه الأشياء إلا فى حال من هذه الأحوال.

**قوله**: الم تر الى الذين نهوا الخ: دا آيت د يهود او منافقينو په باره کښې نازل شوې دې.

**قوله**: معصيت الرسول: معصيت دلته او واپسې په تاء مجروره (اوږده) سره ده ليکلې شوې دی، په حالت د وقف کښې بعضې قراء په ها باندې وقف کوی، او بعضې په تاء باندې، خو د وصل په صورت کښې تاء باندې متفق دې.

**قوله**: انشزوا: تاسو پاڅئ، (ض، ن) امر جمع مذکر حاضر.

**[اياتونه: ١٤ - ٢٢]**

(أَلَمْ تَرَ) تنظر (إِلَى الَّذِينَ تَوَلَّوْا) هم المنافقون (قَوْمًا) هم اليهود (غَضِبَ اللَّهُ عَلَيْهِم مَّا هُم) أي المنافقون (مِّنكُمْ) من المؤمنين (وَلَا مِنْهُمْ) من اليهود بل هم مذبذبون (وَيَحْلِفُونَ عَلَى الْكَذِبِ) أي قولهم إنهم مؤمنون (وَهُمْ يَعْلَمُونَ) أنهم كاذبون فيه (أَعَدَّ اللَّهُ لَهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا إِنَّهُمْ سَاءَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ) من المعاصي (اتَّخَذُوا أَيْمَانَهُمْ جُنَّةً) سترا على أنفسهم وأموالهم (فَصَدُّوا) بها المؤمنين (عَن سَبِيلِ اللَّهِ) أي الجهاد فيهم بقتلهم وأخذ أموالهم (فَلَهُمْ عَذَابٌ مُّهِينٌ) ذو إهانة (لَّن تُغْنِيَ عَنْهُمْ أَمْوَالُهُمْ وَلَا أَوْلَادُهُم مِّنَ اللَّهِ) من عذابه (شَيْئًا) من الإغناء (أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ) اذكر (يَوْمَ يَبْعَثُهُمُ اللَّهُ جَمِيعًا فَيَحْلِفُونَ لَهُ) أنهم مؤمنون (كَمَا يَحْلِفُونَ لَكُمْ وَيَحْسَبُونَ أَنَّهُمْ عَلَىٰ شَيْءٍ) من نفع حلفهم في الآخرة كالدنيا (أَلَا إِنَّهُمْ هُمُ الْكَاذِبُونَ) (اسْتَحْوَذَ) استولى (عَلَيْهِمُ الشَّيْطَانُ) بطاعتهم له (فَأَنسَاهُمْ ذِكْرَ اللَّهِ أُولَٰئِكَ حِزْبُ

الشيطان﴾ اتباعه ﴿أَلَا إِنَّ حِزْبَ الشَّيْطَانِ هُمُ الْخَاسِرُونَ﴾ ﴿إِنَّ الَّذِينَ يُحَادُّونَ﴾ يُخَالِفُونَ ﴿اللَّهَ وَرَسُولَهُ أُولَٰئِكَ فِي الْأَذَلِّينَ﴾ الْمَغْلُوبِينَ ﴿كَتَبَ اللَّهُ﴾ فِي اللَّوْحِ الْمَحْفُوظِ أَوْ قَضَى ﴿لَأَغْلِبَنَّ أَنَا وَرُسُلِي﴾ بالحجة او السيف ﴿إِنَّ اللَّهَ قَوِيٌّ عَزِيزٌ﴾ ﴿لَا تَجِدُ قَوْمًا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ يُوَادُّونَ﴾ يُصَادِقُونَ ﴿مَنْ حَادَّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَوْ كَانُوا﴾ أَيِ الْمُحَادُّونَ ﴿آبَاءَهُمْ﴾ أَيِ الْمُؤْمِنِينَ ﴿أَوْ أَبْنَاءَهُمْ أَوْ إِخْوَانَهُمْ أَوْ عَشِيرَتَهُمْ﴾ بَلْ يَقْصِدُونَهُمْ بِالسُّوءِ وَيُقَاتِلُونَهُمْ عَلَى الْإِيمَانِ كَمَا وَقَعَ لِجَمَاعَةٍ مِنَ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ ﴿أُولَٰئِكَ﴾ الَّذِينَ لَا يُوَادُّونَهُمْ ﴿كَتَبَ﴾ أَثْبَتَ ﴿فِي قُلُوبِهِمُ الْإِيمَانَ وَأَيَّدَهُمْ بِرُوحٍ﴾ بِنُورٍ ﴿مِنْهُ﴾ تَعَالَى ﴿وَيُدْخِلُهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ﴾ بِطَاعَتِهِ ﴿وَرَضُوا عَنْهُ﴾ بِثَوَابِهِ ﴿أُولَٰئِكَ حِزْبُ اللَّهِ﴾ يَتَّبِعُونَ أَمْرَهُ وَيَجْتَنِبُونَ نَهْيَهُ ﴿أَلَا إِنَّ حِزْبَ اللَّهِ هُمُ الْمُفْلِحُونَ﴾ الْفَائِزُونَ

**ترجمه**: آيا تا هغه خلق منافقانو لره اوليدل،؟ چا چې هغه قوم سره دوستي اوکړه په چا باندې چې د الله تعالى عضب نازل شوې دې، او هغه يهود دي، دا منافقان نه ستاسو نه دي، يعنى د مومنانو نه، او نه د هغوى نه دي، يعنى د يهوديانو نه، بلکه په مينځ کښې دي، دروغ قسمونه خوري، يعنى په دې خبره باندې چې دوى مسلمانان دي، حالانکه هغوى پخپله هم علم لري چه دوى په خپلو قسمونو کښې دروغژن دي الله دوى د پاره سخت عذاب تيار کړې دې بې شکه دوى چې کوم نافرمانى کوى نو ډير بد کوى.، دې خلقو خپلو قسمونو لره ډهال جوړ کړې دې، يعنى د خپل ځان او مال د پاره ئې ډهال جوړ کړې دې، نو د قسمونو په ذريعه مومنان د الله د لارې يعنى د خپل ځان خلاف د جهاد کولو نه يعنى د خپل ځان د قتل کولو، او خپل مال د اخستلو نه بچ کوى، نو ددوى د پاره رسوا کونکې عذاب دې، ددوى مالونه او ددوى اولاد به د الله د عذاب نه بچ کولو کښې هيڅ پکار به رانشي، يعنى د إغناء نه دې، دا خو جهنميان دي، په دې کښې به هميشه اوسيږى، او هغه ورځ ياد کړه، په کومه به ورځ چې الله تعالى دوى راپاسوى، نو د هغه په مخکښې به هم قسمونه خورى، چه هغه مؤمن دې لکه څنګه چه ستاسو په مخکښې قسمونه خورى او ګنړى چه د دنيا په شان په آخرت کښې به هم ددوى قسمونه دوى ته څه فائده ورنکړى، يقين اوساته چې هم دا دروغژن دي، ددوى د شيطان اتباع کولو د وجې نه. شيطان په دوى باندې غلبه حاصله کړې ده، او ددوى نه ئې د الله ذکر هير کړې دې، دا شيطانى لښکر دې، د هغه متبعين دى، په دې کښې هيڅ شک نشته چې هم شيطانى لښکر په تاوان کښې دې، کوم خلق چې د الله او د هغه د رسول مخالفت کوى هم دا خلق د مغلوبينو نه دي، الله تعالى لوح محفوظ کښې ليکلې دې يا فيصله ئې کړې ده، چې بې شکه څه او څما رسولان به د دليل په ذريعه يا د تورې په ذريعه غالب وى، بې شکه الله تعالى ډير زور آور او غالب دې، په الله باندې او د قيامت په ورځ ايمان راوړونکى خلقو لره به، چرې هم د الله او د هغه رسول مخالفت کونکو سره محبت کونکى اونه مومې يعنى رشتونې دوستى کولو والا،

اګر که هغه مخالفت کونکی ددې مومنانو پلار نیکه یا ځامن یا روریان یا ددوی خاندان والا ولې نه وی، بلکه دوی ته تکلیف رسول او د ایمان د خاطره دوی سره د قتال قصد ساتی، څنګه چې د صحابه یوجماعت سره دا واقعه راغلې وه، هم دا خلق چې کوم دوی سره رشتونی دوستی نه ساتی، هم دا هغه خلق دی چې د هغوی په زړونو کښې الله تعالی ایمان ثابت کړې دې، او چې د هغوی تائید الله تعالی په خپل نور سره کړې دې، او څوک چې به داسې جنتونو ته داخل کړی چې د هغې لاندې به نهرونه روان وی، په هغې کښې به اوسیږی، او الله تعالی دوی نه د دوی د اطاعت د وجې نه راضی دې، او دوی د الله د ثواب نه خوشحاله دی، دا د الله لښکر دې، کوم چې د هغه د حکم اتباع کوی، او د هغه د منع کیږې شوې څیزونو نه منع کوی، خبردار! یقیناً د الله تعالی ډله هم کامیاب خلق دی.

**تحقیق وترکیب وتسهیل وتفسیری فوائد:**

**قوله:** الم تر الی الذین تولوا قوما غضب الله علیهم: دا کلام مستانف دې، د منافقانو په حالت باندې د حیرانتیا د اظهار د پاره راوړلې شوې دې، چا چې به د یهودو سره دوستی کوله، او د هغوی خیرخواهی به ئې کوله، د مسلمانانو رازونه به ئې یهودو ته رسول، دا کسان نه مسلمانان وو او نه کافران، بلکه ددوی یو سر د اسلام سره ملاؤ وو، او بل ئې کفر سره، څکه چې منافقان په ښکاره مسلمانان وو او په باطن کښې کافران، لکه چې د دوو کشتو سواره، چې د هغوی هلاکت یقینی وی.

**قوله:** تولوا: تولی نه مضارع جمع مذکر غائب، داخلق دوستی کوی.

**قوله:** ما هم منکم ولا منهم: دا جمله یا خو مستانفه ده، یا د تولوا د فاعل نه حال دې.

**قوله:** وهم یعلمون: دا جمله د یحلفون د ضمیر نه حال دې.

**قوله:** ایمانهم جنة: دا دواړه د اتخذوا مفعول دی، مطلب دا چې دې منافقانو خپل قسمونو لره د خپل مال د پاره او د خپل ځان د پاره ډهال او د حفاظت سبب جوړ دې.

**قوله:** من عذابه: دا حذف د مضاف طرف ته اشاره ده.

**قوله:** من الاغناء: هغه نه پس من الاغناء محذوف منلو سره ئې اشاره اوکړه، چې دا د لن تغنی مفعول مطلق دې، ای لن تغنی إغناء ما.

**قوله:** ویحسبون: د یحلفون د ضمیرِ فاعل نه حال دې.

**قوله:** استحوذ: دا د اصل مطابق فعل ماضی ده، ای غلب واستولی هغه مسلط شو، هغه قابو کړو استحواذ نه دې بروزن استصوابْ او دا خلاف القیاس دې، څکه چې قیاس استحاذ دې. لکه استحاذ او استطاعه واؤ په الف سره بدلولو سره.

**قوله** لاغلبن: دا د اقسم فعل محذوف جواب هم كيدې شي، هم په دې وجه نه پرې لام قسم داخل شوې دې، او دا هم كيدې شي چې كتب الله د قسم په معنى كښې وى، او لاغلبن جواب قسم وى.

## [٥٩] سورة الحشر

### سورة الحشر مدنية اربع وعشرون اية

سورة الحشر مدنى دې، په دې كښې څليريشت آياتونه دى.

### [اياتوله: ١ - ١٠]

﴿سَبَّحَ لِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ﴾ أي نزهه فاللام مزيدة وفي الإتيان بما تغليب للأكثر ﴿وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ﴾ في ملكه وصنعه ﴿هُوَ الَّذِي أَخْرَجَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ﴾ هم بنو النضير من اليهود ﴿مِنْ دِيَارِهِمْ﴾ مساكنهم بالمدينة ﴿لِأَوَّلِ الْحَشْرِ﴾ هو حشرهم إلى الشام وآخره أن أجلاهم عمر في خلافته إلى خيبر ﴿مَا ظَنَنْتُمْ﴾ أيها المؤمنون ﴿أَنْ يَخْرُجُوا وَظَنُّوا أَنَّهُمْ مَانِعَتُهُمْ﴾ خبر أن ﴿حُصُونُهُمْ﴾ فاعله تم به الخبر ﴿مِنَ اللَّهِ﴾ من عذابه ﴿فَأَتَاهُمُ اللَّهُ﴾ أمره وعذابه ﴿مِنْ حَيْثُ لَمْ يَحْتَسِبُوا﴾ لم يخطر ببالهم من جهة المؤمنين ﴿وَقَذَفَ﴾ ألقى ﴿فِي قُلُوبِهِمُ الرُّعْبَ﴾ بسكون العين وضمها الخوف بقتل سيدهم كعب بن الأشرف ﴿يُخْرِبُونَ﴾ بالتشديد والتخفيف من أخرب ﴿بُيُوتَهُمْ﴾ لينقلوا ما استحسنوه منها من خشب وغيره ﴿بِأَيْدِيهِمْ وَأَيْدِي الْمُؤْمِنِينَ فَاعْتَبِرُوا يَا أُولِي الْأَبْصَارِ﴾ ﴿وَلَوْلَا أَنْ كَتَبَ اللَّهُ﴾ قضى ﴿عَلَيْهِمُ الْجَلَاءَ﴾ الخروج من الوطن ﴿لَعَذَّبَهُمْ فِي الدُّنْيَا﴾ بالقتل والسبي كما فعل بقريظة من اليهود ﴿وَلَهُمْ فِي الْآخِرَةِ عَذَابُ النَّارِ﴾ ﴿ذَلِكَ بِأَنَّهُمْ شَاقُّوا﴾ خالفوا ﴿اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَمَنْ يُشَاقِّ اللَّهَ فَإِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ﴾ له ﴿مَا قَطَعْتُمْ﴾ يا مسلمون ﴿مِنْ لِينَةٍ﴾ نخلة ﴿أَوْ تَرَكْتُمُوهَا قَائِمَةً عَلَى أُصُولِهَا فَبِإِذْنِ اللَّهِ﴾ أي خيركم في ذلك ﴿وَلِيُخْزِيَ﴾ بالإذن في القطع ﴿الْفَاسِقِينَ﴾ اليهود في اعتراضهم أن قطع الشجر المثمر فساد ﴿وَمَا أَفَاءَ﴾ رد ﴿اللَّهُ عَلَى رَسُولِهِ مِنْهُمْ فَمَا أَوْجَفْتُمْ﴾ أسرعتم يا مسلمون ﴿عَلَيْهِ مِنْ﴾ زائدة ﴿خَيْلٍ وَلَا رِكَابٍ﴾ إبل أي لم تقاسوا فيه مشقة ﴿وَلَكِنَّ اللَّهَ يُسَلِّطُ رُسُلَهُ عَلَى مَنْ يَشَاءُ وَاللَّهُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾ فلا حق لكم فيه ويختص به النبي صلى الله عليه وسلم ومن ذكر معه في الآية الثانية من الأصناف الأربعة على ما كان يقسمه من أن لكل منهم خمس الخمس وله صلى الله عليه وسلم الباقي يفعل فيه ما يشاء فأعطى منه المهاجرين وثلاثة من الأنصار لفقرهم ﴿مَا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَى رَسُولِهِ مِنْ أَهْلِ الْقُرَى﴾ كالصفراء ووادي القرى وينبع ﴿فَلِلَّهِ﴾ يأمر فيه بما يشاء ﴿وَلِلرَّسُولِ وَلِذِي﴾ صاحب ﴿الْقُرْبَى﴾ قرابة النبي من بني هاشم وبني المطلب ﴿وَالْيَتَامَى﴾ أطفال المسلمين الذين هلكت آباؤهم وهم فقراء ﴿وَالْمَسَاكِينِ﴾ ذوي الحاجة من المسلمين ﴿وَابْنِ السَّبِيلِ﴾ المنقطع في سفره من المسلمين أي يستحقه النبي صلى الله عليه وسلم والأصناف الأربعة على ما كان يقسمه من أن لكل من الأربعة خمس الخمس وله الباقي ﴿كَيْ لَا﴾ كي بمعنى اللام وأن مقدرة بعدها ﴿يَكُونَ﴾ الفيء علة لقسمه

كذلك (دُولَةً) معداولا (بين الأغنياء منكم وما آتاكم) اعطاكم (الرسول) من الفيء وغيره (فخذوه وما نهاكم عنه فانتهوا واتقوا الله إن الله شديد العقاب) (لِلْفُقَرَاءِ) مُتَعَلِّق بِمَحْذُوفٍ أي اعْجَبُوا (الْمُهَاجِرِينَ الَّذِينَ أُخْرِجُوا مِنْ دِيَارِهِمْ وَأَمْوَالِهِمْ يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِنَ اللَّهِ وَرِضْوَانًا وَيَنْصُرُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ أُولَئِكَ هُمُ الصادقون) في إيمانهم (والذين تبوؤا الدَّار) أي الْمَدِينَة (وَالْإِيمَانَ) أي أَلِفُوهُ وَهُمُ الأنصار (مِنْ قَبْلِهِمْ يُحِبُّونَ مَنْ هَاجَرَ إِلَيْهِمْ وَلَا يَجِدُونَ فِي صُدُورِهِمْ حَاجَةً) حسدا (مِمَّا أُوتُوا) أي آتى النَّبِيّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُهَاجِرِينَ مِنْ أَمْوَال بَنِي النَّضِير الْمُخْتَصَّة بِهِمْ (وَيُؤْثِرُونَ عَلَى أَنْفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ) حَاجَة إِلَى مَا يُؤْثِرُونَ بِهِ (وَمَنْ يوق شح نفسه) حرصها على المال (فأولئك هم المفلحون) (والذين جاؤوا مِنْ بَعْدِهِمْ) مِنْ بَعْد الْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنْصَار إِلَى يَوْم الْقِيَامَة (يَقُولُونَ رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا وَلِإِخْوَانِنَا الذين سبقونا بالإيمان ولا تجعل في قلوبنا غلا) حقدا (للذين آمنوا ربنا إنك رؤوف رحيم)

**ترجمه:** شروع كوم د الله په نوم سره چې دير مهربانه او دير رحم والا دې، په آسمانونو او زمكه كښې چې كوم څيزونه دي ټول د الله تسبيح بيانوي، يعنې د هغه پاكي بيانوي، او د (من) په ځاني باندې ما راوړل اكثر (غير ذوي العقول) ته غلبه وركولو د وجې دې او هغه د خپل ملك په انتظام كښې غالب او حكمت والا دې، او هم هغه دې چا چې اهل كتاب كافرانو لره چې هغه د بنونضير يهوديان وو، په مدينه كښې ددوي د كورونو نه په اول حشر كښې اويستل، ددوي دا إخراج د مدينې نه خيبر طرف ته وو، او دويم حشر هغه وو چې كله حضرت عمر ﷺ دوي په خپل خلافت كښې د خيبر نه شام ته اوشړل.

**نوټ:** په متن كښې تسامح ده كوم چې په ترجمه كښې صحيح كړې شوې ده،
اې مومنانو ستاسو په وهم او گمان كښې هم نه وو، چې دوي به اوځي، او دوي هم دا گنړل، چې ددوي قلعه گانې به د الله د عذاب نه ددوي حفاظت اوكړي، مَانِعَتُهم د أن خبر دې، او حصونهم د مانعتهم فاعل دې، دې سره خبر تام شو، خو الله يعنې د هغه حكم او د هغه عذاب د داسې ځائې نه راغلو چې ددوي په وهم او گمان كښې هم نه وو، يعنې د مومنانو د طرف نه ددوي په زړه كښې چرې دا خبره كله راغلې هم نه وه، او الله ددوي په زړونو كښې رعب واچولو، رُعْب د عين په سكون او په ضمې سره، ددوي سردار كعب بن اشرف قتل كولو سره، او هغوي خپل كورونه په خپل لاس سره ورانول، يخربون أخرب نه په تشديد او تخفيف سره دې چې هغوي خپل خوښ څيزونه لرگي وغيره منتقل كړي، او د مومنانو په لاسونو ئې ورانول، نو اې هوښيارانو! عبرت حاصل كړئ، او كه الله تعالى ددوي د پاره جلاوطني (د وطن نه وتل) په تقدير كښې ليكلې نه وه، نو په دنيا كښې به ئې دوي ته د قتل او د قيد سزا وركړې وه، څنگه چې د قريظه يهوديانو سره اوشول، او په آخرت كښې ددوي د پاره سخت عذاب دې، دا ځكه اوشول چې دوي د الله او د هغه د رسول مخالفت اوكړو، او څوك هم چې د الله

مخالفت اوکړی الله به هغه ته سخت عذاب ورکړی، اې مسلمانانو! تاسو چې کومې کهجورې کټ کړې یا مو پرېښودلې، دا ټول د الله په حکم وو، یعنی الله تاسو ته ددې اختیار درکړې وو، او دې د پاره چې دکټ کولو اجازت ورکولو سره فاسقانو یهودیانو لره الله رسوا کړی، ددوی د اعتراض په جواب کښې چې میوه دارې اونې کټ کول فساد دې، او ددوی چې کوم مال الله تعالی د خپل رسول لاس ته راوستلو اې مسلمانو نه تاسو په دې باندې اسونو له منډې ورکړې دی او نه اوښانو لره یعنی تاسو په دې مال کښې څه تکلیف اوچت کړې نه دې، خو الله چې په چا اوغواړی خپل رسول پرې غالب کړي، او الله په هر څیز باندې قادر دې، لهذا په دې مال کښې ستاسو حق نشته، او هغه مال د حضور ﷺ او د هغه خلقو د پاره خاص کړې شوې دې د کومو څلورو قسمونو چې په بل آیت کښې د حضور ﷺ سره ذکر شوې دې، چې د هغې مطابق به حضور ﷺ دا مال تقسیمولو، په داسې توګه چې په هغې کښې د هر یو د پاره لسمه حصه او باقی د حضور ﷺ د پاره ده، چې په هغې کښې هغوی(ص) چاته غواړی ورکړی، نو د هغه نه دوی مهاجرینو ته او د انصارو درېو فقیرانو ته ورکړل. دکلی والو لکه د صفراء، وادی القُری او د ینبع کوم مال چه الله تعالی ستاسو د جنګ جهګړو نه بغیر د خپل رسول لاس ته راوستلو، هغه د الله دې، چې په هغې کښې د چا د پاره اوغواړی حکم اوکړی، او د رسول دې او د رشته دارو دې، یعنی په بنی هاشم او بنی مطلب کښې د حضور ﷺ د رشته دارو د پاره دې، او د یتیمانو یعنی د مسلمانانو هغه ماشومانو د پاره د چا چې پلاران وفات شوی دی، او هغوی محتاج دی، او د مسکینانو یعنی په مسلمانانو کښې د حاجتمندو او د مسافران یعنی هغه مسلمانان مسافران چې کوم خپل سفر جاری ساتلې نشی، یعنی ددې مال مستحق نبی (ص) دې او څلور قسمه نور خلق دی څنګه چې به حضور ﷺ تقسیمولو، په داسې توګه چې د څلوروارو د مجموعې د پاره لسمه حصه او باقی د حضور(ص) د پاره ده چې ستاسو د مالدارو په لاسونو کښې مال ګردش اونکړی، کَیلا، کی په معنی د لام دې، او د لام نه پس أن مقدر دې، (کیلا) سره په مذکوره طریقې باندې د تقسیمولو د علت بیان دې، او رسول چې تاسو ته کوم مال د فئی وغیره درکړی هغه اخلئ، او چې د څه نه منع کړی نو د هغې نه منع شئ، او د الله نه اوېرېږئ، الله تعالی سخت عذاب ورکولو والا دې، د هغه فقیرانو او مهاجرینو د پاره شاباشی ده کوم چه د خپلو کورونو او د مالونو نه ویستلې شوې دی او هغوی د الله فضل او د هغه د رضامندئ طالب دی، او هغوی د الله او د هغه د رسول مدد کوی، په حقیقت کښې هم دا دی رشتونی خلق په خپل ایمان کښې او د هغه خلقو د پاره چا چې خپلو کورونو کښې یعنی په مدینه کښې او په ایمان کښې ددوی نه مخکښې ځائې جوړ کړو یعنی ایمان سره ئې مینه اوساتله، او هغه انصار دی، خپل طرف ته هجرت کولو سره د راتلونکو خلقو سره محبت ساتی، او دې مهاجرینو ته چې څه ورکړې شی په هغې سره دوی په خپل

زړونو کښې تنګی نه محسوسوی، یعنی نبی ﷺ مهاجرینو ته د بنونضیر نه د حاصل شوي مال نه، کوم چې د حضور ﷺ د پاره خاص وو، څه ورکړی وو، بلکه په خپل ځان باندې دوی ته ترجیح ورکوی، که په خپله ورته ددې مال حاجت ولې نه وی، او څوک چې د خپل نفس د بخل نه بچ کړې شو، یعنی د مال د حرص نه هم هغه کامیاب خلق دی، او هغه خلق چې دوی نه یعنی د مهاجرینو او د انصارو نه پس به د قیامت پورې راځی، وائی چې اې زمونږ پروردګاره مونږ ته بخښنه اوکړه او زمونږ هغه رانړو ته کومو چې زمونږ نه مخکښې ایمان راوړې دې، او د ایمان والو د طرف نه زمونږ په زړونو کښې بغض مه اچوه، اې زمونږ پروردګاره ! بې شکه ته شفقت او مهربانی کولو والائې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

سورة حشر یو کم شپیتم سورت دې، ددې دویم نوم سورة النضیر دې، دا د ټولو په اتفاق سره مدنی سورة دې.

**قوله**: :بنونضیر: دا قبیله د هارون علیه السلام د اولاد نه وه،

**قوله**: :لأول الحشر: لام په معنی د فی دې، أی فی أول الحشر، او لام په معنی د عند هم کیدې شی، لکه لدلوك الشمس کښې چې دې، دغه وخت به لام د توقیت د پاره وی، لأول الحشر دا اضافت د صفت إلی الموصوف د قبیلې نه دې، أی الحشر الأول

**قوله**: :إلی خیبر: حصهم من حمادی.

**قوله**: :تَمّ به الخبر: أنهم کښې هم د أن اسم دې، مَانِعة، اسم فاعل، هم ددې مفعول، حُصونهم ددې فاعل، اسم فاعل د خپل فاعل او مفعول سره د أن خبر، لکه أن زیدا قائم أبوه او دا هم کیدې شی چې حصونهم مبتدأ مؤخر وی، او مانعتهم ددې خبر وی، مبتدأ خبر د أن خبر.

**قوله**: :حصونهم: دحصن جمع ده، په معنی د قلعه.

**قوله**: :من أخرب: ددې تعلق د تخفیف سره دې، مطلب دا چې که یخربون په تخفیف سره اولوستلې شی نود أخرب نه به وی، او که په تشدید سره اولوستلې شی نود تفعیل نه به وی.

**قوله**: :لولا أن کتب الله علیهم: أن مصدریه دې، أن د خپل مابعد سره د مصدر په تاویل کښې مبتدأ محلاً مرفوع، ددې خبر وجوباً محذوف دې، او هغه موجودٌ دې، أی لولا کتاب الله علیهم موجود لعذبهم، لعذبهم د لولا جواب دې،

**قوله**: :الجلاء: أی الخروج من الوطن مع الأهل والولد: جلاوطنی سره د خپل خاندان سره د وطن پرېښودلو ته وائی، په خلاف د خروج نه، چې هغه د خپل ټول خاندان سره هم او یواځې هم کیدې شی.

**قوله**: اللِّينَة: دا د لين جمع ده، ښې کهجورې ته وائي، أي النخلة الكريمة دې جمع أليان راځي.

**قوله**: وليجزي الفاسقين: واؤ عاطفه دې، معطوف عليه محذوف دې، تقديري عبارت دا دې، اذن في قطعها ليسر المؤمنين ويخزي الفاسقين

**قوله**: للفقراء المهاجرين: يوخو دا ده چې د فقراء تعلق د فعل محذوف سره اوکړې شي، څنګه چې د علامه محلي رائې ده، علامه محلي اعجبوا فعل محذوف منلې دې، تقديري عبارت به دا وي اعجبوا للفقراء المهاجرين الذين اخرجوا (الاية) دا اظهار د تعجب على سبيل المدح دې، يعنى تعجب دې چې مهاجرينو يو حيرت انګيزه کارنامه اوکړه، چې خپل رشته داران، کور، مال و دولت، غرض دا چې د الله او د رسول په محبت کښې ئې خپل هر څه په داو اولګول، او بې سر او ساماني او مسافر کيدو سره په پردي وطن کښې مقيم شول.

للفقراء د فعل محذوف سره متعلق کولو فائده به دا وي چې د ذى القربى د پاره به فقر شرط نه وي، بلکه په مال غنيمت (فئ) کښې به د رشته دارو حق وي، که هغوی محتاج او حاجتمند وي او که نه وي، هم دا مسلک د امام شافعي رحمه الله هم دې، مفسر علام چوکه شافعي دې، ځکه ئې اعجبوا فعل محذوف منلې دې، چې للفقراء د ذى القربى نه بدل اونه ګرځي.

دويم صورت دا دې چې فقراء د ذی القربی نه بدل اوګرځولې شي، څنګه چه امام اعظم ابوحنيفه (رح) للفقراء لره د ذوى القربى او ددې د مابعد نه بدل الكل ګرځوي، چې د هغې مطلب دا دې چې فقر او حاجت د رشته دارو سره، د ټولو مذکورينو د پاره شرط دې، ددې مطلب به دا وي چې په ذوى القُربى کښې چې کوم نادار او محتاج وي، هغوی به د مال فئ حقدار وي او که محتاج نه وي نو حقدار به هم نه وي.

**قوله**: والذين تبوءو الدار: د مدح انصار د پاره کلام مستانف دې، يا ددې عطف په للفقراء باندې هم کيدې شي الذين به په مذکوره دوارو صورتونو کښې يا خو مبتدأ وي، يا به ددې عطف په للفقراء باندې وي، په دې صورت کښې به الذين د جر په محل کښې وي، چې الذين مبتدأ شي نو يحبون من هاجر اليهم جمله به ددې خبر شي.

**قوله**: ألفوه: دا اشاره ده، چې الايمان د فعل محذوف د وجه نه منصوب دې.

**[آيات نمبر: ١١ - ١٧]**

(أَلَمْ تَرَ) تنظر (إِلَى الَّذِينَ نَافَقُوا يَقُولُونَ لِإِخْوَانِهِمُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ) وَهُمْ بَنُو النَّضِيرِ وَإِخْوَانُهُمْ فِي الْكُفْرِ (لَئِنْ) لام قسم في الأربعة (أُخْرِجْتُمْ) مِنَ الْمَدِينَةِ (لَنَخْرُجَنَّ مَعَكُمْ وَلَا نُطِيعُ فِيكُمْ) في خذلانكم (أَحَدًا أَبَدًا وَإِنْ قُوتِلْتُمْ) حذفت منه اللام الموطئة (لَنَنْصُرَنَّكُمْ وَاللَّهُ يَشْهَدُ إِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ) (لَئِنْ

أُخرِجُوا لَا يَخْرُجُونَ مَعَهُمْ وَلَئِن قُوتِلُوا لَا يَنصُرُونَهُمْ وَلَئِن نَّصَرُوهُمْ أي جاؤوا لِنَصْرِهِمْ (لَيُوَلُّنَّ الْأَدْبَارَ) وَاسْتُغْنِيَ بِجَوَابِ الْقَسَمِ الْمُقَدَّرِ عَنْ جَوَابِ الشَّرْطِ فِي الْمَوَاضِعِ الْخَمْسَةِ (ثُمَّ لَا يُنصَرُونَ) أَيِ الْيَهُود (لَأَنتُمْ أَشَدُّ رَهْبَةً) خَوْفًا (فِي صُدُورِهِم) أَيِ المنافقين (مِّنَ اللَّهِ) لتاخير عذابه (ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَفْقَهُونَ) (لَا يُقَاتِلُونَكُمْ) أَيِ الْيَهُود (جَمِيعًا) مُجْتَمِعِينَ (إِلَّا فِي قُرًى مُّحَصَّنَةٍ أَوْ مِن وَرَاءِ جُدُرٍ) سُور وَفِي قِرَاءَةٍ جُدُر (بَأْسُهُم) حَرْبهمْ (بَيْنَهُمْ شَدِيدٌ تَحْسَبُهُمْ جَمِيعًا) مُجْتَمِعِينَ (وَقُلُوبُهُمْ شَتَّىٰ) مُتَفَرِّقَة خلاف الحسبان (ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْقِلُونَ) فِي تَرْك الْإِيمَان (كَمَثَلِ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ قَرِيبًا) بِزَمَنٍ قَرِيب وَهُمْ أَهْل بَدْر مِنَ الْمُشْرِكِينَ (ذَاقُوا وَبَالَ أَمْرِهِمْ) عُقُوبَته فِي الدُّنْيَا مِنَ الْقَتْل وَغَيْره (وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ) مُؤْلِم فِي الْآخِرَة مَثَلهمْ أَيْضًا فِي سَمَاعهمْ مِنَ الْمُنَافِقِينَ وَتَخَلُّفهمْ عَنْهُمْ (كَمَثَلِ الشَّيْطَانِ إِذْ قَالَ لِلْإِنسَانِ اكْفُرْ فَلَمَّا كَفَرَ قَالَ إِنِّي بَرِيءٌ مِّنكَ إِنِّي أَخَافُ اللَّهَ رَبَّ الْعَالَمِينَ) كَذِبًا مِنْهُ وَرِيَاء (فَكَانَ عَاقِبَتَهُمَا) أَيِ الْغَاوِي وَالْمُغْوِي وَقُرِئَ بِالرَّفْعِ اسْم كَانَ (أَنَّهُمَا فِي النَّارِ خَالِدَيْنِ فِيهَا وَذَٰلِكَ جَزَاءُ الظَّالِمِينَ) أَيِ الْكَافِرِينَ

**ترجمه**: آیا تا منافقانو ته اونه کتل؟ چې خپل اهل کتاب رونړو ته وائي او هغه بنو نضير او ددوی د کفر رونړه دی، که چرې تاسو د مدينې نه اويستلې شوئ په خلور وارو ځايونو کښې لام د قسم دې، نو مونږ به هم تاسو سره اوځو، او ستاسو د ذلت باره کښې به مونږ هيڅ کله د چا خبره نه منو، او که تاسو سره جنګ اوکړې شو قُوتِلتم کښې لام قسم حذف کړې شوې دې، نو په الله قسم مونږ به ستاسو مدد کوو، او الله ګواهي ورکوی چې دوی بالکل دروغژن دی، که چرې هغوی د وطن نه اويستلې شول نو دوی به ورسره اونه ځی، او که هغوی سره جنګ اوکړې شو نو دوی به ورسره مدد اونکړی، او فرض کړه که دوی د هغوی مدد کولو له راغلل نو په شاه به اوتښتی، په پنځم ځائې کښې د قسم مقدر د جواب د وجې نه د جواب شرط نه استغناء ده، بيا به د يهود مدد نه شی کيدې، مسلمانانو يقين اوساتئ ستاسو ويره ددې منافقانو په زړونو کښې په نسبت د الله د ويرې ډيره زياته ده، د هغه د عذاب د روستو کيدو د وجه نه، دا ځکه چې دا ناپوهه خلق دی، دا يعنی يهود ټول په شريکه تاسو سره جنګ نه شی کولې، دا بله خبره ده چې په بندو قلعه ګانو کښې وی يا د يوال شاته وی.او په يو قراءت کښې د جدار په ځائې باندې جدر دې، ددوی جنګ خو ددوی په مينځ کښې ډير سخت دې، اګر چې تاسو دوی يو ځائې (متفق) ګنړئ، خو د ګمان په خلاف ددوی زړونه د يو بل نه جدا دی، ځکه چې دا ډير بې عقله خلق دی، د ايمان په پريښودلو کښې ددې خلقو مثال د هغه خلقو په شان دې کوم چې ددوی نه مخکښې تير شوی دی، په نزدې زمانه کښې، او هغه مشرکين اهل بدر دی، کومو چې د خپل کارونو سزا اوڅکله،دې انجام قتل وغيره، په دنيا کښې، او ددوی د پاره په آخرت کښې دردناک عذاب دې، او ددوی مثال د منافقانو خبرو اوريدو کښې او د دوی نه تخلف اختيارولو کښې د شيطان په شان دې، چې هغه انسان ته اووئيل چې کفر اوکړه، نو چې کله هغه

کفر اوکړو نو شيطان اووئيل چې زه ستا نه بيزاره يم، زه خو د الله رب العلمين نه ويريږم، او دده دا قول په ريا او په دروغو باندې مبنى وو، نو ددې دواړو انجام دا شو چې په اور د دوزخ کښې به هميشه د پاره اوسيږي، يعنى گمراه کونکې او گمراه کيدونکې. او عاقبتهما اسم د کان په توگه مرفوع هم وئيلې شوې دې، او د ظالمانو کافرانو د پاره هم دغه سزا ده.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله** إخوانهم فى الكفر: ددې عبارت د اضافې مقصد دا ښودل دى، چې په قرآن کښې منافقان د بنونضير (يهود) رونړه گرځولې شوې دى، دا کفر کښې د يو مذهب کيدو په اعتبار سره دى، نه چې په اعتبار د يو نسب کيدو، ځکه چې بنونضير وغيره تول يهود وو، او د منافقانو تعلق اوس او خزرج سره وو.

**قوله**: لام قسم فى أربعة مواقع: په څلور ځايونو کښې لام قسم دې، کوم چې په قسم محذوف باندې دلالت کوى، او هغه څلور ځايونه دا دى، ①لئن أخرجتم، ②لان أخرجوا ③ولئن قوتلوا ④ولئن نصروهم، پنځم ځائې يو بل دې، او هغه ⑤لئن قوتلتم الخ دې، دلته لام قسم مقدر کړې شوې دې.

**قوله**: واستغنى بجواب القسم: يعنى جواب قسم مذکوره پنځه ځايونو کښې د جواب قسم د وجې نه د جواب شرط نه مستغنى دې، ځکه چې قاعده معروفه ده چې کله شرط او قسم دواړه جمع شى، نو د مؤخر جواب به محذوف وى، ابن مالک وئيلى دى،

واحذف لدى اجتماع شرط وقسم جواب ما أخرت فهو ملتزم

ترجمه: چې کله قسم او شرط جمع شى، نو په دې کښې د مؤخر جزاء به په لازمى توگه سره حذف کيږى،

هغه پنځه ځايونه کوم چې د قسم محذوف جواب واقع شوې دې، او چې د کوم د دلالت د وجې نه جواب شرط حذف کړې شوې دې دا دى:

لنخرجن، لننصرنكم، لا يخرجون، لا ينصرونهم، ليولن الأدبار

**قوله**: مجتمعين: په دې کښې اشاره ده چې جميعا، دلا يقاتلونكم د ضمير فاعل نه حال واقع شوې دې.

**قوله**: مثلهم فى ترك الإيمان: په دې کښې اشاره اوکړه، چې كمثل الذين الخ، د مثلهم مبتدأ محذوف خبر دې.

**قوله**: وقرئ بالرفع اسم كان: عاقبتهما کښې په تاء باندې نصب او رفع دواړه جائز دى، د نصب وجه دا ده چې د کان خبر مقدم دې، او أنهما فى النار، أن خپل اسم او خبر سره د کان

اسم مؤخر دي، او د تاء د رفع په صورت كښې عاقبتهما د كان اسم، او أنهما فى النار جمله د كان خبر دي.

**[ايالتوله:١٨ - ٢٤]**

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَلْتَنْظُرْ نَفْسٌ مَا قَدَّمَتْ لِغَدٍ﴾ ليوم القيامة ﴿وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ﴾ ﴿وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ نَسُوا اللَّهَ﴾ تركوا طاعته ﴿فَأَنْسَاهُمْ أَنْفُسَهُمْ﴾ ان يقدموا لها خيرا ﴿أُولَئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ﴾ ﴿لَا يَسْتَوِي أَصْحَابُ النَّارِ وَأَصْحَابُ الْجَنَّةِ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ هُمُ الْفَائِزُونَ﴾ ﴿لَوْ أَنْزَلْنَا هَذَا الْقُرْآنَ عَلَى جَبَلٍ﴾ وَجُعِلَ فِيهِ تَمْيِيزٌ كَالْإِنْسَانِ ﴿لَرَأَيْتَهُ خَاشِعًا مُتَصَدِّعًا﴾ مُتَشَقِّقًا ﴿مِنْ خَشْيَةِ اللَّهِ وَتِلْكَ الْأَمْثَالُ﴾ الْمَذْكُورَة ﴿نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ﴾ فَيُؤْمِنُونَ ﴿هُوَ اللَّهُ الَّذِي لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ﴾ السر والعلانية ﴿هُوَ الرَّحْمَنُ الرَّحِيمُ﴾ ﴿هُوَ اللَّهُ الَّذِي لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ الْمَلِكُ الْقُدُّوسُ﴾ الطَّاهِرُ عَمَّا لَا يَلِيقُ بِهِ ﴿السَّلَامُ﴾ ذُو السَّلَامَةِ مِنَ النَّقَائِصِ ﴿الْمُؤْمِنُ﴾ الْمُصَدِّقُ رُسُلَهُ بِخَلْقِ الْمُعْجِزَةِ لَهُمْ ﴿الْمُهَيْمِنُ﴾ مِنْ هَيْمَنَ يُهَيْمِنُ إِذَا كَانَ رَقِيبًا عَلَى الشَّيْءِ أَيِ الشَّهِيدُ عَلَى عِبَادِهِ بِأَعْمَالِهِمْ ﴿الْعَزِيزُ﴾ الْقَوِيُّ ﴿الْجَبَّارُ﴾ جَبَرَ خَلْقَهُ عَلَى مَا أَرَادَ ﴿الْمُتَكَبِّرُ﴾ عَمَّا لَا يَلِيقُ بِهِ ﴿سُبْحَانَ اللَّهِ﴾ نَزَّهَ نَفْسَهُ ﴿عَمَّا يُشْرِكُونَ﴾ بِهِ ﴿هُوَ اللَّهُ الْخَالِقُ الْبَارِئُ﴾ الْمُنْشِئُ مِنَ الْعَدَمِ ﴿الْمُصَوِّرُ لَهُ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَى﴾ التِّسْعَةُ وَالتِّسْعُونَ الْوَارِدُ بِهَا الْحَدِيثُ وَالْحُسْنَى مُؤَنَّثُ الْأَحْسَنِ ﴿يُسَبِّحُ لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ﴾ تَقَدَّمَ أَوَّلَهَا

**ترجمه:** اي ايمان والو دالله نه ويريږئ، او هر كس دې غور اوكړي، چې صبا له (د قيامت ورځ دپاره، د اعمالو څه ذخيره ئې ليږلې ده، ؟ او (هر وخت) د الله نه ويريږئ، الله ستاسو د اعمالو نه خبردار دي، او تاسو د هغه خلقو په شان مه كيږئ كومو چې د الله احكام هير كړي دي، يعنې دهغه اطاعت ئې ترک كړو، نو الله هم دوی د خپل ځانونو نه غافل كړل، دې خبرې نه چې دوی د خپل ځان د پاره نيكی مخكښې اوليږی، هم داسې خلق فاسقان وی، او جنت والا او دوزخ والا برابر كيدې نشی، كوم چې جنتيان دی هغوی كامياب دی او كه مونږ دا قرآن په يو غر باندې نازل كړې وو، او په هغې كښې د انسان په شان شعور اچولې شوې وو نو تا به كتلی وو چې هغه به د الله د ويرې نه شليدلې وو، مونږ دا ذكر شوی مثالونه د خلقو د پاره بيانوو، چې هغوی غور اوكړي، بيا ايمان راوړی، هم دغه الله دې د هغه نه سوا بل معبود نشته، د غائب او د حاضر يعنی د پټ او ښكاره پيژندونكې دې، او هغه مهربان او رحم كولو والا دې، هم هغه الله دې د هغه نه سوا بل معبود نشته، بادشاه دې، د ټول خبرو نه كومې چې د هغه د شان لائق نه دی پاک دې، د ټولو عيبونو نه محفوظ دې، د خپل رسولانو د هغوی د پاره د معجزاتو تخليق كولو سره نصرت كولو والا دې، نگهبان دې، دا د هَيْمَنَ يُهَيْمِنُ نه مشتق دې، چې كله په يو څيز باندې نگهبان وی، د خپلو بندگانو د اعمالو كتلو والا دې، طاقت ور دې، جبار دې، هغه خپل مخلوق جوړ كړو څنگه چې ئې غوښتل، اوچت ذات دې، د هغه څيز نه كوم چې د هغه لائق

نه دی، الله پاک دې، هغه خپله پاکی خپله بیان کړې ده، د هغه څیزونو نه کوم چې هغوی د هغه شریک جوړوی، هم دغه الله پیدا کولو والا، عدم نه وجود ورکولو والا، صورت جوړولو والا، د هغه یو کم سل دیر ښائسته نومونه دی، د کومو باره کښې چې حدیث راغلې دې، او حسنی د احسن مؤنث دې، په اسمانونو او زمکه کښې چې څه دی ټول د هغه پاکی بیانوی، هم هغه غالب او حکمت والا دې، هم داسې ددې سورت په شروع کښې تیر شوی دی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** : تَرَكُوا طَاعَتَه: ددې عبارت په اضافې سره دا اشاره کول دی، چې دلته د نسیان لازم معنی مراد ده، کوم چې ترک ده، ځکه چې د نسیان د پاره ترک لازم دې، نه چې عدم حفظ والذکر.

**قوله:** : أن يقدموا لها خيراً: په دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چې عبارت د مضاف په حذف سره دې، تقدیری عبارت دا دې فأنساهم تقديم خير لانفسهم.

## [٦٠] سورة الممتحنة

### سورة الممتحنة مدنية ثلاث عشرة اية

سورة الممتحنه مدنی دې، په دې کښې دیارلس آیاتونه دی.

[ایاتونه: ١-٦]

(يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا عَدُوِّي وَعَدُوَّكُمْ) اي كفار مكة (أَوْلِيَاءَ تُلْقُونَ) توصلون (إِلَيْهِم) قصد النبي صلى الله عليه وسلم غزوهم الذي أسرَّه إليكم وورى بحنين (بِالْمَوَدَّةِ) بينكم وبينهم كتب حاطب بن أبي بلتعة إليهم كتابا بذلك لما له عندهم من الأولاد والأهل المشركين فاسترده النبي صلى الله عليه وسلم ممن أرسله معه بإعلام الله تعالى له بذلك وقبل عذر حاطب فيه (وَقَدْ كَفَرُوا بِمَا جَاءَكُمْ مِنَ الْحَقِّ) أي دين الإسلام والقرآن (يُخْرِجُونَ الرَّسُولَ وَإِيَّاكُمْ) من مكة بتضييقهم عليكم (أَنْ تُؤْمِنُوا) أي لأجل أن آمنتم (بِاللَّهِ رَبِّكُمْ إِنْ كُنْتُمْ خَرَجْتُمْ جِهَادًا) للجهاد (فِي سَبِيلِي وَابْتِغَاءَ مَرْضَاتِي) وجواب الشرط دل عليه ما قبله أي فلا تتخذوهم أولياء (تُسِرُّونَ إِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ وَأَنَا أَعْلَمُ بِمَا أَخْفَيْتُمْ وَمَا أَعْلَنْتُمْ وَمَنْ يَفْعَلْهُ مِنْكُمْ) أي إسرار خبر النبي إليهم (فَقَدْ ضَلَّ سَوَاءَ السَّبِيلِ) أخطأ طريق الهدى والسواء في الأصل الوسط (إِنْ يَثْقَفُوكُمْ) يظفروا بكم (يَكُونُوا لَكُمْ أَعْدَاءً وَيَبْسُطُوا إِلَيْكُمْ أَيْدِيَهُمْ) بالقتل والضرب (وَأَلْسِنَتَهُمْ بِالسُّوءِ) بالسب والشتم (وَوَدُّوا) تمنوا (لَوْ تَكْفُرُونَ) (لَنْ تَنْفَعَكُمْ أَرْحَامُكُمْ) قراباتكم (وَلَا أَوْلَادُكُمْ) المشركون الذين لأجلهم أسررتم الخبر من العذاب في الآخرة (يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَفْصِلُ) بالبناء للمفعول والفاعل (بَيْنَكُمْ) وبينهم فتكونون في الجنة وهم في جملة الكفار في النار (وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ) (قَدْ كَانَتْ لَكُمْ أُسْوَةٌ) بكسر الهمزة وضمها في الموضعين قدوة (حَسَنَةٌ فِي إِبْرَاهِيمَ) أي به قولا وفعلا (وَالَّذِينَ مَعَهُ) من المؤمنين (إِذْ

قَالُوا لِقَوْمِهِمْ إِنَّا بُرَءَآءُ) جمع بريء كظريف (مِنكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ كَفَرْنَا بِكُمْ) أنكرناكم (وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةُ وَالْبَغْضَاءُ أَبَدًا) بتحقيق الهمزتين وإبدال الثانية واوا (حَتَّىٰ تُؤْمِنُوا بِاللَّهِ وَحْدَهُ إِلَّا قَوْلَ إِبْرَاهِيمَ لِأَبِيهِ لَأَسْتَغْفِرَنَّ لَكَ) مستثنى من أسوة فليس لكم التأسي به في ذلك بأن تستغفروا للكفار وقوله (وَمَا أَمْلِكُ لَكَ مِنَ اللَّهِ) أي من عذابه وثوابه (مِن شَيْءٍ) كنى به عن أنه لا يملك له غير الاستغفار فهو مبني عليه مستثنى من حيث المراد منه وإن كان من حيث ظاهره مما يتأسى فيه (قُلْ فَمَن يَمْلِكُ لَكُم مِّنَ اللَّهِ شَيْئًا) واستغفاره لكم قبل أن يتبين له أنه عدو لله كما ذكره في براءة (رَّبَّنَا عَلَيْكَ تَوَكَّلْنَا وَإِلَيْكَ أَنَبْنَا وَإِلَيْكَ الْمَصِيرُ) من مقول الخليل ومن معه أي قالوا (رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً لِّلَّذِينَ كَفَرُوا) أي لا تظهرهم علينا فيظنوا أنهم على الحق فيفتتنوا أي تذهب عقولهم بنا (وَاغْفِرْ لَنَا رَبَّنَا إِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ) في ملكك وصنعك (لَقَدْ كَانَ لَكُمْ) يا أمة محمد جواب قسم مقدر (فِيهِمْ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَن كَانَ) بدل اشتمال من كم بإعادة الجار (يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ) أي يخافهما أو يظن الثواب والعقاب (وَمَن يَتَوَلَّ) بأن يوالي الكفار (فَإِنَّ اللَّهَ هُوَ الْغَنِيُّ) عن خلقه (الْحَمِيدُ) لأهل طاعته

**ترجمه**: شروع کوم د الله په نوم سره چې ډير مهربانه او ډير رحم کولو والا دې، اې هغه خلقو چې ايمان مو راوړې دې تاسو خپلو دشمنانو لره (کفار مکه لره) دوستان مه جوړوئ، تاسو هغوی ته د خپلې دوستۍ په وجه د نبی ﷺ هغوی سره د جهاد کولو د ارادې پيغام ورکوئ، کوم چې هغوی ﷺ بطور راز تاسو ته وئيلې دې، او د حنين د جهاد اراده ئې ورته ښکاره کړه.

**نوټ**: په بعضو نسخو کښې فدک يجتمون دې، کوم چې سبقت قلمی (غلطی) ده، صحيح فدک يجتمون دې.

حاطب ابن ابی بلتعه اهل مکه ته په دې معامله کښې يو خط اوليکلو، ځکه چې اهل مکه سره ددوی مشرک اولاد او اهل خانه وو، نو حضور ﷺ هغه خط د هغه کس نه، د الله تعالی د وحی په ذريعه اطلاع ورکولو د وجې نه واپس رااوغښتلو، د چا په ذريعه چې دا ليږلې شوې وو، او د حاطب ئې په دې معامله کښې عذر قبول کړو،

او هغه حق دين يعنی دين اسلام او قرآن کوم چې تاسو ته راغلې دې، کفر کوی، او هغوی پيغمبر او خپله تاسو لره د مکې نه تښکولو سره دې وجې نه اوباسی چې تاسو په خپل رب الله باندې ايمان ساتئ، که تاسو ځما په لار کښې د جهاد د پاره او ځما د رضا د پاره وتلې يئ جواب شرط په کوم باندې چې ددې ماقبل دلالت کوی، فلا تتخذوهم اولياء دې، يعنی دوی خپل دوستان مه جوړوئ، نو تاسو هغوی ته په پټه باندې پيغام ليږئ، ماته ښه معلومه ده څه چې تاسو پټوئ، او څه چې تاسو ښکاره کوئ، په تاسو کښې چې څوک هم د نبی عليه السلام پيغام په پټه باندې د رسولو کار کوی هغه به يقينا د نيغې لارې نه خطا کيږی، يعنی د نيغې لارې نه گمراه شو، د سواء

اصل معنی وسط ده، او که دوی په تاسو باندې قابو اومومي، يعنی کامياب شي. نو ستاسو ښکاره دشمنان به شي، اود قتل او د وهلو تکولو د پاره به په تاسو باندې لاسونه اوچت کړي، او د کنځلو د پاره به ژبې اوږدې کړي، او د زړه نه به غواړي چې تاسو هم کفر اختيار کړئ. ستاسو رشته داري او ستاسو مشرک اولاد د چا د پاره چې تاسو په پټه پيغام ليږئ په آخرت کښې به د عذاب نه بچ کولو کښې هيڅ په کار رانشي، الله تعالى به د قيامت په ورځ ستاسو او ددوی په مينځ کښې فيصله اوکړي، يفصل، مجهول او معروف دواړه دي. نو تاسو به په جنت کښې يئ او هغوی تول به په دوزخ کښې وي، او څه چې تاسو کوئ الله هغې ته ډير ښه ګوري، مسلمانانو ستاسو د پاره د ابراهيم عليه السلام په طرز عمل کښې، اسوة د همزې په ضمې او په کسرې سره دې، او د هغه مومنانو ملګرو کښې قولا او فعلا بهترينه نمونه ده، کله چې هغوی تولو خپل قوم ته اووئيل چې مونږ ستاسو نه او د هغه څه نه د څه چې تاسو د الله نه سوا بندګي کوئ، ددې تولو نه بيزاره يو، برءآء، د بريء جمع ده، څنګه چې د ظريف جمع ظرفاء راځي، مونږ ستاسو د عقائدو نه بالکل منکر يو، کفرنا بکم عطفی أنکرنا له اوزمونږ او ستاسو په مينځ کښې هميشه د پاره بغض او دشمنی ښکاره شوه، البغضاء أبداً کښې د دواړو همزو تحقيق او دويمې لره واؤ بدلولو سره ترڅو چې الله وحده لاشريک باندې مو ايمان راوړې نه وي، خو خپل پلار ته ابراهيم عليه السلام، چې څه به خامخا ستا د پاره استغفار کوم، دا د اسوة نه مستثنى ده، يعنی ستاسو د پاره د ابراهيم عليه السلام په دې قول لَأَسْتَغْفِرَنَّ کښې أسوه حسنه نشته، په داسې توګه چې تاسو د کافرانو د پاره استغفار شروع کړئ، او ماته د الله په مخکښې د هغه په ثواب او عذاب کښې د هيڅ څيز اختيار نشته، حضرت ابراهيم عليه السلام په خپل دې قول (ما أملک) سره دې خبرې طرف ته کنايه کړې ده چې هغه دده د پاره سوا د استغفار نه، د بل څيز مالک نه دې، مَآ أَمْلِكُ لَأَسْتَغْفِرَنَّ باندې معطوف دې، او په اعتبار د مراد مستثنى ده، او اګرچه (ما أملک) د خپل ظاهر يعنی د معنى وضعی په اعتبار سره د هغې نه دې، دکوم چې اقتدا کيږي، څنګه چې الله تعالى اوفرمائيل قُلْ فَمَن يَمْلِكُ لَكُم مِّنَ اللَّهِ شَيْئًا د ابراهيم عليه السلام خپل پلار د پاره استغفار کول په هغوی عليه السلام باندې دده د کفر ښکاره کيدو نه مخکښې وو، څنګه چې په سورة براءت کښې ذکر شوی دی، اې زمونږ پروردګاره مونږ په تا باندې بهروسه کوو، او هم ستا طرف ته رجوع کوو، او هم ستا طرف ته واپس کيدل دي، دا د ابراهيم عليه السلام او د هغه د ملګرو مقوله ده، يعنی هغوی اووئيل اې زمونږ پروردګاره اته مونږ د کافرانو په امتحان کښې مه اچوه، يعنی ته دوی په مونږ باندې مه غالب کوه، چې هغوی دا اوګنړي چې هغوی په حق باندې دي، او فتنه خوره کړي، يعنی زمونږ په باره کښې دهغوی دماغ خراب شي، اې زمونږ پروردګاره ! ته زمونږ خطاګانو لره معاف کړه، بې شکه ته په خپل ملک او خپل صنعت کښې غالب او حکمت والا يې، اې امت محمديه ! يقينا ستاسو

د پاره په دوی کښې بنه نمونه ده، دا د قسم مقدره جواب دې، د هغه کس د پاره لمَن د گمْنه په اعادهٔ جار سره بدل الاشتمال دې، چې کافرانو سره د زړه دوستی اوکړی، الله تعالی د خپل مخلوق نه بالکل بې نیازه دې، او د خپل اطاعت کونکی بندگانو د حمد او ثناء سزاوار دې

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: قَصَدَالنبی ﷺ: په دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چې د تُلقُون مفعول محذوف دې

**قوله**: وَرّی: دا د توریه فعل ماضی ده، توریه، مقصد پټ ساتل او د مقصد خلاف ظاهرولو ته وائی، یا داسې لفظ وئیل چې دوه معنو والا وی، یو معنی قریب وی او بله بعید، متکلم د معنی بعید اراده اوکړی او مخاطب معنی قریب مراد واخلی، څنگه چې ابوبکر ﷺ د روستو راتلونکی (تعاقب کونکی) دشمن د سوال په جواب کښې فرمائیلې وو، رَجُلٌ یَهدِینِی السَّبِیل د هدایت معنی رهبری کول دی، رهبری د دنیا د لارې هم کیږی، دا معنی قریب ده، څکه ذهن اول دې طرف ته ځی، او دویمه معنی د اخرت لار خودل دی، دا معنی بعید ده، ابوبکر صدیق ﷺ هم دا معنی مراد اخستلې وه.

**قوله**: بخیبر: دا د ناقلین تصحیف دې(د نقل کونکو قلمی غلطی ده)، صحیح بِحُنین دې، څکه چې غزوه خیبر د محرم په میاشت اوومه هجری کښې د فتح مکه نه یوکال مخکښې واقع شوې وه، او فتح مکه د رمضان په میاشت کښې اتمه هجری کښې شوې وه، دا ایت د فتح مکه په موقع باندې نازل شو، او خیبر ددې نه مخکښې فتح شوې وو، لهذا خیبر طرف ته د توریې څه صورت نه جوړیږی.

**قوله**: بِالْمَودة: کښې باء سببیه ده،

**قوله**: بأعلام الله تعالی: دا د فَاسْتَرَدّه متعلق دې.

**قوله**: لأجل أن أمَنْتُم: دا اشاره ده دې خبرې ته چې أن تؤمنوا د مصدر په تاویل سره د یخرجون مفعول له دې.

**قوله**: للجهاد: په دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چې جهاداً د مفعول له کیدو د وجې نه منصوب دې، او د إن کنتم جواب شرط محذوف دې، چې په هغې باندې لاتتخذوا دلالت کوی، او هغه فلاتتخذوهم أولیاء دې.

**قوله**: تُسرون: دا د تلقون نه بدل دې.

**قوله**: سواء السبیل: دا اضافت د صفت إلی الموصوف دې أی السبیل السواء

**قوله**: لو تکفرون: لو بمعنی أن مصدریه أی تمنوا کفرکم،

**قوله**: :من العذاب:لن ينفعكم منفی متعلق دي،

**قوله**: :یوم القیمة:که چرې دا د لن ینفعکم متعلق وی نو په یوم القیامة باندې وقف وی، او د یفصل نه به جمله مستانفه وی، او دا هم صحیح ده چې د خپل مابعد یفصل متعلق وی په دې صورت کښې به أولادکم باندې وقف وی، او د یوم القیمة نه به جمله مستانفه وی.

**قوله**: :إنا برءآؤا جمع بری ء کظریف:یعنی څنګه چې د ظریف جمع ظرفاء راځی دغه شان د بریٔ جمع برءاوا راځی.

**قوله**: :وإبدال الثانیة واوًا:یعنی ابدًا (وبدًا) هم وئیلې شی

**قوله**: :مستثنی من اسوة :یعنی إلا قول إبراهیم الخ، قد کانت لکم أسوة حسنة فی إبراهیم نه مستثنی ده، مطلب دا دې چې ستاسو د پاره د ابراهیم ﷺ په هر قول او فعل کښې نمونه ده، خو د کافرانو د پاره په استغفار کولو کښې نشته.

**قوله**: :الاقول ابراهیم لابیه لاستغفرن لك: إلا قول إبراهیم الخ مستثنی ده، او په ماقبل قد کانت لکم أسوة حسنة مستثنی منه ده، ددې مطلب دا دې چې دابراهیم ﷺ هر قول او فعل قابل تأسی یعنی د اقتداء قابل دې، خو ددوی قول لأستغفرن لك الخ قابل د تأسی نه دې. خلاصه دا چه حضرت ابراهیم علیه السلام دخپل کافر پلار دپاره استغفار اوکړو دا زمونږ دپاره قابل د تأسی نه دې چه مونږ هم د کافر د پاره استغفار اوکړو، ګویا چې د کافر د پاره استغفار کول د ابرهیم سره خاص وو، د نورو د پاره دې باره کښې د ابراهیم ﷺ اقتدا صحیح نه ده،

**قوله**: :وما أملك لك من الله من شیء:ددې عطف په لأستغفرن باندې دې، او د معطوف او د معطوف علیه حکم یو وی، نو مطلب دا شو چې ابراهیم ﷺ خپل پلار ته اوفرمائیل چې ځه به ستاسو د پاره استغفار کوم، او دا ئې هم اوفرمائیل چې ځه ستاسو د پاره د ځه نفع او نقصان اختیار نه لرم، نو لکه چې ابراهیم ﷺ خپل پلار ته دوه خبرې اوکړې یو دا چې ځه به ستا د پاره استغفار کوم، دویمه دا چې ځه د الله د طرف نه ستا د پاره د ځه نفع او نقصان اختیار نه لرم، دې دواړو خبرو لره ئې إلا قول إبراهیم وئیلو سره قابل د اقتداء کارونو نه خارج کړې، حالانکه دویمه خبره یعنی ما أملك لك الخ قابل د اقتداء ده، دلیل ددې د الله تعالی قول قل فمن یملك لکم من الله شیئا دې، په ظاهره په دې دواړه ایتونو کښې تعارض دې یعنی ما أملك من الله من شیء او د سورة فتح ایت قل فمن یملك لکم الخ په مینځ کښې تعارض دې.

**اعتراض** : اعتراض دا دې چې الله تعالى د ابراهيم عليه السلام هر قول او فعل لره قابل د اقتدا گرځولى دې، او بيا ئې ترې د كافر د پاره استغفار كول مستثنى كړې دى، او په دې مستثنى باندې ئې وما أملك لك من الله من شيء عطف كړې دې، او دا خبره منلې شوې ده چې د معطوف او د معطوف عليه حكم يو وى، لهذا (ما أملك لك من الله من شيء) هم قابل د اقتداء نه خارج شو، حالانكه د سورة فتح ايت قل فمن يملك لكم من الله شيئا نه دا قابل د اقتداء معلوميږى، ځكه چې څوک هم د الله د طرف نه د خير او د شر مالک نه دې، لهذا دا معلومه شوه چې د ابراهيم عليه السلام قول ما أملك لك من الله من شيء قابل د اقتداء دې، نه چې ناقابل اقتداء؟.

**قوله**: كُنّي به عن أنه لا يملك له غير الاستغفار: سره د مذكوره اعتراض جواب وركړې شوې دې، د جواب خلاصه دا ده چې د ما أملك لك من الله من شيء دوه معنې دى، يو معنى مرادى كومه چې دلته مقصود ده، چې هغه (كُنّي به) سره تعبير كړې شوې ده، او دويمه معنى وضعى، كومه چې مقصود نه د ه، او هغه دا ده، چې ما أملك لك من الله الخ، د معطوف عليه يعنى لأستغفرن لك الخ نه خارج كړې شى، يعنى نه خو د كافر د پاره استغفار كول قابل د اقتداء او نه دا وئيل قابل د اقتداء چې څه ستا د پاره د الله د طرف نه د نفع او د شر مالک نه يم، حالانكه دويمه خبره د سورة فتح په رڼا كښې قابل د اقتداء ده.

**خلاصه كلام**: خلاصه د كلام دا شوه چې د ابراهيم عليه السلام قول ما أملك لك الخ د معنى مراد ئې په اعتبار سره قابل د اقتداء دې خو د معنى وضعى په اعتبار سره قابل د اقتداء نه دې، د مفسر علام قول من حيث المراد منه وإن كان من حيث ظاهره مما يُتأسى فيه هم دا مطلب دې.

**د مذكوره اعتراض دويم جواب**

**قوله**: وما أملك لك من الله من شيء: دا د مستثنى تتمه ده، اصل مستثنى لأستغفرن الخ ده، وما أملك لك جمله حاليه كيدو د وجې نه محلا منصوب ده، او د مجموعې د استثناء نه د ټولو احوالو نه استثناء لازم نه راځى، لهذا د مستثنى آخرى جزء يعنى وما أملك لك الخ كوم چې په اصل كښې د مستثنى د پاره قيد دې، قابل د تَأسّى كيدو د وجې نه به خارج نه وى، ددې تائيد د روح البيان د عبارت نه هم كيږى، فمورد الاستثناء نفس الاستغفار، يعنى اصل مستثنى نفس استغفار دې نه چې د هغې قيد، ما أملك لك الخ

**قوله**: لمن كان: دا اعادې د جار سره په لكم كښې د كم ضمير نه بدل الاشتمال دې

صحيح خو دا ده چې بدل البعض دي، ځکه چې لمن كان يرجوا الله دكم بعض دي، البته بعضې وخت د بدل الاشتمال اطلاق په بدل البعض باندې كيږي، كما صرح الرضى، او كومو حضراتو چې د ضمير نه بدل واقع كول منع كړي دي نو هغوى بدل الكل منع كړي دي، او د سيبويه په نيز باندې بدل مطلقا جائز دي.

**قوله:** :من يتول: شرط دي، او جواب شرط محذوف دي، ددې تفسير (جواب شرط) فوباله على نفسه دي، د الله تعالى قول فإن الله الغني جواب علت دي.

**[اياتونه: ٧-١٢]**

(عَسَى اللَّهُ أَنْ يَجْعَلَ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ الَّذِينَ عَادَيْتُمْ مِنْهُمْ) مِنْ كُفَّار مَكَّة طَاعَة لِلَّهِ تَعَالَى (مَوَدَّةً) بِأَنْ يَهْدِيهِمْ لِلْإِيمَانِ فَيَصِيرُوا لَكُمْ أَوْلِيَاء (وَاللَّهُ قَدِيرٌ) عَلَى ذَلِكَ وَقَدْ فَعَلَهُ بَعْد فَتْح مَكَّة (وَاللَّهُ غَفُورٌ) لَهُمْ مَا سَلَفَ (رَحِيمٌ) بِهِمْ (لَا يَنْهَاكُمُ اللَّهُ عَنِ الَّذِينَ لَمْ يُقَاتِلُوكُمْ) مِنَ الْكُفَّار (فِي الدِّينِ وَلَمْ يُخْرِجُوكُمْ مِنْ دِيَارِكُمْ أَنْ تَبَرُّوهُمْ) بَدَل اشْتِمَال مِنَ الَّذِينَ (وَتُقْسِطُوا) تَقْضُوا (إِلَيْهِمْ) بِالْقِسْطِ أَيْ بِالْعَدْلِ وَهَذَا قَبْل الْأَمْر بِجِهَادِهِمْ (إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِينَ) العادلين (إِنَّمَا يَنْهَاكُمُ اللَّهُ عَنِ الَّذِينَ قَاتَلُوكُمْ فِي الدِّينِ وَأَخْرَجُوكُمْ مِنْ دِيَارِكُمْ وَظَاهَرُوا) عَاوَنُوا (عَلَى إِخْرَاجِكُمْ أَنْ تَوَلَّوْهُمْ) بَدَل اشْتِمَال مِنَ الَّذِينَ اي تتخذوهم اولياء (ومن يتولهم فأولئك هم الظالمون) (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا جَاءَكُمُ الْمُؤْمِنَاتُ) بِأَلْسِنَتِهِنَّ (مُهَاجِرَاتٍ) مِنَ الْكُفَّار بَعْد الصُّلْح مَعَهُمْ فِي الْحُدَيْبِيَة عَلَى أَنَّ مَنْ جَاءَ مِنْهُمْ إِلَى الْمُؤْمِنِينَ يُرَدّ (فَامْتَحِنُوهُنَّ) بِالْحَلِفِ عَلَى أَنَّهُنَّ مَا خَرَجْنَ إِلَّا رَغْبَة فِي الْإِسْلَام لَا بُغْضًا لِأَزْوَاجِهِنَّ الْكُفَّار وَلَا عِشْقًا لِرِجَالٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ كَذَا كَانَ النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وسلم يحلفهن (والله أعلم بإيمانهن فَإِنْ عَلِمْتُمُوهُنَّ) ظَنَنْتُمُوهُنَّ بِالْحَلِفِ (مُؤْمِنَاتٍ فَلَا تَرْجِعُوهُنَّ) تَرُدُّوهُنَّ (إِلَى الْكُفَّارِ لَا هُنَّ حِلٌّ لَهُمْ وَلَا هُمْ يَحِلُّونَ لَهُنَّ وَآتُوهُمْ) أَيْ أَعْطُوا الْكُفَّار أَزْوَاجهنَّ (مَا أَنْفَقُوا) عَلَيْهِنَّ مِنَ الْمُهُور (وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ أَنْ تَنْكِحُوهُنَّ) بِشَرْطِهِ (إِذَا آتَيْتُمُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ) مُهُورهنَّ (وَلَا تُمَسِّكُوا) بِالتَّشْدِيدِ وَالتَّخْفِيف (بِعِصَمِ الْكَوَافِرِ) زَوْجَاتكُمْ لِقَطْعِ إِسْلَامكُمْ لَهَا بِشَرْطِهِ او اللاحقات بِالْمُشْرِكِينَ مُرْتَدَّات لِقَطْعِ ارْتِدَادهنَّ نِكَاحكُمْ بِشَرْطِهِ (وَاسْأَلُوا) اطْلُبُوا (مَا أَنْفَقْتُمْ) عَلَيْهِنَّ مِنَ الْمُهُور فِي صُورَة الِارْتِدَاد مِمَّنْ تَزَوَّجَهُنَّ مِنَ الْكُفَّار (وَلْيَسْأَلُوا مَا أَنْفَقُوا) عَلَى الْمُهَاجِرَات كَمَا تَقَدَّمَ أَنَّهُمْ يُؤْتَوْنَهُ (ذَلِكُمْ حُكْمُ اللَّهِ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ) بِهِ (والله عليم حكيم) (وَإِنْ فَاتَكُمْ شَيْءٌ مِنْ أَزْوَاجِكُمْ) أَيْ وَاحِدَة فَأَكْثَر مِنْهُنَّ أَوْ شَيْء مِنْ مُهُورهنَّ بِالذَّهَابِ (إِلَى الْكُفَّارِ) مُرْتَدَّات (فَعَاقَبْتُمْ) فَغَزَوْتُمْ وَغَنِمْتُمْ (فَآتُوا الَّذِينَ ذَهَبَتْ أَزْوَاجُهُمْ) مِنَ الْغَنِيمَة (مِثْلَ مَا أَنْفَقُوا) لِفَوَاتِهِ عَلَيْهِمْ مِنْ جِهَة الْكُفَّار (وَاتَّقُوا اللَّهَ الَّذِي أَنْتُمْ بِهِ مُؤْمِنُونَ) وَقَدْ فَعَلَ الْمُؤْمِنُونَ مَا أُمِرُوا بِهِ مِنَ الْإِيتَاء لِلْكُفَّارِ وَالْمُؤْمِنِينَ ثُمَّ ارْتَفَعَ هَذَا الْحُكْم (يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا جَاءَكَ الْمُؤْمِنَاتُ يُبَايِعْنَكَ عَلَى أَنْ لَا يُشْرِكْنَ بِاللَّهِ شَيْئًا وَلَا يَسْرِقْنَ وَلَا يَزْنِينَ وَلَا يَقْتُلْنَ أَوْلَادَهُنَّ) كَمَا كَانَ يُفْعَل فِي الْجَاهِلِيَّة مِنْ وَأْد الْبَنَات أَيْ دَفْنهنَّ أَحْيَاء خَوْف الْعَار وَالْفَقْر (وَلَا يَأْتِينَ بِبُهْتَانٍ يَفْتَرِينَهُ بَيْنَ أَيْدِيهِنَّ وَأَرْجُلِهِنَّ) أَيْ بِوَلَدٍ

مَلْفُوط يَنْسُبْنَهُ إِلَى الزَّوْجِ وَوُصِفَ بِصِفَةِ الْوَلَدِ الْحَقِيقِيِّ فَإِنَّ الْأُمَّ إِذَا وَضَعَتْهُ سَقَطَ بَيْنَ يَدَيْهَا وَرِجْلَيْهَا (وَلَا يَعْصِينَكَ فِي) فِعْلِ (مَعْرُوفٍ) هُوَ مَا وَافَقَ طَاعَةَ اللّٰهِ كَتَرْكِ النِّيَاحَةِ وَتَمْزِيقِ الثِّيَابِ وَجَزِّ الشُّعُورِ وَشَقِّ الْجَيْبِ وَخَمْشِ الْوَجْهِ (فَبَايِعْهُنَّ) فَعَلَ ذٰلِكَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْقَوْلِ وَلَمْ يُصَافِحْ وَاحِدَةً مِنْهُنَّ (واستغفر لهن الله إن الله غفور رحيم) (يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَوَلَّوْا قَوْمًا غَضِبَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ) هُمُ الْيَهُودُ (قَدْ يَئِسُوا مِنَ الْآخِرَةِ) مِنْ ثَوَابِهَا مَعَ إِيقَانِهِمْ بِهَا لِعِنَادِهِمُ النَّبِيَّ مَعَ عِلْمِهِمْ بِصِدْقِهِ (كَمَا يَئِسَ الْكُفَّارُ) الْكَائِنُونَ (مِنْ أَصْحَابِ الْقُبُورِ) أَيِ الْمَقْبُورِينَ مِنْ خَيْرِ الْآخِرَةِ إِذْ تُعْرَضُ عَلَيْهِمْ مَقَاعِدُهُمْ مِنَ الْجَنَّةِ لَوْ كَانُوا آمَنُوا وَمَا يَصِيرُونَ إِلَيْهِ مِنَ النَّارِ

**ترجمه:** نزدې ده چې الله تعالى په تاسو کښې او ستاسو دشمنانو کښې محبت پيدا کړي، يعنى کفار مکه سره تاسو د الله تعالى په اطاعت کښې دشمنى کړې ده، په داسې طريقه چې الله به هغوى ته د ايمان هدايت ورکړي نو هغوى به ستاسو دوستان جوړ شي، الله تعالى دې خبرې باندې قادر دې، او بې شکه الله تعالى د فتح مکه نه پس هم داسې اوکړل، او الله تعالى ددوى مخکښينى گناهونه معاف کولو والا او په دوى باندې رحم کولو والا دې، الله تعالى تاسو د هغه کافرانو سره کومو چې تاسو سره په دين کښې جنگ نه دې کړې او نه هغوى تاسو لره د خپلو کورونو نه ويستلي يئ، د ښه سلوک کولو نه د الذين نه بدل الاشتمال دې، او د انصاف کولو نه نه منع کوى، او دا حکم د جهاد د حکم نازليدو نه مخکښې وو، بلکه الله تعالى خو انصاف کونکى خوښوى، الله تعالى تاسو لره صرف د هغه خلقو د محبت نه منع کوى چا چې تاسو سره د دين په باره کښې جنگ کړې دې او تاسو ئې د کور نه بهر کړنى او ستاسو په جلاوطنى (د کور نه بې کوره کيدو) کښې ئې مرسته کړې ده، الذين نه بدل الاشتمال دې، يعنى دا چې تاسو هغوى لره دوستان مه جوړوئ، کوم خلق چې داسې کافرانو سره محبت اوکړي هغوى يقينا ظالمان دى، اې ايمان والو کله چې تاسو ته اقرار کونکى مومنانې زنانه د کفارو نه هجرت کولو سره راشي، دوى سره په حديبيه کښې په دې خبره باندې د صلحې نه پس چې په دوى کښې کوم مسلمانانو طرف ته راشي واپس کولې به شي، نو دوى نه د قسم په ذريعې سره امتحان اخلئ، چې دوى صرف اسلام سره د محبت کولو د وجې نه هجرت کړې دې، خپلو خاوندانو سره د بغض د وجې نه، او نه يو مسلمان سره د عشق د وجې نه، حضور ﷺ به د دوى نه داسې قسم اخستلو، ددوى د حقيقى ايمان خو الله ته ښه پته ده، خو که دوى تاسو ته د قسم د وجې نه مومنانې معلومې شي نو تاسو دوى کافرانو طرف ته مه واپس کوئ، دا د هغوى دپاره حلالې نه دى او نه هغوى ددوى دپاره حلال دى او ددوى د کافر خاوندانو کوم مهر چه په دوى باندې خرچ شوې وى هغه هغوى ته ورکړئ او کله چې تاسو ددې زنانو مهر ادا کړئ، نو په تاسو د دوى سره په نکاح کولو کښې د نکاح شرائطو سره هيڅ گناه نشته، تاسو مه

نیسي کافري ښځې په عزت یعني په نکاح سره ځکه چه تاسو اوس ایمان راوړي دي او ایمان په خپل شرط سره تاسو لره د دوی نه جدا کوی، یا ددې زنانو د مرتد کیدو په وجه مشرکانو سره د ملاویدو په سبب، ستاسو نکاح ختمیدو د وجه نه، د دې د شرط سره، او څه چې تاسو په دوی باندې مهر خرچ کړې دې ددوی ارتداد په صورت کښې ددوی د کافر خاوندانو نه اوغواړئ، او هغوی دې هم په مهاجراتو باندې خرچ شوې مال اوغواړی، ځنګه چې مخکښې تیر شول چې دوی ته به ورکولې شی، دا د الله فیصله ده کومه چې ستاسو په مینځ کښې کوی، الله تعالی ډیر علم او حکمت والا دې، او که ستاسو ښځې ستاسو د لاسونو نه اوځی یوه یا د یوې نه زیاتې، یا ددوی څه مهر پاتې شی، او مرتد کیدو سره د کافرانو سره د ملاویدو د وجې نه، بیا چې کله تاسو جهاد کوئ د دوی سره او تاسو ته مال غنیمت حاصل شی، نو د چا چې بیبیانې تلې وی نو هغوی ته د هغوی د خرچې برابر د مال غنیمت نه ورکړئ، د کافرانو د طرف نه ددوی د نفقه فوت کیدو د وجې نه، او د هغه الله نه ویریږئ په کوم چې تاسو ایمان راوړې دې، او بې شکه مومنانو په دې باندې عمل اوکړو، ځنګه چې هغوی ته حکم شوې وو، یعنی کافرانو او مومنانو ته ورکولو سره، بیا دا حکم منسوخ شو، اې پیغمبر ﷺ چې کله مسلمانې زنانه په دې خبرو باندې تاسره د بیعت کولو د پاره راشی چې دوی به د الله سره څوک شریک نه جوړوی، او نه به غلا کوی او نه به زنا کوی، او نه به خپل اولاد لره قتلوی، ځنګه چې هغوی به د جاهلیت په زمانه کښې لونړه ژوندئ خښولې، یعنی د شرم یا د غربت د وجه نه به ئې هغه قتلولې، او نه به د بهتان ماشوم راولی، چې هغه د خپلو لاسونو او خپو په مینځ کښې جوړ کړی، یعنی پردې بچې دې خپل خاوند طرف ته نه منسوب کوی، بین أیدیهن سره د ولد حقیقی وصف بیان شوې دې، ځکه چې مور کله بچې زیګوی نو هغه د هغې د خپو او لاسونو په مینځ کښې راپریوځی، او په نیک کار کښې به ستا نافرمانی نه کوی، او نیک کار هغه دې کوم چې دالله د اطاعت مطابق وی، لکه په مړی باندې چغې سورې وهل، کپړې شلول وینښته ویستل، ګریوان شلول او مخ راشوکول پریخودل، نو تاسو دوی سره بیعت اوکړئ، حضور ﷺ د بیعت دا عمل قولاً کړې وو او یو زنانه سره ئې هم لاس ملاو نکړو، او ددوی د پاره د الله نه بخښنه غواړه، بې شکه الله تعالی بخښونکې او معاف کولو والا دې، اې مسلمانانو هغه قوم سره دوستی مه ساتئ، په کوم باندې چې د الله غضب نازل شوې دې، او هغه یهود دی او کوم چې د اخرت نه داسې مایوسه شوی دی یعنی د هغې د ثواب نه، په اخرت باندې د ایمان ساتلو باوجود د حضور ﷺ د دشمنئ په وجه، د هغوی ﷺ برحق کیدو علم لرو باوجود ځنګه چې کافران په قبرونو کښې د آخرت د خیر نه ناامیده شوی دی، چې کله ددوی په مخکښې د جنت تهکانه ښکاره کړې شی، که چرې ایمان ئې راوړې وو، او د جهنم هغه تهکانه هم کومې ته چې دوی روان دی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله** :طاعة لله تعالى :أي عاديتم لأجل طاعة الله طاعة الله دا د عاديتم مفعول له دې.

**قوله** :تقضوا: د تقسطوا تفسير ئې په تقضوا سره کولو کښې دا اوښودل چې تقسطوا د تقضوا معنې لره متضمن دې، چې د دې صله إلى راوړل صحيح شی، د تقسطوا عطف په تبروهم باندې د عطف خاص على العام د قبيلې نه دې، ښه به دا وه چې د تقسطوا تفسير ئې تعطوهم قسطا من أموالكم سره کړې وو، يعنى هغوی سره ښه سلوک اوکړئی او هغوی ته د خپلو مالونه څه ورکړئی ځکه چې صرف د جنګ نه کونکی کافرانو سره د انصاف کولو څه مطلب نشته، عدل او انصاف خو د ټولو سره ضروری دې که محارب وی او که غير محارب، لهذا د عدل تخصيص صرف غير مهاجرين سره مناسب نه دې.

**قوله**: بشرطه: يعنى د نکاح شرائط پورا کولو په صورت کښې تاسو د دوی سره نکاح کولې شئ، مثلا دا چې د اسلام په حالت کښې ددوی عدت ختم شی، که چرې هغه مدخول بها وی، او دا چې د ګواهانو په موجودګئ کښې نکاح اوشی.

**قوله**: عصم: د عصمة جمع ده، په معنى د نکاح، عزت ګواهر، جمع کافرة مثل ضوارب جمع ضاربة

**قوله**: لقطع اسلامكم لها بشرطه: أى بشرط القطع.

**[٦١] سورة الصف**

**سورة الصف مكية او مدنية اربع عشرة اية**

سورة الصف مکی يا مدنی دې، په دې کښې څوارلس آياتونه دی.

**[اياتونه: ١ - ٩]**

{سَبَّحَ لِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ} أي نَزَّهَهُ فاللام مزيدة وَجِيءَ بِمَا دون من تغليبا للأكثر {وَهُوَ الْعَزِيزُ} في ملكه {الْحَكِيمُ} في صنعه {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لِمَ تَقُولُونَ} في طلب الجهاد {مَا لَا تَفْعَلُونَ} إذ انهزمتم باحد {كَبُرَ} عظم {مَقْتًا} تمييز {عِنْدَ اللَّهِ أَنْ تَقُولُوا} فاعل كبر {مَا لَا تَفْعَلُونَ} {إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ} ينصر ويكرم {الَّذِينَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِهِ صَفًّا} حال أي صافين {كَأَنَّهُمْ بُنْيَانٌ مَرْصُوصٌ} ملزق بعضه إلى بعض ثابت {وَ} اذكر {إِذْ قَالَ مُوسَى لِقَوْمِهِ يَا قَوْمِ لِمَ تُؤْذُونَنِي} قالوا إنه آدر أي منتفخ الخصية وليس كذلك وكذبوه {وَقَدْ} للتحقيق {تَعْلَمُونَ أَنِّي رَسُولُ اللَّهِ إِلَيْكُمْ} الجملة حال والرسول يحترم {فَلَمَّا زَاغُوا} عدلوا عن الحق بإيذائه {أَزَاغَ اللَّهُ قُلُوبَهُمْ} أمالها عن الهدى على وفق ما قدره في الأزل {وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفَاسِقِينَ} الكافرين في علمه {وَ} اذكر {إِذْ قَالَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ يَا بَنِي إِسْرَائِيلَ} لم يقل يا قوم لأنه لم يكن له فيهم قرابة {إِنِّي رَسُولُ اللَّهِ إِلَيْكُمْ مُصَدِّقًا لِمَا بَيْنَ يَدَيَّ} قبلي {مِنَ التَّوْرَاةِ وَمُبَشِّرًا بِرَسُولٍ يَأْتِي مِنْ بَعْدِي اسْمُهُ أَحْمَدُ} قال تعالى {فَلَمَّا جَاءَهُمْ} جاء أحمد الكفار {بِالْبَيِّنَاتِ} الآيات والعلامات {قَالُوا هَذَا} أي

الْمَجِيءِ بِهِ (سِحْرٌ) وَفِي قِرَاءَةٍ سَاحِرٌ أَيِ الْجَائِي بِهِ (مُبِينٌ) بَيِّنٌ (وَمَنْ) أَيْ لَا أَحَدَ (أَظْلَمُ) أَشَدُّ ظُلْمًا (مِمَّنِ افْتَرَى عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ) بِنِسْبَةِ الشَّرِيكِ وَالْوَلَدِ إِلَيْهِ وَوَصْفِ آيَاتِهِ بِالسِّحْرِ (وَهُوَ يُدْعَى إِلَى الْإِسْلَامِ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِينَ) الْكَافِرِينَ (يُرِيدُونَ لِيُطْفِئُوا) مَنْصُوبٌ بِأَنْ مُقَدَّرَةٍ وَاللَّامُ مَزِيدَةٌ (نُورَ اللّٰهِ) شَرْعَهُ وَبَرَاهِينَهُ (بِأَفْوَاهِهِمْ) بِأَقْوَالِهِمْ إِنَّهُ سِحْرٌ وَشِعْرٌ وَكِهَانَةٌ (وَاللّٰهُ مُتِمٌّ) مُظْهِرٌ (نُورِهِ) وَفِي قِرَاءَةٍ بِالْإِضَافَةِ (وَلَوْ كَرِهَ الْكٰفِرُونَ) ذٰلِكَ (هُوَ الَّذِي أَرْسَلَ رَسُولَهُ بِالْهُدٰى وَدِينِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهُ) يُعْلِيَهُ (عَلَى الدِّينِ كُلِّهِ) جَمِيعِ الْأَدْيَانِ الْمُخَالِفَةِ لَهُ (وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُونَ) ذٰلِكَ

**ترجمه**: شروع کوم د الله په نوم سره چې ډير مهربانه او ډير رحم والا دې، په زمکه او اسمان کښې هر څيز د الله پاکي بيانوی، يعنی د هغه تنزيه کوی، په لله کښې لام زائده دې، او د من په ځائې ما راوړل اکثرو لره غلبې ورکولو په اعتبار سره دی او هغه په خپل ملک کښې غالب دې، او په خپل صنعت کښې حکمت والا دې، اې ايمان والو! د جهاد په طلب کښې تاسو هغه خبره ولې کوئ چې کوئ ئې نه، ؟ کله چې تاسو په احد کښې شکست اوخوړو د دې وئيل د الله په نيز باندې ډيره ناخوښه ده، مقتا تميز دې، أن تقولوا د کبر فاعل دې، چې تاسو هغه خبره اووايئ کومه چې کوئ نه، بې شکه الله تعالی هغه خلقو سره محبت کوی، يعنی مدد او اکرام کوی، څوک چې د هغه په لار کښې صفونه جوړولو سره جهاد کوی، صَفًّا حال دې او په معنی د صافين، لکه د ويلې شوې تانبې يو مضبوط، عمارت دې. او هغه وخت ياد کړه چې کله موسی عليه السلام خپل قوم ته اووئيل چې اې ځما قوم! تاسو ماته ولې تکليف راکوئ؟ هغوی اووئيل چې موسی عليه السلام آدر دې، يعنی پرسيدلې خصيو (اګو) والا دې، حالانکه داسې خبره نه وه، او د هغوی ئې تکذيب اوکړو، حالانکه تاسو ته ښه پته ده چې زه د الله د طرف نه رسول يم، قد د تحقيق د پاره جمله حاليه ده، او رسول محترم وی، چنانچه هغوی چې کله دوی ته تکليف رسولو د وجې د حق لارې نه واوړيدل، نو الله تعالی د هوی زړونه د هدايت نه واړول، د هغې مطابق کوم چې د ازل نه ليکلې شوې وو، او الله تعالی نافرمان قوم ته کوم چې د هغه په علم کښې کافران دی هدايت نه ورکوی، او هغه وخت ياد کړه چې کله عيسی بن مريم عليه السلام اووئيل چې اې بنی اسرائيل! (يا قوم) ئې اونه وئيل ځکه چې د عيسی عليه السلام هغوی سره رشته داری نه وه، زه ستاسو طرف ته د الله رسول يم، ځما نه د مخکښنی کتاب د تورات زه تصديق کوم، او زه زيرې ورکونکې يم په يو رسول باندې چې ځما نه پس به راځی چه نوم ئې احمد دې الله تعالی اوفرمائيل بيا چې کله احمد دې کافرانو ته ښکاره دليلونه او نښې راوړې نو دوی اووئيل چې دا څيز کوم چې ده راوړې دې ښکاره جادو دې، او په يو قرائت کښې ساحر دې، يعنې ددې راوړونکې ساحر دې، د هغه کس نه به زيات ظالم څوک وی؟ چا چې د الله

سره شرک اوکړو او هغه طرف ته ئې د ولد نسبت اوکړو، او د هغه ایتونه ئې سحر سره متصف کړل، حالانکه هغه اسلام طرف ته رابللې شي الله تعالی ظالم کافر خلقو ته هدایت نه ورکوی، دوی غواړی چې د الله نور یعنی د هغه شریعت او دلیلونه په خپلو خلوو خبرو سره مړ کړی، چې دا خو سحر دې، او کهانت دې او شعر دې، لِيُطْفِؤوا د أن مقدره د وجې نه منصوب دې، او لام زائده دې، الله تعالی خپل نور ظاهرونکې دې، او په یو قراءت کښې مُتِمُّ نُورِهِ اضافت سره دې، اګرچه دا کافران نه خوښوی، الله هم هغه دې چا چې خپل رسول ته هدایت ورکړو، او دین حق ورکولو سره ئې رااولیږلو، چې په نورو مذهبونو یعنی په ټولو مخالف دینونو باندې ئې غالب کړی اګر چې مشرکان دا نه خوښوی.

## تحقیق وترکیب تسهیل وتفسیری فوائد:

**قوله**: مَكِّيَّةٌ أو مَدَنِيَّةٌ: د عکرمه، قتاده او حسن رحمهم الله په نیز باندې مکی دې، د جمهورو د قول مطابق مدنی دې.

**قوله**: مَقْتًا تمييز: یعنی د فاعل نه منقول کیدو سره تمیز دې، یعنی مقتاً په اصل کښې فاعل دې، تقدیری عبارت دا دې كَبُرَ مَقْتُ قَوْلِكُمْ، اَلْمَقْتُ أَشَدُّ الْبُغْضِ ناخوښه.

**قوله**: مَرْصُوصٌ: د رَصّ نه اسم مفعول، مضبوط، ویلې شوې سیسه، (قلعی) رَصّ، دوه څیزونه یو بل سره یو ځائې کول، ملاوول، رصاص، رانګ، سیسه.

**قوله**: يَنْصُرُوَيُكْرِمُ: دا د يُحِبُّ د لازم معنی بیان دې او مقصد په دې تفسیر سره د یو اعتراض دفع کول دی.

**اعتراض**: مَحَبَّةٌ معنی د زړه میلان دې، دا معنی د الله په حق کښې محاله ده، ځکه چې د زړه د میلان د پاره د زړه موجویدل لازم دی، او د قلب د پاره جسم لازم دې، حالانکه الله تعالی د جسم نه پاک دې؟

**جواب**: د جواب ماحصل دا دې چې د محبة لازم معنی مراد ده یعنی میلان د قلب او د رقت قلب (زړه نرمیدل) د پاره نصرت او اکرام لازم دې، کوم چې دلته مراد دې، لهذا دلته لازم معنی مراد ده.

**قوله**: صَفًّا: دا د يُقَاتِلُونَ د ضمیر نه حال دې صافين مفعول، أنفسهم محذوف دې، أى صافين أنفسهم

**قوله**: لأنه لم يكن له فيهم قرابة: د قرابت د نه کیدو وجه دا ده چې د قرابت او د نسب تعلق (اب) والد سره دې، او د حضرت عیسی علیه السلام څوک اب نه وو.

**قوله**: مُصَدِّقًا: دا د رسول په معنی د مرسل د ضمیر نه حال دې، او دغه شان مبشرا هم.

قوله: :يأتي من بعدي: جمله د رسول صفت دي.

قوله: :اسمه احمد:دا د ځاونه اسم مفعول دي، مجي په اصل کښې مجيوو، په وزن د مفعول د ياء ضمه ئې جيم ته ورکړه، دوه ساکن او ياء واؤ جمع شول، واؤ حذف کړې شو، او جيم ته د ياء په مناسب سره کسره ورکړې شوه، مجي شو.

قوله: :لاأحد:دې سره اشاره ده چې په من أظلم کښې من استفهام انکارى په معنى د نفى دى.

قوله: :وَوَصْفِ آيَاتِهِ:د وصف عطف په تسمية الهرک باندې د کيدو د وجې نه مجرور دى

قوله: :وهو يدعى الى الاسلام:جمله حاليه ده.

[ايانونه: ۱۰-۱۴]

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَى تِجَارَةٍ تُنْجِيكُمْ﴾ بالتخفيف والتشديد ﴿مِنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ﴾ مؤلم فكانهم قالوا نعم فقال ﴿تُؤْمِنُونَ﴾ تدومون على الإيمان ﴿بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَتُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنْفُسِكُمْ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ﴾ انه خير لكم فافعلوه ﴿يَغْفِرْ﴾ جواب شرط مقدر اي إن تفعلوه يغفر ﴿لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَيُدْخِلْكُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ وَمَسَاكِنَ طَيِّبَةً فِي جَنَّاتِ عَدْنٍ﴾ إقامة ﴿ذَٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ﴾ ﴿وَ﴾ يؤتكم نعمة ﴿أُخْرَىٰ تُحِبُّونَهَا نَصْرٌ مِنَ اللَّهِ وَفَتْحٌ قَرِيبٌ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ﴾ بالنصر والفتح ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُونُوا أَنْصَارَ اللَّهِ﴾ لدينه وفي قراءة بالإضافة ﴿كَمَا قَالَ﴾ إلخ المعنى كما كان الحواريون كذلك الدال عليه قال ﴿عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ لِلْحَوَارِيِّينَ مَنْ أَنْصَارِي إِلَى اللَّهِ﴾ اي من الأنصار الذين يكونون معي متوجها إلى نصرة الله ﴿قَالَ الْحَوَارِيُّونَ نَحْنُ أَنْصَارُ اللَّهِ﴾ والحواريون أصفياء عيسى وهم أول من آمن به وكانوا اثني عشر رجلا من الحور وهو البياض الخالص وقيل كانوا قصارين يحورون الثياب اي يبيضونها ﴿فَآمَنَتْ طَائِفَةٌ مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ﴾ بعيسى وقالوا إنه عبد الله رفع إلى السماء ﴿وَكَفَرَتْ طَائِفَةٌ﴾ لقولهم إنه ابن الله رفعه إليه فاقتتلت الطائفتان ﴿فَأَيَّدْنَا﴾ قوينا ﴿الَّذِينَ آمَنُوا﴾ من الطائفتين ﴿عَلَىٰ عَدُوِّهِمْ﴾ الطائفة الكافرة ﴿فَأَصْبَحُوا ظَاهِرِينَ﴾ غالبين

ترجمه: اې ايمان والو ! آيا تاسو ته هغه تجارت اونه ښايم چې تاسو د دردناک عذاب نه بچ کړي؟ تنجيکم په تخفيف او تشديد سره دې، ګويا چې د دوی اووئيل چې آو، تاسو په الله او د هغه په رسول باندې ايمان راوړئ، يعنى په ايمان باندې قائم اوسيږئ، او په خپل ځان، او په خپل مال سره د الله په لار کښې جهاد کوئ، دا ستاسو په حق کښې بهتره ده که چرې تاسو پوهيږئ، چې دا بهتره ده نو دا کار اوکړئ، الله تعالى به ستاسو ګناهونه معاف کړي، او تاسو به هغه جنتونو کښې داخل کړي چې د هغې لاندې به نهرونه بهيږي، او صفا ستره کورونو ته، چه په

جَنّت عدن، (د اوسیدو قابل) جنت کښې به وی دا لویه کامیابی ده، او تاسو ته به یو بل نعمت هم درکړی، چې هغه تاسو خوښوئ او هغه د الله مدد دې او نزدې کامیابی ده، او تاسو ﷺ مومنانو ته د فتح او د نصرت زیرې ورکړئ، اې ایمان والو! د الله یعنی د هغه د دین مددګار جوړ شئ، او په قراءت کښې انصار الله په اضافت سره دې، څنګه چې د عیسی ﷺ حواریان انصار الله شول، په دې باندې د حضرت عیسی ﷺ قول دلالت کوی، عیسی ﷺ بن مریم حواریانو ته اوفرمائیل چې څوک دی چې د الله په لار کښې ځما مدد ګار شی، یعنی د هغه مددګارو نه چې ماسره د الله نصرت طرف ته متوجه وی، حواریانو اووئیل چې مونږ د الله په لار کښې مددګار یو، او حواریان د عیسی ﷺ خوښ کړې شوی وو، دا هغه خلق وو چې په شروع کښې ئې په حضرت عیسی ﷺ باندې ایمان راوړې وو، او دوی دولس کسان وو، حور نه مشتق دې، حور خالص سپینوالی ته وئیلې شی، او وئیلې شوې دی چې دوی دهوبیان وو، چې کپړې به ئې وینځلې یعنی صفا کولې، نو په بنی اسرائیلو کښې یو جماعت په عیسی ﷺ باندې ایمان راوړو، هغوی اووئیل چې هغه حضرت عیسی ﷺ د الله بنده وو، کوم چې اسمانونو طرف ته اوچت کړې شوې دې، او یو جماعت کفر اوکړو، ددوی ددې قول د وجې نه چې عیسی ﷺ د الله ځوئې دې، او هغه اسمانونو ته اوچت کړې شوې دې، په دواړو ډلو کښې قتال اوشو، نو مونږ د هغه خلقو یعنی ددوی د دشمنانو په مقابله کښې مدد اوکړو. کومو چې د دواړو ډلو نه ایمان راوړې وو، یعنی د کافر په جماعت باندې، نو دوی غالب راغلل، یعنی فتح ئې حاصله کړه.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** :هل ادلکم علی تجارة تنجیکم من عذاب الیم: استفهام په معنی د خبر، خبر په لفظ د استفهام سره د ذکر کولو مقصد تشویق او ترغیب دې، څکه چې استفهام أوقع فی النفس وی جهاد ته د تجارت وئیلو وجه دا ده چې الله تعالی اوفرمائیل ان الله اشتری من المؤمنین انفسهم وأموالهم الآیة. یعنی د مجاهد ځان او مال کوم چې هغه د الله په لاره کښې خرچ کوی، نو د دې خرچ نه ئې په اشتری سره تعبیر اوکړو، کوم چې په تجارت کښې کیږی.

**قوله:** :تؤمنون: د مبتدأ محذوف خبر دې، أی هی تؤمنون یا جمله مستانفه ده کومه چې د سوال مقدر په جواب کښې راغلې ده، أی ما هی التجارة؟ ددې جواب ورکړې شو هی تؤمنون الخ

**قوله:** :ذالکم خیر لکم: الخ، ذلکم مبتدأ خیر خبر

**قوله**: :انه خیرلکم:نه اشاره اوکره چې د تعلمون مفعول محذوف دې، او فافعلوا سره ئې اشاره اوکره چې د اِنْ کُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ جواب شرط محذوف دې،

**قوله**: :یغفرلکم:دا د شرط مقدر جواب دې، أی إن تفعلوه یغفرلکم،او دا هم کیدې شی چې د هغه امر د جواب کیدو د وجې نه منصوب وی کوم چې د تُؤمنون نه مفهومیږی، ځکه چې تؤمنون د آمنوا په معنی کښې دې.

**قوله**: : یؤتکم نعمة:مفسر علام یؤتکم (عامل) مقدر منلو سره اشاره اوکره چې أخری موصوف محذوف صفت دې، او موصوف د صفت سره د یؤتکم مقدر مفعول دې، او ددې عاملِ مقدر عطف په مذکور یعنی دیدخلکم باندې دې.

**قوله**: :تحبونها:د اخری صفت دې.

**قوله**: :نصرمن الله،الخ، دا د مبتدأ محذوف خبر دې، أی تلك النعمة الأخری نصرمن الله.

[٦٢]سورة الجمعة

سورة الجمعة مدنية احدی عشرة اية

سورة الجمعة مدنی دې، په دې کښې یوولس آیاتونه دی.

[ایاتونه:١-٨]

{يسبح لله} يُنَزِّهُهُ فَاللَّام زَائِدَة {مَا فِي السَّمَاوَات وَمَا فِي الْأَرْض} فِي ذِكْر مَا تَغْلِيب لِلْأَكْثَرِ {الْمَلِك الْقُدُّوس} الْمُنَزَّه عَمَّا لَا يَلِيق بِهِ {الْعَزِيزِ الْحَكِيم} فِي مُلْكه وَصُنْعه {هُوَ الَّذِي بَعَثَ فِي الْأُمِّيِّينَ} الْعَرَب وَالْأُمِّيّ مَنْ لَا يَكْتُب وَلَا يَقْرَأ كِتَابًا {رَسُولًا مِنْهُمْ} هُوَ مُحَمَّد صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {يَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِه} الْقُرْآن {وَيُزَكِّيهِمْ} يُطَهِّرهُمْ مِنْ الشِّرْك {وَيُعَلِّمهُمْ الْكِتَاب} الْقُرْآن {وَالْحِكْمَة} مَا فِيهِ مِنْ الْأَحْكَام {وَإِنْ} مُخَفَّفَة مِنْ الثَّقِيلَة وَاسْمهَا مَحْذُوف أَيْ وَإِنَّهُمْ {كَانُوا مِنْ قَبْل} قَبْل مَجِيئِهِ {لَفِي ضَلَال مُبِين} بَيِّن {وَآخَرِينَ} عَطْف عَلَى الْأُمِّيِّينَ أَيْ الْمَوْجُودِينَ {مِنْهُمْ} وَالْآتِينَ مِنْهُمْ بَعْدهمْ {لَمَّا} لَمْ {يَلْحَقُوا بِهِمْ} فِي السَّابِقَة وَالْفَضْل {وَهُوَ الْعَزِيز الْحَكِيم} فِي ملكه وصنعه وهم التابعة وَالِاقْتِصَار عَلَيْهِمْ كَاف فِي بَيَان فَضْل الصَّحَابَة الْمَبْعُوث فِيهِمْ النَّبِيّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى مَنْ عَدَاهُمْ مِمَّنْ بُعِثَ إلَيْهِمْ وَآمَنُوا بِهِ مِنْ جَمِيع الْإِنْس وَالْجِنّ إلَى يَوْم الْقِيَامَة لِأَنَّ كُلّ قَرْن خَيْر مِمَّنْ يَلِيه {ذَلِكَ فَضْل اللَّه يُؤْتِيه مَنْ يَشَاء} النَّبِيّ ومن ذكر معه {والله ذو الفضل العظيم} {مَثَل الَّذِينَ حُمِّلُوا التَّوْرَاة} كُلِّفُوا الْعَمَل بِهَا {ثُمَّ لَمْ يَحْمِلُوهَا} لَمْ يَعْمَلُوا بِمَا فِيهَا مِنْ نَعْته صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يُؤْمِنُوا بِهِ {كَمَثَلِ الْحِمَار يَحْمِل أَسْفَارًا} أَيْ كُتُبًا فِي عَدَم انْتِفَاعه بِهَا {بِئْسَ مَثَل الْقَوْم الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِ اللَّه} الْمُصَدِّقَة لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْمَخْصُوص بِالذَّمِّ مَحْذُوف تَقْدِيره هَذَا الْمَثَل {وَاللَّه لَا يَهْدِي الْقَوْم الظَّالِمِينَ} الكافرين {قُلْ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ هَادُوا إنْ زَعَمْتُمْ أَنَّكُمْ أَوْلِيَاء لِلَّهِ مِنْ دُون النَّاس فَتَمَنَّوْا الْمَوْت إنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ} تَعَلَّقَ بِتَمَنَّوْا الشَّرْطَانِ عَلَى أَنَّ الْأَوَّل قَيْد فِي الثَّانِي أَيْ

ان صدقتم في زعمكم انكم اولياء لله والولي يؤثر الآخرة ومبدؤها الموت فتمنوه (ولا يتمنونه أبدا بما قدمت أيديهم) من كفرهم بالنبي المستلزم لكذبهم (والله عليم بالظالمين) الكافرين (قل إن الموت الذي تفرون منه فإنه) الفاء زائدة (ملاقيكم ثم تردون إلى عالم الغيب والشهادة) السر والعلانية (فينبئكم بما كنتم تعملون) فيجازيكم به

**ترجمه:** شروع کوم د الله په نوم سره چې ډیر مهربانه او ډیر رحم والا دې، ټول څیزونه کوم چې په اسمانونو او زمکه کښې دی هغه د الله پاکی بیانوی، لام زائده دې، د من په ځائې باندې ما ذکر کول اکثر ته غلبه ورکول دی، کوم چې بادشاه دې، د هغه څیزونو نه پاک دې، کوم چې د هغه شان سره نه ښائی، او هغه په خپل ملکیت کښې غالب او په خپل کاریګرئ کښې باحکمت دې، هم هغه دې چا چې بې علمه (په امیانو) خلقو کښې یعنی په عربو کښې هم د هغوی نه یو رسول رااولیږلو، امی هغه کس دې چې لیکل لوستل کولې نشی، او هغه محمد ﷺ دې، کوم چې دوی ته ددې قرآن ایتونه لوستلو سره اوروی، او دوی د شرک نه پاکوی، او دوی ته کتاب قرآن او حکمت یعنی چه په دې کښې احکام دی، أن مخففه عن الثقیله ده، او ددې اسم محذوف دې، أی إنهم ښائی، یقینا دوی دده ﷺ د راتلو نه مخکښې په ښکاره ګمراهئ کښې وو، او روستو خلقو کښې مو رااولیږلو، او د آخرین عطف په الأمیین باندې دې، یعنی په موجوده امیانو کښې او راروان نورو امیانو کښې، خو په مخکښې والې کښې ددوی برابر او نه رسیدلی، او هغه نه رسیدونکی تابعین دی، او تابعینو باندې یعنی تابعین نه پس قیامت پورې راتلونکی انسانان او پیریان کومو چې په حضور ﷺ باندې ایمان راوړې دې، د صحابه فضیلت ثابتولو د پاره، په تابعینو باندې اثبات فضیلت کښې اکتفا کافی وی، هغه صحابه دی چې په هغوی کښې حضور ﷺ رااولیږلې شو، ځکه چې هر یو زمانه د راتلونکې زمانې نه ښه وی، په خپل ملک او صنعت کښې هم هغه غالب او باحکمت دې، دا د الله فضل دې هغه چې چاته غواړی ورکوی ئې، یعنی نبی ﷺ او د چا چې نبی ﷺ سره ذکر اوشو، او الله ډیر لوئې فضل والا دې، او چاته چې په تورات باندې د عمل کولو حکم ورکړې شو یعنی کوم خلق چې په تورات باندې د عمل کولو مکلف جوړ کړې شوې وو، بیا هغوی په دې باندې عمل اونکړو، په هغه صفاتو باندې کوم چې د حضور ﷺ صفات په تورات کښې وو، چې د هغې د وجې نه دوی په حضور ﷺ باندې ایمان راو نړو، ددوی مثال فائده نه حاصلولو کښې د هغه خر په شان دې چې په هغه باندې ډیر کتابونه پراته وی، غرض دا چې ددې خلقو ډیر خراب حالت دې، چا چې د الله ایتونه دروغژن اوګنړل، کوم چې د محمد ﷺ د نبوت تصدیق کولو والا دی، او مخصوص بالذم محذوف دې، او ددې

تقدیر هذا المثل دي، او الله ظالمانو یعنی کافرانو ته هدایت نه ورکوي، تاسو ورته اووایئ چې ای یهودیانو! که چرې ستاسو دا دعوی ده چې تاسو د بل چا د شرکت نه بغیر د الله مقبول یئ نو تاسو د مرگ تمنا اوکړئ، تمنوا سره دوه شرطونه متعلق دی، په دې طریقه باندې چې اول په ثانی کښې قید دې، یعنی که تاسو په خپل گمان کښې په دې خبره کښې رشتینی یئ چې تاسو د الله محبوب یئ، او محبوب آخرت ته ترجیح ورکوي، او ددې مبدأ د مرگ دې، لهذا تاسو د مرگ تمنا اوکړئ. دوی به چرې هم د مرگ خواهش اونکړي، په سبب د هغه اعمالو د کفر کوم چې دوی اختیار کړې دی، یعنی په وجه د حضور ﷺ د انکار، کوم چې ددوی تکذیب ته مستلزم دې، الله تعالی دې ظالمانو لره کافرانو لره ډیر ښه پیژنی، تاسو ورته اووایئ، چې تاسو د کوم مرگ نه تختئ هغه به تاسو راونیسی، فانه کښې فاء زائده ده، یا به تاسو پټ او ښکاره باندې د عالم مخکښې راوستلې شئ، بیا به هغه تاسو ته ستاسو ټول کړې شوي کارونه بیان کړي، او تاسو ته به هغې بدله درکړي.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل:

**قوله:** :القدوس: د مبالغې صیغه ده ډیر پاک، برکت والا، په وزن د فُعُول، بضم فا، په عربئ کښې په دې وزن باندې صرف څلور الفاظ دی، قدوس، سبوح، ذروح، فروج، ! هم د فاء په فتحې سره وئیل جائز دی، باقی په دې وزن باندې چې څومره الفاظ راغلې دی هغه ټول د فاء په فتحې سره راغلې دی.

**قوله:** :في الاميين: أي إلى أميين وآخرين أي إلى آخرين في عطف إلى.

**قوله:** :يتلوا عليهم: دا د رسولا صفت دې، یا ترې نه حال دې.

**قوله:** :مخففة عن الثقيلة: وإن كانوا کښې إن مخففه عن الثقيله دې، په اصل کښې إنهم وو، او دلیل ددې نه پس د لام واقع کیدل دی، أي لفي ضلال مبين، دا قسم لام مخففه عن الثقيله سره خاص دې.

**قوله:** :عطف على الأميين: یعنی د آخرین په اعراب کښې دوه وجې دی، اول دا چې آخرین په امیین باندې عطف کیدو د وجې نه مجرور دې، أي بعثه في الأميين وفي الآخرين من الأميين او

**قوله:** :لما يلحقوا بهم: دا د آخرین صفت دې، دویمه وجه دا ده، چې آخرین د یعلمهم په ضمیر باندې عطف کیدو د وجې نه منصوب دې، أي يعلم الآخرين لما يلحقوا بهم

**قوله:** :الموجودين منهم: دا د الأميين معطوف علیه تفسیر دې، او مراد د امیین نه هغه عرب دی کوم چې د حضور ﷺ په زمانه کښې موجود وو.

**قوله**: :لم يلحقوا بهم في السابقة: د لمّا تفسير په لم سره کولو کښې اشاره اوکړه چې دا عدم سابقيت د قيامت د ورځې پورې دې، دا مطلب نه دې چې اوسه پورې په سابقيت کښې برابر نه دی، خو آئنده اميد شته، ځکه چې د لمّا نه مفهوم کيږی، ځکه چې د لمّا مفهوم دې (تر اوسه) او د لمْ په ذريعه سره نفی عام وی، که د هغې حاصليدل متوقع وی او که نه وی، په خلاف د لمّا نه، چې ددې استعمال په هغه نفی کښې کيږی د کوم حاصليدل چې متوقع وی.

**قوله**: :والاقتصار عليهم: يعنی د آخرين په تفسير کښې تابعين باندې اقتصار کول کافی دی، په اصل کښې دا د مفسر علام د طرف نه د نورو مفسرينو د تفسير نه د عدول کولو عذر پيش کول دی، يعنی نورو مفسرينو حضراتو د صحابه کرامو فضيلت د قيامت د ورځې پورې راتلونکو مسلمانانو باندې بيان فرمائيلې دې، او د مفسر (علامه محلی) د عبارت نه صرف په تابعين باندې فضيلت معلوميږی، حق نورو مفسرينو سره دې.
د اعتذار حاصل دا دې چې کله په تابعينو باندې د صحابه کرامو فضيلت ثابت شو، نو د تابعينو نه پس په نورو حضراتو باندې به خامخا فضيلت ثابت وی، او دليل ددې دا دې چې هر يو قرن د خپل مابعد متصل قرن نه ښه وی.

**قوله**: :مِمَّن بعث إليهم: د من عداهم بيان دې،

**قوله**: :من جميع: دا د بيان بيان دې

**قوله**: :لأنّ كُلّ قرن: دا د مفسر د قول (کافی) علت دې،

**قوله**: :النبی ومن ذکر معه: داد من يشآء تفسير دې، اود من ذکرنه مراد اُمِّيُّون او آخرون دې.

**قوله**: شرطان: أی إن زعمتم أو إن كنتم صادقين

**قوله**: الأول قيد فی الثانی:

**اعتراض**: يعنی اول د ثانی شرط دې، ددې مقتضیٰ دا ده چې اصل شرط ثانی دې او اول ددې قيد دې، او دا د مشهورې قاعدې نه خلاف ده، او قاعده مشهوره دا ده چې کله يو جزاء د دوو شرطونو سره متعلق وی نو په حقيقت کښې اول شرط وی، او دويم د اول شرط وی، لکه چې شرطِ اول او شرطِ ثانی په معنی د إن صدقتم فی زعمکم دی؟

**جواب**: د جواب ماحصل دا دې چې قاعده مشهور هغه وخت ده چې جزاء د دوارو شرطونو نه پس يا مخکښې واقع وی، دلته جزاء د دوارو شرطونو په مينځ کښې واقع ده، لهذا دا د قاعدې مشهورې خلاف نه ده.

[ايا تو له: ٩ - ١١]

{يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَاةِ مِنْ} بمعنى في {يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا} فامضوا {إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ} للصلاة {وَذَرُوا الْبَيْعَ} اتركوا عقده {ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ} انه خير فافعلوه {فَإِذَا قُضِيَتِ الصَّلَاةُ فَانتَشِرُوا فِي الْأَرْضِ} امر اباحة {وَابْتَغُوا} اطلبوا الرزق {مِن فَضْلِ اللَّهِ وَاذْكُرُوا اللَّهَ} ذكرا {كَثِيرًا لَّعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ} تفوزون كان صلى الله عليه وسلم يخطب يوم الجمعة فقدمت عير وضرب لقدومها الطبل على العادة فخرج لها الناس من المسجد غير اثني عشر رجلا فنزلت {وَإِذَا رَأَوْا تِجَارَةً أَوْ لَهْوًا انفَضُّوا إِلَيْهَا} اي التجارة لانها مطلوبهم دون الله و {وَتَرَكُوكَ} في الخطبة {قَائِمًا قُلْ مَا عِندَ اللَّهِ} من الثواب {خَيْرٌ} للذين آمنوا {مِّنَ اللَّهْوِ وَمِنَ التِّجَارَةِ وَاللَّهُ خَيْرُ الرَّازِقِينَ} يقال كل انسان يرزق عائلته اي من رزق الله تعالى

**ترجمه:** اے مومنانو چې کله د جمعې په ورځ د جمعې د مانځه د پاره اذان اوکړې شي نو تاسو د الله یاد طرف ته فورا روانیږئ، من په معنی د فی دې، او لین دین پریږدئ، دا ستاسو د پاره بهتره ده که تاسو پوهیږئ، چه دا بهتر ده، نو بیا تاسو په دې باندې عمل اوکړئ، بیا چې کله مونځ اوشي نو تاسو په زمکه کښې خواره شئ، امر د اباحت د پاره دې، او د الله تعالی فضل، (روزي) تلاش کړئ، او الله تعالی ډیر ډیر یادوئ، چې تاسو کامیاب شئ، حضور ﷺ د جمعې په ورځ باندې خطبه ورکوله چې یو قافله راغله او د دستور مطابق د هغې په راتلو سره ډهول اووهلې شو، نو خلق د هغې د پاره د مسجد نه بهر راغلل، سوا د دولس کسانو نه، نو دا ایت نازل شو، دا خلق چې کله یو تجارت اوګوري یا څه تماشه ورته په نظر راشي، نو هغې طرف ته منډې وهي یعنی د تجارت طرف ته، ځکه چې دا ددوی مطلوب دې نه چې تماشه، او تاسو په خطبه کښې ولاړ پریږدي، تاسو ورته اووایئ چې د الله سره چه کوم ثواب دې هغه ایمان والو د پاره د تماشې او تجارت نه غوره دې، او الله تعالی بهترین روزي رسونکې دې، وئیلې شوی دی چې هر کس خپل اهل و عیال ته روزي ورکوي، یعنی د الله د رزق نه روزي ورکوي.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** من بمعنى في: دا دې خبرې ته اشاره ده چې من يوم الجمعة کښې من بمعنى في دې، او دویمه وجه دا ده چې من بیانیه وي، او د اذا نودی بیان وي.

**قوله:** يوم الجمعة: په جمعة کښې دوه قراءتونه دي، اول د دواړو یعنی د جیم او میم په ضمې سره، دا د جمهور قراءت دې، او دویم د جمعة د میم په سکون سره، او دا شاذ دې، یو قراءت د میم په فتحې سره هم دې، خو دا هم شاذ دې.

**قوله:** فامضوا: د فاسعوا تفسیر په فامضوا سره کولو کښې ئې اشاره اوکړه چې دلته د سعی معروف معنی یعنی منډې وهل مراد نه دی، ځکه چې د مونځ د پاره منډې وهل

منع دی، بلکه مراد متوجه کیدل، او پیدل تلل دی،

**قوله:** انه خیر: دا جمله محذوف منلو سره ئې اشاره اوکړه، چې د تعلمون مفعول محذوف دې، او فَافْعَلُوه محذوف منلو سره اشاره اوکړه چې إن کنتم د شرط، جزا محذوف ده.

**قوله:** لأنها مطلوبهم: ددې عبارت مقصد د سوال مقدر جواب ورکول دی،

**سوال:** دا دې چې په ماقبل کښې د دوؤ څیزونو ذکر دې، تجارت او لَهْو، لهذا مناسب دا وه، چې د لها په ځائې ئې لهما وئیلې وې؟

**جواب:** د جواب خلاصه دا ده چې مخکښې اګرچه دوه څیزونه ذکر دی خو مطلوب په دې کښې صرف یو یعنی تجارت دې، لهو مطلوب نه دې، ددې وجې نه د لها ضمیر مفرد راوړې شوې دې،

ددې سوال دویم جواب دا هم کیدې شی چې د أو په ذریعې سره عطف کړې شوې دې، لهذا مراد خو هم یو دې، تجارت-یا لهو، ضمیر مؤنث راوړلو سره ئې متعین کړه چې دلته هم تجارت مراد دې.

**قوله:** وترکوك قائما: دا جمله د انفضوا فاعل دې، او د قائما سره ئې اشاره اوکړه چې خطبه په ولاړه پکار ده نه چې په ناسته،

**قوله:** يُقَال كل إنسان يرزق عائلته: ددې عبارت د اضافې مقصد د یو سوال مقدر جواب ورکول دی.

**سوال:** سوال دا دې چې په والله خیر الرازقین کښې خیر د اسم تفضیل صیغه ده، کومه چې د تعدد تقاضه کوی، ځکه چې د اسم تفضیل استعمال کم از کم د دوؤ په مینځ کښې وی، چې مفضل او مفضل علیه ثابت شی، او دلته رازق خو یو دې، او هغه الله دې، نو د اسم تفضیل استعمال څنګه صحیح شو؟

**جواب:** حاصل دا دې چې دلته د خیر صیغه په ډیرو معنو کښې استعمال شوې ده، ځکه چې وئیلې شی کل إنسان يرزق عائلته نو معلومه شوه چې هر یو انسان د خپل اهل و عیال رازق دې، اګر چې الله تعالی رازق حقیقی دې، او انسان رازق مجازی دې، ځکه چې انسان د الله د ورکړې شوی رزق نه رزق ورکوی، لهذا د اسم تفضیل استعمال صحیح شو.

..........

## [٦٣] سورة المنافقون

### سورة المنافقون مدنية احدى عشرة اية

سورة المنافقون مدني دي، په دې کښې يوولس آياتونه دي.

[اياتونه: ١ - ٨]

﴿إِذَا جَاءَكَ الْمُنَافِقُونَ قَالُوا﴾ بِأَلْسِنَتِهِمْ عَلَى خِلَافِ مَا فِي قُلُوبِهِمْ ﴿نَشْهَدُ إِنَّكَ لَرَسُولُ اللَّهِ وَاللَّهُ يَعْلَمُ إِنَّكَ لَرَسُولُهُ وَاللَّهُ يَشْهَدُ﴾ يَعْلَمُ ﴿إِنَّ الْمُنَافِقِينَ لَكَاذِبُونَ﴾ فِيمَا أَضْمَرُوهُ مُخَالِفًا لِمَا قَالُوهُ ﴿اتَّخَذُوا أَيْمَانَهُمْ جُنَّةً﴾ سُتْرَةً عَلَى أَمْوَالِهِمْ وَدِمَائِهِمْ ﴿فَصَدُّوا﴾ بِهَا ﴿عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ﴾ أَيْ عَنِ الْجِهَادِ فِيهِمْ ﴿إِنَّهُمْ سَاءَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ﴾ ﴿ذَٰلِكَ﴾ أَيْ سُوءُ عَمَلِهِمْ ﴿بِأَنَّهُمْ آمَنُوا﴾ بِاللِّسَانِ ﴿ثُمَّ كَفَرُوا﴾ بِالْقَلْبِ أَيِ اسْتَمَرُّوا عَلَى كُفْرِهِمْ بِهِ ﴿فَطُبِعَ﴾ خُتِمَ ﴿عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ﴾ بِالْكُفْرِ ﴿فَهُمْ لَا يَفْقَهُونَ﴾ الْإِيمَانَ ﴿وَإِذَا رَأَيْتَهُمْ تُعْجِبُكَ أَجْسَامُهُمْ﴾ لِجَمَالِهَا ﴿وَإِنْ يَقُولُوا تَسْمَعْ لِقَوْلِهِمْ﴾ لِفَصَاحَتِهِ ﴿كَأَنَّهُمْ﴾ مِنْ عِظَمِ أَجْسَامِهِمْ فِي تَرْكِ التَّفَهُّمِ ﴿خُشُبٌ﴾ بِسُكُونِ الشِّينِ وَضَمِّهَا ﴿مُسَنَّدَةٌ﴾ مُمَالَةٌ إِلَى الْجِدَارِ ﴿يَحْسَبُونَ كُلَّ صَيْحَةٍ﴾ تُصَاحُ كَنِدَاءٍ فِي الْعَسْكَرِ وَإِنْشَادِ ضَالَّةٍ ﴿عَلَيْهِمْ﴾ لِمَا فِي قُلُوبِهِمْ مِنَ الرُّعْبِ أَنْ يَنْزِلَ فِيهِمْ مَا يُبِيحُ دِمَاءَهُمْ ﴿هُمُ الْعَدُوُّ فَاحْذَرْهُمْ﴾ فَإِنَّهُمْ يُفْشُونَ سِرَّكَ لِلْكُفَّارِ ﴿قَاتَلَهُمُ اللَّهُ﴾ أَهْلَكَهُمْ ﴿أَنَّىٰ يُؤْفَكُونَ﴾ كَيْفَ يُصْرَفُونَ عَنِ الْإِيمَانِ بَعْدَ قِيَامِ الْبُرْهَانِ ﴿وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا﴾ مُعْتَذِرِينَ ﴿يَسْتَغْفِرْ لَكُمْ رَسُولُ اللَّهِ لَوَّوْا﴾ بِالتَّشْدِيدِ وَالتَّخْفِيفِ عَطَفُوا ﴿رُءُوسَهُمْ وَرَأَيْتَهُمْ يَصُدُّونَ﴾ يُعْرِضُونَ عَنْ ذَٰلِكَ ﴿وَهُمْ مُسْتَكْبِرُونَ﴾ ﴿سَوَاءٌ عَلَيْهِمْ أَسْتَغْفَرْتَ لَهُمْ﴾ اسْتُغْنِيَ بِهَمْزَةِ الِاسْتِفْهَامِ عَنْ هَمْزَةِ الْوَصْلِ ﴿أَمْ لَمْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ لَنْ يَغْفِرَ اللَّهُ لَهُمْ إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفَاسِقِينَ﴾ ﴿هُمُ الَّذِينَ يَقُولُونَ﴾ لِأَصْحَابِهِمْ مِنَ الْأَنْصَارِ ﴿لَا تُنْفِقُوا عَلَىٰ مَنْ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ﴾ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ ﴿حَتَّىٰ يَنْفَضُّوا﴾ يَتَفَرَّقُوا عَنْهُ ﴿وَلِلَّهِ خَزَائِنُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾ بِالرِّزْقِ فَهُوَ الرَّازِقُ لِلْمُهَاجِرِينَ وَغَيْرِهِمْ ﴿وَلَٰكِنَّ الْمُنَافِقِينَ لَا يَفْقَهُونَ﴾ ﴿يَقُولُونَ لَئِنْ رَجَعْنَا﴾ أَيْ مِنْ غَزْوَةِ بَنِي الْمُصْطَلِقِ ﴿إِلَى الْمَدِينَةِ لَيُخْرِجَنَّ الْأَعَزُّ﴾ عَنَوْا بِهِ أَنْفُسَهُمْ ﴿مِنْهَا الْأَذَلَّ﴾ عَنَوْا بِهِ الْمُؤْمِنِينَ ﴿وَلِلَّهِ الْعِزَّةُ﴾ الْغَلَبَةُ ﴿وَلِرَسُولِهِ وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَلَٰكِنَّ الْمُنَافِقِينَ لَا يَعْلَمُونَ﴾ ذَٰلِكَ

**ترجمه:** شروع کوم د الله په نوم سره چې ډير مهربانه او ډير رحم کولو والا دی، ستا ﷺ خوا ته چې کله منافقان راشي، نو د خپل د زړه د خبرې نه خلاف په ژبه سره وائي چې مونږ ددې خبرې گواهي ورکوو چې تاسو ﷺ د الله رسول يئ، او الله ته معلومه ده چې تاسو يقينا د الله رسول يئ، او الله ته معلومه ده چې دا منافقان دروغژن دي، په هغه خبره کښې کومه چې دوی د قول خلاف په زړه کښې پټه کړې ده، دې خلقو خپلو قسمونو له ډهال جوړ کړې دې، يعنی د خپل ځان او مال د حفاظت د پاره، نو د الله د لارې نه يعنی په دې کښې د جهاد کولو نه محفوظ شوی دی بې شکه هغه کار کوم چې دوی کوی ډير خراب دې، يعنی ددوی بدعملی دا ده چې دوی په ژبه ايمان راوړو، بيا په زړه سره کافران شو، يعنی په خپل کفر باندې کلک پاتې شول، نو

ددوی په زړونو باندې د کفر د وجې نه مهر لګولې شوې دې، اوس دوی ایمان باندې نه پوهیږي، چې کله تاسو ﷺ دوی ته اوګورئی نو تاسو ته به ددوی جسمونه ددوی د خکلې والی د وجې نه خائسته (خوښ) لګی، او چې کله دوی خبرې کوی نو تاسو ﷺ به ددوی کلام طرف ته ددوی د فصاحت د وجې نه خپل غوږ کیږدئ، ګویا چې دوی د په غټ والی کښې او ناپوهتیا کښې لرګی دی، د دیوال په سهارې (تکیا) سره لګیدلې شوې، خشب د شین په سکون او ضمې سره، هر هغه آواز چې لګولې شی نو دوی ئې خپل خلاف ګنړی، یعنی د لشکر د تلو آواز، د روک شوی خیز د پاره اعلان، ددوی په زړونو کښې ددې خبرې ویره ده چې چرته ددوی په باره کښې حکم نازل شوې نه وی، کوم چې ددوی وینې لره حلال کړی، هم دا حقیقی دشمنان دی ددوی نه ځان بچ ساتئ، دوی د حضور ﷺ رازونه کافرانو ته ښکاره کوی، الله دې دوی تباه کړي چرته دوی روان دی؟ یعنی د دلیل قائمیدو نه پس د ایمان نه چرته روان دی، چې کله دوی ته اووئیلې شی، معذرت کولو سره راشئ چه ستاسو د پاره د الله رسول ﷺ استغفار اوکړی، نو خپل سرونه اوخوځوی، لَوَّوْا په تخفیف او تشدید سره دې، یعنی دوی سرونه تاوو کړی، او تاسو به دوی ګورئی چې ددې نه به اعراض کوی، په داسې حال چې دوی تکبر کوی، ددوی په حق کښې ستاسو استغفار کول او نه کول دواړه برابر دی، د همزه استفهام د وجې نه د همزه وصل نه استغناء راغله، الله تعالی به دوی هیڅ کله هم معاف نه کړی، الله تعالی داسې نافرمانو ته هدایت نه ورکوی، هم دا هغه خلق دی چې خپل انصار رونړو ته وائی چې د رسول الله ﷺ سره کوم مهاجرین جمع دی، په هغوی باندې خرچ مه کوئ، تر دې چې هغوی د حضور ﷺ نه جدا (خواره) شی، او د اسمانونو او د زمکې د رزق د ټولو خزانو هم الله مالک دې، د مهاجرینو وغیره هم هغه رازق دې، خو دا منافقانو نه پوهیږی، دوی وائی که چرې مونږ د غزوه بنی مصطلق نه واپس کیدو سره مدینې ته اورسیږو، نو عزت والا به مراد ددې نه دوی خپل ځان واخستلو، ذلیلانو لره مراد ئې ددې نه مومنان واخستل، د مدینې نه اوباسی، واوری، عزت غلبه صرف د الله د پاره ده، او د هغه د رسول ﷺ د پاره ده، او د مومنانو د پاره ده، خو منافقان په دې باندې نه پوهیږی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله**: سورة المنافقون: په بعضو نسخو کښې سورة المنافقین په یاء سره دې،

**قوله**: اذا جاءك المنافقون: شرط دې، او قالوانشهدالخ جواب د شرط دې، بعضې حضراتو وئیلې دی چې جوابِ شرط محذوف دې، او قالوا د المنافقون نه حال دې، تقدیری عبارت داسې دې، اذا جاءك المنافقون حال کونهم قائلين كذا وكذا فلا تقبل منهم، (فلا تقبل منهم) جوابِ شرط دې.

**قوله** نشهد انك لرسول الله: دا جمله د قسم قائمقام ده، ځکه خو ددې په مابعد باندې لام داخل دې، لکه چې هغه جواب د قسم دې، نشهد په معنی د نحلف دې، او دا هم ممکن ده چې نشهد په خپله معنی باندې وی او مقصد د خپل ځان نه د نفاق تهمت لرې کول وی.

**قوله** والله يعلم انك لرسوله: لنهد إنك لرسول الله او والله يشهد انهم په مينځ کښې جمله معترضه ده.

**قوله** جُنّة: د جيم په ضمې سره، په معنی د ډهال، وقايه، جمع جُنَنْ

**قوله** باللسان: بأنهم آمنوا نه پس د باللسان د اضافې مقصد د يو سوال جواب دې،

**سوال**: د منافقانو باره کښې اووئيلې شول چې هغوی اول ايمان راوړو، بيا ئې کفر اختيار کړو، حالانکه د سر نه ئې ايمان هم راوړې نه وو، نو بيا د ثم کفروا څه مطلب دې؟

**جواب**: د جواب خلاصه دا ده چې (ثم) د ترتيب إخباری د پاره ده، نه چې د ترتيب ايجادی د پاره، مطلب دا دې چې په ژبه باندې ئې ايمان راوړو، او په زړه سره ئې کفر اختيار کړو، اوس څه اشکال نشته.

**قوله** تسمع لقولهم:

**سوال**: د تسمع صله لام نه راځی، حالانکه دلته د تسمع صله لام راغلې دې

**جواب**: تسمع د تصغى معنې لره متضمن دې، چې د هغې د وجې نه د تَسْمع صله لام راوړل صحيح دی.

**قوله** كأنهم خشب مسندة: په دې کښې دوه وجې دی اول دا چې دا جمله مستانفه ده، او دويم دا چې دا د مبتدأ محذوف خبر دې، او هغه (هم ضمير) دې، أى هم كأنهم

**قوله** فى ترك التفهم: دا د وجه شبه بيان دې، يعنی منافقان ئې هغه لرګو سره مشابه کړې دی کوم چې ديوال سره لګيدلې شوې پراته وی، منافقانو چې په هغې کښې عبدالله بن ابی هم شامل دې د حضور ﷺ مجلس ته به راتلو سره ئې ديوال ته ډډې وهلې ، د جسم په اعتبار سره ښه غټ وو، او په شکل کښې هم ډير ښکلی وو، خو د دين هيڅ پوهه ئې نه لرله، يعنی چې څنګه ديوال سره لګيدلې لرګې مفيد نه وی دغه شان دا خلق د علم او د نظر نه خالی وو، (صاوی ملخصا)

**قوله** يحسبون كل صيحة عليهم: كل صيحة د يحسبون مفعول اول دې، او عليهم مفعول ثانی دې، أى كائنة عليهم

**قوله** تعالوا يستغفر لكم رسول الله: تعالوا او يستغفر دواړه په رَسُولُ الله کښې تنازع کوی، تعالوا مفعول غواړی، يستغفر فاعل غواړی، د بصريينو د مذهب مطابق فعل ثانی ته

عمل ورکولو سره د اول فعل د پاره مفعول محذوف منلې شوې دې، اي تعالوا اليه.

**قوله:** لووارءوسهم: د إذا جواب دې،

**قوله:** لووا: صيغه د جمع مذکر غائب فعل ماضي معروف باب تفعيل، مصدر تَلْوِيَةٌ، لَيٌّ ني ماده ده، تاوَول خوځوی وغيره

**[اياتونه: ٩-١١]**

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُلْهِكُمْ﴾ تَشْغَلكُمْ ﴿أَمْوَالُكُمْ وَلَا أَوْلَادُكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللَّهِ﴾ الصَّلَوَات الخمس ﴿ومن يفعل ذلك فأولئك هم الخاسرون﴾ ﴿وَأَنْفِقُوا﴾ فِي الزَّكَاة ﴿مِمَّا رَزَقْنَاكُمْ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَأْتِيَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ فَيَقُولَ رَبِّ لَوْلَا﴾ بِمَعْنَى هَلَّا أَوْ لَا زَائِدَة وَلَوْ لِلتَّمَنِّي ﴿أَخَّرْتَنِي إِلَى أَجَلٍ قَرِيبٍ فَأَصَّدَّقَ﴾ بِإِدْغَامِ التَّاء فِي الْأَصْل فِي الصَّاد أَتَصَدَّق بِالزَّكَاةِ ﴿وَأَكُنْ من الصالحين﴾ بِان احج قَالَ ابن عَبَّاس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا مَا قَصَّرَ أَحَد فِي الزَّكَاة وَالْحَجّ إِلَّا سَأَلَ الرَّجْعَة عِنْد الموت ﴿وَلَنْ يُؤَخِّرَ اللَّهُ نَفْسًا إِذَا جَاءَ أَجَلُهَا وَاللَّهُ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ﴾ بِالتَّاء وَالْيَاء

**ترجمه:** اې مسلمانانو ستاسو مالونه او ستاسو اولاد دې تاسو لره د الله د ذکر نه پنځه وخته مونځ نه نه غافل نه کړي، ، او څوک چې داسې کوی هغه د تاوانيانو نه دی، او څه چې مونږ تاسو ته درکړې دی د هغې نه په زکواة کښې خرچ کوئ، مخکښې ددې نه چې تاسو کښې يو کس ته مرګ راشی، نو بيا وائی چې اې پروردګاره، ته ولې ما ته لږ مهلت نه راکوې؟ لولا په معنی د هلا، يا لا زائده ده، او لو د تمنی د پاره دې، چې څه صدقه اوکړم او د نيکو خلقو نه شم چې حج اوکړم (فأصدق) تاء په اصل کښې په صاد کښې ادغام کولو سره، يعنی زکواة ادا کړم، ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی چا چه په حج زکواة کښې څه کمې نه دې کړې خو دا چې هغه د مرګ په وخت دنيا نه د واپسئ سوال نه وی کړې. او کله چې د يو کس وقتِ مقرره راشی بيا هغه ته الله تعالی هيڅ کله مهلت نه ورکوی، او څه چې کوئ الله تعالی د هغې نه پوره خبردار دې، په ياء او تاء سره دې.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** أن يأتي أحدكم الموت: اي أماراته ومقدماته مضاف محذوف دې، ځکه چې د مرګ نه پس څوک څه وئيلې نه شی.

**قوله:** لولا بمعنى هلا: يعنی لولا تحضيضيه دې، کوم چې د ماضی سره خاص دې خو په معنی د مضارع دې ځکه چې دلته دې، مناسب دا ده چې لولا د التماس، دعاء، عرض، درخواست په معنی وی، ځکه چې د لولا تخضيضيه دلته موقع نشته، دويم صورت دا دې چې لولا کښې لا زائده دې، او لو په معنی د تمنا دې، اي لعلك لم ترني.

**قوله:** أجل قريب: أي زمان قليل.

**قوله:** وأكن: (ن) په اصل كښې أكون وو، د مصحف عثماني د رسم الخط مطابق بغير د واؤ نه ليكلې شوې دې، گني أكون پكار وو، په تلفظ كښې دواړه صورتونه جائز دي، واؤ او حذف واؤ سره، او دا به په فأصدق باندې عطف كولو سره د نصب په حالت كښې وي، او په محل د فأصدق باندې عطف كيدو د وجه به په حذف واؤ او جزم سره وي فأصدق اصل كښې فأتصدق وو، جمهورو تاء په صاد كښې ادغام كولو سره ونيلې دې، او د جواب تمنى كيدو د وجه نه منصوب دې.

**قوله:** ولن يؤخر الله نفسا: دا جمله مستانفه ده، كوم چې د سوال مقدر جواب دې، تقديرى عبارت دا دې، هل يؤخر هذا الممهل فقال ولن يؤخر الله نفسا الخ

## [٦٤] سورة التغابن

### سورة التغابن مكية او مدنية ثماني عشرة اية

سورة التغابن مكى يا مدنى دې، په دې كښې اتلس اياتونه دي.

[اياتونه: ١ - ١٠]

---

﴿يُسَبِّحُ لِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ﴾ يُنَزِّهُهُ فَاللَّام زَائِدَة وَأَتَى بِمَا دُون من تغليبا للأكثر ﴿له الملك وله الحمد وهو على كل شيء قدير﴾ ﴿هُوَ الَّذِي خَلَقَكُمْ فَمِنْكُمْ كَافِرٌ وَمِنْكُمْ مُؤْمِنٌ﴾ فِي أَصْلِ الْخِلْقَة ثُمَّ يُمِيتكُمْ وَيُعِيدكُمْ عَلَى ذلك ﴿والله بما تعملون بصير﴾ ﴿خلق السماوات والأرض بِالْحَقِّ وَصَوَّرَكُمْ فَأَحْسَنَ صُوَرَكُمْ﴾ إِذْ جَعَلَ شكل الآدمي احسن الأشكال ﴿وإليه المصير﴾ ﴿يعلم ما في السماوات والأرض وَيَعْلَمُ مَا تُسِرُّونَ وَمَا تُعْلِنُونَ وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ﴾ بِمَا فِيهَا مِنَ الْأَسْرَار والمعتقدات ﴿أَلَمْ يَأْتِكُمْ﴾ يا كُفَّار مَكَّة ﴿نَبَأُ﴾ خَبَر ﴿الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ قَبْلُ فَذَاقُوا وَبَالَ أَمْرِهِمْ﴾ عُقُوبَة الْكُفْر فِي الدُّنْيَا ﴿وَلَهُمْ﴾ فِي الآخِرَة ﴿عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ مُؤْلِم ﴿ذَٰلِكَ﴾ أَيْ عَذَاب الدُّنْيَا ﴿بِأَنَّهُ﴾ ضَمِير الشَّأْن ﴿كَانَتْ تَأْتِيهِمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ﴾ الْحُجَج الظَّاهِرَات عَلَى الْإِيمَان ﴿فَقَالُوا أَبَشَرٌ﴾ أُرِيدَ بِهِ الْجِنْس ﴿يَهْدُونَنَا فَكَفَرُوا وَتَوَلَّوْا﴾ عَنِ الْإِيمَان ﴿وَاسْتَغْنَى اللَّهُ﴾ عَنْ إِيمَانهمْ ﴿وَاللَّهُ غَنِيٌّ﴾ عَنْ خَلْقه ﴿حَمِيدٌ﴾ مَحْمُود فِي أفعاله ﴿زَعَمَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَنْ﴾ مُخَفَّفَة وَاسْمهَا مَحْذُوف اي انهم ﴿لن يبعثوا قل بلى وربي لتبعثن ثم لتنبؤن بما عملتم وذلك على الله يسير﴾ ﴿فآمنوا بالله ورسوله والنور﴾ ال قرآن ﴿الذي أنزلنا والله بما تعملون خبير﴾ اذكر ﴿يَوْمَ يَجْمَعُكُمْ لِيَوْمِ الْجَمْعِ﴾ يَوْم الْقِيَامَة ﴿ذَٰلِكَ يَوْمُ التَّغَابُنِ﴾ يَغْبِن الْمُؤْمِنُونَ الْكَافِرِينَ بِأَخْذِ مَنَازِلهمْ وَأَهْلِيهِمْ فِي الْجَنَّة لَوْ آمَنُوا ﴿وَمَنْ يُؤْمِنْ بِاللَّهِ وَيَعْمَلْ صَالِحًا يُكَفِّرْ عَنْهُ سَيِّئَاتِهِ وَيُدْخِلْهُ﴾ وَفِي قراءة بالنون في الفعلين ﴿جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أبدا ذلك الفوز العظيم﴾ ﴿وَالَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا﴾ ال قرآن ﴿أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ خَالِدِينَ فِيهَا وَبِئْسَ الْمَصِيرُ﴾ هِيَ

**ترجمه**: شروع كوم د الله په نوم سره چې ډير مهربانه او ډير رحم كولو والا دې، په اسمانونو او زمكه كښې چې څومره څيزونه دي د الله تسبيح (د هغه پاكي) بيانوي، په لله كښې لام زائده دې، او د من په ځائې ما راوړې دې، اكثر له غلبه وركولو د پاره، هم د هغه سلطنت دې او هم د هغه حمد و ثناء ده، او هغه په هر څيز باندې قادر دې، هغه تاسو پيدا كړئ نو په تاسو كښې بعضې په اصل خلقت كښې كافران دي، او بعضې مومنان، بيا به هغه تاسو ته ددې مطابق مرګ دركوي، او تاسو به واپس ژوندي كوي، او څه چې تاسو كوئ الله هغه ډير ښه وينى، او هغه اسمانونو او زمكې لره په حكمت سره پيدا كړې دي، او هم هغه ستاسو صورتونه جوړ كړې دي او ډير ښه يې جوړ كړې دي، ځكه چې هغه د انسان شكل په ټولو شكلونو كښې ډير بهتر جوړ كړې دې، او هم هغه طرف ته واپس كيدل دي، او هغه د اسمانونو او د زمكې د هر څيز علم لري، او څه چې تاسو پټوئ او څه چې تاسو ښكاره كوئ، هغه په هغې باندې خبردار دې، او الله خو د زړه د رازونو يعنى اسرار او عقيدو باندې هم عالم دې، اې د مكې كافرانو آيا تاسو ته د مخكښې خلقو خبرونه رارسيدلې نه دي؟ چې هغوي د خپلو عملونو وبال يعنى د كفر انجام په دنيا كښې اوڅكلو، او په اخرت كښې د هغوي د پاره دردناک عذاب دې، دا يعنى د دنيا عذاب ځكه دې چې دوي ته، بأنّه كښې ضميرِ شان دې، ددوي رسولان په ايمان باندې دلالت كونكي واضح دليلونو سره راغلل، نو دوي اووئيل چې آيا انسان به مونږ ته لار ښائي، ؟ د بشر نه جنسِ بشر مراد دې، نو انكار ئې اوكړو، او د ايمان نه ئې مخ واړولو، او الله هم ددوي د ايمان نه بې نيازي اوكړه، الله دخپل مخلوق نه بې نياز دې، او په خپلو كارونو كښې محمود دې، دې كافرانو خيال اوكړو چې دوي به دوباره هيڅ كله نه ژوندي كيږي، أن مخففه عن الثقيله دې، ددې اسم محذوف دې، أي أنهم، تاسو ورته اووائې چې ولې نه، څما د رب قسم تاسو به خامخا دوباره اوچتولې شئ، بيا به تاسو ته ستاسو د كړې شوي عملونو خبر دركړې شي، او د الله د پاره دا ډيره اسانه ده، نو تاسو په الله باندې او د هغه په رسول باندې او نور باندې. يعنى قرآن، كوم چې مونږ نازل كړې دى ايمان راوړئى، او څه چې تاسو كوئ الله د هغې نه خبردار دې، هغه ورځ ياد كړئ په كومه ورځ به چې هغه ستاسو د جمع كيدو په ورځ يعنى د قيامت په روځ جمع كړي، هم هغه د كټې او تاوان ورځ ده، مومنان به كافرانو ته شكست وركړي، په جنت كښې خپل كورونه او خپل اهل اخستلو سره، كه چرې دوي ايمان راوړې وو، او كوم كس چې په الله باندې ايمان راوړو، او نيک عملونه ئې اوكړل الله به د هغه بدئ لرې كړي، او هغه به داسې جنت ته داخل كړي چې د هغې نه لاندې به نهرونه بهيږي، په هغې كښې به هميشه وي، او دا لويه كاميابى ده، او چا چې كفر اوكړو او زمونږ ايتونه قرآن ئې دروغ اوګڼرلو، هم دا خلق جهنميان دي، په جهنم كښې به هميشه وي، او دا د هغوي خراب د اوسيدو ځائې دې،

......

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

سورة تغابن مکی دې، يايها الذين آمنوا ان من ازواجكم واولادكم الخ دا ايت په مدينه کښې د عوف بن مالک باره کښې نازل شو،

**قوله**: له الملك وله الحمد: په دواړو کښې جار مجرور د حصر د پاره مقدم کړې شوې دې، ځکه چې حقيقي مالک او حقيقي حمد د الله د پاره دې، اګرچه په مجازي توګه باندې د غير الله هم ملک او حمد وي.

**قوله**: هو على كل شئ قدير: دا د ماقبل د دليل په توګه دې.

**قوله**: ثم يميتكم ويعيدهم: په دې کښې د خطاب نه د غيبت طرف ته التفات دې، ځکه چې موقع د يميتكم او يعيدكم وه.

**قوله**: فذوقوا: ددې عطف په كفروا باندې دې، دا دعطف مسبب على السبب دقبيل څخه دې، ځکه چه کفر، د ذوق وبال سبب دې.

**قوله**: وبال: ثقل، شدت، داعمالو سخته سزا، د کَرُم نه دې.

**قوله**: أُرِيْدَ به الجِنْس: ددې عبارت د اضافې مقصد په بشر او يهدوننا کښې مطابق ثابتول دی، يا وئيلې شي چې ديو سوال مقدر جواب دې.

**سوال**: دا دې چې د يَهْدُوْنَنَا ضمير بَشَرٌ طرف ته راجع دې، حالانکه مرجع مفرد او ضمير د جمع دې؟

**جواب**: خلاصه دا ده چې د بشر نه جنس بشر مراد دې، لهذا په بشر کښې د جمعيت معنی موجود ده، چې د هغې د وجې نه څه اعتراض نشته.

**قوله**: زعم: متعدی په دوؤ مفعولو، او لن يبعثوا قائم مقام د دوو مفعولو دې.

**قوله**: فآمنوا بالله ورسوله: دا د مکې کافرانو ته خطاب دې، او فاء په جواب د شرط باندې واقع ده. او شرط محذوف دې، أی إذا كان الأمر كذلك فآمنوا.

**[ايات نمبر: ۱۱-۱۸]**

---

{مَا أَصَابَ مِنْ مُصِيبَةٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ} بقضائه {وَمَنْ يُؤْمِنْ بِاللَّهِ} في قوله إن المصيبة بقضائه {يهد قلبه} للصبر عليها {والله بكل شيء عليم} {وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ فَإِنْ تَوَلَّيْتُمْ فَإِنَّمَا على رسولنا البلاغ المبين} البين {الله لا إله إلا هو وعلى الله فليتوكل المؤمنون} {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّ مِنْ أَزْوَاجِكُمْ وَأَوْلَادِكُمْ عَدُوًّا لَكُمْ فَاحْذَرُوهُمْ} أَنْ تُطِيعُوهُمْ فِي التَّخَلُّف عَنْ الْخَيْر كَالْجِهَادِ وَالْهِجْرَة فَإِنَّ سَبَب نُزُول الْآيَة الْإِطَاعَة فِي ذَلِكَ {وَإِنْ تَعْفُوا} عَنْهُمْ فِي تَثْبِيطهمْ إِيَّاكُمْ عَنْ ذَلِكَ الْخَيْر معتلين بمشقة فراقكم عليهم

(وتصفحوا وتغفروا فإن الله غفور رحيم) ﴿إِنَّمَا أَمْوَالُكُمْ وَأَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ﴾ لكم شَاغِلَةٌ عَنْ أُمُورِ الآخِرَة ﴿وَاللَّهُ عِنْدَهُ أَجْرٌ عَظِيمٌ﴾ فلا تفوتوه باشتغالكم بالأموال والأولاد ﴿فَاتَّقُوا اللَّهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ﴾ ناسخة لقوله ﴿اتَّقُوا اللَّهَ حَقَّ تُقَاتِهِ﴾ ﴿وَاسْمَعُوا﴾ ما أمرتم به سماع قبول ﴿وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَأَنْفِقُوا﴾ في الطاعة ﴿خَيْرًا لِأَنْفُسِكُمْ﴾ خبر يكن مقدرة جواب الأمر ﴿وَمَنْ يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِ فَأُولَئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ﴾ الفائزون ﴿إِنْ تُقْرِضُوا اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا﴾ بأن تتصدقوا عن طيب قلب ﴿يُضَاعِفْهُ لَكُمْ﴾ وفي قراءة يضعفه بالتشديد بالواحدة عشرًا إلى سبعمائة وأكثر ﴿وَيَغْفِرْ لَكُمْ﴾ ما يشاء ﴿وَاللَّهُ شَكُورٌ﴾ مجاز على الطاعة ﴿حَلِيمٌ﴾ في العقاب على المعصية ﴿عَالِمُ الْغَيْبِ﴾ السر ﴿وَالشَّهَادَةِ﴾ العلانية ﴿الْعَزِيزُ﴾ في ملكه ﴿الْحَكِيمُ﴾ في صنعه

---

**ترجمه**: يو مصيبت د الله د فيصلې نه بغير رسيدلې نه شي، څوک چې په الله باندې په دې خبره ايمان راوړي، چې مصيبت د الله د تقدير د وجې راځي، نو الله د هغه زړه ته په مصبت باندې د صبر هدايت ورکوي، او الله په هر څيز باندې خبردار دې، اې خلقو د الله اطاعت کوئ، او د رسول ﷺ اطاعت کوئ، او که تاسو مخ اړوئ نو ځمونږ په رسولانو خو صرف ښکاره رسول دي، الله معبود برحق دې، د هغه نه سوا بل معبود نشته، او مومنانو له پکار دي چې په الله باندې بهروسه ساتي، اې ايمان والو! ستاسو بعضې ښځې او بعضې بچي ستاسو دشمنان دي، نو د هغوی نه بچ اوسيږئ، د خير نه پاتې کيدو کښې د هغوی خبره مه منئ، مثلا جهاد، هجرت، وغيره، آيت د نازليدو سبب په دې خبرو کښې اطاعت کول دي، او که تاسو دوی لره د خير نه منع کولو باندې معاف کړئ حال دا دې چې هغوی ستاسو د جدائې علت د جدائې سخت والې بيان کړي، او تاسو مخ واړوئ او معافي اوکړئ نو الله غفور او رحيم دې، ستاسو مالونه او اولاد ټول په ټوله ستاسو امتحان دې، چه تاسو د آخرت د کارونو نه مشغوله کوي او الله سره لوئې اجر دې، لهذا په مال اولاد کښې مشغول کيدو سره دا ستاسو نه فوت نه شي، څومره چې کيدې شي د الله نه ويريږئ، دا ايت اتقوا الله حق تقته د پاره ناسخ دې، او چې د کومې خبرې تاسو ته حکم درکولې شي هغه د منلو په توګه اوړئ، او اطاعت کوئ، او د هغه په اطاعت کښې ئې خرچ کوئ، کوم چې ستاسو د پاره بهتره ده، خيراً د يکن مقدر خبر، او جمله کيدو سره د انفقوا (امر) جواب دې، او کوم کس چې د خپل نفس د حرص نه محفوظ کړې شو هم هغه کامياب دې، که چرې تاسو الله ته ښه قرضه ورکړې په داسې طريقه چې د زړه د اخلاص نه خرج کړئ، نو هغه به دا ستا د پاره زيات کړي، او په يو قرامت کښې يضعفه په تشديد سره دې، په صيغه د افراد، د لسو نه اووه سوه، او ددې نه هم زيات، او چې څه غواړي نو (ستاسو ګناه به هم) معاف کړي، او الله ډير قدر کونکې دې، يعنی په اطاعت باندې اجر ورکونکې، بردبار (صبر کونکې) دې، په ګناه باندې سزا ورکولو کښې، غائب او حاضر باندې پوهه، په خپل ملک کښې غالب دې، او په خپله کاريګرې کښې باحکمت دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** ما اصاب من مصیبة: د اصاب، أحدًا مفعول به محذوف دي، او من مصیبة د من زیات سره د أصاب فاعل دي، تقدیری عبارت دا دي، ما أصاب أحدا مصیبة.

**قوله:** فی قوله: أی فی قول القائل.

**قوله:** فان تولیتم: ددې جزاء محذوف ده، تقدیری عبارت دا دي، فإن تولیتم فلا ضیر ولا بأس علی رسولنا.

**قوله:** فإنما علی رسولنا: د جزاء محذوف علت دي،

**قوله:** الله لا إله إلا هو: الله مبتدأ ده، او لا إله إلا الله ددې خبر.

**قوله:** أن تطیعوهم: ددې عبارت د اضافې مقصد دې خبرې ته اشاره کول دي چې مضاف محذوف دي، یعنی که ستاسو بیبیانې او اولاد ستاسو د پاره په نیک کارونو کښې مانع شول، نو د هغوی داطاعت نه ځان اوساتئ، دا ایت وئیلې شوې دې چې د عوف بن مالک اشجعی په باره کښې نازل شوې دې.

**قوله:** خیرا یکن مقدرة: خیراً د یکن مقدر خبر دې، او بعضې حضراتو وئیلی دی چې دفعل محذوف مفعول به دې، د تقدیری عبارت دا دې، یؤتکم خیرا او هم دا اولی ده، ځکه چې دکان او ددې د اسم حذف مع بقاء الخبر د إن لو دلونه پس اکثر وی، یکن خپل اسم او خبر سره د أنفقوا دامر جواب دې.

**قوله:** شح: بخل، حرص، داد باب علم وضرب مصدر دې، خاص توګه باندې داسې بخیلې ته وائی کوم چې عادت جوړ شوی وی.

[٦٥] سورة الطلاق

سورة الطلاق مدنیة ثلاث عشرة آیة

سورة الطلاق مدنی دې، په دې کښې دیارلس آیاتونه دی.

[آیاتونه: ١ - ٧]

(یَٰٓأَیُّهَا ٱلنَّبِیُّ) المُرَاد أُمَّته بِقَرِینَةِ مَا بَعْده أَوْ قُلْ لَهُمْ (إِذَا طَلَّقۡتُمُ ٱلنِّسَآءَ) أَیْ أَرَدْتُمْ الطَّلَاق (فَطَلِّقُوهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ) لِأَوَّلِهَا بِأَنْ یَکُون الطَّلَاق فِي طُهْر لَمْ تُمَسّ فِیهِ لِتَفْسِیرِهِ صَلَّى اللّٰه عَلَیْهِ وَسَلَّمَ بِذَلِكَ رَوَاهُ الشَّیْخَانِ (وَأَحۡصُواْ ٱلۡعِدَّةَ) احْفَظُوهَا لِتُرَاجِعُوا قَبْل فَرَاغهَا (وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ رَبَّکُمۡ) أَطِیعُوهُ فِي أَمْره وَنَهْیه (لَا تُخۡرِجُوهُنَّ مِنۢ بُیُوتِهِنَّ وَلَا یَخۡرُجۡنَ) مِنْهَا حَتَّى تَنْقَضِي عِدَّتهنَّ (إِلَّآ أَن یَأۡتِینَ بِفَٰحِشَةٍ) زِنًا (مُّبَیِّنَةٍ) بِفَتْحِ الْیَاء وَکَسْرهَا بُیِّنَتْ أَوْ بَیِّنَة فَیُخْرَجْنَ لِإِقَامَةِ الْحَدّ عَلَیْهِنَّ (وَتِلۡكَ) الْمَذْکُورَات (حُدُودُ ٱللَّهِۚ وَمَن یَتَعَدَّ حُدُودَ ٱللَّهِ فَقَدۡ ظَلَمَ نَفۡسَهُۥ لَا تَدۡرِی لَعَلَّ ٱللَّهَ یُحۡدِثُ بَعۡدَ ذَٰلِكَ) الطَّلَاق (أَمۡرًا) مُرَاجَعَة فِیمَا إِذَا کَانَ وَاحِدَة أَوْ

اثنتين (فَإِذَا بَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ) قاربن انقضاء عدتهن (فَأَمْسِكُوهُنَّ) بأن تراجعوهن (بِمَعْرُوفٍ) من غير ضرار (أَوْ فَارِقُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ) اتركوهن حتى تنقضي عدتهن ولا تضاروهن بالمراجعة (وَأَشْهِدُوا ذَوَيْ عَدْلٍ مِنْكُمْ) على المراجعة أو الفراق (وَأَقِيمُوا الشَّهَادَةَ لِلَّهِ) لا للمشهود عليه أو له (ذَٰلِكُمْ يُوعَظُ بِهِ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَمَنْ يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَلْ لَهُ مَخْرَجًا) من كرب الدنيا والآخرة (وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ) يخطر بباله (وَمَنْ يَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ) في أموره (فَهُوَ حَسْبُهُ) كافيه (إِنَّ اللَّهَ بَالِغُ أَمْرِهِ) مراده وفي قراءة بالإضافة (قَدْ جَعَلَ اللَّهُ لِكُلِّ شَيْءٍ) كرخاء وشدة (قدرا ميقاتا) (وَاللَّائِي) بهمزة وياء وبلا ياء في الموضعين (يَئِسْنَ مِنَ الْمَحِيضِ) بمعنى الحيض (مِنْ نِسَائِكُمْ إِنِ ارْتَبْتُمْ) شككتم في عدتهن (فَعِدَّتُهُنَّ ثَلَاثَةُ أَشْهُرٍ وَاللَّائِي لَمْ يَحِضْنَ) لصغرهن فعدتهن ثلاثة أشهر والمسألتان في غير المتوفى عنهن أزواجهن أما هن فعدتهن ما في آية يتربصن بأنفسهن أربعة أشهر وعشرا (وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ) انقضاء عدتهن مطلقات أو متوفى عنهن أزواجهن (أَنْ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ وَمَنْ يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَلْ لَهُ مِنْ أَمْرِهِ يُسْرًا) في الدنيا والآخرة (ذَٰلِكَ) المذكور في العدة (أَمْرُ اللَّهِ) حكمه (أنزله إليكم ومن يتق الله يكفر عنه سيئاته ويعظم له أجرا) (أَسْكِنُوهُنَّ) أي المطلقات (مِنْ حَيْثُ سَكَنْتُمْ) أي بعض مساكنكم (مِنْ وُجْدِكُمْ) أي سعتكم عطف بيان أو بدل مما قبله بإعادة الجار وتقدير مضاف أي أمكنة سعتكم لا ما دونها (وَلَا تُضَارُّوهُنَّ لِتُضَيِّقُوا عَلَيْهِنَّ) المساكن فيحتجن إلى الخروج أو النفقة فيفتدين منكم (وَإِنْ كُنَّ أُولَاتِ حَمْلٍ فَأَنْفِقُوا عَلَيْهِنَّ حَتَّىٰ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ فَإِنْ أَرْضَعْنَ لَكُمْ) أولادكم منهن (فَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ) على الإرضاع (وَأْتَمِرُوا بَيْنَكُمْ) وبينهن (بِمَعْرُوفٍ) بجميل في حق الأولاد بالتوافق على أجر معلوم على الإرضاع (وَإِنْ تَعَاسَرْتُمْ) تضايقتم في الإرضاع فامتنع الأب من الأجرة والأم من فعله (فَسَتُرْضِعُ لَهُ) للأب (أُخْرَىٰ) ولا تكره الأم على إرضاعه (لِيُنْفِقْ) على المطلقات والمرضعات (ذُو سَعَةٍ مِنْ سَعَتِهِ وَمَنْ قُدِرَ) ضيق (عَلَيْهِ رِزْقُهُ فَلْيُنْفِقْ مِمَّا آتَاهُ) أعطاه (اللَّهُ) على قدره (لَا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلَّا مَا آتَاهَا سَيَجْعَلُ اللَّهُ بَعْدَ عُسْرٍ يُسْرًا) وقد جعله بالفتوح

---

**ترجمه**: شروع کوم د الله په نوم سره چې ډير مهربانه او ډير رحم والا دې، اې نبي ﷺ مراد د حضور ﷺ امتيان دی د روستو قرينې د وجې نه د جمع مخاطب صيغه ده. يا ددې نه پس قل لهم محذوف دې، (اې نبي ﷺ تاسو مسلمانانو ته اووايئ) چې کله تاسو خپلو ښځو ته طلاق ورکوئ، يعنی طلاق ورکول غواړئ، نو تاسو هغوی ته طلاق د عدت په د شروع په وخت کښې ورکړئ په داسې طريقه چې طلاق په داسې طهر کښې وی، چې په هغې کښې مو نزدې والې (وطی) نه وی کړې، د حضور ﷺ دا تفسير کولو د وجې نه، رواه الشيخان، او تاسو عدت ياد ساتئ، دې د پاره چې د عدت د پوره کيدو نه مخکښې تاسو رجوع اوکړئ، او د الله نه ويريږئ کوم چې ستاسو رب دې، د هغه په امراو نهی کښې د هغه اطاعت کوئ، او دې ښځو لره د هغوی د کورونو نه مه اوباسئ، او نه دې هغوی پخپله د هغې نه

اوځي، تردې چې د هغوی عدت پوره شي، مگر داچې هغوی ښکاره بې حیائي اوکړي، زنا، وغیره، د یاء په فتحې او کسرې سره، یعني ظاهر یا ظاهرونکې وي، نو په دوی باندې د حدود قائمولو د پاره دې دوی اوباسلې شي، دا ذکر شوې تول د الله مقرر شوی احکام دي، کوم کس چې د الله د حدودو نه تجاوز اوکړو هغه په خپل ځان باندې ظلم اوکړو، تاته څه پته ده چې کیدې شي الله تعالی ددې طلاق نه پس د مراجعت څه صورت رااوباسي، په دې صورت کښې چې طلاق یو یا دوه وي، بیاچې کله هغه طلاق شوې ښځه، خپل عدت پوره کیدو ته اورسي، یعني د هغې عدت په ختمیدو شي، نو هغوی د قاعدې مطابق بغیر د ضرر رسیولو نه رجعت کولو سره، په نکاح کښې اوساتئ، یا د قاعدې مطابق هغوی پرېږدئ، یعني هغوی پرېږدئ چې د هغوی عدت پوره شي، او بار بار رجعت کولو سره هغوی ته تکلیف مه ورکوئ، په رجوع کولو، او په خپل مینځ کښې دوه معتبر کسان گواهان جوړ کړئ، او تاسو بالکل صحیح بغیر د رعایت نه د الله د پاره گواهي ورکړئ، او ستاسو اراده د چاته نه د فائدې رسولو وي او نه چا ته د نقصان رسولو، په دې مضمون سره هغه کس ته نصیحت کیږي کوم چې په الله باندې او د قیامت په ورځ باندې ایمان لري، او کوم کس چې د الله نه ویرېږي، الله د هغه د خلاصی لار رااوباسي، یعني د دنیا او د آخرت د تکلیف نه، او هغه ته داسې ځائې نه رزق ورکوي د کوم ځائې نه چې د هغه گمان هم نه وي، یعني د هغه په زړه کښې خیال هم نه وي، کوم کس چې په خپلو کارونو کښې په الله باندې بهروسه ساتي، نو د هغه د پاره الله کافي دې، الله په خپل کار یعني خپل مراد پوره کول خامخا کوي، او په یو قرات کښې په اضافت سره دې، الله تعالی د هر څیز مثلا فراخي او سختوالې، تنگ والی یو وخت مقرر کړې دې، او ستاسو هغه بیبیانې کومې چې د حیض نه ناامیده شوې دي، واللّاتي، کښې همزه، او یاء او بغیر د یاء نه، که تاسو ته د هغوی د عدت باره کښې شک وي نو د هغوی عدت درې میاشتې دي، او دغه شان هغه ښځې کومو ته چې د ماشوموالی د وجې نه حیض نه دې راغلې، د هغوی عدت درې میاشتې دي، مذکوره دواړه مسئلې د هغه ښځو په باره کښې دي چې د کومو ښځو چې خاوندان نه وي وفات شوي، اوس هغه ښځې چه د چا خاوندان وفات شوې دی نو ددې ښځو عدت هغه دې چې د هغې ذکر يتربصن بأنفسهن اربعة اشهر وعشرا کښې ذکر دې او د حامله ښځو عدت، که مطلقات وي او که متوفی عنهن ازواجهن، د هغوی حمل پیدا کیدل دي، او کوم کس چې د الله نه اویریږي الله به د هغه په هرکار کښې په دنیا او آخرت کښې آساني پیدا کړي، د عدت باره کښې چې کوم ذکر اوشو دا د الله حکم دې، کوم ئې چې تاسو ته رالیږلې دې، کوم کس چې د الله نه ویریږي الله تعالی به د هغه گناهونه لرې کړي، او هغه ته به اجرعظیم ورکړي، تاسو دغه مطلقه ښځو ته د خپل وس مطابق د اوسیدو ځائې ورکړئ کوم ځائې چې تاسو اوسیږئ، یعني د خپل گنجائش مطابق نه چې ددې نه کم، او په کور کښې په دوی باندې تنگی

كولو سره دوی ته تکلیف مه ورکوئ، چې هغوی په وتلو یا نفقه باندې مجبوره شی، او ستاسو د خوا نه اوځی، او که دا مطلقه حاملې وی نو د ماشوم پیدا کیدو پورې دوی ته خرڅه ورکوئ، بیا هغه ښځې (د مودې نه پس) ستاسو اولاد ته پئ ورکړی، نو تاسو هغوی ته د پئ ورکولو اجرت ورکړئ، او په خپل مینځ کښې د اولاد په حق کښې په مناسب توګه باندې مشوره کوئ، د پئ ورکولو په معروف اجرت باندې اتفاق کولو سره، او که تاسو د پئ ورکولو په معامله کښې خپل مینځ کښې اختلاف (تنګی) اوکړئ، او پلار د اجرت ورکولو نه‌او مور د پیو ورکولو نه منع شی، نو د پلار د پاره به بله ښځه ماشوم ته پئ ورکړی، او په مطلقاتو او مرضعاتو باندې د خپل وسعت مناسب خرچ کول پکار دی، او چاته چې الله روزی تنګ کړې ده هغه ته پکار دی چې الله ده ته څومره مال ورکړې دې د هغې نه خرچ کړی، الله تعالی ددې نه زیات څوک مکلف کوی نه، څومره چې ئې هغه ته ورکړې وی، الله تعالی به دیر زر د تنګئ نه پس فراخی ورکړی، او بې شکه هغه د فتوحاتو نه پس هم داسې اوکړل.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** بقرينةِ ما بَعدهٗ: د مابعد نه مراد إذا طلقتم النساء دې، ځکه چې په دې کښې د جمع صیغه استعمال شوې ده، چې د هغې نه مراد امت دې، او دا هم کیدې شی چې خطاب حضور ﷺ ته وی، او د طلقتم د جمع صیغه د تعظیم د پاره راوړلې شوې وی، او د قل لهم سره د احتمال ثانی بیان دې.

**قوله:** أَرَدتُمُ الطلاقَ: ددې عبارت د اضافې مقصد د یوې شبهې ازاله کول دی، شبه دا ده چې إذا طلقتم النساء فطلقوهن کښې ترتّبُ الشيء على نفسه لازم راځی، او دا تحصیل د حاصل دې، ځکه چې د څیز حمل په خپل ځان باندې صحیح نه دې؟ ددې شبه دفع کولو د پاره مفسر علام د أردتم الطلاق اضافه اوکړه، چې ترتب الشيء على نفسه لازم رانشی.

**قوله:** لاولها: أي في أول العدة یعنی د عدت په اول وخت کښې او د عدت وخت د امام شافعی، امام مالک رحمهما الله په نیز د طهر وخت دې، مطلب دا دې چې په اول طهر کوم کښې چه قربت نه وی شوې طلاق ورکړئ، دا تفسیر د امام شافعی د مسلک مطابق دې.

**قوله:** بینت أو بینة: دا مبينة بفتح الياء وبكسر الياء د قرا ءت تشریح ده بینت د فتحې په صورت کښې، او بینة د کسرې په صورت کښې.

**قوله:** احفظوها: أي احفظوا وقت عدتها، یعنی هغه وخت یاد ساتئ چې په کوم وخت کښې طلاق واقع شوې دې.

**قوله:** ذلكم يوعظ به: أي المذكور من أول السورة إلى هنا.

**قوله**: ومن يتق الله يجعل له مخرجا: دا د احكام نساء په مينځ كښې جمله معترضه ده.

**قوله**: وفي قراءة بالإضافة: أي بالغ أمره

**قوله**: واللائي: مبتدأ ده، او فعدتهن ددې خبر.

**قوله**: ان ارتبتم: شرط دې، او ددې جواب محذوف دې، أي فاعلموا أنها ثلاثة أشهر، او جواب شرط جمله معترضه ده، او دا هم كيدې شي چې فعدتهن جوابِ شرط وي.

**قوله**: اولات الاحمال: مبتدأ ده، أجلهن مبتدأ ثاني ده.

**قوله**: ان يضعن: د مبتدأ ثاني خبر دې، او مبتدأ ثاني د خپل خبر سره د مبتدأ اول د پاره خبر شو.

**[ايا تونه: ٨-١٢]**

(وَكَأَيِّنْ) هِيَ كَاف الْجَرّ دَخَلَتْ عَلَى أَيّ بِمَعْنَى كَمْ (مِنْ قَرْيَةٍ) أَيْ وَكَثِير مِنْ الْقُرَى (عَتَتْ) عَصَتْ يَعْنِي أَهْلهَا (عَنْ أَمْرِ رَبِّهَا وَرُسُله فَحَاسَبْنَاهَا) فِي الْآخِرَة وَإِنْ لَمْ تَجِئْ لِتَحَقُّقِ وُقُوعهَا (حِسَابًا شَدِيدًا وَعَذَّبْنَاهَا عَذَابًا نُكْرًا) بِسُكُونِ الْكَاف وَضَمّهَا فَظِيعًا وَهُوَ عَذَاب النَّار (فَذَاقَتْ وَبَال أَمْرهَا) عُقُوبَته (وَكَانَ عَاقِبَة أَمْرهَا خُسْرًا) خَسَارًا وَهَلَاكًا (أَعَدَّ اللَّه لَهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا) تَكْرِير الْوَعِيد تَوْكِيد (فَاتَّقُوا اللَّه يَا أُولِي الْأَلْبَاب) أَصْحَاب الْعُقُول (الَّذِينَ آمَنُوا) نَعْت لِلْمُنَادَى أَوْ بَيَان لَهُ (قَدْ أَنْزَلَ اللَّه إِلَيْكُمْ ذِكْرًا) هُوَ ال قرآن (رَسُولًا) أَيْ مُحَمَّدًا صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منصوب بفعل مقدر اي وارسل (يتلوا عَلَيْكُمْ آيَات اللَّه مُبَيِّنَات) بِفَتْحِ الْيَاء وَكَسْرهَا كَمَا تَقَدَّمَ (لِيُخْرِج الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَات) بَعْد مَجِيء الذِّكْر وَالرَّسُول (مِنْ الظُّلُمَات) الْكُفْر الَّذِي كَانُوا عَلَيْهِ (إِلَى النُّور) الْإِيمَان الَّذِي قَامَ بِهِمْ بَعْد الْكُفْر (وَمَنْ يُؤْمِن بِاَللَّهِ وَيَعْمَل صَالِحًا يُدْخِلهُ) وَفِي قِرَاءَة بِالنُّونِ (جَنَّات تَجْرِي مِنْ تَحْتهَا الْأَنْهَار خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا قَدْ أَحْسَنَ اللَّه لَهُ رِزْقًا) هُوَ رِزْق الْجَنَّة الَّتِي لَا يَنْقَطِع نَعِيمهَا (اللَّه الَّذِي خَلَقَ سَبْع سَمَاوَات وَمِنْ الْأَرْض مِثْلهنَّ) يَعْنِي سَبْع أَرَضِينَ (يَتَنَزَّل الْأَمْر) الْوَحْي (بَيْنهنَّ) بَيْن السَّمَاوَات وَالْأَرْض يَنْزِل بِهِ جِبْرِيل مِنْ السَّمَاء السَّابِعَة إِلَى الْأَرْض السَّابِعَة (لِتَعْلَمُوا) مُتَعَلِّق بِمَحْذُوفٍ أَيْ أَعْلَمَكُمْ بِذَلِكَ الْخَلْق وَالتَّنْزِيل (إن الله على كل شيء قدير وأن الله قد أحاط بكل شيء علما)

**ترجمه**: او ډير كلي، كَأَيِّن كښې كاف حرف جار دې، كوم چې أيّ باندې داخل دې، د كم په معنى كښې دې، چې د هغې اوسيدونكو د خپل رب او د خپل رسول نافرماني اوكړه نو مونږ د هغوى په آخرت كښې سخته محاسبه اوكړه، او سخت عذاب مو وركړو، اګرچه آخرت خو اوس لا واقع شوې نه دې خو د يقيني الوقوع د وجې نه په ماضي سره تعبير اوكړې شو. نُكرًا د كاف په سكون او ضمې سره، په معنى د سخت (شديد)، او هغه د اور عذاب دې، نو

هغوی د خپلو کړو مزه اوڅکله، یعنی خپل انجام ته اورسیدل او دوی کار انجام تاوان او هلاکت شو، الله تعالی ددوی د پاره سخت عذاب تیار کړي دي، د وعید تکرار د تاکید د پاره دي نو د الله نه اویریږئ، اې عقلمندو ایمان والا، الذین آمنوا د منادی صفت یا ددې بیان دې، یقینا الله تعالی ستاسو طرف ته ذکر (قرآن) نازل کړي دې، رسول ﷺ یعنی محمد ﷺ ئې رااولیږلو، رسولاً د فعل مقدر یعنی د أرسل د وجې نه منصوب دې، هغه تاسو ته د الله تعالی ښکاره ایتونه اوروی، مبینٰت، د یاء په فتحې او کسرې سره، څنګه چې مخکښې تیر شول،دې د پاره چې هغه خلقو لره چې چا ایمان راوړو او نیک عملونه ئې اوکړل د ذکر او د رسول ﷺ دراتلو نه پس د کفر د تیارو نه په کومو کښې چې هغوی وو د نور یعنی د هغه ایمان په کوم چې هغوی د کفر نه پس قائم دی، طرف ته رااوباسی، او کوم کس چې په الله باندې ایمان راوړی او نیک عمل اوکړی، الله به هغه په داسې باغونو کښې داخل کړی، چې په هغې کښې به نهرونه جاری وی، او په یو قراءت کښې په نون سره دې، په هغې کښې به همیشه اوسیږی، بې شکه الله تعالی هغه ته بهترین رزق ورکړې دې، او هغه د جنت رزق دې، چې د هغې نعمتونه چرې ختمیدونکې نه دی، الله هغه ذات دې چا چې اووه اسمانونه جوړ کړل، او ددې مثل زمکې هم، یعنی اووه زمکې، وحی ددې یعنی د اسمانونو او د زمکو په مینځ کښې نازلیږی، جبرئیل علیه السلام دا د اووم آسمان نه اوومې زمکې ته راکوزوی، چې تاسو ته پته اولګی چې الله په هر څیز باندې قادر دې، او الله تعالی هر څیز د علم په اعتبار سره ګیر کړې دې، (یعنی د هغه علم پرې احاطه کړې ده).

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: وكأين من قرية عتت عن امر ربها ورسله: دا کلام مستانف دې، د فتحې د وعدې د تصدیق د پاره راوړلې شوې دې،

كأين خبريه، بمعنی کم دې، من قرية د كأين تميز دې، كأين د مبتدا کیدو د وجې نه د رفع په محل کښې دې، او عتت ددې خبر دې.

**قوله**: عتت: دا اعرضت معنی ته متضمن کیدو د وجې نه متعدی بعن دې.

**قوله**: يعني أهلها: قرية وئیلو سره اهل قرية مراد اخستلې شوې دې، په دې کښې حذف د مضاف طرف ته اشاره ده، او د مجاز مرسل د قبیلې دې، علاقه د حال او د محل دې، یعنی محل وئیلو سره حال مراد اخستلې شوې دې.

**قوله**: لتحقق وقوعها: ددې عبارت د اضافې مقصد د یو اعتراض جواب کول دی.

**اعتراض**: جزاء سزا او حساب و کتاب به په آخرت کښې وی، بیا حاسبناها د ماضی

صیغې سره د تعبیر کولو څه مقصد دې؟

**جواب:** د حساب وقوع چونکه یقینی ده، ځکه ئې د ماضی په صیغې سره تعبیر اوکړو، یعنی ددې واقع کیدل داسې یقینی دی ځنګه چې د ماضی واقع کیدل یقینی وی، یا ځکه چې د الله په علم ازلی کښې ددې فیصله شوې ده.

**قوله:** تکریرُ الوعید توکیدٌ: یعنی مذکوره څلورو جملو کښې وعید د تاکید د پاره مکرر راوړلې شوې دې، هغه څلور جملې دی ① لحاسبنا، ② وعذبنا ها، ③ فذاقت وبال امرها، ④ وکان عاقبة امرها خسرا.

**قوله:** اوبیانٌ: بیان نه مراد عطف بیان دې.

**قوله:** مبینات: دا د آیات نه حال دې، د فتحې په صورت کښې، الله دا واضح کړل، د کسرې په صورت کښې، هغه پخپله واضح دی.

## [٦٦] سورة التحریم

### سورة التحریم مدنیة اثنتا عشرة ایة

سورة التحریم مدنی دې، په دې کښې دولس آیاتونه دی.

**[ایاتونه: ١-٧]**

﴿يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكَ﴾ مِنْ أَمَتِكَ مَارِيَةَ الْقِبْطِيَّةِ لَمَّا وَاقَعَهَا فِي بَيْتِ حَفْصَةَ وَكَانَتْ غَائِبَةً فَجَاءَتْ وَشَقَّ عَلَيْهَا كَوْنُ ذَلِكَ فِي بَيْتِهَا وَعَلَى فِرَاشِهَا حَيْثُ قُلْتَ هِيَ حَرَامٌ عَلَيَّ ﴿تَبْتَغِي﴾ بتحريمها ﴿مَرْضَاتَ أَزْوَاجِكَ﴾ أَيْ رِضَاهُنَّ ﴿وَاللَّهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ﴾ غَفَرَ لَكَ هَذَا التَّحْرِيمَ ﴿قَدْ فَرَضَ اللَّهُ﴾ شَرَعَ ﴿لَكُمْ تَحِلَّةَ أَيْمَانِكُمْ﴾ تَحْلِيلَهَا بِالْكَفَّارَةِ الْمَذْكُورَةِ فِي سُورَةِ الْمَائِدَةِ وَمِنَ الْأَيْمَانِ تَحْرِيمُ الْأَمَةِ وَهَلْ كَفَّرَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مُقَاتِلٌ أَعْتَقَ رَقَبَةً فِي تَحْرِيمِ مَارِيَةَ وَقَالَ الْحَسَنُ لَمْ يُكَفِّرْ لِأَنَّهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَغْفُورٌ لَهُ ﴿وَاللَّهُ مَوْلَاكُمْ﴾ ناصركم ﴿وَهُوَ الْعَلِيمُ الْحَكِيمُ﴾ وَ اذْكُرْ ﴿إِذْ أَسَرَّ النَّبِيُّ إِلَى بَعْضِ أَزْوَاجِهِ﴾ هِيَ حَفْصَةُ ﴿حَدِيثًا﴾ هُوَ تَحْرِيمُ مَارِيَةَ وَقَالَ لَهَا لَا تُفْشِيهِ ﴿فَلَمَّا نَبَّأَتْ بِهِ﴾ عَائِشَةَ ظَنًّا مِنْهَا أَنْ لَا حَرَجَ فِي ذَلِكَ ﴿وَأَظْهَرَهُ اللَّهُ﴾ أَطْلَعَهُ ﴿عَلَيْهِ﴾ عَلَى الْمُنَبَّأِ بِهِ ﴿عَرَّفَ بَعْضَهُ﴾ لِحَفْصَةَ ﴿وَأَعْرَضَ عَنْ بَعْضٍ﴾ تَكَرُّمًا مِنْهُ ﴿فَلَمَّا نَبَّأَهَا بِهِ قَالَتْ مَنْ أَنْبَأَكَ هَذَا قَالَ نَبَّأَنِيَ الْعَلِيمُ الْخَبِيرُ﴾ أَيِ اللَّهُ ﴿إِنْ تَتُوبَا﴾ أَيْ حَفْصَةُ وَعَائِشَةُ ﴿إِلَى اللَّهِ فَقَدْ صَغَتْ قُلُوبُكُمَا﴾ مَالَتْ إِلَى تَحْرِيمِ مَارِيَةَ أَيْ سَرَّكُمَا ذَلِكَ مَعَ كَرَاهَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَهُ وَذَلِكَ ذَنْبٌ وَجَوَابُ الشَّرْطِ مَحْذُوفٌ أَيْ تُقْبَلَا وَأَطْلَقَ قُلُوبَ عَلَى قَلْبَيْنِ وَلَمْ يُعَبِّرْ بِهِ لِاسْتِثْقَالِ الْجَمْعِ بَيْنَ تَثْنِيَتَيْنِ فِيمَا هُوَ كَالْكَلِمَةِ الْوَاحِدَةِ ﴿وَإِنْ تَظَاهَرَا﴾ بِإِدْغَامِ التَّاءِ الثَّانِيَةِ فِي الْأَصْلِ فِي الظَّاءِ وَفِي قِرَاءَةٍ بِدُونِهَا تَتَعَاوَنَا ﴿عَلَيْهِ﴾ أَيِ النَّبِيِّ فِيمَا يَكْرَهُهُ ﴿فَإِنَّ اللَّهَ هُوَ﴾ فَصْلٌ ﴿مَوْلَاهُ﴾ نَاصِرُهُ ﴿وَجِبْرِيلُ وَصَالِحُ الْمُؤْمِنِينَ﴾ أَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا مَعْطُوفٌ عَلَى مَحَلِّ اسْمِ إِنَّ فَيَكُونُونَ نَاصِرِيهِ ﴿وَالْمَلَائِكَةُ بَعْدَ ذَلِكَ﴾ بَعْدَ نَصْرِ اللَّهِ وَالْمَذْكُورِينَ

﴿ظَهِيرٌ﴾ ظُهَرَاء أعْوَان لَهُ فِي نَصْره عَلَيْكُمَا ﴿عَسَىٰ رَبُّهُ إِنْ طَلَّقَكُنَّ﴾ أَيْ طَلَّقَ النَّبِيّ أَزْوَاجه ﴿أَنْ يُبْدِلَهُ﴾ بِالتَّشْدِيدِ وَالتَّخْفِيف ﴿أَزْوَاجًا خَيْرًا مِنْكُنَّ﴾ خَبَر عَسَى وَالْجُمْلَة جَوَاب الشَّرْط وَلَمْ يَقَع التَّبْدِيل لِعَدَمِ وُقُوع الشَّرْط ﴿مُسْلِمَاتٍ﴾ مُقِرَّات بِالْإِسْلَامِ ﴿مُؤْمِنَاتٍ﴾ مُخْلِصَات ﴿قَانِتَاتٍ﴾ مُطِيعَات ﴿تَائِبَاتٍ عَابِدَاتٍ سَائِحَاتٍ﴾ صَائِمَات أَوْ مُهَاجِرَات ﴿ثَيِّبَاتٍ وَأَبْكَارًا﴾ ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قُوا أَنْفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ﴾ بِالْحَمْلِ عَلَى طَاعَة اللّٰه ﴿نَارًا وَقُودُهَا النَّاسُ﴾ الْكُفَّار ﴿وَالْحِجَارَةُ﴾ كَأَصْنَامِهِمْ مِنْهَا يَعْنِي أَنَّهَا مُفْرِطَة الْحَرَارَة تَتَّقِد بِمَا ذُكِرَ لَا كَنَارِ الدُّنْيَا تَتَّقِد بِالْحَطَبِ وَنَحْوه ﴿عَلَيْهَا مَلَائِكَةٌ﴾ خَزَنَتهَا عِدَّتهمْ تِسْعَة عَشَر كَمَا سَيَأْتِي فِي الْمُدَّثِّر ﴿غِلَاظٌ﴾ مِنْ غِلَظ الْقَلْب ﴿شِدَادٌ﴾ فِي الْبَطْش ﴿لَا يَعْصُونَ اللّٰهَ مَا أَمَرَهُمْ﴾ بَدَل مِنَ الْجَلَالَة أَيْ لَا يَعْصُونَ أَمْر اللّٰه ﴿وَيَفْعَلُونَ مَا يُؤْمَرُونَ﴾ تَأْكِيد وَالْآيَة تَخْوِيف لِلْمُؤْمِنِينَ عَنِ الِارْتِدَاد وَلِلْمُنَافِقِينَ الْمُؤْمِنِينَ بِأَلْسِنَتِهِمْ دُون قُلُوبهمْ ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ كَفَرُوا لَا تَعْتَذِرُوا الْيَوْمَ﴾ يُقَال لَهُمْ ذَلِكَ عِنْد دُخُولهمْ النَّار أَيْ لِأَنَّهُ لَا يَنْفَعكُمْ ﴿إِنَّمَا تُجْزَوْنَ مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ﴾ أَيْ جَزَاءَهُ

**ترجمه**: شروع کوم د الله په نوم سره چې ډير مهربانه او ډير رحم کولو والا دې، اې نبی ﷺ! تاسو ولې حراموئ هغه څيز کوم چې الله ستاسو د پاره حلال کړې دی، ؟ يعنی وينزه ماريه قبطيه رضی الله عنها چې کله حضورپاک ﷺ د حفصه رضی الله عنها په کور کښې هغې سره قربت اوکړو، او حفصه رضی الله عنها موجود نه وه، اچانک هغه راغله، او هغې باندې دا خبره بده اولګيده، دغه وخت حضور ﷺ هی حرام علیّ (هغه په ما باندې حرام ده) اوفرمائيل، ددې حرامولو سره د خپلو بيبيانو د خوشحالولو د پاره، الله بخښنې والا او مهربانه دې، ستاسو ﷺ دا حرام والې ئې معاف کړو، يقينا الله تعالی ستاسو قسمونه لره کفاره ورکولو سره، چې د هغې ذکر په سورة مائده کښې دې، پرانيستل فرض مشروع کړی دی، او وينزو په ځان باندې حرامول هم په قسم کښې داخل دې، آيا حضور ﷺ کفاره ورکړه؟ يا ئې ورنکړه، مقاتل وئيلی دی چې حضور ﷺ د ماريه رضی الله عنها د حراموالی په سلسله کښې يو غلام ازاد کړو، او حسن وئيلی دی چې حضور ﷺ کفاره ورنکړه، ځکه چې حضور ﷺ خو د مخکښې نه بخښلې شوی دې، الله تعالی ستاسو کارساز دې، او هم هغه حکمت والا دې، او ياد کړه هغه وخت چې کله حضور ﷺ خپلو بيبيانو او هغه حفصه رضی الله عنها وه ته په پټه يوه خبره اوکړه، او هغه د ماريه قبطيه د حراموالی خبره وه، او حضور ﷺ حفصه رضی الله عنها ته دا هم اووئيل چې دې راز لره مه ښکاره کوه، خو هغې حضرت عائشه رضی الله عنها ته خبر ورکړو، دا ئې اوګڼرل چې په دې کښې څه حرج نشته، او الله تعالی خپل نبی ﷺ ددې خبرې نه خبردار کړې وو، نو نبی ﷺ حفصه رضی الله عنها ته لږه شان خبره خو اوکړه او لږه ئې پرېښودله، د حضور ﷺ د کرم او د ښو اخلاقو د وجې نه نو پيغمبر هغه بی بی ته دا خبره اوکړه، نو هغې اووئيل چې تاسو ته دا خبر چا درکړې دې؟ حضور ﷺ

اوفرمائیل چې ماته خبردار، دیر علم لرونکي خبر راکړې دې، اې حفصه او عائشه ﷠ که تاسو دواړه الله ته توبه اوباسئ، نو دا بهتر ده یقینا ستاسو د دواړو زړونه د ماریه ﷝ حرام والي طرف ته مائله شوي دي،یعني هغوی دې تحریم سره خوشحاله شوې، حالانکه حضور ﷺ ته دا خبره خوښه نه شوه، او دا خبره ګناه ده، او جواب شرط محذوف دې، أي فتقبلا او په قلبین باندې ئې د قلوب اطلاق اوکړو، دواړه ئې تثنیه سره تعبیر نکړل، د دوؤ تثنیو د کلمه واحد په شان، د جمع ثقیل کیدو د وجې نه، او که تاسو دواړه د نبي ﷺ په خلاف په هغه څیز کښې کوم چې نبي ﷺ نه خوښوي، مدد اوکړئ، نو الله تعالی د هغه مددګار دې. هو ضمیر فصل دې، او جبرئیل او نیک عمل والا ابوبکر وعمر ﷠ وجبرئیل وصالح المؤمنون د إن د اسم په محل باندې عطف دې، نو دا ټول د حضور ﷺ مددګاران دي، او الله او د مذکورینو د مدد نه علاوه فرشتې د هغه مددګاراني دي، یعني ستاسو په مقابله کښې د هغه مددګار دي، که نبي ﷺ تاسو ته طلاق درکړي یعني خپلو بیبیانو ته طلاق ورکړي، نو دیر زر به هغه ته د هغه رب ستاسو په عوض ستاسو نه دیر ښې بیبیانې ورکړي، یبدله د دال په تخفیف او تشدید سره دې، أزواجا د عسی خبر او جمله جواب شرط دې، او د شرط د نه واقع کیدو د وجې تبدیلي رانغله، کومې به چې اسلام راوړونکې وي، توبه کونکې، عبادت کونکې، روژې نیونکې، هجرت کونکې وي واده کړې وي او ناواده کړې به وي، اې ایمان والو، خپل ځان او خپل خاندان د الله په اطاعت باندې آماده کولو سره د جهنم د اور نه بچ کړئ، چې د هغې خشاک کافر انسانان دي، او کاڼړي دي، لکه دکاڼړي بتان، یعني جهنم سخت حرارت والا دې، کوم چې په مذکوره څیزونو باندې بلولې شي، نه چې د دنیا اور کوم چې په لرګی وغیره سره بلولې شي، چې د هغې نګرانې سخت زړه والا فرشتې دي، چې د هغوی تعداد نورلس دې، څنګه چې په سورة مدثر کښې راراوان دي، غلاظ د غلظ القلب نه ماخوذ دې، او د نیولو په اعتبار سره سختې دي، چې هغوی ته کوم حکم الله تعالی ورکوي د هغې نافرماني نه کوي، ما أمر الله د لفظ الله نه بدل دې، مطلب دا چې هغوی د الله نافرماني نه کوي، بلکه چې د کومې خبرې حکم ورته کولې شي نو هغه کوي، دا تاکید دې، او دا ایت مومنانو لره د ارتداد نه، او په زړه سره نه بلکه په ژبې سره ایمان راوړونکي منافقانو د پاره، یرول دي، اې کافرانو انن تاسو عذر بهانه مه کوئ، دوی ته به دا خبره دوزخ ته د داخلیدو په وخت کولې شي، دا څکه چې عذر او معذرت په هغه ورځ دوی ته څه فائده نه ورکوي، تاسو ته صرف ستاسو د کړو بدله درکولې شي.

.........

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**د سورة تحريم دويم نوم سورة النبي ﷺ دي.**

**قوله:** مارية القبطية: دا هغه وينزه ده کومه چې د مصر بادشاه مقوقس د حضور ﷺ په خدمت کښې پيش کړې وه، دا واقعه په اوومه هجرئ کښې راغلې وه، او هم ددې د بطن نه په ذى الحجة اتمه هجرئ کښې د حضور ﷺ خوئې ابراهيم عليه السلام پيدا شوې وو.

**قوله:** تحلة: کولاول، حلال کول، د حلل مصدر دي.

**قوله:** جواب الشرط محذوف: إن تتوبا شرط دې، فقد صغت قلوبكما علت د شرط دې، يعنى توبه ځکه اوکړئ چې ستاسو زړونه د حق نه غير حق طرف نه اوړيدلى دى، جواب د شرط تقبلا محذوف دې، يعنى که تاسو توبه اوکړئ نو توبه به قبوله کړې شى، كما صرح به المفسر العلام بعضې حضراتو يَكُن خيراً لكم جزاء محذوف منلې ده.

**قوله:** أطلق قلوبٌ على قلبين: الخ

**سوال:** قلوبكما کښې د تثنيې په ځائې قلوب استعمال شوې دې، حالانکه د قياس تقاضه قَلباكما وو، ځکه چې د دوو کسانو دوه زړونه وى؟

**جواب:** مثل کلمه واحده کښې د دوو تثنيو اجتماع ثقيل کيدو د وجې نه قلوب جمع راوړلې شوې ده.

**سوال:** مِثل كلمة واحدة ئې ولې اوفرمائيل نه چې کلمه واحده؟

**جواب:** مضاف او مضاف اليه په حقيقت کښې دوه کلمې دى، خو د شدت اتصال د وجې نه په مثل كلمة واحدة شميرلې شى.

**قوله:** فإن الله هُو مولاهُ: دا د شرط جزاء محذوف علت دې، هغه به د مدد نه ځکه نه محروميږى ځکه چې الله د هغه مولا او ناصِر دې.

**قوله:** صالح: اسم جنس دې، د دې اطلاق په واحد تثنيه جمع ټولو باندې کيږى، ځکه ددې صفت المؤمنون راوړل صحيح دى، په کتاب کښې مذکوره ترکيب نه علاوه دا صورت هم جائز دې چې جبرئيل عليه السلام او د دې معطوفات مبتدأ وى، او ظهير بمعنى ظهراء د مبتدأ خبر دې.

**سوال:** خبر مفرد دې، او مبتدأ جمع ده، دا جائز نه دى؟

**جواب:** ظهير د فعيل په وزن دې، په دې وزن کښې واحد، تثنيه، او جمع ټول برابر وى.

**قوله:** خبرُ عسى: أن يبدله أزواجا خيراً منكن د عسى خبر دې، او ربه د عسى اسم دې، عسى د

خپل اسم او خبر سره جواب د شرط دې، او إن طلقكن شرط دې، خو په دې صورت کښې به دا اعتراض راځی چې ددې جملې فعل جامد دې، او چې کله جمله ددا سې قسم وی نو په دې باندې فاء لازميږی، حالانکه دلته فاء نشته، لهذا بهتره دا ده چې جزاء محذوف اومنلې شی او دې جملې لره دليل د جزاء اوګرځولې شی.

**قوله:** قُوا: بروزن عُوا امر جمع مذکر حاضر، دا په اصل کښې وَقِيُوا وو.

**[ايات توله: ۸-۱۲]**

{يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا تُوبُوا إِلَى اللَّهِ تَوْبَةً نَّصُوحًا} بِفَتْحِ النُّونِ وَضَمِّهَا صَادِقَةً بِأَنْ لَا يُعَادَ إِلَى الذَّنْبِ وَلَا يُرَادَ الْعَوْدُ إِلَيْهِ {عَسَى رَبُّكُمْ} تَرْجِيَةٌ تَقَعُ {أَنْ يُكَفِّرَ عَنْكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ وَيُدْخِلَكُمْ جَنَّاتٍ} بَسَاتِينَ {تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ يَوْمَ لَا يُخْزِي اللَّهُ} بِإِدْخَالِ النَّارِ {النَّبِيَّ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ نُورُهُمْ يَسْعَى بَيْنَ أَيْدِيهِمْ} أَمَامَهُمْ {وَ} يَكُونُ {بِأَيْمَانِهِمْ يَقُولُونَ} مُسْتَأْنَفٌ {رَبَّنَا أَتْمِمْ لَنَا نُورَنَا} إِلَى الْجَنَّةِ وَالْمُنَافِقُونَ يُطْفَأُ نُورُهُمْ {وَاغْفِرْ لَنَا} رَبَّنَا {إِنَّكَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ} {يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ جَاهِدِ الْكُفَّارَ} بِالسَّيْفِ {وَالْمُنَافِقِينَ} بِاللِّسَانِ وَالْحُجَّةِ {وَاغْلُظْ عَلَيْهِمْ} بِالِانْتِهَارِ وَالْمَقْتِ {وَمَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ} هِيَ {ضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا لِلَّذِينَ كَفَرُوا امْرَأَتَ نُوحٍ وَامْرَأَتَ لُوطٍ كَانَتَا تَحْتَ عَبْدَيْنِ مِنْ عِبَادِنَا صَالِحَيْنِ فَخَانَتَاهُمَا} فِي الدِّينِ إِذْ كَفَرَتَا وَكَانَتْ امْرَأَةُ نُوحٍ وَاسْمُهَا وَاهِلَةُ تَقُولُ لِقَوْمِهِ ؟ إِنَّهُ مَجْنُونٌ وَامْرَأَةُ لُوطٍ وَاسْمُهَا وَاعِلَةُ تَدُلُّ قَوْمَهُ عَلَى أَضْيَافِهِ إِذَا نَزَلُوا بِهِ لَيْلًا بِإِيقَادِ النَّارِ وَنَهَارًا بِالتَّدْخِينِ {فَلَمْ يُغْنِيَا} أَيْ نُوحٌ وَلُوطٌ {عَنْهُمَا مِنَ اللَّهِ} مِنْ عَذَابِهِ {شَيْئًا وَقِيلَ} لَهُمَا {ادْخُلَا النَّارَ مَعَ الدَّاخِلِينَ} مِنْ كُفَّارِ قَوْمِ نُوحٍ وَقَوْمِ لُوطٍ {وَضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا لِلَّذِينَ آمَنُوا امْرَأَتَ فِرْعَوْنَ} آمَنَتْ بِمُوسَى وَاسْمُهَا آسِيَةُ فَعَذَّبَهَا فِرْعَوْنُ بِأَنْ أَوْتَدَ يَدَيْهَا وَرِجْلَيْهَا وَأَلْقَى عَلَى صَدْرِهَا رَحًى عَظِيمَةً وَاسْتَقْبَلَ بِهَا الشَّمْسَ فَكَانَتْ إِذَا تَفَرَّقَ عَنْهَا مَنْ وُكِّلَ بِهَا ظَلَّلَتْهَا الْمَلَائِكَةُ {إِذْ قَالَتْ} فِي حَالِ التَّعْذِيبِ {رَبِّ ابْنِ لِي عِنْدَكَ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ} فَكُشِفَ لَهَا فَرَأَتْهُ فَسَهُلَ عَلَيْهَا التَّعْذِيبُ {وَنَجِّنِي مِنْ فِرْعَوْنَ وَعَمَلِهِ} وَتَعْذِيبِهِ {وَنَجِّنِي مِنَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ} أَهْلِ دِينِهِ فَقَبَضَ اللَّهُ رُوحَهَا وَقَالَ ابْنُ كَيْسَانَ رُفِعَتْ إِلَى الْجَنَّةِ حَيَّةً فَهِيَ تَأْكُلُ وَتَشْرَبُ {وَمَرْيَمَ} عَطْفٌ عَلَى امْرَأَةِ فِرْعَوْنَ {ابْنَةَ عِمْرَانَ الَّتِي أَحْصَنَتْ فَرْجَهَا} حَفِظَتْهُ {فَنَفَخْنَا فِيهِ مِنْ رُوحِنَا} أَيْ جِبْرِيلَ حَيْثُ نَفَخَ فِي جَيْبِ دِرْعِهَا بِخَلْقِ اللَّهِ تَعَالَى فِعْلَهُ الْوَاصِلَ إِلَى فَرْجِهَا فَحَمَلَتْ بِعِيسَى {وَصَدَّقَتْ بِكَلِمَاتِ رَبِّهَا} شَرَائِعِهِ {وَكُتُبِهِ} الْمُنَزَّلَةِ {وَكَانَتْ مِنَ الْقَانِتِينَ} مِنَ الْقَوْمِ الْمُطِيعِينَ

**ترجمه:** اې ايمان والو تاسو الله ته رښتونې توبه اوکړئ، نصوحًا، د نون په فتحې او ضمې سره دې، په داسې طريقه چې دوباره به ګناه نه کوی، او نه به د هغې اراده کوی، اميد دې چې ستاسو رب به ستاسو ګناهونه لرې کړی، او دا داسې توقع ده چې دهغې واقع کيدل يقينی دی، تاسو به داسې باغونو کښې داخل کړی چې د هغې لاندې به نهرونه بهيږی، په کومه ورځ چې به الله نبی ﷺ او هغه سره ايمان راوړونکی په اور کښې داخلولو سره رسوا نه کړی، ددوی نور

به ددوی مخکښې او ددوی ښی اړخ ته منډې وهی، د الله نه به دعاء کوی، یقولون جمله مستانفه ده، اې زمونږ پروردګاره ته زمونږ دې نور لره جنت ته رسیدو پورې باقي اوساته، او د منافقانو نور به مړ شی، او اې زمونږ پروردګاره ته زمونږ بخښنه اوکړه، بې شکه ته په هر څیز باندې قادریې، اې نبی ﷺ تاسو د کافرانو سره د تورې په ذریعه او د منافقانو سره د ژبې او د دلیل په ذریعه جهاد اوکړئ، او په غصه کولو سره او په رټلو سره په دوی باندې سختی اوکړئ، ددوی د اوسیدو ځائې جهنم دې، او هغه خرابه ټهکانه ده، او الله تعالی د نوح او د لوط (علیهما السلام) د بیبیانو مثال بیان فرمائیلې دې، او دا دواړه زمونږ په بندګانو کښې د دوو نیکو بندګانو په نکاح کښې وې، دې دواړو ددوی په دین کښې، چې کفر ئې اوکړو خیانت ئې اوکړو، د نوح ﷺ بی بی چې د هغې نوم واهله وو، خپل قوم ته به ئې وئیل چې دا خما خاوند پاګل دې، او د لوط ﷺ بی بی چې د هغې نوم واعله وو، خپل قوم ته به ئې د لوط ﷺ د میلمنو خبر ورکولو، چې کله به د شپې راغلل نو اور به ئې بل کړو، او د ورځې به ئې لوګې کولو، نوح ﷺ او لوط ﷺ ددوی نه د الله عذاب په لرې کولو کښې د دوی په کار رانغلل، دوی ته به حکم اوکړې شی، چې قوم نوح او قوم لوط ﷺ کښې داخلیدونکو کافرانو سره په دوزخ کښې داخلې شئ، او الله تعالی د ایمان والو د پاره د فرعون د بی بی مثال بیان کړو، کومې چې په موسی ﷺ باندې ایمان راوړې وو، او د هغې نوم اسیه وو، او فرعون به د هغې لاسونو او خپو کښې میخونه ټک وهلو سره سزا ورکوله، او د هغې په سینه باندې به ئې درون وزن ایخودلو، او هغه به ئې نمر ته مخامخ کړه، او کومو خلقو ته ئې چه حواله کړې وه کله چې هغوی جدا شول نو فرشتو به په هغې باندې سورې اوکړو. چې کله هغې د عذاب په حالت کښې دعاء اوکړه اې خما پروردګاره ته خما د پاره په جنت کښې کور سره ځائې جوړ کړه، نو الله تعالی ددې د پاره پردې اوچتې کړې، چې هغې سره دې خپل کور په جنت کښې اولیدلو، چې په دې سزا برداشت کول د هغې د پاره آسان شو، او ما د فرعون او د هغه د عمل نه یعنی د هغه د سزا نه بچ کړه، او ما د هغه د ظالم قوم نه یعنی د هغه د هم مذهب خلقو نه بچ اوساته، نو الله تعالی ددې روح قبض کړو، او ابن کیسان وئیلی دی چې هغه ژوند ئې جنت طرف ته اچته کړې شوه، نو هلته هغه خوراک او څکاک کوی، او مثال ئې بیان کړو، د مریم بنت عمران ددې عطف په امرأة فرعون باندې دې، چې هغې د خپل ناموس (عزت) حفاظت اوکړو، بیا مونږ د خپل طرف نه په هغې کښې روح پوک وهلو (واچولو)، یعنی جبرئیل ﷺ د هغې په ګریبان کښې پوک وهلو، الله تعالی د جبرئیل ﷺ فعل لره خلقت ورکړو، نو دغه شان په هغه (عیسی ﷺ) باندې حامله شوه، او هغې د خپل رب د خبرو شریعت او د هغه د نازل شوی کتابونو تصدیق اوکړو، او هغه د عبادت ګذار خلقو نه وه.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: نصوحاً: د نون په فتحې سره، د مبالغې صيغه ده، بروزن شكور، د توبه صفت دې، يعنى انتهائى خالصه توبه، او د نون په ضمې سره، مصدر دې لكه نصح نصحًا ونصوحًا، په دې صورت كښې په د توبة صفت مبالغة وى، او د زيد عدل د قبيلې نه به وى، گنى د مصدر حمل به په ذات راشى، نصوحا، د توبة صفت د اسناد مجازى په توگه باندې دې، گنى په حقيقت كښې نصوحا د تائب صفت دې.

**قوله**: ترجية لهم: ددې عبارت داضافې مقصد د يو سوال مقدر جواب دې.

**سوال**: دا دې چې عسى د ترجى او د توقع د پاره استعماليږى، حالانكه د الله په كلام كښې ترجى او توقع نه وى، بلكه يقينى الوقوع وى؟.

**جواب**: د جواب خلاصه دا ده چې عسى اگرچه د توقع او ترجى د پاره استعماليږى، خو په قرآن كښې د يقينى الوقوع د پاره استعماليږى.

**قوله**: يوم لا يخزي الله النبي ﷺ: يوم يا خو د يدخلكم د وجې نه منصوب دې يا د اذكر فعل محذوف د وجې نه منصوب دې.

**قوله**: والذين آمنوا: يا خو ددې عطف په النبى باندې دې، په دې صورت كښې به وقف په (معه) باندې وى او نورهم يسعى به كلام مستانف وى، په دې صورت كښې به نورهم مبتدأ وى، او يسعى بين أيديهم ددې خبر، او دا هم كيدې شى چې نورهم يسعى جمله د حال كيدو د وجې نه محلا منصوب وى.

**قوله**: ضرب الله مثلا: ضرب بمعنى جعل متعدى بدومفعول دې، مثلا مفعول به ثانى مقدم امرأة نوح مفعول به اول دې، د مفعول به اول مؤخر كولو وجه دا ده چې كانتا تحت عبدين الخ سره د مفعول اول، يعنى د امرأة نوح، او امرأة لوط حال بيانولې شى، لهذا مفعول اول مؤخر كړې شو، چې حال او صاحب حال متصل شى.

**قوله**: امرأت نوح وامرات لوط: مصحف امام د رسم الخط مطابق امراة اوږدې تاء سره ليكلې شوې دې.

**قوله**: شيئاً: دا په حذف د موصوف سره د لم يغنيا مفعول مطلق دې. أى لم يغنيا اغناءً شيئا.

**قوله**: قيل: يقينى الوقوع د وجې نه ئې د ماضى سره تعبيراوكړو، او قائل ئې ملائكه دى.

**قوله**: وتعليميه: دا د كلمته عطف تفسير دې.

**قوله**: اى جبرئيل: جبرئيل د روحنا تفسير دې.

بسم الله الرحمن الرحيم

[٦٧] سورة الملک

سورة الملک مكية ثلاثون اية

سورة الملک مکی دې، په دې کښې ديرش آياتونه دی.

پاره نمبر - ۲۹ [تَبَارَكَ الَّذِي]

[اياتونه: ۱ - ١٤]

(تَبَارَكَ) تَنَزَّهَ عَنْ صِفَاتِ الْمُحْدَثِينَ (الَّذِي بِيَدِهِ) فِي تصرفه (الملك) السلطان والقدرة (وهو على كل شىء قدير) (الَّذِي خَلَقَ الْمَوْتَ) فِي الدُّنْيَا (وَالْحَيَاةَ) فِي الْآخِرَةِ أَوْ هُمَا فِي الدُّنْيَا فَالنُّطْفَةُ تَعْرِضُ لَهَا الْحَيَاةُ وَهِيَ مَا بِهِ الْإِحْسَاسُ وَالْمَوْتُ ضِدُّهَا أَوْ عَدَمُهَا قَوْلَانِ وَالْخَلْقُ عَلَى الثَّانِي بِمَعْنَى التَّقْدِيرِ (لِيَبْلُوَكُمْ) لِيَخْتَبِرَكُمْ فِي الْحَيَاةِ (أَيُّكُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا) أَطْوَعُ لِلَّهِ (وَهُوَ الْعَزِيزُ) فِي انْتِقَامِهِ مِمَّنْ عَصَاهُ (الْغَفُورُ) لِمَنْ تَابَ إِلَيْهِ (الَّذِي خَلَقَ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ طِبَاقًا) بَعْضُهَا فَوْقَ بَعْضٍ مِنْ غَيْرِ مُمَاسَّةٍ (مَا تَرَى فِي خلق الرحمن) لَهُنَّ أَوْ لِغَيْرِهِنَّ (مِنْ تَفَاوُتٍ) تَبَايُنٍ وَعَدَمِ تَنَاسُبٍ (فَارْجِعِ الْبَصَرَ) أَعِدْهُ إِلَى السَّمَاءِ (هَلْ تَرَى) فِيهَا (مِنْ فُطُورٍ) صُدُوعٍ وَشُقُوقٍ (ثُمَّ ارْجِعِ الْبَصَرَ كَرَّتَيْنِ) كَرَّةً بَعْدَ كَرَّةٍ (يَنْقَلِبْ) يَرْجِعْ (إِلَيْكَ الْبَصَرُ خَاسِئًا) ذَلِيلًا لِعَدَمِ إِدْرَاكِ خَلَلٍ (وَهُوَ حَسِيرٌ) مُنْقَطِعٌ عَنْ رُؤْيَةِ خلل (وَلَقَدْ زَيَّنَّا السَّمَاءَ الدُّنْيَا) الْقُرْبَى إِلَى الْأَرْضِ (بِمَصَابِيحَ) بِنُجُومٍ (وَجَعَلْنَاهَا رُجُومًا) مَرَاجِمَ (لِلشَّيَاطِينِ) إِذَا اسْتَرَقُوا السَّمْعَ بِأَنْ يَنْفَصِلَ شِهَابٌ عَنِ الْكَوْكَبِ كالقبس يؤخذ من النار فيقتل الجني ان يَخْبِلُهُ لَا أَنَّ الْكَوْكَبَ يَزُولُ عَنْ مَكَانِهِ (وَأَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابَ السَّعِيرِ) النَّارِ الْمُوقَدَةِ (وَلِلَّذِينَ كَفَرُوا بِرَبِّهِمْ عَذَابُ جَهَنَّمَ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ) هي (إِذَا أُلْقُوا فِيهَا سَمِعُوا لَهَا شَهِيقًا) صَوْتًا مُنْكَرًا كَصَوْتِ الْحِمَارِ (وَهِيَ تَفُورُ) تَغْلِي (تَكَادُ تَمَيَّزُ) وَقُرِئَ تَتَمَيَّزُ عَلَى الْأَصْلِ تَتَقَطَّعُ (مِنَ الْغَيْظِ) غَضَبًا عَلَى الْكُفَّارِ (كُلَّمَا أُلْقِيَ فِيهَا فَوْجٌ) جَمَاعَةٌ مِنْهُمْ (سَأَلَهُمْ خَزَنَتُهَا) سُؤَالَ تَوْبِيخٍ (أَلَمْ يَأْتِكُمْ نَذِيرٌ) رَسُولٌ يُنْذِرُكُمْ عَذَابَ الله تعالى (قَالُوا بَلَى قَدْ جَاءَنَا نَذِيرٌ فَكَذَّبْنَا وَقُلْنَا مَا نَزَّلَ اللَّهُ مِنْ شَيْءٍ إِنْ) مَا (أَنْتُمْ إِلَّا فِي ضَلَالٍ كَبِيرٍ) يَحْتَمِلُ أَنْ يَكُونَ مِنْ كَلَامِ الْمَلَائِكَةِ لِلْكُفَّارِ حِينَ أَخْبَرُوا بالتكذيب وان يَكُونَ مِنْ كَلَامِ الْكُفَّارِ لِلنُّذُرِ (وَقَالُوا لَوْ كُنَّا نَسْمَعُ) أَيْ سَمَاعَ تَفَهُّمٍ (أونعقل) اي عقل تفكر (ماكنا فى أصحاب السعير) (فَاعْتَرَفُوا) حَيْثُ لَا يَنْفَعُ الِاعْتِرَافُ (بِذَنْبِهِمْ) وَهُوَ تَكْذِيبُ النُّذُرِ (فَسُحْقًا) بِسُكُونِ الْحَاءِ وَضَمِّهَا (لِأَصْحَابِ السَّعِيرِ) فَبُعْدًا لَهُمْ عَنْ رَحْمَةِ اللَّهِ (إِنَّ الَّذِينَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ) يَخَافُونَهُ (بِالْغَيْبِ) فِي غَيْبَتِهِمْ عَنْ أَعْيُنِ النَّاسِ فَيُطِيعُونَهُ سِرًّا فَيَكُونُ عَلَانِيَةً أَوْلَى (لَهُمْ مَغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ كَبِيرٌ) أَيْ الجنة (وَأَسِرُّوا) أَيُّهَا النَّاسُ (قَوْلَكُمْ أَوِ اجْهَرُوا بِهِ إِنَّهُ) تَعَالَى (عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ) بِمَا فِيهَا فَكَيْفَ بِمَا نَطَقْتُمْ بِهِ وَسَبَبُ نُزُولِ ذَلِكَ أَنَّ الْمُشْرِكِينَ قَالَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ أَسِرُّوا قَوْلَكُمْ لَا يَسْمَعُكُمْ إِلَهُ مُحَمَّدٍ (أَلَا يَعْلَمُ مَنْ خَلَقَ) مَا تُسِرُّونَ أَيْ أَيَنْتَفِي عِلْمُهُ بِذَلِكَ (وَهُوَ اللَّطِيفُ) فِي عِلْمِهِ (الْخَبِيرُ) فيه

ترجمه: - شروع کوم په نامه دَ الله چه ډير بخښونکي او ډير مهربان دې. هغه دَ ډيرلوئ شان مالک دې مُتَنَزِّهٌ (دَمخلوق) دَ صفاتونه پاک دې، دَ چا په قبضه تصرف کښې چه بادشاهي اوقدرت دې چا چې په دنياکښې مرګ پيداکړو او ژوند ئې په آخرت کښې پيداکړو يادواړه ئې په دنياکښې پيدا کړل، چنانچه په نطفه کښې ئې حيات اچولې شي اوحيات هغه دې په کوم سره چه احساس کيږي اومرګ دَدې ضد دې يادَ عدم حيات نوم مرګ دې. دا دواړه اقوال دي او په ثاني صورت کښې به خَلَق په معنی دَ تقديروي، دې دَپاره چه په حيات کښې ستاسو ازميښت اوکړي چه په تاسو کښې کوم يو کس په عمل کښې ډير ښه دې؟ يعني زيات حکم منونکې دې. هغه خپله نافرماني کونکي نه په انتقام اخستلو کښې زبردست دې اوڅوک چه دَهغه طرف ته رجوع کوي هغه لره معاف کونکې دې هغه اووه آسمانونه تط په تط پيدا کړل بعض دَ بعضو دَپاسه بغيردَ اتصال نه، نودَالله تعالى په دې صنعت کښې يادَدې نه علاوه (په بل صنعت) کښې څه خلل (چاود) مثلاً تباين اوعدم تناسب وينې؟ بيا نظر آسمان طرف ته اوګرځيدو چرته تاسو ته څه خلل يعني چاوډې يا څه خرابې ښکاري؟ بيا نظر مکرر بار بار واچوه دَ نقص نه معلومولو دَ وجې نه ذليل اوخوار کيدوسره به هم ستا طرف ته راوګرځي حال دا چه هغوی به دَنقص دَ نه معلومولو نه عاجز شي. بيشکه مونږ دَدنيا آسمان يعني زمکې ته نيزدې آسمان دَ ستورو په چراغونو سره ښائسته کړې دې او مونږ دا دَ شيطانانو دَ ويشتلو آله (ذريعه) جوړه کړې ده چه هغوی په غلا باندې پټ پټ دَ اوريدلودَپاره غوږ ايږدي. په داسې طريقه چه دَ ستوري نه شعله جدا شي لکه چه بخرې دَ اور نه جدا کيږي نوهغه جني شيطان قتلوي يا هغه ليونې کوي، نه دا چه ستورې دَ خپل ځائی نه خوزي او مونږ دَ شيطانانودَپاره دَ دوزخ سوزونکې عذاب يعني سوزونکې اور تيارساتلې دې اودَ خپل رب سره کفرکونکو دَپاره دَ جهنم عذاب دې اوهغه څه خراب ځائی دې اوکله چه به هغوی په دې کښې واچولې شي نوهغوی به دَده دَ خر د اواز په شان ناخوښه آواز اوري اوهغه به جوش وهي نيزدې ده چه په کافرانو باندې دَ غصې دَ وجې نه اوشليږي اودَ اصل مطابق تَتَمَيَّزُ هم لوستلې شوې دې په معنی د تَتَقَطَّعُ کله چه په دې کښې دَهغوی نه يوجماعت واچولې شي نودَ دوزخ نګرانې فرښتې به دَ توبيخ په توګه دَهغوی نه سوال کوي آيا تاسو له ويرونکې رسول چه تاسو ئې دَ الله تعالى دَعذاب نه ويرولې نه وو راغلې؟ نوهغوی به جواب ورکړي بيشکه راغلې وو ليکن مونږ هغه دروغ ګڼړلو اومونږ اووئيل چه الله تعالى هيڅ نه دي نازل کړي تاسو په ډيره لويه ګمراهئ کښې يئ، احتمال دې چه دا انبياء کرامو ته دَ کافرانو جواب وي اوهغوی به فرښتو ته (داهم) وائي که مونږ دَ پوهيدلې په غرض سره اوريدلې يا دَ غور دَپاره مو پوهيدلې نومونږ به دَ دوزخيانونه نه وې غرض دا چه هغوی به دَخپل جرم اقرار اوکړي خودَهغوی دَ جرم اعتراف کول

به هغوی ته هیڅ فائده نه شی ورنکړی، اوهغه جرم د رسولانوتکذیب دې نو په دوزخیانو باندې لعنت دې یعنی د هغوی د پاره د الله تعالی د رحمت نه لریوالې دې. (سُحْقًا) د حاء په سکون اوضمې سره بیشکه هغه خلق چه د خپل پروردګارنه غائبانه ویریږی (یعنی) چه کله هغوی د خلقو د نظرنه غائب وی نو په پټه د هغه اطاعت کوی نو په ظاهره خو به په طریق اولی سره اطاعت کونکی وی. د هغوی د پاره مغفرت اولوئ اجردې یعنی جنت، او اې خلقو که تاسو په پټه خبره کوئ او که په ظاهره بیشکه الله تعالی د سینو رازونو لره پیژندونکې دې نو بیا چه تاسو د څه ویناکوئ د هغې به څه حال وی؟ د دې آیت د نزول سبب دا شو چه مشرکانو په خپل مینځ کښې اووئیل چه تاسو پټې پټې خبرې کوئ داسې نه چه د محمد ﷺ الله پاك ئې واؤری ولې هغه نه پیژنی چاچه هغه څیز پیداکړې دې کوم چه تاسو پټوئ یعنی ولې د هغه علم به د دې نه مثتثنی شی؟ نه، هغه د خپل علم په اعتبارسره باریک بین (ورو څیزونو لره لیدونکې) او د هغې نه خبردې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** خَلَقَ الْمَوْتَ فی الدنیا، وَالْحَیٰوةَ فِی الْاٰخِرَةِ اَوْهُمَا فِی الدُّنْیَا، د مرګ او ژوند باره کښې اختلاف دې. د ابن عباس رضی الله عنهما او کلبی رحمه الله اومقاتل رحمه الله نه نقل دی چه مرګ او ژوند دواړه جوسې دی په دې صورت کښې به مرګ او ژوند دواړه وجودی وی او خَلَقَ به په خپله اصلی معنی کښې وی، د دواړو په مینځ کښې به تقابل به تضاد وی او بعض حضراتو وئیلی دی چه مرګ د عدم حیات نوم دې، په دې صورت کښې به حیات وجودی او مرګ عدمی وی، په دې صورت کښې به تقابل د عدم و الملکة وی، لکه چې عدم البصرکښې چې عدم البصر عدمی دې او بصر وجودی دې، د مرګ د دویم تفسیر په صورت کښې به خَلَقَ په معنی د قَدَّرَ وی، ځکه چه د تقدیرتعلق عدمی او وجودی دواړو سره جائزدې، په خلاف د خلق چه د دې تعلق د وجودی شئ سره خوصحیح دې مګر د عدمی سره صحیح نه دې.

**حق خبره:** حق خبره داده چه د اهل سنت والجماعت په نیز مرګ وجودی دې مګرد حیات ضد دې لکه ګرموالې او یخوالې، دواړه په خپل مینځ کښې متضاد کیدوباوجود وجودی دی، رومبې قول د اهل سنت والجماعت او دویم د معتزله دې. (حاشیه جلالین ملخصاً)

بهتره به وه چه مفسرعلام د (بیده) تفسیر بقدرته سره کړې وې ځکه چه ملك استیلاء تصرف ته وائی لهذا مطلب به داشی فِی تَصَرُّفِهِ التَّصَرُّفُ د کوم چه هیڅ مطلب نشته.

**قوله:** وَالْحَیٰوةَ فِی الْاٰخِرَةِ یعنی مرګ ئې په دنیاکښې پیداکړو او حیات په آخرت کښې

مگر د دې قول مساعدت (تائید) دَالله تعالی قول لِيَبْلُوَكُمْ نه کوی ځکه چه دَامتحان او ازمینښت تعلق دنیاوی ژوندون سره دې نه چه اخروی سره، معلومه شوه چه دَ مرگ او ژوند تعلق د دنیاسره دې. (صاوی)

**قوله:** الدُّنْيَا داد قريب اسم تفضیل دې یعنی هغه آسمان کوم چه زمکې سره نیزدې دې. دنیاته دنیاهم دَدې وجې نه وائی چه دا دَ آخرت په نسبت سره نیزدې ده.

**قوله:** يَنْقَلِبْ دَ جمهورو په نیزدَباء په سکون سره ده جواب امر کیدودَ وجې نه اوبعض حضراتو دَ باء په رفع سره هم لوستلې ده یاخودَ جمله مستانفه کیدودَ وجې نه یادَ حال مقدرکیدودَوجې نه او فاء حذف کړې شوې ده په اصل کښې فَيَنْقَلِبُ وو.

**قوله:** رُجُوْمًا، رُجُوْمٌ، دَ رَجْمٌ جمع ده رَجْمٌ مصدردې دَدې اطلاق په (مرجوم به) باندې کړې شوې دې هم په دې وجه مفسرعلام دَ رجوم تفسیر په مَرَاجِمَ سره کړې دې، أَیْ تُرْجَمُ بِهِ.

**قوله:** بِأَن يَنْفَصِلَ شِهَابٌ الخ دَدې اضافې مقصددَ یوسوال جواب دې.

**سوال:** دادې چه الله تعالی دَ نجوم په ذریعه آسمان دَ دنیا ته ښکلا ورکړې ده دَدې تقاضاداده چه نجوم په خپل ځائی قائم پاتې شی اودَ وَجَعَلْنَاهَا رُجُوْمًا لِّلشَّيَاطِيْنِ مقتضی ده چه هغه دَ خپل ځائ نه اخواشی په دواړو خبرو کښې تضاد او تعارض دې؟

**جواب:** خلاصه داده چه پوره نجم دَ شیطانانودَ ویشتلودَپاره خپل ځائ نه پرېږدی بلکه دَ دې ټکره شیطانان اولی لکه دَ اورنه یو بخرې.

**قوله:** يُخْبِلُهُ دا د خَبْلٌ (په سکون دَ باء) نه مشتق دې معنی ئې فسادفی العقل ده.

**قوله:** وَلِلَّذِيْنَ كَفَرُوْا الخ وَلِلَّذِيْنَ كَفَرُوْا خبرمقدم دې او عذاب جهنم مبتدأ مؤخرده.

**قوله:** وَهُوَ اللَّطِيْفُ الْخَبِيْرُ جمله حالیه ده.

**قوله:** فیه لا په دې کښې اشاره ده چه استفهام انکاری دې لهذا نفی النفی اثبات شو. مقصددَالله تعالی دَ احاطهٔ علمی اثبات دې.

**[اياتوله:١٥-٣٠]**

﴿هُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ ذَلُولًا﴾ سَهْلَة لِلْمَشْيِ فِيهَا ﴿فَامْشُوا فِي مَنَاكِبِهَا﴾ جَوَانِبِهَا ﴿وَكُلُوا مِن رِّزْقِهِ﴾ الْمَخْلُوقِ لِأَجْلِكُمْ ﴿وَإِلَيْهِ النُّشُورُ﴾ مِنَ الْقُبُورِ لِلْجَزَاءِ ﴿أَأَمِنتُم﴾ بِتَحْقِيقِ الْهَمْزَتَيْنِ وَتَسْهِيلِ الثَّانِيَةِ وَإِدْخَالِ أَلِفٍ بَيْنَهُمَا وَبَيْنَ الْأُخْرَى وَتَرْكِهِ وَإِبْدَالِهَا أَلِفًا ﴿مَّن فِي السَّمَاءِ﴾ سُلْطَانُهُ وَقُدْرَتُهُ ﴿أَن يَخْسِفَ﴾ بَدَلٌ مِنْ مَنْ ﴿بِكُمُ الْأَرْضَ فَإِذَا هِيَ تَمُورُ﴾ تَتَحَرَّكُ بِكُمْ وَتَرْتَفِعُ فَوْقَكُمْ ﴿أَمْ أَمِنتُم مَّن فِي السَّمَاءِ أَن يُرْسِلَ﴾ بَدَلٌ مِنْ مَنْ ﴿عَلَيْكُمْ حَاصِبًا﴾ رِيحًا تَرْمِيكُمْ بِالْحَصْبَاءِ ﴿فَسَتَعْلَمُونَ﴾ عِنْدَ مُعَايَنَةِ الْعَذَابِ ﴿كَيْفَ نَذِيرِ﴾ إِنْذَارِي بِالْعَذَابِ أَيْ أَنَّهُ

حق ﴿وَلَقَدْ كَذَّبَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ﴾ مِنَ الأمم ﴿فَكَيْفَ كَانَ نَكِيرِ﴾ إنكاري عَلَيْهِمْ بِالتَّكْذِيبِ عِنْدَ إهلاكهم أي أنَّهُ حق ﴿أَوَلَمْ يَرَوْا﴾ يَنظُرُوا ﴿إِلَى الطَّيْرِ فَوْقَهُمْ﴾ فِي الْهَوَاءِ ﴿صَافَّاتٍ﴾ بَاسِطَاتٍ أَجْنِحَتَهُنَّ ﴿وَيَقْبِضْنَ﴾ أَجْنِحَتَهُنَّ بَعْدَ الْبَسْطِ أي وَقَابِضَاتٍ ﴿مَا يُمْسِكُهُنَّ﴾ عَنِ الْوُقُوعِ فِي حال البسط والقبض ﴿إِلَّا الرَّحْمَنُ﴾ بِقُدْرَتِهِ ﴿إِنَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ بَصِيرٌ﴾ الْمَعْنَى أَلَمْ يَسْتَدِلُّوا بِثُبُوتِ الطَّيْرِ فِي الْهَوَاءِ عَلَى قُدْرَتِنَا أَنْ نَفْعَلَ بِهِمْ مَا تَقَدَّمَ وَغَيْرَهُ مِنَ العذاب ﴿أَمَّنْ﴾ مبتدأ ﴿هَذَا﴾ خَبَرُهُ ﴿الَّذِي﴾ بَدَلٌ مِنْ هَذَا ﴿هُوَ جُنْدٌ﴾ أَعْوَانٌ ﴿لَكُمْ﴾ صِلَةُ الَّذِي ﴿يَنْصُرُكُمْ﴾ صفة الجند ﴿مِنْ دُونِ الرَّحْمَنِ﴾ أَيْ غَيْرِهِ يَدْفَعُ عَنْكُمْ عَذَابَهُ أَيْ لَا نَاصِرَ لَكُمْ ﴿إِنِ﴾ مَا ﴿الْكَافِرُونَ إِلَّا فِي غُرُورٍ﴾ غَرَّهُمُ الشَّيْطَانُ بِأَنَّ الْعَذَابَ لَا يَنْزِلُ بِهِمْ ﴿أَمَّنْ هَذَا الَّذِي يَرْزُقُكُمْ إِنْ أَمْسَكَ﴾ الرَّحْمَنُ ﴿رِزْقَهُ﴾ أَيِ الْمَطَرَ عَنْكُمْ وَجَوَابُ الشَّرْطِ مَحْذُوفٌ دَلَّ عَلَيْهِ مَا قَبْلَهُ أَيْ فَمَنْ يَرْزُقُكُمْ أَيْ لَا رَازِقَ لَكُمْ غَيْرُهُ ﴿بَلْ لَجُّوا﴾ تمادوا ﴿فِي عُتُوٍّ﴾ تكبر ﴿وَنُفُورٍ﴾ تباعد عن الحق ﴿أَفَمَنْ يَمْشِي مُكِبًّا﴾ وَاقِعًا ﴿عَلَى وَجْهِهِ أَهْدَى أَمَّنْ يَمْشِي سَوِيًّا﴾ مُعْتَدِلًا ﴿عَلَى صِرَاطٍ﴾ طَرِيقٍ ﴿مُسْتَقِيمٍ﴾ وَخَبَرُ مِنَ الثَّانِيَةِ مَحْذُوفٌ دَلَّ عَلَيْهِ خَبَرُ الْأُولَى أَيْ أَهْدَى وَالْمَثَلُ فِي الْمُؤْمِنِ وَالْكَافِرِ أَيُّهُمَا عَلَى هُدًى ﴿قُلْ هُوَ الَّذِي أَنْشَأَكُمْ﴾ خَلَقَكُمْ ﴿وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْأَبْصَارَ وَالْأَفْئِدَةَ﴾ الْقُلُوبَ ﴿قَلِيلًا مَا تَشْكُرُونَ﴾ مَا مَزِيدَةٌ وَالْجُمْلَةُ مُسْتَأْنَفَةٌ مُخْبِرَةٌ بِقِلَّةِ شُكْرِهِمْ جِدًّا عَلَى هَذِهِ النِّعَمِ ﴿قُلْ هُوَ الَّذِي ذَرَأَكُمْ﴾ خَلَقَكُمْ ﴿فِي الْأَرْضِ وَإِلَيْهِ تُحْشَرُونَ﴾ لِلْحِسَابِ ﴿وَيَقُولُونَ﴾ لِلْمُؤْمِنِينَ ﴿مَتَى هَذَا الْوَعْدُ﴾ وَعْدُ الْحَشْرِ ﴿إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ﴾ فِيهِ ﴿قُلْ إِنَّمَا الْعِلْمُ﴾ بِمَجِيئِهِ ﴿عِنْدَ اللَّهِ وَإِنَّمَا أَنَا نَذِيرٌ مُبِينٌ﴾ بَيِّنُ الْإِنْذَارِ ﴿فَلَمَّا رَأَوْهُ﴾ أَيِ الْعَذَابَ بَعْدَ الْحَشْرِ ﴿زُلْفَةً﴾ قَرِيبًا ﴿سِيئَتْ﴾ اسْوَدَّتْ ﴿وُجُوهُ الَّذِينَ كَفَرُوا وَقِيلَ﴾ أَيْ قَالَ الْخَزَنَةُ لَهُمْ ﴿هَذَا﴾ أَيِ الْعَذَابُ ﴿الَّذِي كُنْتُمْ بِهِ﴾ بِإِنْذَارِهِ ﴿تَدَّعُونَ﴾ أَنَّكُمْ لَا تُبْعَثُونَ وَهَذِهِ حِكَايَةُ حَالٍ تَأْتِي عَبَّرَ عَنْهَا بِطَرِيقِ الْمُضِيِّ لِتَحَقُّقِ وُقُوعِهَا ﴿قُلْ أَرَأَيْتُمْ إِنْ أَهْلَكَنِيَ اللَّهُ وَمَنْ مَعِيَ﴾ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ بِعَذَابِهِ كَمَا تَقْصِدُونَ ﴿أَوْ رَحِمَنَا﴾ فَلَمْ يُعَذِّبْنَا ﴿فَمَنْ يُجِيرُ الْكَافِرِينَ مِنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ﴾ أَيْ لَا مُجِيرَ لَهُمْ مِنْهُ ﴿قُلْ هُوَ الرَّحْمَنُ آمَنَّا بِهِ وَعَلَيْهِ تَوَكَّلْنَا فَسَتَعْلَمُونَ﴾ بِالتَّاءِ وَالْيَاءِ عِنْدَ مُعَايَنَةِ الْعَذَابِ ﴿مَنْ هُوَ فِي ضَلَالٍ مُبِينٍ﴾ بَيِّنٍ أَنَحْنُ أَمْ أَنْتُمْ أَمْ هُمْ ﴿قُلْ أَرَأَيْتُمْ إِنْ أَصْبَحَ مَاؤُكُمْ غَوْرًا﴾ غَائِرًا فِي الْأَرْضِ ﴿فَمَنْ يَأْتِيكُمْ بِمَاءٍ مَعِينٍ﴾ جَارٍ تَنَالُهُ الْأَيْدِي وَالدِّلَاءُ كَمَائِكُمْ أَيْ لَا يَأْتِي بِهِ إِلَّا اللَّهُ تَعَالَى فَكَيْفَ تُنْكِرُونَ أَنْ يَبْعَثَكُمْ وَيُسْتَحَبُّ أَنْ يَقُولَ الْقَارِئُ عَقِبَ مَعِينٍ اللَّهُ رَبُّ الْعَالَمِينَ كَمَا وَرَدَ فِي الْحَدِيثِ وَتُلِيَتْ هَذِهِ الْآيَةُ عِنْدَ بَعْضِ الْمُتَجَبِّرِينَ فَقَالَ تَأْتِي بِهِ الْفُؤُوسُ وَالْمَعَاوِلُ فَذَهَبَ مَاءُ عَيْنِهِ وَعَمِيَ نَعُوذُ بِاللَّهِ مِنَ الْجَرَاءَةِ عَلَى اللَّهِ وعلى آياته

**ترجمه**: الله هغه ذات دې چاچه ستاسو دَپاره زمکه مُسخّر (نرمه) او په دې باندې دَتګ قابل کړې ده دې دَپاره چه تاسو دَدې اطرافو او ارخونو کښې اوګرځئ اودَ الله تعالى دَ رزق نه کوم چه هغه ستاسو دَپاره پيداکړې دې خورئ، او دَ قبرونونه دَ جزاء دَپاره هم دَهغه طرف ته اودريدل (جمع کيدل) دى، ولې تاسودَدې خبرې نه بې ويرې شوې يئ؟ ﴿أَأَمِنْتُمْ﴾ دَ دوارو همزو په تحقيق سره او دويم په تسهيل سره، اودَمسهله اوغيرمسهله په مينځ کښې الف

داخلولو سره او ترك ادخال كولوسره اودا په الف باندې بدلولو سره، چه دَ آسمان والا
يعنى آسمان كښې چه دَ چاسلطنت اوقدرت دې تاسو په زمكه كښې ورخښ كړى (أَنْ يَّخْسِفَ)
د مِنْ نه بدل دې او ناڅاپه زمكه په لړزان شى يعنى په تاسو باندې په رچيدو شى او په تاسو
راوارولې شى ولې تاسو دَ آسمان والا نه بې ويرې يئ؟ په دې خبره چه هغه يوه داسې سيلئ
راوليږى چه په تاسو باندې كانړى اووروى، ډير زر به دَعذاب ليدلو په وخت تاسو ته
معلومه شى چه دَ عذاب نه زما ويرول څنګه پاتې شو. دَدې نه وړاندې چه كوم امتونه تيرشوى
دى هغوى هم (دين حق) دروغ ګنړلې وو(نو اوګورئ) دَ مرګ په وخت زما عذاب دَ هغوى
دروغ ګنړلو په وجه څنګه شو يعنى هغه عذاب دَمقتضٰى مطابق شو. آيا دې خلقو په خپلو
ځانونو باندې په هوا كښې وزرې خورې كړې او وزرې راغونډونكى دَ وزرو خوړولو نه پس په
مرغو ته نظر نه دې كړى چه په حالت بسط او قبض كښې هم رحمٰن (هغوى) په خپل قدرت
سره نيولې (ټينګ كړى وى يقينًا هغه هرڅيز ګورى. (دَ آيت) مطلب دادې چه دا خلق مرغئ په
هوا كښې د مارغانو د حصاريدو نه زمونږ په قدرت استدلال نه كوى، چه مونږ هغوى
سره په ماقبل كښې د مذكوره وغيره عذاب معامله كولې شو. دَالله تعالىٰ نه علاوه ستاسو
هغه كوم يولښكر دې چه ستاسو امداد اوكړى؟ يعنى چه تاسو نه دَهغه عذاب لرې كړې شى
(أَمَّنْ) مبتدأ ده اوهٰذا دَدې خبر دې (الَّذِىْ) دَ هٰذا نه بدل دې. (جند) په معنى د أعوان (لَّكُمْ)
دَ الَّذِىْ صله ده. او يَنْصُرُكُمْ دَ جُنْدٌ صفت دې يعنى چه دَهغه نه سوا ستاسو عذاب لرې كړې
شى مطلب دادې چه ستاسو هيڅوك امدادى نشته، دا كافران صرف په دهوكه كښې پراته
دى. شيطان هغوى په دې وينا په دهوكه كښې اچولى دى چه په هغوى باندې عذاب
نشته هغه څوك دې؟ چه تاسو ته رزق دراورسولې شى كه رحمن خپل رزق يعنى باران تاسو نه
منع كړى او جواب د شرط محذوف دې په كوم چه دَدې ماقبل دلالت كوى (او هغه) فَمَنْ
يَّرْزُقُكُمْ دې يعنى دَهغه نه علاوه ستاسو بل څوك رازق نشته بلكه دا خلق په نفرت او سركشۍ
كښې دَحق نه لرېوالى كښې ننوتلى دى. (نه ده اوښايئ) هغه كس چه پرمخې روان شى منزل
مقصودته به رومبې رسيدونكې وى يا هغه كس چه نيغ په هوار سرک باندې روان شى دَثانى
مَنْ خبر محذوف دې، په كوم چه دَ اول مَنْ خبر يعنى أَهْدٰى دلالت كوى او (مذكوره)
مثال دَ مؤمن او كافر دې يعنى په دوى كښې څوك په هدايت باندې دې؟ ته دوى ته اووايه
هم هغه دې چا چه تاسو پيدا كړئ او چا چه ستاسو غوږونه، سترګې او زړونه جوړ كړل په تاسو كښې
ډيركم خلق دى چه شكر كونكى دى. مَا زائده ده اوجمله مستانفه ده په دې نعمتونو باندې
دَهغوى د ډيركم شكر خبر وركوى، تاسو (دا هم) اووايئ چه دا هم هغه ذات دې چا چه تاسو په
مخ دَزمكه باندې خواره كړئ (پيدا كړئ) اودَحساب دَپاره، به هم هغه ته راجمع كولې شئ،

اوداخلق مؤمنانوته وائ چه داد حشر وعده به کله (پوره کیږی؟) که چرې تاسو په دغه وعده کښې رښتونی یئ (نو اوښایئ) ته ورته اووایه چه دهغې د راتلوعلم خو هم الله تعالی ته دې اوزه خو ښکاره ویرونکې یم یعنی په واضحه توګه باندې ویرونکې یم، کله چه داخلق د حشر نه پس عذاب د نیزدې نه اوګوری نود دغه کافرانو مخونه به وران شی یعنی توربه شی او اوبه وئیلی شی یعنی د دوزخ نګران به هغوی ته اوائ هم دغه دې هغه عذاب د کوم نه د ویرولو په سبب چې تاسودعوی○ کوله چه مونږ به د مرګ نه پس نه شی راژوندی کولې شو، دا د راتلونکی حالت بیان دې کوم چه د متحقق الوقوع کیدود وجې نه د ماضی سره تعبیرکړې شوې دې، تاسو هغوی ته اووایئ چه ښه ده تاسو اووایئ که الله تعالی ما اوزما ملګری چه مؤمنان دی په خپل عذاب هلاك کړی لکه چه څنګه تاسو غواړئ یا په مونږ باندې رحم اوکړی او مونږ ته عذاب رانه کړی نوکافران به د دردناک عذاب نه څوک بچ کړی؟ یعنی هغوی د عذاب نه بچ کونکې هیڅوك نشته، تاسو اووایئ چه هم هغه رحمن دې مونږ خو هم په هغه باندې ایمان راوړې دې اوهم په هغه زمونږ یقین (بهروسه) ده، د عذاب کتلو په وخت به تاسو ته دیر زر معلومه شی فستعلمون په تاء او یاء سره چه په ښکاره ګمراهئ کښې څوک دی؟ مونږ یا تاسو؟ تاسو هغوی ته اووایئ ښه ده دا اووایئ که چرې ستاسو اوبه ښکته لاړې شی یعنی په زمکه کښې لاندې لاړې شی نوڅوک دی چه تاسو د پاره د چینې اوبه راوړی؟ کومې چه تاسو په لاسونو او ډولچو باندې حاصلې کړې شئ لکه تاسو (موجوده) اوبه، یعنی د الله تعالی نه بغیر بل هیڅوك دا نه شی راوستې بیا تاسو دوباره د ژوندی کولو نه ولې انکار کوئ؟ اومستحب دی چه تلاوت کونکې د (معین) نه پس اووائی الله رب العالمین لکه چه په حدیث کښې راغلی دی، د بعض جبارینو په وړاندې د دې آیت تلاوت اوکړې شو نوهغه اوئیل بیلچې اوکودالې به ئې راوړی نود هغه د سترګو اوبه اوچې شوې او روند شو، مونږ د الله تعالی پناه غواړو په الله تعالی اود هغه په ایاتونو باندې د بې باکئ کولو نه.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** مَنَاكِبِهَا جمع منتهی الجموع ده. واحد مَنْكِبٌ په معنی د طرف، اړخ، هم په دې نسبت سره د انسان اوږوته منکب وئیلی شی.

**قوله:** بتحقیق الهمزتین الخ په دې کښې تول پنځه قراءتونه دی ړومبې همزه محقق وی دویم کله محقق اوکله مسهّل، په دواړو صورتونوکښې د دواړو په مینځ کښې الف داخلولوسره اوترك ادخال کولوسره داخلور صورتونه شو او یوصورت دویم همزه په الف سره بدلول تول پنځه صورتونه شو

**قوله** أَنْ يَّخْسِفَ دا مَنْ نه بدل الاشتمال دی

**قوله** حَاصِبٌ سخته هوا کانړی وروبنکي (صراح) حَاصِبًا کانړی وروبنکي هوا، سخته سیلئی، حَصْبَاء کود کانړو ته وائی.

**قوله** إنذاري په دې کښې اشاره ده چه نذیر په معنی د إنذار دی او یاء محذوف ده.

**قوله** أَوَلَمْ يَرَوْا واؤ عاطفه دی او په همزه محذوف باندې داخل دی تقدیری عبارت دا دی أغفلوا ولم یروا.

**قوله** صفتٍ وَيَقْبِضْنَ دلته یو سوال پیدا کیږی.

**سوال** دَ يَقْبِضْنَ عطف په صافات باندې دی څه وجه ده چه معطوف علیه اسم دی او معطوف فعل؟

**جواب** په مرغوکښې اصل دا دی چه دَهغوی وزرې کولاؤ اوخورې وی په دې وجه طائر ته طائر یا مرغۍ ته مرغۍ وئیلی شی چه په دې کښې دَ طیر صفت او دَ الوت صفت اصل دی اوقبض یعنی وزرې راغونډول دا طاری (خلاف دَاصل) دی لهذا اصلی صفت ئې اسم سره تعبیرکړو ځکه چه اسم په استمرار او دوام باندې دلالت کوی اوقبض (یعنی راغونډول) ئې فعل سره تعبیرکړل ځکه چه هغه طاری اوحادث دی اوفعل په حدوث باندې دلالت کوی.

**قوله** قَابِضَاتٍ په دې کښې اشاره ده چه يَقْبِضْنَ دَ قَابِضَات په تاویل کښې دی دې دَپاره چه عطف صحیح شی دوارو خایونوکښې أَجْنِحَتِهِنَّ ظاهرولو سره ئې اشاره اوکړه چه د دوارو دواړه مفعول محذوف دی.د دویم مَنْ مبتداء خبر د وړاندې مَنْ مبتداء په خبرباندې قیاس کولوسره حذف کړې شوې دی. أی أهْدٰی او أهْدٰی اسم تفضیل دَ اسم فاعل په معنی کښې دی. مفسرعلام خپل قول أَيُّهُمَا عَلٰى هُدًى سره هم دې طرف ته اشاره کړې ده.

**قوله** مَا مزیدۃ، قَلِيلًا مَّا کښې ما قلت د تاکید دَپاره زائده ده او قَلِيلًا دَموصوف محذوف صفت دی أی شکرا قلیلا.

**قوله** إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِيْنَ داشرط دی دَدې جزاء محذوف ده تقدیری عبارت دا دی إن کنتم صادقین فبینوا وقته.

**قوله** يَجِيْئُونَهُ أی یوقت مجیئه مضاف محذوف دی.

**قوله** زُلْفَةً دا دَ إزلاف اسم مصدر دی په معنی د نیزدې.

**قوله** أَنَّكُمْ لَا تُبْعَثُونَ دي کښې اشاره ده چه دکذبون مفعول محذوف دي.

**قوله** وهذه حكاية حال تأتي دادَ يوسوال مقدر جواب دي.

**سوال** فرښتې به دَ قيامت په ورځ کافرانوته وائي چه دا هم هغه عذاب دې دَ کوم نه چه تاسو په دنیاکښې ويرولې شوئ اوتاسو به دَدې تكذيب اوترديدكولو، دا سوال اوجواب د تول دَ مستقبل په زمانه (قيامت) کښې وی دَدې تقاضا وه چه دَ قيل په ځائې په يقولون سره تعبيركړې شوې وې؟

**جواب** دَ جواب حاصل دادې چه دَ يقيني وقوع دَ وجې نه حکایت د حال آتیه ئې په ماضی سره تعبيركړې دې په مذکوره عبارت سره هم دَدغه سوال جواب ورکړې شوې دې.

**قوله** أَرَأَيْتُمْ، أَرَأَيْتُمْ په معنی دَ أخبرونی دې چه دوؤ مفعولونوته نصب ورکوی. إِنْ أَهْلَكَنِيَ الله الخ جمله شرطيه قائم مقام دَ دوؤ مفعولونو ده.

**قوله** لَا مُجِيرَ لَهُمْ دې کښې اشاره ده چه فَمَنْ يُجِيرُ کښې استفهام انکاری دې.

**قوله** أَمْ أَنْتُمْ تعلق فَسَتَعْلَمُونَ کښې دَتاء دَ قراءت په صورت کښې دې اودَ أَمْ هُمْ تعلق فَسَيَعْلَمُونَ دَ ياء دَ قراءت په صورت کښې دې.

**قوله** مَعِينٌ دا په اصل کښې مَعْيُونٌ په وزن دَمفعول دې لکه چه مبيع په اصل کښې مَبْيُوعٌ وو دَ ياء ضمه دَماقبل عين ته ورکړې شوه او په واؤکښې التقاء دَ ساکنينو راغله واؤحذف شو عين ته دَ ى په مناسبت سره کسره ورکړې شوه.

**قوله** وَغَيْرِ دا دَذَهَبَ مَاؤُهُ عطف تفسيری دې.

## [٦٨] سورة القلم

### سورة النون مكية اثنتان وخمسون اية

سورة النون مکی دې، په دې کښې دوه پنځوس آیاتونه دی.

[اياتونه: ١ - ٣٢]

---

بسم الله الرحمن الرحيم (ن) أحد حروف الهجاء الله أعلم بمراده به (وَالْقَلَمِ) الذي كتب به الكائنات في اللوح المحفوظ (وَمَا يَسْطُرُونَ) أي الملائكة من الخير والصلاح (مَا أَنْتَ) يا محمد (بِنِعْمَةِ رَبِّكَ بِمَجْنُونٍ) أي انتفى الجنون عنك بسبب إنعام ربك عليك بالنبوة وغيرها وهذا رد لقولهم إنه مجنون (وإن لك لأجرا غير ممنون) مقطوع (وإنك لعلى خلق) دين (عظيم) (فستبصر ويبصرون) (بأيكم المفتون) مصدر كالمعقول أي الفتون بمعنى الجنون أي ابك ام بهم (إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِمَنْ ضَلَّ عَنْ سَبِيلِهِ وَهُوَ أَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِينَ) له واعلم بمعنى عالم (فلا تطع المكذبين) (وَدُّوا) تمنوا (لَوْ) مصدرية (تُدْهِنُ) تلين لهم (فَيُدْهِنُونَ) يلينون

لك وَهُوَ مَعْطُوف عَلَى تُدْهِن وَإِنْ جَعَلَ جَوَاب التَّمَنِّي الْمَفْهُوم مِنْ وَدُّوا قُدِّرَ قَبْله بَعْد الْفَاء هُمْ (وَلَا تُطِعْ كُلَّ حَلَّافٍ) كَثِير الْحَلِف بِالْبَاطِلِ (مَهِينٍ) حَقِير (هَمَّازٍ) عَيَّاب اي مغتاب (مَشَّاءٍ بِنَمِيمٍ) سَاعٍ بِالْكَلَامِ بَيْن النَّاس عَلَى وَجْه الْإِفْسَاد بينهم (مَنَّاعٍ لِلْخَيْرِ) بَخِيل بِالْمَالِ عَنْ الْحُقُوق (مُعْتَدٍ) ظَالِم (أَثِيمٍ) آثِم (عُتُلٍّ) غَلِيظ جَافٍ (بَعْدَ ذَٰلِكَ زَنِيمٍ) دَعِيّ فِي قُرَيْش وَهُوَ الْوَلِيد بْن الْمُغِيرَة ادَّعَاهُ ابوه بعد ثماني عشرة سنة قال ابْن عَبَّاس لَا نَعْلَم أَنَّ اللَّه وَصَفَ أَحَدًا بِمَا وَصَفَهُ بِهِ مِنْ الْعُيُوب فَأَلْحَقَ بِهِ عَارًا لَا يُفَارِقهُ أَبَدًا وَتَعَلَّقَ بِزَنِيمٍ الظرف قبله (أَنْ كَانَ ذَا مَالٍ وَبَنِينَ) اي لِأَنْ وَهُوَ مُتَعَلِّق بِمَا دَلَّ عَلَيْهِ (إِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِ آيَاتُنَا) اى قرآن (قَالَ) هِيَ (أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ) اي كَذَّبَ بِهَا لِإِنْعَامِنَا عَلَيْهِ بِمَا ذُكِرَ وَفِي قِرَاءَة أَأَنْ بِهَمْزَتَيْنِ مَفْتُوحَتَيْنِ (سَنَسِمُهُ عَلَى الْخُرْطُومِ) سَنَجْعَلُ عَلَى أنفه عَلَامَة يُعَيَّر بِهَا مَا عَاشَ فَخُطِمَ أنفه بِالسَّيْفِ يوم بدر (إِنَّا بَلَوْنَاهُمْ) امتحنا أهل مَكَّة بِالْقَحْطِ وَالْجُوع (كما بلونا أصحاب الجنة) الْبُسْتَان (إِذْ أَقْسَمُوا لَيَصْرِمُنَّهَا) يَقْطَعُونَ ثَمَرَتهَا (مُصْبِحِينَ) وَقْت الصَّبَاح كَيْ لَا يَشْعُر بِهِمْ الْمَسَاكِين فَلَا يُعْطُونَهُمْ مِنْهَا مَا كَانَ أَبُوهُمْ يَتَصَدَّق بِهِ عَلَيْهِمْ مِنْهَا (وَلَا يَسْتَثْنُونَ) فِي يَمِينهمْ بِمَشِيئَةِ اللَّه تَعَالَى وَالْجُمْلَة مُسْتَأْنَفَة اي وَشَأْنهمْ ذَلِكَ (فَطَافَ عَلَيْهَا طَائِفٌ مِنْ رَبِّكَ) نَار أَحْرَقَتْهَا لَيْلًا (وهم نائمون) (فَأَصْبَحَتْ كَالصَّرِيمِ) كَاللَّيْلِ الشَّدِيد الظُّلْمَة اي سَوْدَاء (فتنادوا مصبحين) (أَنِ اغْدُوا عَلَىٰ حَرْثِكُمْ) غَلَّتكُمْ تَفْسِير لِتَنَادَوْا أَوْ أَنْ مَصْدَرِيَّة اي بِأَنْ (إِنْ كُنْتُمْ صَارِمِينَ) مُرِيدِينَ الْقَطْع وَجَوَاب الشَّرْط دَلَّ عَلَيْهِ ما قبله (فَانْطَلَقُوا وَهُمْ يَتَخَافَتُونَ) يَتَسَارُّونَ (أَنْ لَا يَدْخُلَنَّهَا الْيَوْمَ عَلَيْكُمْ مِسْكِينٌ) تَفْسِير لِمَا قَبْله أَوْ أَنْ مَصْدَرِيَّة اي بِأَنْ (وَغَدَوْا عَلَىٰ حَرْدٍ) مَنْع لِلْفُقَرَاءِ (قَادِرِينَ) عَلَيْهِ فِي ظنهم (فَلَمَّا رَأَوْهَا) سَوْدَاء مُحْتَرِقَة (قَالُوا إِنَّا لَضَالُّونَ) عَنْهَا اي لَيْسَتْ هَذِهِ ثُمَّ قَالُوا لَمَّا علموها (بَلْ نَحْنُ مَحْرُومُونَ) ثَمَرَتهَا بِمَنْعِنَا الْفُقَرَاء مِنْهَا (قَالَ أَوْسَطُهُمْ) خَيْرهمْ (أَلَمْ أَقُلْ لَكُمْ لَوْلَا) هَلَّا (تُسَبِّحُونَ) اللَّه تائبين (قَالُوا سُبْحَانَ رَبِّنَا إِنَّا كُنَّا ظَالِمِينَ) بِمَنْعِ الفقراء حقهم (فأقبل بعضهم على بعض يتلاومون) (قالوا يا) للتنبيه (ويلنا) هلا كنا (إنا كنا طاغين) (عسى ربنا أن يُبْدِلَنَا) بِالتَّشْدِيدِ وَالتَّخْفِيف (خَيْرًا مِنْهَا إِنَّا إِلَىٰ رَبِّنَا رَاغِبُونَ) لِيَقْبَل تَوْبَتنَا وَيَرُدّ عَلَيْنَا خَيْرًا مِنْ جَنَّتنَا رُوِيَ أَنَّهُمْ أُبْدِلُوا خَيْرًا مِنْهَا (كَذَٰلِكَ) اي مِثْل الْعَذَاب لِهَؤُلَاءِ (الْعَذَابُ) لِمَنْ خَالَفَ أَمْرنَا مِنْ كُفَّار مَكَّة وَغَيْرهمْ (وَلَعَذَابُ الْآخِرَةِ أَكْبَرُ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ) عَذَابهَا مَا خَالَفُوا أَمْرنَا وَنَزَلَ لَمَّا قَالُوا إِنْ بُعِثْنَا نعطى افضل منكم

**ترجمه:-** شروع کوم په نامه دَ الله چه ډير بخښونکي او ډير مهربان دي. ن، دا دِ حروف تهجي نه يو حرف دي هم الله تعالى دَدي نه خپل مراد بهتر پيژنى او قسم دي په هغه قلم دکوم په ذريعه چې کائنات په لوح محفوظ کښې ليکلې شوي دي اودَ هغه خيراو صلاح کوم چه فرښتې ليکى اې محمد ﷺ تاسو دَ خپل رب په فضل سره مجنون نه ئې يعنى ستادَ رب دَ طرف نه په تاسو باندې دَ نبوت وغيره دَ فضل په سبب تانه ليونتوب نفى دي. دا دَ (مشرکانو) دَ قول رد دي چه نبى عليه السلام مجنون دى او بيشکه ستاسو دَپاره کله نه ختميدونکې اجر دي

او تاسو په ډير (شکلی اخلاقو) په دين باندې ئې اوس به تاسو هم اوګورئ اودوی به هم اوګوری چه په تاسو کښې په کوم يو ليونتوب دې؟ مفتون مصدر دې لکه چه معقول يعنی فتون په معنی دَ جنون يعنی (جنون) تاسو ته دې که هغوی ته؟ بيشکه ستا رب هغه څوک ښه پيژنی کوم چه دَهغه دلارې نه ګمراه شوې دې او هغه هغوی هم ډير ښه پيژنی څوک چه دَ هدايت په لار دې او اَعْلَمُ په معنی د عَالِمٌ دې، نو تاسو دَدغه تکذيب کونکو وينا مه منئ هغوی غواړی چه ته لږشان سست شې نو هغوی به هم سست شی. لَوْ مصدريه دې دَ فَيُدْهِنُونَ عطف په تُدْهِنُ باندې دې او که چرې فَيُدْهِنُوْنَ جوابِ تمنی اوګرځولې شی کوم چه وَدُّوْا نه مفهوم دې نو دَ يُدْهِنُوْنَ نه وړاندې او د فاء نه پس به هُمْ مقدر منلې شی او دَيو داسې کس وينا هم مه منه چه ډير دَ دروغو قسمونه خوړونکی وی بې عزته (بې وقاره) خبرې کونکې يعنی غيبت کونکې چغل خور وی يعنی دَ خلقو په مينځ کښې فساد خورولو په نيت سره دَ ديخوانه اخوا لګولو دَپاره منډې تړې وهی، دَ نيک کار نه منع کونکې وی يعنی دَ حقوق په معامله کښې په مال خرچ کولو کښې بخيل وی، دَ اعتدال دَحد نه تيريدونکې ظالم وی، دَ ګناه ارتکاب کونکې وی سخت خوئ او سخت مزاج وی بيا د دې سره بې نسب هم وی (يعنی) دَ قريشو په نسب کښې داخل کړې شوی وی، او هغه وليدبن مغيره دې دَ ده پلار دې اتلس کاله پس مُتَبَنّٰی جوړ کړې وو، ابن عباس ﷺ فرمائی چه زمونږ په علم کښې نشته چه الله تبارک وتعالی دَدۀ نه علاوه د چا داسې اوصاف بيان کړی وی او هغه سره ئې داسې دَ شرم (اوصاف) تړلی وی چه دَهغه نه کله هم نه جدا کيږی دَ زَنِیم سره دَدې دَماقبل ظرف (يعنی ذلك) متعلق دې (اودا سرکشی صرف دَدې وجې نه ده) چه هغه دَ مال او اولاد والا دې. اَنْ په معنی کښې دَ لِاَنْ دې او لِاَنْ د هغه خيز سره متعلق دې په کوم چه اِذَا تُتْلٰی عَلَيْهِ دلالت کوی او هغه کَذَّبَ بِهَا الخ دې. کله چه هغه ته زمونږ آياتونه يعنی قرآن لوستلې اوروَلې شی نو هغه وائی چه دا خو دَ تيروشوو خلقو قصې دی يعنی هغه زمونږ اياتونه دروغ اوګڼړل، زمونږ په هغه باندې مذکوره انعام (مال اولاد) دَ وجې نه، او په يو قراءت کښې دَ اَنْ کَانَ په ځائ آاَنْ کَانَ دوه مفتوحه همزو سره دې مونږ به ډير زر دَهغه په پوزه باندې داغ اولګوو يعنی ډير زر به مونږ دَهغه په پوزه باندې داسې علامت اولګوو چه ټول عمر به دَهغې په ذريعه هغه شرميږی، چنانچه په يوم بدر کښې دَ هغه په پوزه باندې دَ تورې زخم اولګولې شو بيشکه مونږ هغوی اهل مکه په قحط او لوږه سره داسې اوزمائيل لکه څنګه چه مونږ دَ باغ والو ازميښت کړې وو. کله چه هغوی قسمونه اوخوړل چه هغوی به دَ باغ ميوې سحر دَ وخته خامخا راشوکوی چه مسکينانو ته دَهغوی دَميوو شوکولو علم اونه شی او هغوی به مسکينانو ته دَ هغه ميوو نه حصه نه ورکوی کومه حصه چه به دَ هغوی په والد په هغوی باندې صدقه کوله، خو

هغوی په خپل قسم کښې استثناء ئې اونه کړه (یعنی) انشاء الله ئې اونه وئیلو او جمله مستانفه ده أی هٰ أنهم لَا یَسْتَثْنُوْنَ فَطَافَ نو په هغه باغ باندې ستا د رب د طرف نه یوه تاویدونکې (بلا) راتاؤ شوه یعنی داسې اور چه باغ ئې په شپه شپه کښې اوسوزولو او هغوی اوده پراته وو او هغه باغ د توري شپې په شان شو یعنی توري خاوري شو. اوس سحر کیدو سره هغوی یو بل ته آوازونه ورکړل چه که چرې تاسو میوې شوکول غواړئ نو سحر د وخته خپلو پټوته لاړشئ، أَنِ اغْدُوْا دَ تَفَاعَلُوْا تفسیر دې (او أن په معنی د أی دې) یا أن مصدریه دې أی بأن او جواب شرط (محذوف دې) په کوم چه د دې ماقبل یعنی أَنِ اغْدُوْا دلالت کوی بیا هغوی پټې پټې خبرې کولو سره لاړل چه نن ورځ هیڅ یو مسکین تاسو نه رانه شی دا د ماقبل تفسیر دې (او أن په معنی د أی دې) یا أن مصدریه دې او په معنی د بأن دې او هغوی په خپل گمان کښې فقیرانو ته په نه ورکولو خپل ځان قادر گنړلو سره لاړل کله چه هغوی هغه باغ سوزیدلې تور اوکتلو نو وئې وئیل مونږ یقیناً د باغ لار هیره کړې ده. یعنی دا زمونږ باغ نه دې بیا چه کله هغوی ته معلومه شوه نو وئې وئیل مونږ خو فقیران د میوو نه د منع کولو د وجې د میوو نه محروم کړې شو په هغوی کښې چه کوم بهتر وو هغه اووئیل ولې ما به تاسو ته نه وئیل چه تاسو د الله تعالی طرف ته رجوع کولو سره د هغه پاکی ولې نه بیانوئ؟ نو ټولو اووئیل زمونږ رب پاک دې د فقیرانو نه د هغوی حق بندولو سره هم مونږ ظالمان وو بیا هغوی خپل مینځ کښې یو بل ته متوجې شو او یو بل ئې ملامته کولو وئې وئیل افسوس ارمان زمونږ بد قسمتی یقیناً مونږ سرکش وو هیڅ عجیبه نه ده چه زمونږ رب د دې نه بهتر بدله راکړی (یُبْدِلَنَا) په تشدید او تخفیف سره دې، مونږ خود خپل رب طرف ته رجوع کوودې د پاره چه هغه زمونږ توبه قبوله کړی او مونږ له زمونږ د باغ نه بهتر باغ راکړی، روایت کړې شوې دې چه هغوی ته د هغې نه بهتر باغ بدله کښې ورکړې شو، هم دغه شان عذاب وی یعنی د غه خلقو د عذاب په شان په اهل مکه کښې کوم خلقو زمونږ د حکم خلاف ورزی اوکړه، او د آخرت عذاب خود دې نه زیات دې که چرې دوی د آخرت په عذاب باندې پوهیدلې نو زمونږ د حکم خلاف ورزی به ئې نه کوله.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: سورت ن د دې دویم نوم سورة القلم هم دې.

**قوله**: أَحَدُ حروفِ الهجاء د دې عبارت مقصد په هغه خلقو باندې رد کول دی چه دا وائی چه (ن د رحمن آخری حرف دې یا د نصر، ناصر او د نور رومبې حرف دې.

**قوله**: وَمَا یَسْطُرُوْنَ مَا مصدریه دې یا موصوله مَا یَسْطُرُوْنَ أی یَسْطُرُهُمْ یعنی قسم دې د هغه څه چه فرښتې ئې لیکی.

نستمع ﴿فَمَنْ يَسْتَمِعِ الْآنَ يَجِدْ لَهُ شِهَابًا رَّصَدًا﴾ أرصد له ليرمي به ﴿وَأَنَّا لَا نَدْرِي أَشَرٌّ أُرِيدَ﴾ بعد استراق السمع ﴿بِمَنْ فِي الْأَرْضِ أَمْ أَرَادَ بِهِمْ رَبُّهُمْ رَشَدًا﴾ خيرا ﴿وَأَنَّا مِنَّا الصَّالِحُونَ﴾ بعد استماع القرآن ﴿وَمِنَّا دُونَ ذَٰلِكَ﴾ أي قوم غير صالحين ﴿كُنَّا طَرَائِقَ قِدَدًا﴾ فرقا مختلفين مسلمين وكافرين ﴿وَأَنَّا ظَنَنَّا أَنْ﴾ مخففة من الثقيلة أي أنه ﴿لَنْ نُعْجِزَ اللَّهَ فِي الْأَرْضِ وَلَنْ نُعْجِزَهُ هَرَبًا﴾ لا نفوته كائنين في الأرض أو هاربين منها في السماء ﴿وَأَنَّا لَمَّا سَمِعْنَا الْهُدَىٰ﴾ القرآن ﴿آمَنَّا بِهِ فَمَنْ يُؤْمِنْ بِرَبِّهِ فَلَا يَخَافُ﴾ بتقدير هو ﴿بَخْسًا﴾ نقصا من حسناته ﴿وَلَا رَهَقًا﴾ ظلما بالزيادة في سيئاته ﴿وَأَنَّا مِنَّا الْمُسْلِمُونَ وَمِنَّا الْقَاسِطُونَ﴾ الجائرون بكفرهم ﴿فَمَنْ أَسْلَمَ فَأُولَٰئِكَ تَحَرَّوْا رَشَدًا﴾ قصدوا هداية ﴿وَأَمَّا الْقَاسِطُونَ فَكَانُوا لِجَهَنَّمَ حَطَبًا﴾ وقودا وأنا وأنهم وأنه في اثني عشر موضعا هي وأنه تعالى وأنا منا المسلمون وما بينهما بكسر الهمزة استئنافا وبفتحها بما يوجه به قال تعالى في كفار مكة ﴿وَأَنْ﴾ مخففة من الثقيلة واسمها محذوف أي وأنهم وهو معطوف على أنه استمع ﴿لَوِ اسْتَقَامُوا عَلَى الطَّرِيقَةِ﴾ أي طريقة الإسلام ﴿لَأَسْقَيْنَاهُمْ مَاءً غَدَقًا﴾ كثيرا من السماء وذلك بعد ما رفع المطر عنهم سبع سنين ﴿لِنَفْتِنَهُمْ﴾ لنختبرهم ﴿فِيهِ﴾ فنعلم كيف شكرهم علم ظهور ﴿وَمَنْ يُعْرِضْ عَنْ ذِكْرِ رَبِّهِ﴾ القرآن ﴿نسلكه﴾ بالنون والياء ندخله ﴿عَذَابًا صَعَدًا﴾ شاقا ﴿وَأَنَّ الْمَسَاجِدَ﴾ مواضع الصلاة ﴿لِلَّهِ فَلَا تَدْعُوا﴾ فيها ﴿مَعَ اللَّهِ أَحَدًا﴾ بأن تشركوا كما كانت اليهود والنصارى إذا دخلوا كنائسهم وبيعهم أشركوا ﴿وَأَنَّهُ﴾ بالفتح والكسر استئنافا والضمير للشأن ﴿لَمَّا قَامَ عَبْدُ اللَّهِ﴾ محمد النبي صلى الله عليه وسلم ﴿يَدْعُوهُ﴾ يعبده ببطن نخل ﴿كَادُوا﴾ أي الجن المستمعون لقراءته ﴿يَكُونُونَ عَلَيْهِ لِبَدًا﴾ بكسر اللام وضمها جمع لبدة كاللبد في ركوب بعضهم بعضا ازدحاما حرصا على سماع القرآن

ترجمه: په نوم د الله پاک چه ډير مهربانه او هميشه مهربانه دې شروع کوم اې محمد ﷺ خلقو ته او وايه چه ماته د وحی په ذريعه دا خبره بيان کړې شوې ده (يعنی) د وحی په ذريعه ماته د الله پاک د طرف نه دا خبر راکړې شوې دې چه د نصيبين علاقې د جناتو يو جماعت زما قرائت واوريدو او دا واقعه په بطن نخله کښې کوم چه د مکې او د طائف ترمينځه يو مقام دې د سحر په مانځه کښې پيښه شوې وه او دا جنات هم هغه دی د کومو ذکر چه د الله پاک په قول ﴿ واذ صرفنا اليك نفرا من الجن ﴾ کښې کړې شوې دې نو هغوی خپل قوم ته واپس تلو سره او وئيل چه مونږ عجيب قرآن واوريدلو چه د هغې (لفظی) فصاحت او (معنوی) بلاغت وغيره سره تعجب پيدا کيږی کوم چه نيغې لارې (او) ايمان طرف ته رهنمائی کوی مونږ په هغې ايمان راوړلو د نن نه پس به مونږ څوک هم د خپل رب سره نه شريکوو او بيشکه زمونږ د رب شان ډير اوچت دې ﴿ انه ﴾ کښې او د دې نه روستو دوارو ځايونو کښې ضمير شان دې، الله پاک د خپل جلال او عظمت د هغه ټولو څيزونو چه دهغی طرف ته د نسبت کولو نه (کوم چه د هغه د شان سره لائق نه دی) پاکی بيان اوفرمائيله نه هغه د چا نه خپله بی بی جوړه کړې ده او نه ځوئې او دا چه په مونږ کښې بيوقوفه جاهل د الله پاک په باره کښې الله پاک لره په بنځې او بچی سره

متصف کولو باندې په الله پاک باندې دروغ وتړلو کښې غلو کوی او زمونږ خو هم دا خيال وو چه (ان) مخففه دې ای (انه) انسانان او جنات به هغه لره په دغه څيزونو سره متصف کولو هرگز په هغه پاندې دروغ نه وائی ترڅو چه په مونږ باندې دې باره کښې د هغوی دروغ ښکاره شو خبره دا ده چه بعض خلق چه کله به هغوی د خپل سفر په دوران کښې په يو خطرناک مقام باندې ديره کيدل نو بعض خلقو به د جناتو نه پناه غوښتله او هر يو سړی به دا ونيل چه زه ددې مقام د سردار پناه غواړم ددې مقام د بيوقوفه جناتو نه چه د هغې په وجه باندې جنات په خپله سرکشۍ کښې نور هم زيات شو او وې ونيل چه مونږ د جناتو او انسانانو سرداران شو اې انسانانو! جناتو هم ستاسو په شان گمان اوکړو چه الله پاک به څوک د مرگ نه پس دوباره نه ژوندې کوی (ان) مخففه عن الثقيله دې او مونږ په غلا باندې د اوريدلو دپاره د اسمان قصد اوکړو نو مونږ هغه اوليدو چه د څوکۍ کونکو ملائکو او سخت سوزونکو شعلو نه ډک دې او دا هغه وخت اوشو چه کله رسول الله ﷺ مبعوث کړې شو او مونږ به د رسول الله ﷺ د بعثت نه مخکښې د خبرو اوريدلو دپاره (په اسمانونو باندې) ځائې په ځائې کيناستلو اوس چه څوک هم غوږ ږدی نو يوه شعله وريسې کيږی يعنی هغه ورته تياره کړې شوې ده چه د هغې په ذريعه اووهلې شی او مونږ ته پته نشته چه دا اوريدلو په ممانعت سره آيا د زمکې والو سره د شر اراده کړې شوې ده يا د هغوی رب هغوی سره د خير اراده کړې د ه؟ او دا چه د قرآن کريم د اوريدلو نه پس په مونږ کښې بعض نيکان هم دی او بعض ددې برعکس هم يعنی بعض خلق غير صالح هم دی، او مونږ په مختلفو طريقو کښې تقسيم شوې يو، يعنی مختلفې فرقې شوې يو، چه بعض مسلمانان دی او بعض کافر او مونږ دا يقين کړې دې چه مونږ د الله پاک په زمکه کښې الله پاک لره عاجز کولې نه شو (ان) مخففه دې ای انه او نه تختيدلو سره مونږ هغه ته شکست ورکولې شو يعنی نه هغه ته مونږ په زمکه کښې شکست ورکولې شو او نه د اسمان طرف ته په تيختنه باندې هغه ته شکست ورکولې شو، مونږ خو د هدايت خبره قران کريم اوريدلو سره په هغه ايمان راوړلو او څوک هم چه په خپل رب باندې ايمان راوړی هغه ته به نه د هغه په نيکو کښې د نقصان ويره وی او نه د ظلم او زياتی يعنی د هغه په بدو کښې د زياتی، او! په مونږ کښې بعض خو مسلمانان دی او بعض د خپل کفر د وجې نه ظالمان دی، پس څوک چه فرمانبردار شو نو هغوی خو د نيغې لارې قصد اوکړو يعنی د هغه د هدايت قصد ئې اوکړو او کوم چه ظالمان دی هغوی به د جهنم خشاک وی او (ان) او (انهم) او (انه) دا ټول دولس ځايونه دی او (انه تعالى) او (انا منا المسلمون) او ددې ترمينځه د همزې په کسرې سره په طور د استيناف او د همزې په فتحې سره تاويل کولو سره او الله پاک د کفار مکه په باره کښې اوفرمائيل (او اې نبی! دا هم اوايه) (ان) ثقيله نه مخففه دې او ددې اسم محذوف دې، (ای انهم) او ددې عطف په (انه استمع) باندې دې چه که خلق په نيغه لاره اسلامی طريقه باندې برابر شو نو يقينا

مونږ به په هغوی باندې په ډیر مقدار کښې د اسمان نه اوبه اوڅکوو او دا (یعنی د آیت نزول) ددې نه پس اوشو چه د اووه کالو پورې (د اهل مکه نه) باران منع کړې شو، ددې دپاره چه مونږ په هغوی ازمیښت اوکړو او ددې دپاره چه مونږ د هغوی د شکر کیفیت د خپل علم مطابق ښکاره کړو او څوک چه د خپل رب د ذکر قران نه مخ واړوی نو الله پاك به هغه لره په سخت عذاب کښې اخته کړی، (یسلکه) په نون او یاء سره دې او دا چه مسجدونه ذ مونځونو ځایونه صرف د الله پاك دپاره خاص دی پس په دې کښې د الله پاك سره نورو لره مه رابلئ په داسې طریقه چه تاسو شرك کوئ لکه یهودو او نصاری چه به خپلو عبادت خانو ته داخلیدل نو شرك به ئې کولو او چه کله د الله پاك بنده محمد ﷺ د هغه د عبادت دپاره په بطن نخله کښې اودریدی (انه) فتحې سره په طور د استیناف دې، او ضمیر د شان دې، نو د هغه قرامت لره اوریدونکی جنات په هغه باندې رش جوړوی (لبد) د لام په کسرې او ضمې سره د (لبدة) جمع ده یعنی د لمسی په شان وی د بعض په بعضو باندې د رش جوړولو او ختلو د وجې نه د قران کریم په حرص کښې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

قوله: (نفر) نفر د دریو نه لسو پورې جماعت ته وئیلې شی، جمع ئې (انفار) راځی، (نصیبین) په یمن کښې د یوې علاقې نوم دې دعلمیت او عجمې د وجې نه غیرمنصرف دې.

قوله: (جدربنا) جد په مختلفو معانیو کښې استعمالیږی دلته د عظمت او بزرګئ په معنی کښې مستعمل دې.

قوله: (كذبا) دا د موصوف محذوف صفت دې ای قولاکذبا

قوله: (قال تعالی) ددې اضافې مقصد دې خبرې ته اشاره ده چه د جناتو د کلام ترمینځه دا د الله پاك کلام دې.

قوله: (فزادوهم) یعنی انسانانو د جناتو په سرکشئ کښې اضافه اوکړه.

قوله: (وانهم ظنوا كما ظننتم ان لن يبعث الله احدا) دا د جناتو مقوله ده یعنی اې انسانانو! څنګه چه ستاسو عقیده ده چه الله پاك به د مرګ نه پس څوك نه ژوندی کوی دغه شان د جناتو هم دا عقیده ده، (ان لن يبعث الله احدا) د (ظننتم) د دوؤ مفعولو قائم مقام دې، او دا د تنازع فعلین د قبیلې نه دې، دویم ته ئې عمل ورکړو او اول دپاره ئې ضمیر منلو سره حذف کړو.

قوله: (فوجدناها ملئت) دلته (ها) ضمیر د (وجد) مفعول اول دې او (ملئت) جمله مفعول ثانی او (حرسا) تمیز دې (حرس) د حارس جمع ده، څوکیدار، نګران.

قوله: (شهب) د شهاب جمع ده په معنی د شعله، لمبه

قوله: (يومياً مرقة) مناسب وه چه (هطلا متصلة من نار الكوكب) ئې فرمائيلې وې. (صاوی)

قوله: (يقطع بوهو) ای فهولا يخاف.دا جمله اسميه ده كه د فاء نه پس (هو) محذوف نه وی نو (ماء) به محذوف وی او جزا به د شرط د وجې نه مجزوم وی.

قوله: (ندخله) ددې اضافي مقصد دا بيانول دی چه (نسلكه) د (ندخله) معنى لره متضمن دې، چه د هغې د وجې نه د هغې متعدی بنفسه كيدل صحيح شو. د (صعدا) تفسير (شاقا) تفسير باللازم دې.

**[ايا تونه: ٢٠-٢٨]**

(قَالَ) مُجِيبًا لِلْكُفَّارِ فِي قَوْلِهِمْ ارْجِعْ عَمَّا أَنْتَ فِيهِ وَفِي قِرَاءَة قُلْ (إِنَّمَا أَدْعُو رَبِّي) إلها (ولا أشرك به أحدا) (قُلْ إِنِّي لَا أَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا) غَيًّا (وَلَا رَشَدًا) خَيْرًا (قُلْ إِنِّي لَنْ يُجِيرَنِي مِنَ اللَّهِ) مِن عَذَابه إِنْ عَصَيْته (أَحَدٌ وَلَنْ أَجِدَ مِنْ دُونِهِ) أَيْ غَيْره (مُلْتَحَدًا) مُلْتَجَأ (إِلَّا بَلَاغًا) اسْتِثْنَاء مِنْ مَفْعُول أَمْلِك أَيْ لَا أَمْلِك لَكُمْ إِلَّا الْبَلَاغ إِلَيْكُمْ (مِنَ اللَّهِ) أَيْ عَنْهُ (وَرِسَالَاتِهِ) عَطْف عَلَى بَلَاغًا وَمَا بَيْن الْمُسْتَثْنَى مِنْهُ وَالِاسْتِثْنَاء اعْتِرَاض لِتَأْكِيدِ نَفْي الِاسْتِطَاعَة (وَمَنْ يَعْصِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ) فِي التوحد فَلَمْ يُؤْمِن (فَإِنَّ لَهُ نَارَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ) حال من ضمير من في له رِعَايَة فِي مَعْنَاهَا وَهِيَ حَال مُقَدَّرَة وَالْمَعْنَى يدخلونها مقدار خلودهم (فِيهَا أَبَدًا) (حَتَّى إِذَا رَأَوْا) ابْتِدَائِيَّة فِيهَا مَعْنَى الْغَايَة لِمُقَدَّرٍ قَبْلهَا أَيْ لَا يَزَالُونَ عَلَى كُفْرهمْ إِلَى أَنْ يَرَوْا (مَا يُوعَدُونَ) بِهِ مِنَ الْعَذَاب (فَسَيَعْلَمُونَ) عِنْد حُلُوله بِهِمْ يَوْم بَدْر أَوْ يَوْم الْقِيَامَة (مَنْ أَضْعَفُ نَاصِرًا وَأَقَلُّ عَدَدًا) أَعْوَانًا أَهُمْ أَمْ الْمُؤْمِنُونَ عَلَى الْقَوْل الْأَوَّل أَوْ أَنَا أَمْ هُمْ عَلَى الثَّانِي فقال بعضهم متى هذا الوعد فنزل (قُلْ إِنْ) أَيْ مَا (أَدْرِي أَقَرِيبٌ مَا تُوعَدُونَ) مِنَ الْعَذَاب (أَمْ يَجْعَلُ لَهُ رَبِّي أَمَدًا) غَايَة وَأَجَلًا لَا يَعْلَمهُ إِلَّا هُوَ (عَالِمُ الْغَيْبِ) مَا غَابَ عَنِ الْعِبَاد (فَلَا يُظْهِرُ) يُطْلِع (عَلَى غَيْبِهِ أَحَدًا) مِنَ النَّاس (إِلَّا مَنِ ارْتَضَى مِنْ رَسُولٍ فَإِنَّهُ) مَعَ إِطْلَاعه عَلَى مَا شَاءَ مِنْهُ مُعْجِزَة لَهُ (يَسْلُكُ) يَجْعَل وَيُسَيِّر (مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ) أَيْ الرَّسُول (وَمِنْ خَلْفِهِ رَصَدًا) مَلَائِكَة يَحْفَظُونَهُ حَتَّى يُبَلِّغهُ فِي جُمْلَة الْوَحْي (لِيَعْلَمَ) اللَّه عِلْم ظُهُور (أَنْ) مُخَفَّفَة مِنَ الثَّقِيلَة أَيْ أَنَّهُ (قَدْ أَبْلَغُوا) أَيْ الرُّسُل (رِسَالَاتِ رَبِّهِمْ) رُوعِيَ بِجَمْعِ الضَّمِير مَعْنَى مِنْ (وَأَحَاطَ بِمَا لَدَيْهِمْ) عَطْف عَلَى مُقَدَّر أَيْ فَعَلِمَ ذَلِكَ (وَأَحْصَى كُلَّ شَيْءٍ عَدَدًا) تَمْيِيز وَهُوَ مُحَوَّل مِنَ الْمَفْعُول وَالْأَصْل أَحْصَى عَدَد كُلّ شَيْء

ترجمه: د كفارو ددې خبرې په جواب كښې چه ته ددې خپل تبليغ نه قلار شه رسول الله ﷺ په جواب كښې اوفرمائيل په يو قراءت كښې (قل) دې، زه خو صرف خپل رب د معبود كيدو په اعتبار سره رابلم او د هغه سره څوک هم نه شريكوم، ته اوايه زه ستاسو د نفع او نقصان مالک نه يم ته اوايه چه ما هرگز څوک د الله پاک نه (يعني) د هغه د عذاب نه كه زه د هغه نافرمانی اوكړم نه شی بچ كولې او زه د هغه نه علاوه هرگز د پناه ځائې نه مومم خو زما كار د الله پاک خبره او د هغه

پیغامات رسول دی ﴿ الابلاغا ﴾ د ﴿ املك ﴾ د مفعول نه استثناء ده یعنی زه ستاسو دپاره د الله تعالی دطرف نه د پیغام رسولو نه بغیر دهیڅ څیز مالک نه یم، د ورسالاته عطف په بلاغا باندې دې او د مستثنی منه او د استثناء ترمینځه د نفی د تاکید دپاره جمله معترضه ده، او چه څوک هم د الله پاک او د هغه د رسول ﷺ په توحید کښې نافرمانی کوی چه ایمان نه راوړی د هغه دپاره د جهنم اور دې چه په هغې کښې به همیشه اوسیږی ﴿ خالدین ﴾ د من طرف ته د واپس کیدونکی د ضمیر نه د معنی په اعتبار سره حال دې او دا حال مقدره دې معنی دا ده چه هغې ته به داخلیږی حال دا چه د هغوی دپاره جهنم ته داخلیدل د همیشه دپاره مقدر شوې دی، دا خلق به په خپل کفر باندې قائم وی تردې چه هغه عذاب اووینی د کوم چه دوی سره وعده کړې شوې ده حتی ابتدائیه ده، په دې کښې (مغیا) د مقدر د غایت معنی ده تقدیر دعبارت دا دې لایزالون علی کفرهم الی ان یروا، نود بدر په ورځ یا دقیامت په ورځ کله چه دوی په دې کښې اوغورزولې شی نو نزدې به تولو ته معلومه شی چه د چا مددگار کمزورې او د چا جماعت کم دې، هغوی یا مسلمانان، اول قول (د بدر) په صورت کښې یا زه یا هغوی، دویم قول (د قیامت) په صورت کښې نو په هغوی کښې بعضو اووئیل چه دا وعده به کله پوره کیږی؟ نو ﴿ قل ان ادری ﴾ نازل شو. ته اووایه چه ماته معلومه نه ده چه د کوم عذاب تاسو سره وعده کړې شوې ده هغه نزدې دې یا به د هغې دپاره زما رب اوږده موده مقرر کړی کوم چه د هغه نه سوا چاته نه دې معلوم غیب (یعنی) کوم چه د بندگانو نه غائب دې لره پیژندونکې دې هغه په خپلو غیبو څوک هم نه خبروی مگر هغه رسول کوم چه هغه خوښ کړی، خو کوم رسول لره چه اوغواړی د معجزې په ذریعه خبروی هغه ته د اطلاع کولو باوجود د هغه قاصد نه وړاندې روستو محافظ فرشتې رالیږی چه هغه ئې حفاظت کوی تردې چه هغه فرشته هغه وحی لره د منجُمله وحی په شان اورسوی ددې دپاره چه الله پاك د علم ظهور په طور معلوم کړی چه دې ملائکو د خپل رب پیغام (رسول ته په حفاظت سره) اورسولو یا ﴿ ان ﴾ مخففه عن الثقیله دې ای انه ضمیر جمع راوړلو کښې د ﴿ من ﴾ د معنی رعایت اوکړې شو او الله پاک د (څوکیدارو) د حالاتو احاطه کړې ده د ﴿ واحاط ﴾ په عطف مقدر دې ای فعلم ذلك واحاط او هغه ته د هر یو څیز شمار معلوم دې (عددا) تمیز دې او دا د مفعول نه منقول دې او اصل ﴿ احصی عدد کل شئ ﴾ دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

قوله: ﴿ ادعوا ربی الها ﴾ (الها) مقدر منلو سره اشاره اوکړې شوه چه ﴿ ادعوا ﴾ په معنی د ﴿ اعتقد ﴾ دې کوم چه متعدی دې دوؤ مفعولو ته، دویم مفعول ﴿ الها ﴾ دې، که د ﴿ اعبد ﴾ په معنی کښې وی نو د مقدر منلو ضرورت نشته.

قوله: ﴿ الابلاغا ﴾ دا د ﴿ لااملك ﴾ د مفعول نه مستثنی ده، یعنی زه ستاسو دپاره سوا د پیغام

رسولو نه د يو څيز هم مالك نه يم، نه د نفع او نه د نقصان ګويا چه رسول اللهﷺ اوفرمائيل ﴿ لااملك لكم ضرا الابلاغا ﴾ په دې صورت کښې به مستثنى متصل وى او ﴿ قل انى لن يجيرنى الخ ﴾ د مستثنى او د مستثنى منه ترمينځه جمله معترضه د نفى استطاعت د تاكيد دپاره ده.

قوله: ﴿ ورسالاته ﴾ د دې عطف په بلاغا باندې دې اى لااملك لكم الا التبليغ والرسالة.

قوله: ﴿ على القول الاول وعلى القول الثانى ﴾ د اول قول نه مراد ﴿ اضعف ناصرا ﴾ او د ثانى نه مراد ﴿ اقل عددا ﴾ يعنى د مدد په اعتبار سره مومنان كمزورې دى يا هغوى، يا د عدد په اعتبار سره زه كمزورې يم يا هغوى.

تنبيه: مدې تكلف ضرورت نشته ځكه چه په دوارو صورتونو كښې دواړه مراد كيدې شى.

قوله: ﴿ فقال بعضهم ﴾ وئيلې شوې دى چه قائل نضر بن حارث دې.

قوله: ﴿ عالم الغيب ﴾ دا د ﴿ ربى ﴾ نه بدل دې، د مبتداء محذوف خبر دې اى هوربه.

قوله: ﴿ ما غاب به عن العباد ﴾ چه ﴿ به ﴾ ذكر نه كړې شى نو مناسب به وى.

## [٧٣] سورة المزمل

## سُوْرَةُ الْمُزَّمِّلِ مَكِّيَّةٌ الا آية فمدنية وآياتها عشرون آية

سورة مزمل مكى دې، بغير د يو آيت نه چه هغه مدنى دې، په دې كښې شل آيتونه دى.

### [ايا تونه: ١-١٩]

بسم الله الرحمن الرحيم ﴿يا أيها المزمل﴾ النبي واصل الْمُتَزَمِّل أدْغِمَتْ التَّاء فِي الزَّاي أَيْ الْمُتَلَفِّف بِثِيَابِهِ حِين مَجِيء الْوَحْي لَهُ خَوْفًا مِنْهُ لهيبته ﴿قم الليل﴾ صل ﴿إلا قليلا﴾ ﴿نِصْفه﴾ بَدَل مِنْ قَلِيلًا وَقِلَّته بِالنَّظَرِ إلَى الْكُلّ ﴿أَوِ انْقُصْ مِنْهُ﴾ مِنْ النِّصْف ﴿قَلِيلًا﴾ إلى الثلث ﴿أَوْ زِدْ عَلَيْهِ﴾ إلَى الثُّلُثَيْنِ وَأَوْ لِلتَّخْيِيرِ ﴿ورتل القرآن﴾ تثبت في تلاوته ﴿ترتيلا﴾ ﴿إِنَّا سَنُلْقِي عَلَيْكَ قَوْلًا﴾ قُرْآنًا ﴿ثَقِيلًا﴾ مَهِيبًا أَوْ شَدِيدًا لِمَا فِيهِ مِنْ التَّكَالِيف ﴿إِنَّ نَاشِئَةَ اللَّيْلِ﴾ الْقِيَام بَعْد النَّوْم ﴿هِيَ أَشَدُّ وَطْئًا﴾ مُوَافَقَة السَّمْع لِلْقَلْبِ عَلَى تَفَهُّم الْقُرْآن ﴿وَأَقْوَمُ قِيلًا﴾ أَبْيَن قَوْلًا ﴿إِنَّ لَكَ فِي النَّهَارِ سَبْحًا طَوِيلًا﴾ تَصَرُّفًا فِي إشْغَالك لَا تَفْرُغ فِيهِ لِتِلَاوَةِ الْقُرْآن ﴿وَاذْكُرِ اسْمَ رَبِّكَ﴾ أَيْ قُلْ بِسْمِ اللَّه الرَّحْمَن الرَّحِيم فِي ابْتِدَاء قِرَاءَتك ﴿وَتَبَتَّلْ﴾ انْقَطِعْ ﴿إِلَيْهِ تَبْتِيلًا﴾ مَصْدَر بَتَلَ جِيءَ بِهِ رِعَايَة لِلْفَوَاصِلِ وَهُوَ مَلْزُوم التَّبَتُّل ﴿رَبُّ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ فَاتَّخِذْهُ وَكِيلًا﴾ مُوَكَّلًا لَهُ أُمُورك ﴿وَاصْبِرْ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ﴾ أَيْ كُفَّار مَكَّة مِنْ أَذَاهُمْ ﴿وَاهْجُرْهُمْ هَجْرًا جَمِيلًا﴾ لَا جَزَع فِيهِ وَهَذَا قَبْل الْأَمْر بِقِتَالِهِمْ ﴿وَذَرْنِي﴾ اتْرُكْنِي ﴿وَالْمُكَذِّبِينَ﴾ عَطْف عَلَى الْمَفْعُول أَوْ مَفْعُول مَعَهُ وَالْمَعْنَى أَنَا كَافِيكَهُمْ وَهُمْ صَنَادِيد قُرَيْش ﴿أُولِي النَّعْمَةِ﴾ التَّنَعُّم ﴿وَمَهِّلْهُمْ قَلِيلًا﴾ مِنْ الزَّمَن فَقُتِلُوا بَعْد يَسِير مِنْهُ بِبَدْرٍ ﴿إِنَّ لَدَيْنَا أَنْكَالًا﴾ قُيُودًا ثِقَالًا جَمْع نِكْل بِكَسْرِ النُّون ﴿وَجَحِيمًا﴾ نَارًا مُحْرِقَة ﴿وَطَعَامًا ذَا غُصَّةٍ﴾ يَغَصّ بِهِ فِي الْحَلْق وَهُوَ الزَّقُّوم أَوْ الضَّرِيع أَوْ

المُسلمين أو شوك من نار لا يخرج ولا ينزل ﴿وَعَذَابًا أَلِيمًا﴾ مؤلما زيادة على ما ذكر لمن كذب النبي صلى الله عليه وسلم ﴿يَوْمَ تَرْجُفُ﴾ تزلزل ﴿الْأَرْضُ وَالْجِبَالُ وَكَانَتِ الْجِبَالُ كَثِيبًا﴾ رملا مجتمعا ﴿مَّهِيلًا﴾ سائلا بعد اجتماعه وهو من هال يهيل وأصله مهيول استثقلت الضمة على الياء فنقلت إلى الهاء وحذفت الواو ثاني الساكنين لزيادتها وقلبت الضمة كسرة لمجانسة الياء ﴿إِنَّا أَرْسَلْنَا إِلَيْكُمْ﴾ يا أهل مكة ﴿رَسُولًا﴾ هو محمد صلى الله عليه وسلم ﴿شَاهِدًا عَلَيْكُمْ﴾ يوم القيامة بما يصدر منكم من العصيان ﴿كَمَا أَرْسَلْنَا إِلَىٰ فِرْعَوْنَ رَسُولًا﴾ هو موسى عليه الصلاة والسلام ﴿فَعَصَىٰ فِرْعَوْنُ الرَّسُولَ فَأَخَذْنَاهُ أَخْذًا وَبِيلًا﴾ شديدا ﴿فَكَيْفَ تَتَّقُونَ إِن كَفَرْتُمْ﴾ في الدنيا ﴿يَوْمًا﴾ مفعول تتقون أي عذابه بأي حصن تتحصنون من عذاب يوم ﴿يَجْعَلُ الْوِلْدَانَ شِيبًا﴾ جمع أشيب لشدة هوله وهو يوم القيامة والأصل في شين شيبا الضم وكسرت لمجانسة الياء ويقال في اليوم الشديد يوم يشيب نواصي الأطفال وهو مجاز ويجوز أن يكون المراد في الآية الحقيقة ﴿السَّمَاءُ مُنفَطِرٌ﴾ ذات انفطار أي انشقاق ﴿بِهِ﴾ بذلك اليوم لشدته ﴿كَانَ وَعْدُهُ﴾ تعالى بمجيء ذلك ﴿مَفْعُولًا﴾ أي هو كائن لا محالة ﴿إِنَّ هَٰذِهِ﴾ الآيات المخوفة ﴿تَذْكِرَةٌ﴾ عظة للخلق ﴿فَمَن شَاءَ اتَّخَذَ إِلَىٰ رَبِّهِ سَبِيلًا﴾ طريقا بالإيمان والطاعة

---

ترجمه: په نوم د الله پاک چه ډير مهربانه او هميشه مهربانه دې شروع کوم، اې په کپړه کښې ځان رانغښتونکيه! نبي ﴿ مزمل ﴾ اصل نې ﴿ متزمل ﴾ وو، تاء لره په زاء کښې مدغم کړې شوه، يعنې په هغه باندې د وحی د نازليدو په وخت د وحی د هيبت د ويرې نه په کپړه کښې پټيدونکې! د شپې قيام کوه مونځ کوه خو لږ، نيمه شپه ﴿ نصفه ﴾ د ﴿ قليلا ﴾ نه بدل دې او د نصف قليل کيدل د پوره شپې په اعتبار سره دی. يا د هغې نه يعنې د نصف نه هم کم کوه د ثلث شپې پورې يا د هغې نه (دوه دريمه حصه) زيات کړه، ﴿ او ﴾ د تخيير دپاره دې، او قران کريم لره ښه صفا صفا او په قلار قلار لوله، مونږ په تا باندې يو درونډ کلام نازلونکې يو يعنې با رعب کلام يا شديد، ځکه چه په دې کښې احکام تکليفيه دی، بيشکه د اوده کيدو نه پس (د شپې) پاسيدل د قران کريم د فهم دپاره د زړه او غوږ د موافقت د وجې نه انتهائی مؤثر دې او خبرې لره ښه واضح او صفا کونکې دې يقينا ستاسو په ورځ کښې نور ډير کارونه وی چه د هغې د وجې نه تاسو د قران کريم تلاوت ته اوزګار نه يئ نو د خپل رب نوم واخله يعنې د خپل قراءت په شروع کښې ﴿ بسم الله الرحمن الرحيم ﴾ اولوله او د ټولو سره تعلق منقطع کولو سره په عبادت کښې د هغه طرف ته پوره طريقې سره متوجه شه. ﴿ تبتيلا ﴾ د ﴿ بتل ﴾ مصدر دې دا د فواصل په رعايت سره راوړلې شوې دې، دا د ﴿ تبتل ﴾ ملزوم دې، هغه د مشرق او مغرب رب دې د هغه نه سوا بل معبود نشته هغه خپل کارساز جوړ کړه يعنې خپل ټول کارونه هغه ته اوسپاره او څه چه دا کفار د تکليف رسولو خبرې کوی نو ته په هغې صبر کوه او په ښه طريقې سره د هغوی نه جدا شه چه په هغې کښې جزع فزع نه وی دا حکم د جهاد د حکم د نازليدو نه

مخکښ دي او ما او دا مالدار تکذیب کونکی پرېږده د ﴿ والمکذبین ﴾ عطف د ﴿ ذرني ﴾ په مفعول باندې دې یا دا مفعول معه دې او معنی دا ده چه زه د هغوی دپاره ستا د طرف نه کافی یم او هغوی د قریشو سرداران دی، او هغوی ته لږه موده نور مهلت ورکړه پس د لږې مودې نه پس هغوی په بدر کښې قتل کړې شو بیشکه مونږ سره وزنی بیړۍ دی ﴿ انکالا ﴾ د ﴿ نکل ﴾ د نون په کسرې سره جمع ده او ګرم اور دې او په مرئ کښې اینختلو والا خوراک دې یعنی هغه په مرئ کښې اینخلی او هغه زقوم دې، یا ضریع دې، یا پیپ دې یا د اور ازغې، نه به بهر راوځی او نه به تیرېږی او دردونکې عذاب دې کوم عذاب چه د رسول الله ﷺ د تکذیب کونکی دپاره ذکر کړې شوې دې، دا د هغې نه زیات دې په کومه ورځ چه به زمکه او غرونه اوخوزیږی او غرونه به د شږو د دیرکو په شان د هغې د جمع کیدو نه پس دالوتونکی ګردوغبار په شان شی ﴿ مهیلا ﴾ د ﴿ هال یهیل ﴾ نه دې ددې اصل ﴿ مهیول ﴾ دې، په یاء باندې د ضمې د ثقل د وجې نه د هاء طرف ته منتقل کړې شوه او دویم واو د التقاء ساکنین د وجې نه حذف شو، د هغې د زائد کیدو د وجې نه او ضمې لره د یاء د مناسبت د وجې نه په کسرې سره بدل کړې شوه، اې اهل مکه! مونږ تاسو ته یو داسې رسول درلیږلې دې او هغه محمد ﷺ دې کوم چه به د قیامت په ورځ ستاسو خلاف ګواهی ورکوی په هغه ګناهونو باندې کوم چه تاسو کړې دی لکه چه مونږ فرعون ته یو رسول لیږلې وو او هغه موسی ﷺ وو بیا فرعون د هغه رسول خبره او نه منله نو مونږ هغه سخت راونیلو پس که تاسو په دنیا کښې کفر کوئ نو د هغه ورځې (د مصیبت) نه به څنګه بچ شئ؟ کوم چه به ماشومان د خپلې سختې د وجې نه بوډاګان کړی او هغه د قیامت ورځ ده، ﴿ شیبا ﴾ د ﴿ اشیب ﴾ جمع ده او په اصل کښې ﴿ شیب ﴾ د شین په ضمې سره دې د یاء د مجانست د وجې نه ورته کسره ورکړې شوه او د یوم شدید په باره کښې ونیلې شی ﴿ یوم یشیب نواصی الاطفال ﴾ داسې ورځ چه په هغې کښې به د ماشومانو وېښته سپین شی او دا مجاز دې او دا هم جائز ده چه په آیت کریمه کښې حقیقت مراد وی (او په کومه ورځ چه به) اسمان څیرې شی یعنی هغه ورځ به پکښې چاودی اوشی بیشکه د هغه ورځې راتلو د هغه وعده ضرور پوره کیدونکې ده بیشکه دا ویرونکی آیتونه د مخلوق دپاره نصیحت دې پس څوک چه غواړی د خپل رب طرف ته دې لاره اختیار کړی.

## د قیودا تو فوائد او تسهیل

قوله: ﴿ یاایها المزمل ﴾ دا رسول الله ﷺ ته خطاب دې.

قوله: ﴿ المزمل ﴾ ای الملتف بثیابه... په خپلو کپړو کښې پټ شوې، مفسر علام ترې هم دا مراد اخستلې دې، ونیلې شوې دی چه مزمل په معنی د حامل النبوة یا په معنی د حامل القرآن دې، ﴿ زاملة ﴾ اوښ ته ونیلې شی څکه چه هغه ډیر زیات وزن اوچتوی اوس به د ﴿ یا

ايها المزمل ﴾مطلب وى اې د نبوت بارونكيه يا اې حامل قران! د شپې پاسه! دا د رسول الله ﷺ په اسماء توقيفى كښې دې، د رسول الله ﷺ دپاره په قران كريم كښې د مزمل لفظ استعمال شوې دې لهذا رسول الله ﷺ ته مزمل وئيل صحيح دى، سهيلى رحمه الله په دې كښې اختلاف كولو سره وئيلې دى چه د مزمل اطلاق په رسول الله ﷺ باندې د اسم په طور صحيح نه دې، ځكه چه دا د رسول الله ﷺ د يو عارضى حالت نه مشتق دې، خو دا خبره صحيح نه ده ځكه چه په عارضى حالت سره هم د اسم اطلاق صحيح دې، رسول الله ﷺ په على رضي الله عنه باندې يو عارضى حالت سره د اسم اطلاق اوكړو، سيدنا على رضي الله عنه يوه ورځ په زمكه باندې ملاست وو او ملا ئې په خاورو باندې ككړه وه نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل: ﴿قم يا ابا تراب﴾ (صاوى مخلصا، واضافة)

قوله: ﴿ قلته بالنظر الى الكل ﴾ د دې عبارت د اضافې مقصد د يو سوال جواب وركول دى.

سوال: نصف، د نصف مساوى وى يو نصف ته د بل نصف نه قليل وئيل صحيح نه دى، حال دا چه دلته ﴿ الا قليلا نصفه ﴾ وئيلې شوې دې؟

جواب: د جواب حاصل دا دې چه نصف ته قليل د كل په اعتبار سره وئيلې شوې دې، يعنى پوره شپه د قيام كولو په مقابله كښې نيمه شپه، قيام قليل دې.

قوله: ﴿ نصفه ﴾ دا د قليلا نه بدل دې چه د ﴿ ليلا ﴾ نه مطلب دا دې چه رسول الله ﷺ ته په دريو خبرو كښې اختيار وركړې شو، په نصف كښې، د نصف نه كم كښې، د نصف نه زيات كښې.

قوله: ﴿ انا سنلقى عليك قولا ثقيلا ﴾ دا جمله د امر بالقيام او د هغې د علت ترمينځه جمله معترضه ده.

قوله: ﴿ ان ناشئة الليل ﴾ د امر بالقيام علت دې.

قوله: ﴿ وطا ﴾ په معنى د تكليف، مشقت، گران والې، په يو قراءت كښې ﴿ وطاء مواطاة ﴾ (مفاعله) نه مصدر دې په معنى د موافقت يعنى د اوريدو د فهم سره موافقت، د غوږونو د زړه سره موافقت.

قوله: ﴿ جئ به رعاية للفواصل ﴾ د دې عبارت مقصد د يو سوال جواب وركول دى.

سوال: ﴿ تبتيلا ﴾ د ﴿ تبتل ﴾ مصدر بلفظه نه دې، حال دا چه مصدر بلفظه ﴿ تبتل ﴾، ﴿ تبتلا ﴾ پكار دى؟

جواب: د جواب حاصل دا دې چه د فواصل د رعايت د وجې نه مصدر د بل باب راوړلې شوې دې.

قوله: ﴿ هو ملزوم التبتل ﴾ د دې مقصد هم د ذكر شوى سوال جواب وركول دى، خو اولنې جواب په اعتبار د لفظ دې او دا په اعتبار د معنى، د دې خلاصه دا ده چه تبتيل چه د

(یعل) مصدر دي، نه مراد (تعل) دې، (تعل) د (یعل) ملزوم دې یعنې لازم ونیلو سره ملزوم مراد کړې شوې دې او په دې کښې هیڅ قباحت نشته، لکه (تکرم لکرما)، (وتعلم تعلما)

قوله: (هورب المشرق والمغرب) د هو اضافه کولو سره ئې اشاره اوکړه چه (رب المشرق) د مبتدا محذوف د خبر کیدو د وجې نه مرفوع دې او د (ربك) نه د بدل کیدو د وجې نه مجرور هم جائز دې.

قوله: (ضریع) نوع من الشوك لاترعاه دابة لخبثه... یو قسم ازغنو والا گیاه ده چه یو خاروې ئې هم نه خوری سوا د اوښ نه؛ او اوښ ئې هم تر هغه وخته پورې خوری چه ترخو هغه شین وی، په پښتو کښې ورته ازغی داره زیلئ وئیلې شي. (ترويح الارواح)

قوله: (زیادة علی ما ذکر لمن کذب النبی ﷺ) مخکښې (ان لدینا انکالا الخ) پورې چه د جهنم د کوم عذاب ذکر فرمائیلې شوې دې اوس (عذابا الیما) وئیلو سره په مبهم طریقه باندې د هغې نه علاوه د عذاب ذکر فرمائی کوم چه به د رسول الله ﷺ د تکذیب کونکو دپاره وی.

قوله: (یوم ترجف) دا د فعل محذوف د ظرف کیدو د وجې نه منصوب دې (ای استقر لهم عندنا ما ذکر یوم ترجف)

قوله: (مفعول تتقون) یوما... د مضاف په حذف سره د (تتقون) مفعول دې (ای تتقون عذاب یوم) یا د حذف جار په وجه هم منصوب کیدې شی په اصل کښې (بیوم) وو (ای بیوم یجعل الولدان شیبا)

قوله: (ویجوز ان یکون المراد فی الآیة الحقیقة) یعنی (یوما یجعل الولدان شیبا) نه مجازا د مودې اوږد والې هم مراد کیدې شی او حقیقی معنی هم مراد کیدې شی یعنی حقیقة به ماشومان بوډاګان شي.

[اياتونه: ٢٠]

﴿إِنَّ رَبَّكَ يَعْلَمُ أَنَّكَ تَقُومُ أَدْنَىٰ﴾ أَقَلّ ﴿مِن ثُلُثَيِ اللَّيْلِ وَنِصْفَهُ وَثُلُثَهُ﴾ بِالْجَرِّ عَطْف عَلَى ثُلُثَيْ وَبِالنَّصْبِ عَلَى أَدْنَى وَقِيَامه كَذَلِكَ نَحْو مَا أُمِرَ بِهِ أَوَّل السُّورَة ﴿وَطَائِفَةٌ مِّنَ الَّذِينَ مَعَكَ﴾ عَطْف عَلَى ضَمِير تَقُوم وَجَازَ مِنْ غَيْر تَأْكِيد لِلْفَصْلِ وَقِيَام طَائِفَة مِنْ أَصْحَابه كَذَلِكَ لِلتَّأَسِّي بِهِ وَمِنْهُمْ مَنْ كَانَ لَا يَدْرِي كَمْ صَلَّى مِنَ اللَّيْل وَكَمْ بَقِيَ مِنْهُ فَكَانَ يَقُوم اللَّيْل كُلّه احْتِيَاطًا فَقَامُوا حَتَّى انْتَفَخَتْ أَقْدَامهمْ سَنَة أَوْ اكثر فخفف عنهم قال تعالى ﴿وَاللَّهُ يُقَدِّرُ﴾ يُحْصِي ﴿اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ عَلِمَ أَن﴾ مُخَفَّفَة مِنَ الثَّقِيلَة وَاسْمهَا مَحْذُوف أَيْ أَنَّهُ ﴿لَّن تُحْصُوهُ﴾ أَيْ اللَّيْل لِتَقُومُوا فِيمَا يَجِب الْقِيَام فِيهِ إِلَّا بِقِيَامِ جَمِيعه وَذَلِكَ يَشُقّ عَلَيْكُمْ ﴿فَتَابَ عَلَيْكُمْ﴾ رَجَعَ بِكُمْ إِلَى التَّخْفِيف ﴿فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ﴾ فِي الصَّلَاة بِأَنْ تُصَلُّوا مَا تَيَسَّرَ ﴿عَلِمَ أَن﴾ مُخَفَّفَة مِنَ الثَّقِيلَة أَيْ أَنَّهُ ﴿سَيَكُونُ مِنكُم مَّرْضَىٰ وَآخَرُونَ يَضْرِبُونَ فِي الْأَرْضِ﴾ يُسَافِرُونَ ﴿يَبْتَغُونَ مِن فَضْلِ اللَّهِ﴾

يطْلُبُونَ مِنْ رِزْقِهِ بِالتِّجَارَةِ وَغَيْرِهَا ﴿وَآخَرُونَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ﴾ وَكُلٌّ مِنَ الْفِرَقِ الثَّلَاثَةِ يَشُقُّ عَلَيْهِمْ مَا ذُكِرَ فِي قِيَامِ اللَّيْلِ فَخَفَّفَ عَنْهُمْ بِقِيَامِ مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ ثُمَّ نُسِخَ ذَلِكَ بِالصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ ﴿فَاقْرَؤُوا مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ﴾ كَمَا تَقَدَّمَ ﴿وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ﴾ الْمَفْرُوضَةَ ﴿وَآتُوا الزَّكَاةَ وَأَقْرِضُوا اللَّهَ﴾ بِأَنْ تُنْفِقُوا مَا سِوَى الْمَفْرُوضِ مِنَ الْمَالِ فِي سَبِيلِ الْخَيْرِ ﴿قَرْضًا حَسَنًا﴾ عَنْ طِيبِ قَلْبٍ ﴿وَمَا تُقَدِّمُوا لِأَنْفُسِكُمْ مِنْ خَيْرٍ تَجِدُوهُ عِنْدَ اللَّهِ هُوَ خَيْرًا﴾ مِمَّا خَلَّفْتُمْ وَهُوَ فَصْلٌ وَمَا بَعْدَهُ وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مَعْرِفَةً يُشْبِهُهَا لِامْتِنَاعِهِ مِنَ التَّعْرِيفِ ﴿وَأَعْظَمَ أَجْرًا وَاسْتَغْفِرُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ﴾ لِلْمُؤْمِنِينَ

**ترجمه:** بیشکه ستا رب ته ښه معلومه ده چه ته او ستا د ملګرو یو جماعت د شپې دوه حصو ته نزدې او نیمه شپه او د شپې یوه حصه قیام لیل کوی ﴿ ثلثه ﴾ د جر په صورت کښې به په ﴿ ثلثي ﴾ باندې عطف وی او د ﴿ نصب ﴾ په صورت کښې به په ﴿ ادنی ﴾ باندې عطف وی او د رسول الله ﷺ قیام لیل د سورت په شروع کښې د مذکور مطابق وو، د ﴿ طائفة ﴾ عطف د ﴿ تقوم ﴾ په ضمیر باندې دې او د فصل د واقع کیدو د وجې نه بغیر د تاکید نه هم (عطف) صحیح دې او د رسول الله ﷺ په ملګرو کښې د یو جماعت قیام د رسول الله ﷺ د اقتداء په طور هم په دې طریقه باندې وو، په صحابه کرامو ﷺ بعض حضرات داسې هم وو چه هغوی ته به ددې خبرې علم نه وو چه څومره حصه ئې په مانځه کښې تیره شوه او څومره باقی پاتې شوه چه د هغې د وجې نه به احتیاطا پوره شپه په تهجدو باندې ولاړ وو، هغوی هم په دې طریقه باندې یو کال یا ددې نه زیات عمل اوکړو تردې چه خپې ئې اوپړسیدې، نو الله پاك د هغوی دپاره تخفیف اوکړو، الله پاك اوفرمائیل: او د شپې پوره اندازه الله پاک ته ده هغه ته دا هم معلومه ده چه تاسو به د وخت مقدار ضبط نه کړې شئ چه په هغې کښې د واجب په اندازه قیام اوکړې شئ، خو په هغه صورت کښې چه پوره شپه ولاړ یئ، او دا به ستاسو دپاره ګرانه وی، نو په دې وجه الله پاک ستاسو په حال رجوع د رحمت اوکړه یعنی تاسو ئې د سهولت طرف ته واپس کړئ پس اوس چه تاسو څومره قران په مانځه کښې په اسانئ سره لوستلې شئ هغه لولئ یعنی څومره چه درته اسان وی هغه مونځ کوئ هغه ته دا هم معلومه ده چه په تاسو کښې به بعض کسان بیماران دی (ان) مخففه عن الثقیله ده یعنی ﴿ انه ﴾ او بعض به د معاش د لټون دپاره په ملک کښې سفر کوی یعنی د تجارت وغیره په ذریعه رزق طلب کوی او بعض به د الله پاک په لاره کښې جهاد کوی په ذکر شوې درې وارو ډلو کښې په هر یو باندې، په ذکر شوې طریقه قیام لیل ګران وی، نو الله پاك د سهولت په اندازه د قیام په ذریعه په هغوی باندې تخفیف اوکړو بیا ئې هغه هم د پنځه وخته مونځ په ذریعه منسوخ کړو پس په اسانئ سره چه څومره قران (په مانځه کښې) لوستلې شئ، لولئ لکه چه پورته تیر شو او د فرض مونځ پابندی کوئ او زکاة ورکوئ او الله پاک ته به ښه طریقې سره د زړه په خوشحالئ سره قرض ورکوئ په داسې طریقه

چه د فرض مقدار نه علاوه د مال نه د خير په لارو كښې خرچ كوئ او كوم نيك عمل چه د خپل ځان دپاره وړاندې اولېږئ هغه به الله پاک ته رسيدو سره د هغې نه كوم چه تاسو شاته پرېخودلې دې غوره او په ثواب كښې لوئې بيا مومئ ﴿ هو﴾ضمير فصل دې او د هغه مابعد اگرچه معرفه نه دې خو د معرفې سره مشابه دې ځكه چه هغه د تعريف نه ممتنع دې او په الله پاک باندې خپل گناهونه بخښئ يقينا الله پاک د مومنانو دپاره غفور او رحيم دې.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** ﴿ ان ربك يعلم انك تقوم ادنى الخ﴾ دا د سورت په شروع كښې د بيان كړې حكم ﴿ قم الليل الا قليلا﴾ د ناسخ تمهيد دې اصل ناسخ ﴿ فتاب عليكم﴾ دې.

**قوله:** ﴿ اقل من ثلثي الليل ونصفه ﴾ د دې مطلب دا دې چه ستا رب ته ستا دوه ثلثه شپه او نيمه شپه او د يو ثلث شپې نه كم قيام معلوم دې، د سورة په شروع كښې نبي عليه السلام ته د دوه ثلث شپې نه كم او د نيمې شپې نه كم قيام ليل كښې اختيار دركړې شوې وو او دلته د ﴿ وادنى من ثلثه ﴾ نه معلوميږي چه د ثلث نه په كمه شپه كښې هم ورته اختيار وركړې شوې وو حال دا چه داسې خبره نه ده او دا صورت به د﴿ نصفه ﴾ د جر د قرا ت په صورت كښې وي.

**جواب:** د جواب حاصل دا دې چه د ادنى نه تقريب مراد دې يعنى هغه ته معلوم دې د رسول اللهﷺ دوه حصې او نيمه او دريمې حصې شپې ته نزدې قيام، هم د دې نه په ادنى سره تعبير كړې شوې دې ځكه چه ذكر شوې مقدارونه د امور ظنيه تخمينيه نه دى او صحابهؓ او رسول اللهﷺ هم په دې مكلف وو او نه په هغه زمانه كښې داسې څه نظام وو چه صحيح صحيح د اوقاتو تعيين پرې اوكړې شى ځكه چه دا انتهائى گران او سخت كار دې كوم چه په دې ترقى يافته دور كښې هم دير گران او مشكل دې حال دا چه په هغه زمانه كښې گهړئ وغيره هم نه وې صرف د ستورو په رفتار سره به ئې د اوقاتو تعيين كولو.

**قوله:** ﴿وبالنصب﴾ دا د ﴿نصفه﴾ د دويم قرا ت بيان دې د نصب په صورت كښې به په ﴿ ادنى﴾ باندې عطف وي او د ﴿ تقوم﴾ مفعول وي، معنى به دا وي ﴿ تقوم نصفه تارة وثلثه تارة اخرى ﴾ د نصب په صورت كښې به د سورت په شروع كښې د وركړې شوى حكم مطابق وي.

**قوله:** ﴿ وقيامه كذلك نحو ما امر به ﴾ د رسول اللهﷺ داسې قيام به د سورت په اول كښې د بيان كړې حكم مطابق وي ﴿ قيامه كذلك﴾ مبتدا ء ده او ﴿ ما امر به اول السورة﴾ خبر دې.

**قوله:** ﴿ وطائفة من الذين معك﴾ د دې د ﴿ تقوم﴾ په ضمير مرفوع متصل باندې عطف دې.

**سوال:** په ضمير مرفوع متصل باندې د عطف دپاره قاعده دا ده چه په ضمير مذكور باندې د عطف د صحيح كيدو دپاره د ضمير منفصل په ذريعه تاكيد ضروري وي حال دا چه دلته

داسې نه ده؟

**جواب:** د جواب حاصل دا دې چه په ضمير مرفوع متصل باندې د عطف كولو دپاره د دوو خبرو نه د يو كيدل ضروري دي.

١: د ضمير مرفوع متصل تاكيد د ضمير مرفوع منفصل په ذريعه راوړلې شوې وي. ٢: يا د معطوف او معطوف عليه ترمينځه فصل وي دلته دويم صورت يعنى فصل موجود دې او هغه ﴿ادنى من ثلثى الليل ونصفه وثلثه﴾ دې، لهذا عطف صحيح دې.

**قوله:** ﴿هو فصل﴾ اى ضمير فصل

**قوله:** ﴿وما بعده وان لم يكن معرفة يشبهها لامتناع دخول ال عليه﴾ دا هم د يو سوال مقدر جواب دې.

**سوال:** ضمير فصل د دوو معرفو ترمينځه راوړلې شى نه چه د يو معرفه او يو نكره ترمينځه، او دلته هم دغه شان دى ځكه چه لفظ ﴿الله﴾ معرفه دې او ﴿خيرا﴾ نكره دې؟

**جواب:** ﴿خيرا﴾ خالص نكره نه دې بلكه د معرفې سره مشابه دې ځكه چه په دې باندې حرف تعريف الف لام نه داخليږى كه خالص نكره وې نو د حرف تعريف داخليدل به صحيح وې، لهذا د دواړو ترمينځه ضمير فصل راوړل جائز دى.

## [٧٤] سورة المدثر

### سورة المدثر المكية وآياتها ست وخمسون

سورة مدثر مكى دې، پنځه پنځوس آيتونه دى.

**[اياتونه: ١ - ٣١]**

بسم الله الرحمن الرحيم ﴿يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ﴾ النَّبِيّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْله الْمُتَدَثِّر أُدْغِمَتْ التَّاء فِي الدَّال أَيْ الْمُتَلَفِّف بِثِيَابِهِ عِنْد نُزُول الْوَحْي عَلَيْهِ ﴿قُمْ فَأَنْذِرْ﴾ خَوِّفْ أَهْل مَكَّة النَّار إنْ لَمْ يُؤْمِنُوا ﴿وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ﴾ عَظِّمْ عَنْ إشْرَاك الْمُشْرِكِينَ ﴿وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ﴾ عَنْ النَّجَاسَة أَوْ قَصِّرْهَا خِلَاف جَرّ الْعَرَب ثِيَابهمْ خُيَلَاء فَرُبَّمَا أَصَابَتْهَا نَجَاسَة ﴿وَالرُّجْزَ﴾ فَسَّرَهُ النَّبِيّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْأَوْثَانِ ﴿فَاهْجُرْ﴾ أَيْ دُمْ عَلَى هَجْره ﴿وَلَا تَمْنُنْ تَسْتَكْثِرُ﴾ بِالرَّفْعِ حَال أَيْ لَا تُعْطِ شَيْئًا لِتَطْلُب أَكْثَر مِنْهُ وَهَذَا خَاصّ بِهِ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَنَّهُ مَأْمُور بِأَجْمَل الْأَخْلَاق وَأَشْرَف الْآدَاب ﴿وَلِرَبِّكَ فَاصْبِرْ﴾ عَلَى الْأَوَامِر وَالنَّوَاهِي ﴿فَإِذَا نُقِرَ فِي النَّاقُورِ﴾ نُفِخَ فِي الصُّور وَهُوَ الْقَرْن النَّفْخَة الثَّانِيَة ﴿فَذَٰلِكَ﴾ أَيْ وَقْت النَّقْر ﴿يَوْمَئِذٍ﴾ بَدَل مِمَّا قَبْله الْمُبْتَدَأ وَبُنِيَ لِإِضَافَتِهِ إلَى غَيْر مُتَمَكِّن وَخَبَر الْمُبْتَدَأ ﴿يَوْمٌ عَسِيرٌ﴾ وَالْعَامِل فِي إذَا مَا دَلَّتْ عَلَيْهِ الْجُمْلَة اشْتَدَّ الْأَمْر ﴿عَلَى الْكَافِرِينَ غَيْرُ يَسِيرٍ﴾ فِيهِ دَلَالَة عَلَى أَنَّهُ يَسِير عَلَى الْمُؤْمِنِينَ فِي عُسْره ﴿ذَرْنِي﴾ اُتْرُكْنِي ﴿وَمَنْ خَلَقْتُ﴾ عَطْف عَلَى الْمَفْعُول أَوْ مَفْعُول مَعَهُ ﴿وَحِيدًا﴾ حَال مِنْ مَنْ أَوْ مِنْ ضَمِيره الْمَحْذُوف مِنْ خَلَقْت مُنْفَرِدًا بِلَا أَهْل وَلَا مَال هُوَ الْوَلِيد بْن الْمُغِيرَة الْمَخْزُومِيّ ﴿وَجَعَلْتُ لَهُ مَالًا مَمْدُودًا﴾ وَاسِعًا مُتَّصِلًا مِنْ الزُّرُوع وَالضُّرُوع وَالتِّجَارَة ﴿وَبَنِينَ﴾ عَشَرَة أَوْ أَكْثَر ﴿شُهُودًا﴾ يَشْهَدُونَ الْمَحَافِل وَتُسْمَع شَهَادَاتهمْ ﴿وَمَهَّدْتُ﴾ بَسَطْت ﴿لَهُ﴾ فِي الْعَيْش وَالْعُمُر وَالْوَلَد

تمهيدا (ثم يطمع أن أزيد) (كَلَّا) لا أزيدهُ عَلَى ذٰلِكَ (إِنَّهُ كَانَ لِآيَاتِنَا) القرآن (عَنِيدًا) مُعَانِدًا (سَأُرْهِقُهُ) أكلفهُ (صَعُودًا) مَشَقَّةً مِنَ الْعَذَابِ أَوْ جَبَلًا مِنْ نَارٍ يَصْعَدُ فِيهِ ثُمَّ يَهْوِي ابدا (إِنَّهُ فَكَّرَ) فِيمَا يَقُولُ فِي القُرآنِ الَّذِي سَمِعَهُ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (وَقَدَّرَ) فِي نَفْسِهِ ذٰلِكَ (فَقُتِلَ) لُعِنَ وَعُذِّبَ (كَيْفَ قَدَّرَ) عَلَى أيِّ حال كان تقديره (ثم قتل كيف قدر) (ثُمَّ نَظَرَ) فِي وُجُوهِ قَوْمِهِ أَوْ فِيمَا يَقْدَحُ بِهِ فِيهِ (ثُمَّ عَبَسَ) قَبَضَ وَجْهَهُ وَكَلَحَهُ ضِيقًا بِمَا يَقُولُ (وَبَسَرَ) زَادَ فِي الْقَبْضِ وَالْكُلُوحِ (ثُمَّ أَدْبَرَ) عَنِ الْإِيمَانِ (وَاسْتَكْبَرَ) تَكَبَّرَ عَنِ اتِّبَاعِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (فَقَالَ) فِيمَا جَاءَ بِهِ (إِنْ) مَا (هٰذَا إِلَّا سِحْرٌ يُؤْثَرُ) يُنْقَلُ عَنِ السَّحَرَةِ (إِنْ) مَا (هٰذَا إِلَّا قَوْلُ الْبَشَرِ) كَمَا قَالُوا إِنَّمَا يُعَلِّمُهُ بَشَرٌ (سَأُصْلِيهِ) أُدْخِلُهُ (سَقَرَ) جَهَنَّمَ (وما أدراك ما سقر) تعظيم لشانها (لَا تُبْقِي وَلَا تَذَرُ) شَيْئًا مِنْ لَحْمٍ وَلَا عَصَبٍ إِلَّا أَهْلَكَتْهُ ثُمَّ يَعُودُ كما كان (لَوَّاحَةٌ لِلْبَشَرِ) مُحْرِقَةٌ لِظَاهِرِ الجلد (عَلَيْهَا تِسْعَةَ عَشَرَ) مَلَكًا خَزَنَتُهَا قَالَ بَعْضُ الْكُفَّارِ وَكَانَ قَوِيًّا شَدِيدَ الْبَأْسِ أَنَا أَكْفِيكُمْ سَبْعَةَ عَشَرَ وَاكْفُونِي أَنْتُمُ اثْنَيْنِ قَالَ تَعَالَى (وَمَا جَعَلْنَا أَصْحَابَ النَّارِ إِلَّا مَلَائِكَةً) أَيْ فَلَا يُطَاقُونَ كَمَا يَتَوَهَّمُونَ (وَمَا جَعَلْنَا عِدَّتَهُمْ) ذٰلِكَ (إِلَّا فِتْنَةً) ضَلَالًا (لِلَّذِينَ كَفَرُوا) بِأَنْ يَقُولُوا لِمَ كَانُوا تِسْعَةَ عَشَرَ (لِيَسْتَيْقِنَ) لِيَسْتَيْقِنَ (الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ) أَيِ الْيَهُودُ صِدْقَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي كَوْنِهِمْ تِسْعَةَ عَشَرَ الْمُوَافِقِ لِمَا فِي كِتَابِهِمْ (وَيَزْدَادَ الَّذِينَ آمَنُوا) مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ (إِيمَانًا) تَصْدِيقًا لِمُوَافَقَةِ مَا أَتَى بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِمَا فِي كِتَابِهِمْ (وَلَا يَرْتَابَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ وَالْمُؤْمِنُونَ) مِنْ غَيْرِهِمْ فِي عَدَدِ الْمَلَائِكَةِ (وَلِيَقُولَ الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ مَرَضٌ) شَكٌّ بِالْمَدِينَةِ (وَالْكَافِرُونَ) بِمَكَّةَ (مَاذَا أَرَادَ اللهُ بِهٰذَا) الْعَدَدِ (مَثَلًا) سَمَّوْهُ لِغَرَابَتِهِ بِذٰلِكَ وَأُعْرِبَ حَالًا (كَذٰلِكَ) أَيْ مِثْلَ إِضْلَالِ مُنْكِرِ هٰذَا الْعَدَدِ وَهُدَى مُصَدِّقِهِ (يُضِلُّ اللهُ مَنْ يَشَاءُ وَيَهْدِي مَنْ يَشَاءُ وَمَا يَعْلَمُ جُنُودَ رَبِّكَ) أَيِ الْمَلَائِكَةَ فِي قُوَّتِهِمْ وَأَعْوَانِهِمْ (إِلَّا هُوَ وَمَا هِيَ) اي سقر (إلا ذكرى للبشر)

**ترجمه:** شروع په نوم د الله پاک چه ډير مهربانه او هميشه مهربانه دي شروع کوم! اې کپړه اغوستونکيه نبي ﷺ (مدثر) په اصل کښ متدثر وو، تاء په دال کښ مدغم کړې شوه، يعنی د نزول وحی په وخت په خپل ځان باندې کپړه اچونکيه! اودريږه او اهل مکه د اور نه اوېروه که ايمان نه راوړی او د خپل رب لوئی بيان کړه د مشرکانو د شرك کولو نه ئې لوئی بيان کړه او خپلې جامې د نجاست نه پاکې ساته يا هغه اوچتې ساته، د عربو د متکبرينو په زمکه د جامو راښکلو خلاف، ځکه چه ډير کرته په جامه نجاست اولګی، او بتان پرېږده د (رجز) تفسير رسول الله ﷺ په بتانو سره کړې دې يعنی د بتانو په ترك قائم اوسيږه، او د احسان کولو سره د زيات اخستلو خواهش مه کوه دا په رفع سره حال دې د زيات طلب کولو دپاره چاته يو څيز مه ورکوه (دا حکم) د رسول الله ﷺ سره خاص دې ځکه چه رسول الله ﷺ په اجمل اداب او اشرف اخلاق باندې مامور دې، او د خپل رب دپاره په اوامر او نواهی باندې صبر کوه چه کله په شپيلۍ کښ پوکې اوهلې شی (او هغه ښکر دې دا به دويمه نفخه وی

نو هغه د يو كلو ورځ به ډيره سخته ورځ وي ﴿ يومئذ ﴾ د خپل ماقبل ﴿ ذلك ﴾ مبتداء نه بدل دي او د غير متمكن طرف ته د اضافت د وجې نه مبني دي، او د مبتداء خبر ﴿ يوم عسير ﴾ دي او په ﴿ اذا ﴾ كښې عامل هغه څيز دي په كوم باندې چه جمله جزائيه دلالت كوي او ‹مدلول لهذا الأمر› دي چه په كافرو باندې به اسانه نه وي په دې كښې په دې خبره باندې دلالت دې چه هغه د مومن دپاره اسان دې يعني هغه ورځ به د خپل عسرت باوجود د مومنانو دپاره عسير نه وي. ما او هغه چه ما يواځې پيدا كړې دې پريږده ﴿ ومن خلقت ﴾ ددې عطف د ﴿ ذرني ﴾ په معفول باندې دې يا مفعول معه دې، ﴿ وحيدا ﴾ دا د ﴿ من ﴾ نه يا د ﴿ من ﴾ طرف ته د واپس كيدونكې ضمير نه حال دې ﴿ اى خلقته ﴾ وحيدًا په معنى د منفردا دې يعني بغير د اهل او مال نه مې پيدا كړې دې، او هغه وليد بن مغيره مخزومي دې، او ما هغه ته ډير مال وركړې دې كوم چه په پټو، څاروو او مال تجارت باندې مشتمل دې او هر وخت حاضر لس يا ددې نه زيات ځامن مې هم وركړې دى كوم چه په محفلونو كښې حاضر وي او د هغوى شهادت اوريدلې شي او ما هغه ته په ژوند، عمر او اولاد كښې فراخي وركړې ده او بيا هم هغه غواړي چه زه هغه ته نور زيات وركړم! هر گز به داسې نه كيږي زه به ددې نه زيات ورنكړم هغه زمونږ د آيتونو قران كريم دشمن دې زه به هغه نزدې د عذاب په يو لوئې مشقت كښې واچوم يا به ئې د اور په غر باندې اوخيژوم چه په هغې باندې به هغه هميشه خيژي هغه د غور او فكر كولو نه پس يو تجويز(سوچ) اوكړو د هغه دپاره دې هلاكت وي په هغه دې لعنت او عذاب دې دا څنگه تجويز ئې اوكړو؟ يعني دا څنگه تجويز ئې اوكړو؟ هغه دې بيا تباه شي دا څنگه تجويز ئې اوكړو؟ بيا هغه د خپل قوم طرف ته اوكتل يا ئې سوچ اوكړو چه په څه طريقه په دې كښې عيب راوباسي بيا هغه څله جوړه كړه او د خبرې دپاره ئې څله راتوله كړه ‹بيا› ئې نوره څله جوړه كړه او ورانه ئې كړه او بيا هغه د ايمان نه شاته لاړو او د نبي ﷺ د اتباع نه ئې تكبر اوكړو بيا هغه خبره اوكړه نو هغه اووئيل چه دا خو د مخكښې نه راروان جادو دې او دا خو صرف انساني كلام دې لكه چه هغوى اووئيل چه هغه ته څوك انسان ښودنه كوي نزدې ده چه زه به هغه لره جهنم ته داخل كړم او تاته څه پته ده چه جهنم څه څيز دې؟ ابهام د جهنم د تعظيم شان دپاره دې، د غوښې، رگونو او پټو نه نه څه باقي پاتې كوي او نه ئې پريږدي مگر دا چه هغه سوزوي بيا هغه په سابقه حالت باندې شي او هغه څرمنه سوزوي يعني ظاهري څرمن سيزي او په هغه باندې نولس نگران ملائک مقرر دي يو كافر اووې كوم چه طاقتور او سخت پهلوان وو چه د اولسو دپاره به زه خانله كافي شم او په دوه كښې به تاسو زما مدد اوكړئ او مونږ د دوزخ نگرانان صرف ملائک مقرر كړې دي يعني دوى د هغوى د مقابلې طاقت نه لري څنگه چه د دوى خيال دې او مونږ د ملائكو ذكر شوې تعداد د كفارو د ازميښت دپاره مقرر كړې دې په داسې طريقه چه هغوى اووئيل چه د ملائكو تعداد نولس ولې دې؟ چه په اهل كتاب باندې

کوم چه یهود دی د ملائکو د تعداد نولس کیدو کښې د رسول الله ﷺ صداقت ښکاره شی ځکه چه دا تعداد د هغه تعداد مطابق دې کوم چه د هغوی په کتاب کښې دې او ددې دپاره چه په اهل کتابو کښې د مومنانو ایمان د هغه تعداد سره کوم چه رسول الله ﷺ بیان فرمائیلې دې د هغه تعداد د مطابق کیدو د وجې نه کوم چه د هغوی په کتاب کښې دې نور هم زیات شی. او مومنان او اهل کتاب وغیره شک اونکړی، او د مدینې هغه خلق د چا په زړونو کښې چه مرض شك دې او د مکې کافر اوائی چه ددې تعداد په بیانولو کښې د الله پاک مقصد څه دې؟ (د دې تعداد بیان) د غرابت د وجې نه ددې نوم مثل کیخودلې شوې دې ﴿مثلا﴾ د حال کیدو د وجې نه منصوب دې او دغه شان یعنی ددې عدد د منکر او ددې د تصدیق کونکی په شان الله پاک چه چا لره اوغواړی گمراه کوی او چاته چه اوغواړی هدایت کوی او ستا د رب د ملائکو د لښکر تعداد د هغه نه علاوه چاته هم نه دې معلوم د هغوی په تعداد او قوت کښې او دا دوزخ خو د بنی ادام دپاره سراسر نصیحت دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

قوله: ﴿ یاایها المدثر ﴾ (المدثر) لابس الدثار، وهو ما فوق الشعار، شعار هغه کپړې ته وائی کومه چه د بدن سره متصل وی لکه بنین وغیره او دثار هغه کپړه ده کومه چه د شعار دپاسه اچولې شی لکه څادر، چوغه، کوټ وغیره.

قوله: ﴿ قم ﴾ د ﴿ قم ﴾ معنی د خوب د ځائې نه د پاسیدو هم ده، او د یو کار د شروع کولو هم ده ﴿ یقال قمت بکذا ﴾ یعنی ما فلانې کار شروع کړو.

قوله: ﴿ والرجز ﴾ د راء په ضمې او کسرې سره (راء دسین نه بدل راغلې ده، په اصل کښې (رجس) وو په معنی د ناپاکئ، گندگئ، بت او گناه وغیره لکه چه د الله پاك په قول (فاجتنبوا الرجس من الاوثان)

قوله: ﴿ بدل مما قبله ﴾ یعنی ﴿ یومئذ ﴾ د ﴿ ذلك ﴾ اسم اشاره نه بدل دې.

قوله: ﴿ المبتدا ﴾ دا په ﴿ مما قبله ﴾ کښې د ﴿ ما ﴾ بیان دې یعنی ﴿ یومئذ ﴾ د ﴿ ذلك ﴾ نه بدل دې کوم چه مبتدا ده.

قوله: ﴿ بنی لاضافته الی غیر متمکن ﴾ یعنی ﴿ یوم ﴾ مبنی دې غیر متمکن یعنی د ﴿ اذ ﴾ ظرف ته د مضاف کیدو د وجې نه، د ﴿ یومئذ ﴾ تنوین د جمله محذوف په عوض کښې دې (ای یوم اذ نقر فی الناقور)

قوله: ﴿ والعامل فی اذا، ما دلت علیه الجملة ﴾ یعنی په ﴿ اذا نقر فی الناقور ﴾ کښې د ﴿ اذا ﴾ عامل هغه فعل محذوف دې په کوم باندې چه جمله جزائیه یعنی ﴿ فذلك یوم عسیر ﴾ دلالت کوی او هغه عامل ﴿ اشتد الامر ﴾ دې، د عبارت تقدیر داسې دې ﴿ اشتد الامر اذا نقر فی الناقور ﴾

قوله: ﴿ عطف على المفعول ﴾ يعنى د ﴿ ذرني ﴾ په باء باندې، يا مفعول معه دې يعنى په ﴿ ومن خلقت ﴾ كښې واؤ په معنى د مع دې.
قوله: ﴿ او من ضميره المحذوف ﴾ يعنى ﴿ وحيدا ﴾ يا خو د ﴿ من ﴾ نه حال دې يا د ﴿ خلقت ﴾ د ضمير محذوف نه حال دې ځكه چه په اصل كښې ﴿ خلقته ﴾ دې.
قوله: ﴿ لاتبقى ولاتذر ﴾ د دواړو جملو مفهوم يو دې دا عطف د تاكيد دپاره دې.
قوله: ﴿ من غيرهم ﴾ د دې اضافي مقصد، د تكرار اعتراض لره دفع كول دى.
اعتراض: ﴿ ويزداد الذين آمنوا ﴾ نه په اهل كتابو كښې مومنان مراد دى او د ﴿ ولا يرتاب الذين اوتو الكتاب ﴾ نه مراد هغه اهل كتاب دى چا چه ايمان نه دې راوړې او د ﴿ والمومنون ﴾ نه بيا هغه اهل كتاب مراد دى چه د هغوى بيان په شروع كښې شوې دې لهذا دا تكرار دې؟ ﴿ من غيرهم ﴾ وئيلو سره ئې دا اعتراض دفع كړو، د دفع خلاصه دا ده چه د اول نه مومنان اهل كتاب مراد دى او د ثانى ﴿ المومنون ﴾ نه غير اهل كتاب مراد دى.
قوله: ﴿ بالمدينة ﴾ اى كائنا بالمدينة. دا حال دې، د مدينې د تخصيص د وجې نه ځكه چه نفاق په مدينه منوره كښې وو، په مكه كښې نفاق نه وو.
قوله: ﴿ وهدى ﴾ د ها فتحه او د دال سكون، هم دغه شان د ها ضمه او دال فتحه دواړه جائز دى. (صاوى)

**[اياتونه: ٣٢ - ٥٦]**

﴿كلا﴾ استفتاح بمعنى الا ﴿والقمر﴾ ﴿والليل إذ﴾ بفتح الذال ﴿دبر﴾ جاء بعد النهار وفي قراءة إذ أَدْبَرَ بِسُكُونِ الذَّالِ بَعْدَهَا هَمْزَةٌ أَيْ مَضَى ﴿وَالصُّبْحِ إِذَا أَسْفَرَ﴾ ظَهَرَ ﴿إِنَّهَا﴾ أَيْ سَقَرُ ﴿لَإِحْدَى الْكُبَرِ﴾ الْبَلَايَا الْعِظَامِ ﴿نَذِيرًا﴾ حَالٌ مِنْ إِحْدَى وَذُكِّرَ لِأَنَّهَا بِمَعْنَى العذاب ﴿للبشر﴾ ﴿لِمَنْ شَاءَ مِنْكُمْ﴾ بَدَلٌ مِنَ الْبَشَرِ ﴿أَنْ يَتَقَدَّمَ﴾ إِلَى الْخَيْرِ أَوِ الْجَنَّةِ بِالْإِيمَانِ ﴿أَوْ يَتَأَخَّرَ﴾ إِلَى الشَّرِّ أَوِ النَّارِ بِالْكُفْرِ ﴿كُلُّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ رَهِينَةٌ﴾ مَرْهُونَةٌ مَأْخُوذَةٌ بِعَمَلِهَا فِي النَّارِ ﴿إِلَّا أَصْحَابَ الْيَمِينِ﴾ وَهُمُ الْمُؤْمِنُونَ فَنَاجُونَ مِنْهَا كائنون ﴿فِي جَنَّاتٍ يَتَسَاءَلُونَ﴾ بَيْنَهُمْ ﴿عَنِ الْمُجْرِمِينَ﴾ وَحَالِهِمْ وَيَقُولُونَ لَهُمْ بَعْدَ إِخْرَاجِ الموحدين من النار ﴿ما سلككم﴾ ادخلكم ﴿في سقر قالوا لم نك من المصلين﴾ ﴿ولم نك نطعم المسكين﴾ ﴿وكنا نخوض﴾ في الباطل ﴿مع الخائضين﴾ ﴿وَكُنَّا نُكَذِّبُ بِيَوْمِ الدِّينِ﴾ الْبَعْثِ وَالْجَزَاءِ ﴿حَتَّى أَتَانَا الْيَقِينُ﴾ الْمَوْتُ ﴿فَمَا تَنْفَعُهُمْ شَفَاعَةُ الشَّافِعِينَ﴾ مِنَ الْمَلَائِكَةِ وَالْأَنْبِيَاءِ وَالصَّالِحِينَ وَالْمَعْنَى لَا شَفَاعَةَ لَهُمْ ﴿فَمَا﴾ مُبْتَدَأٌ ﴿لَهُمْ﴾ خَبَرُهُ مُتَعَلِّقٌ بِمَحْذُوفٍ انْتَقَلَ ضَمِيرُهُ إِلَيْهِ ﴿عَنِ التَّذْكِرَةِ مُعْرِضِينَ﴾ حَالٌ مِنَ الضَّمِيرِ وَالْمَعْنَى أَيُّ شَيْءٍ حَصَلَ لَهُمْ فِي إِعْرَاضِهِمْ عَنِ الِاتِّعَاظِ ﴿كَأَنَّهُمْ حُمُرٌ مُسْتَنْفِرَةٌ﴾ وَحْشِيَّةٌ ﴿فَرَّتْ مِنْ قَسْوَرَةٍ﴾ أَسَدٍ أَيْ هَرَبَتْ مِنْهُ اشد الهرب ﴿بَلْ يُرِيدُ كُلُّ امْرِئٍ مِنْهُمْ أَنْ يُؤْتَى صُحُفًا مُنَشَّرَةً﴾ أَيْ مِنَ اللَّهِ تَعَالَى بِاتِّبَاعِ النَّبِيِّ كَمَا قَالُوا لَنْ نُؤْمِنَ لَكَ حَتَّى تُنَزِّلَ

عَلَيْنَا كِتَابًا نَقْرَؤُهُ ﴿كَلَّا﴾ رَدْع عَمَّا أَرَادُوهُ ﴿بَلْ لَا يَخَافُونَ الْآخِرَةَ﴾ أَيْ عَذَابَهَا ﴿كَلَّا﴾ اسْتِفْتَاح ﴿إِنَّهُ﴾ أَيْ الْقُرْآن ﴿تَذْكِرَةٌ﴾ عِظَة ﴿فَمَنْ شَاءَ ذَكَرَهُ﴾ قَرَأَهُ فَاتَّعَظَ بِهِ ﴿وَمَا يَذْكُرُونَ﴾ بِالْيَاءِ وَالتَّاءِ ﴿إِلَّا أَنْ يَشَاءَ اللَّهُ هُوَ أَهْلُ التَّقْوَى﴾ بِأَنْ يُتَّقَى ﴿وَأَهْلُ الْمَغْفِرَةِ﴾ بان يغفر لمن اتقاه

ترجمه: هرگز داسې نه ده! قسم دې په سپوږمۍ او په شپې کله چه هغه په شا شی (کلا) د استفتاح دپاره په معنی د (الا) دې (اذا) د ذال په فتحې سره (دبر) په معنی د (جاء بعد النهار) او په يو قراءت کښې (اذا دبر) د ذال په سکون سره، ددې نه روستو همزه په معنی د (مضی) يعنی لاړو، او قسم دې په سحر چه کله روښانه شی چه يقينا دوزخ د ډيرو لويو افتونو نه يو دې يعنی د لويو مصيبتونو نه يو مصيبت دې، د بنی ادم دپاره ويرونکې (نذيرا) د (احدى) نه حال دې (نذيرا) دلته مذکر راوړلې شوې دې ځکه چه (سقر) د عذاب په معنی دې د هر هغه چا دپاره کوم چه په تاسو کښې د ايمان په ذريعه د خير يا جنت طرف ته وړاندې کيږی يا (لمن شاء) د (البشر) نه بدل دې (د هغه سړی دپاره هم) چه هغه د نار طرف ته د کفر په ذريعه شاته کيږی، هر سړې د خپلو اعمال (کفريه) په وجه په دوزخ کښې ګانړه ماخوذ دې خو د ښی لاس والا چه هغه مومنان دی او هغوی به د جهنم نه خلاصې بيامومی چه هغوی به په جنتونو کښې وی او خپل مينځ کښې به د مجرمانو او د هغوی د حال په باره کښې تپوس کوی او موحدين به د دوزخ نه وتلو سره د مجرمانو نه تپوس کوی چه تاسو دوزخ ته څه څيز داخل کړئ؟ هغوی به جواب ورکړی چه نه خو مونږ مونځ کولو او نه مو مسکينانو ته خوراک ورکولو او مونږ به هم (د باطل) په مشغلو کښې پاتې کيدونکو سره د باطل په مشغله کښې پاتې کيدلو او مونږ يوم بعث او د جزاء ورځ دروغژنه ګنړله تردې چه په مونږ باندې مرګ راغلو تردې چه هغوی ته به د شفاعت کونکو يعنی ملائکو او انبياؤ او صالحينو شفاعت هيڅ فائده ورنکړی مطلب دا چه د هغوی دپاره به هيڅ قسم شفاعت نه وی نو په هغوی څه شوې دی؟ (ما) مبتداء ده او (لهم) ئې خبر دې محذوف د (حصل) سره متعلق دې، د کوم طرف ته چه د خبر ضمير راجع دې چه د نصيحت نه مخ اړوی (معرضين) د (لهم) د ضمير نه حال دې، مطلب دا دې چه د نصيحت نه اعراض کولو سره هغوی ته څه حاصل شو؟ ګويا چه هغوی وحشی خره دی کوم چه د زمری نه په تيزۍ سره تختی بلکه په هغوی کښې هر يو سړې غواړی چه هغه ته د اتباع نبی په سلسله کښې د الله پاک د طرف نه ښکاره کتابونه ورکړې شی لکه چه هغوی به وئيل چه مونږ به هرګز په تاسو ايمان نه راوړو، ترڅو پورې چه په مونږ باندې کتاب نه وی نازل کړې شوې کوم چه مونږ اولولو داسې هرګز نه کيږی (کلا) حرف ردع دې د هغه څيز د انکار دپاره د کوم چه هغوی اراده کړې ده بلکه حقيقت دا دې چه دا خلق د آخرت يعنی د هغې د عذاب نه نه ويريږی هرګز داسې نه ده! (کلا) دپاره د استفتاح دې هم دا قران کريم نصيحت دې پس څوک چه غواړی

نصیحت دې حاصل کړي چه دا اولولي او ددې نه نصیحت حاصل کړي او دا خلق د الله پاك د ارادې نه بغير نصيحت نه شي حاصلولې هم هغه ددې لائق دې چه د هغه نه اوويريږي او هغه ددې لائق دې چه بخښنه اوکړي يعنې څوك چه د هغه نه ويريږي هغه لره معاف کړي.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

قوله: ﴿ كلا استفتاح بمعنى الا ﴾ (كلا) حرف ردع دې د هغه چا دپاره زجر او توبيخ دې کوم چه سقر (دوزخ) لره د لويو مصيبتونو نه نه منی، واو قسميه جاره دې او ﴿ القمر ﴾ مجرور دې دواړه د ﴿ اقسم ﴾ محذوف سره متعلق دی ﴿ انها لاحدى الكبر ﴾ مقسم عليه دې او (كبر) د ﴿ كبرى ﴾ جمع ده، (اعراب القران للدرويش) درويش وئيلې دی چه علامه جلال الدين محلي رحمه الله چه دا فرمائيلې دی چه (كلا) استفتاح په معنی د ﴿ الا ﴾ دې، ددې هيڅ معنی نشته.

قوله: ﴿ اذ أدبر ﴾ په دې کښې دوه قراءتونه دی. ١: ﴿ اذا دبر ﴾ د دال په فتحې سره. ٢: ﴿ اذ ادبر ﴾: دال په سکون سره، بعض وائی چه دواړه په يو معنی دی بعض وائی چه ﴿ دبر ﴾ په معنی د (جاء) دې او ﴿ ادبر ﴾ په معنی د (مضى) دې، مفسر علام هم دې طرف ته تلې دې.

قوله: ﴿ ذكرلانها بمعنى العذاب ﴾ دا د يو سوال مقدر جواب دې.

سوال: سوال دا دې چه ﴿ احدى الكبر ﴾ ذوالحال مونث دې او نذيرا حال مذكر دې حال دا چه په حال او ذوالحال کښې مطابقت ضروری دې؟

جواب: د جواب حاصل دا دې چه د ﴿ احدى الكبر ﴾ نه مراد عذاب دې کوم چه مذکر دې، لهذا اوس هيڅ اعتراض نشته.

قوله: ﴿ كائنون ﴾ كائنون محذوف منلو سره مفسر علام اشاره اوکړه چه ﴿ في جنت ﴾ د ﴿ يتساءلون ﴾ محذوف سره متعلق دې او هغه جمله کيدو سره د مبتدا محذوف خبر دې او مبتدا د خبر سره جمله مستانفه ده کوم چه د سوال مقدر جواب دې ﴿ ما شانهم وحالهم ﴾ سوال دې او ﴿ هم في جنات ﴾ جواب دې.

قوله: ﴿ عن المجرمين اى عن حال المجرمين ﴾ مضاف محذوف دې.

قوله: ﴿ والمعنى لاشفاعة لهم ﴾ دا هم په اصل کښې د يو سوال جواب دې.

سوال: سوال دا دې چه ﴿ فما تنفعهم شفاعة الشافعين ﴾ نه معلوميږی چه د هغوی دپاره به شفاعت کونکی خو وی خو هغوی ته به هيڅ قسم فائده نه رسوی، حال دا چه حقيقت دا دې چه د هغوی دپاره به څوك شفاعت کونکی نه وی؟

جواب: د جواب خلاصه دا ده چه نفی په قيد او مقيد دواړو باندې داخله ده يعنی نه به شفاعت وی او نه به د شفاعت فائده وی.

قوله: (معرضين) دا د (لهم) د ضمير نه حال دي او د (ما لهم عن التذكرة معرضين) مطلب دا دي (اي اي شيء حصل لهم في اعراضهم عن الاتعاظ) يعنى هغوى ته د نصيحت نه د اعراض كولو نه څه حاصل شو؟ (ما) په معنى د مبتدا دي (لهم)، د (حصل) محذوف سره متعلق دي او د مبتداء خبر دي، او د (حصل) محذوف ضمير مستتر، د خبر يعنى د جار مجرور (لهم) طرف ته راجع دي.

قوله: (وحشية) دا د (مستنفرة) تفسير نه دي بلكه (حمار وحشي) ديو خاص قسم خر نوم دي لهذا مناسب به دا وه چه دا ئې د (حمر) نه پس متصلا راوړې وې، او (حمر وحشية مستنفرة) ئې فرمائيلې وې.

## [٧٥] سورة القيامة

### سورة القيامة مكية اربعون آية

سورة قيامه مكى دي، څلويښت آيتونه دي.

### [اياتونه: ١-٢٠]

بسم الله الرحمن الرحيم (لا) زائدة في الموضعين (أقسم بيوم القيامة ولا أقسم بالنفس اللوامة) التي تلوم نفسها وإن اجتهدت في الإحسان وجواب القسم محذوف أي لتبعثن دل عليه (أيحسب الإنسان) أي الكافر (ألن نجمع عظامه) للبعث والإحياء (بلى) نجمعها (قادرين) مع جمعها (على أن نسوي بنانه) وهو الأصابع أي نعيد عظامها كما كانت مع صغرها فكيف بالكبيرة (بل يريد الإنسان ليفجر) اللام زائدة ونصبه بأن مقدرة أي أن يكذب (أمامه) أي يوم القيامة دل عليه (يسأل أيان) متى (يوم القيامة) سؤال استهزاء وتكذيب (فإذا برق البصر) بكسر الراء وفتحها دهش وتحير لما رأى مما كان يكذبه (وخسف القمر) أظلم وذهب ضوؤه (وجمع الشمس والقمر) فطلعا من المغرب أو ذهب ضوؤهما وذلك في يوم القيامة (يقول الإنسان يومئذ أين المفر) الفرار (كلا) ردع عن طلب الفرار (لا وزر) لا ملجأ يتحصن به (إلى ربك يومئذ المستقر) مستقر الخلائق فيحاسبون ويجازون (ينبؤا الإنسان يومئذ بما قدم وأخر) بأول عمله وآخره (بل الإنسان على نفسه بصيرة) شاهد تنطق جوارحه بعمله والهاء للمبالغة فلا بد من جزائه (ولو ألقى معاذيره) جمع معذرة على غير قياس أي لو جاء بكل معذرة ما قبلت منه قال تعالى لنبيه (لا تحرك به) بالقرآن قبل فراغ جبريل منه (لسانك لتعجل به) خوف أن ينفلت منك (إن علينا جمعه) في صدرك (وقرآنه) قراءتك إياه أي جريانه على لسانك (فإذا قرأناه) عليك بقراءة جبريل (فاتبع قرآنه) استمع قراءته فكان صلى الله عليه وسلم يستمع ثم يقرؤه (ثم إن علينا بيانه) بالتفهيم لك والمناسبة بين هذه الآية وما قبلها أن تلك تضمنت الإعراض عن آيات الله وهذه تضمنت المبادرة إليها بحفظها (كلا) استفتاح بمعنى ألا (بل تحبون العاجلة) الدنيا بالياء والتاء في الفعلين (وتذرون الآخرة) فلا تعملون لها (وجوه يومئذ) أي في يوم

الْقِيَامَة ﴿نَّاضِرَةٌ﴾ حسنة مضيئة ﴿إِلَىٰ رَبِّهَا نَاظِرَةٌ﴾ أَيْ يَرَوْنَ اللّٰه سُبْحَانه وَتَعَالٰى فِي الْآخِرَة ﴿وَوُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ بَاسِرَةٌ﴾ كَالِحَة شَدِيدَة الْعُبُوس ﴿تَظُنُّ﴾ تُوقِن ﴿أَن يُفْعَلَ بِهَا فَاقِرَةٌ﴾ دَاهِيَة عَظِيمَة تكسر فقار الظهر ﴿كَلَّا﴾ بمعنى إلا ﴿إِذَا بَلَغَتِ﴾ النفس ﴿التَّرَاقِيَ﴾ عِظَام الْحَلْق ﴿وَقِيلَ﴾ قال من حوله ﴿مَنْ رَاقٍ﴾ يرقيه ليشفى ﴿وَظَنَّ﴾ أَيْقَنَ مَنْ بَلَغَتْ نَفْسه ذَلِكَ ﴿أَنَّهُ الْفِرَاقُ﴾ فراق الدنيا ﴿وَالْتَفَّتِ السَّاقُ بِالسَّاقِ﴾ أيْ إحْدَى سَاقَيْهِ بِالْأُخْرَى عِنْد الْمَوْت أَوْ الْتَفَّتْ شِدَّة فِرَاق الدُّنْيَا بِشِدَّةِ إِقْبَال الْآخِرَة ﴿إِلَىٰ رَبِّكَ يَوْمَئِذٍ الْمَسَاقُ﴾ أَيْ السَّوْق وَهَذَا يَدُلّ عَلَى الْعَامِل فِي إِذَا وَالْمَعْنَى إِذَا بَلَغَتْ النَّفْس الْحُلْقُوم تُسَاق إِلَى حُكْم رَبّهَا

**ترجمه:** په نوم د الله پاک چه ډير مهربانه او هميشه مهربانه دې شروع کوم! په ﴿ لا اقسم ﴾ کښې لا زائده ده زه قسم کوم د قيامت په ورځ، او قسم کوم په ډير ملامته کونکي نفس باندې کوم چه خپل ځان لره ملامته کوي، سره ددې چه هغه په نيکئ کولو کښې کوشش کوي، او د قسم جواب محذوف دې، يعني تاسو به ضرور ژوندي کولې شئ (په دې حذف باندې ﴿ ايحسب الانسان الخ ﴾ دلالت کوي، آيا د کافر انسان دا خيال دې چه مونږ به د بعث او حيات دپاره د هغه هډوکي نه راجمع کوو؟ ولې نه! مونږ به هغه ضرور راجمع کوو مونږ د هغې په جمع کولو سره سره په دې هم قادر يو چه دهغه بند بند برابر کړو ﴿ بنانه ﴾ ګوتې، يعني مونږ به د هغوی د هډوکي د وړوکوالي باوجود په هغه حالت باندې راواپس کړو په کوم حالت باندې چه هغه وو، نو د لويو هډوکو په باره کښې څه خيال دې؟ بلکه انسان دا غواړي چه راتلونکي قيامت دروغژن اوګڼړي لام زائد دې او ددې نصب د ان مقدره د وجې نه دې په دې باندې ﴿ يسئل ايان يوم القيامة ﴾ دلالت کوي، هغه د استهزاء او تکذيب په طور تپوس کوي چه قيامت به کله راځي؟ پس چه کله سترګې اوبريښي (يعني سترګې ئې حيراني شي) ﴿ برق ﴾ د راء په کسرې او فتحې سره دې، يعني مدهوش اوحيرانې شي، چه کله دې هغه کارونهويني د کومو چه به ئې تکذيب کولو، او سپوږمئ بې نوره شي (يعني) تياره شي، او رڼا ئې ختمه شي او نمر او سپوږمئ راجمع کړې شي په داسې طريقه چه دواړه د مغرب نه راوخيژي يا به د دواړو رڼا ختمه شي، او داسې به د قيامت په ورځ باندې وي، هغه ورځ به انسان وائي چه نن د تيختې ځائې چرته دې؟ هر ګز نشته! دا د تيختې ترديد دې هيڅ د پناه ځائې نشته يعني داسې هيڅ ځائې نشته چه چرته هغوی پناه اونيسي نن خو ستا د رب طرف ته ځائ د تيختې دې يعني د مخلوق پناه اوتهکانه ده لهذا د هغوی حساب به اخستلې شي او هغوی ته به بدله ورکولې شي هغه انسان به د وړاندې روستو ټولو اعمالو نه خبر کړې شي يعني د هغه اول عمل به هم او اخر عمل به هم بيان کړې شي بلکه انسان به خپله په خپل نفس باندې شاهد وي د هغه اندامونه به د هغه د اعمالو ګواهي ورکړي ﴿ بصيرة ﴾ کښې ﴿ ها ﴾ د مبالغې دپاره دې لهذا ددې جزاء واقع کيدل ضروري دي، اګرچه هر څومره حيلې او بهانې پيش کړي ﴿ معاذيره ﴾ د ﴿ معذرة ﴾ غير

قياسي جمع ده، يعنى اگرچه هر قسم حيلې او بهانې پيش كړى خو هغه به ترې نه شى قبلولې، الله پاك فرمائى مونږ به هغه ته ضرور خبر وركوو (اې نبى) ته د قران كريم د لوستلو دپاره د جبرائيل عليه السلام د دې د قراءت نه فارغيدونه مخكښې خپلې ژبې ته د قران كريم د هيريدلو د ويرې نه تندى كولو سره حركت مه وركوه، ستا په سينه كښې د دې جمع كول او په تا باندې د دې بيانول زمونږ په ذمه دى يعنى د دې ستا په ژبه جارى كول (زمونږ په ذمه ذى) پس د جبرائيل عليه السلام د قراءت په ذريعه چه ته اورې نو ته هغه قراءت اوره پس رسول الله ﷺ به اول هغه واوريدو بيا به ئې هغه لوستلو، بيا ستا د پوهې دپاره د دې واضح كول هم زمونږ په ذمه دى د دې آيت او سابقه آيت ترمينځه مناسبت دا دې چه هغه آيت د الله پاك د آيتونو نه اعراض (په مضمون) باندې مشتمل دې او دا آيت د الله پاك د آيتونو د حفاظت طرف ته د سبقت كولو په مضمون باندې مشتمل دې (گويا په دواړو آيتونو كښې د تضاد تعلق دې لهذا دواړه آيتونه بې ربطه نه دى) هرگز داسې نه ده ﴿كلا﴾ په معنى د ﴿الا﴾ د استفتاح دپاره دې بلكه تاسو دنيا محبوبه ساتئ په دواړو فعلونو كښې په ياء او تاء سره او اخرت پريږدئ چه د هغې دپاره عمل نه كوئ په هغه ورځ يعنى د قيامت په ورځ به ډير مخونه تروتازه او ښكلې وى خپل رب ته به گورى يعنى په آخرت كښې به الله پاك ته گورى او ډير مخونه به په هغه ورځ باندې بدرنگ وى (خفه او پريشانه به وى) هغوى به يقين كوى چه هغوى سره به ملا ماتونكې معامله كولې شى يعنى داسې مصيبت به پرې نازلولې شى چه ملا به ئې ماته كړى هرگز داسې نه ده ﴿كلا﴾ په معنى د ﴿الا﴾ دې چه كله روح د حلق هډوكى (مرى) ته راورسيږى او او به وئيلې شى او ويونكى به هغه وى چه (د مړ كيدونكى) په خوا كښې به وى آيا څوك دم كونكې شته؟ چه په هغه باندې دم اوكړى، چه دې روغ شى او د كوم سړى روح چه حلق ته رسيدلې وى هغه به يقين اوكړى چه دا دنيا لره د ترك كولو وخت دې او د مرگ په وخت باندې به پنډئ خپل مينځ كښې پيوست (يوځائې) شى يا به د دنيا پريخودلو تكليف د آخرت ته د داخليدو (راتلو) تكليف سره يوځائې شى نن ستا د رب طرف ته تلل دى ﴿مساق﴾ په معنى د ﴿سوق﴾ دې او دا په ﴿اذا﴾ كښې په عامل باندې دلالت كوى يعنى دا دى، چه كله روح حلق ته اورسيږى نو هغه به د هغه د رب د حكم طرف ته بوتلې شى.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** ﴿لا اقسم﴾ ﴿لا﴾ په قسم باندې زائده ده، او دا په كلام عرب كښې په نظم او نثر كښې كثير الوقوع دې، قال امرؤ القيس ؎

**ولا وابيك ابنة العامرى لايدعى القوم انى افر**

او وئيلې شوې دى چه ﴿لا﴾ نافيه ده، مقصود دعوى د خصم لره رد كول دى، دلته ﴿لا﴾ په منكرين بعث باندې د رد كولو دپاره راوړلې شوې دې، گويا داسې وئيلې شوې دى:

(ليس الامر كما زعموا انهم الخ) او لکه چه ونيلې شی (لاوالله)
قوله: (ان لهم) ان مخففه عن الثقيله دې ددې اسم ضمير شان محذوف دې، اې (انه) او (لن) او ددې مدخول د (ان) خبر دې، (ان) د خپل اسم او خبر سره جمله د (حسب) د دوو مفعولو قائم مقام دې، (الن) کښې همزه او د لام ترمينځه نون نشته، دا رسم د مصحف په طور دې.
قوله: (قادرين) دا د فعل مقدر (نجمعها) د ضميرِ فاعل نه حال دې.
قوله: (برق البصر) په برق کښې دوه قراءتونه دي، د راء په کسرې سره او فتحې سره، د کسرې په صورت کښې (تحير) او د (بريښيدو) په معنى دې او د فتحې په صورت کښې د (دهش) په معنى دې، مفسر علام دواړو معنو طرف ته اشاره کړې ده.
قوله: (يقول الانسان) دا د (اذا) جواب دې.
قوله: (بل الانسان على نفسه بصيرة) (بل الانسان) مبتدا ده (بصيرة) ئې خبر، دلته د انسان نه مراد جوارح (اعضاء) دی کوم چه جمع دې لهذا مطابقت موجود دې، مفسر علام (تنطق جوارحه) ونيلو سره ددې جواب طرف ته اشاره اوکړه.
دويم جواب: د دويم جواب حاصل دا دې چه په (بصيرة) کښې تاء د مبالغې دپاره ده نه دتانيث دپاره، لهذا هيڅ قسم اعتراض نه پيدا کيږي.
قوله: (ما قبلت منه) مفسر علام ددې عبارت اضافه کولو سره اشاره اوکړه چه (ولو القى) کښې (لو) شرطيه دې او (ما قبلت) ئې جزاء مقدر ده.
قوله: (انه) اې النازل به.

[ايات توله: ۳۱-٤۰]

(فَلَا صَدَّقَ) الإنسان (وَلَا صَلَّى) اي لَمْ يُصَدِّق وَلَمْ يُصَلِّ (وَلَكِنْ كَذَّبَ) بالقرآن (وَتَوَلَّى) عَنِ الإيمان (ثُمَّ ذَهَبَ إِلَى أَهْلِهِ يَتَمَطَّى) يَتَبَخْتَر فِي مِشْيَتِه إعجابا (أَوْلَى لَكَ) فِيهِ الْتِفَات عَنِ الغَيبَة وَالْكَلِمَة اسم فِعْل وَاللَّام لِلتَّبيين اي وَلِيَك مَا تَكْرَه (فَأَوْلَى) اي فَهُوَ اوْلَى بِكَ مِنْ غَيرك (ثُمَّ أَوْلَى لَكَ فَأَوْلَى) تَأكِيد (أَيَحْسَبُ) يَظُنّ (الْإِنْسَانُ أَنْ يُتْرَكَ سُدًى) هَمَلا لَا يُكَلَّف بِالشَّرَائِع لا يَحْسَب ذلِكَ (أَلَمْ يَكُ) اي كَانَ (نُطْفَةً مِنْ مَنِيٍّ يُمْنَى) بِالْيَاء وَالتَّاء تُصَبّ فِي الرَّحِم (ثُمَّ كَانَ) المَنِيّ (عَلَقَةً فَخَلَقَ) اللهُ مِنْهَا الإنسان (فَسَوَّى) عدل اعضاءه (فَجَعَلَ مِنْهُ) مِنَ المَنِيّ الَّذِي صَارَ عَلَقَةً قِطعَة دَم ثُمَّ مُضغَة اي قِطعَة لَحْم (الزَّوْجَيْنِ) النَّوعَين (الذَّكَرَ وَالْأُنْثَى) يَجتَمِعَانِ تَارَةً وَيَنفَرِد كُلّ مِنهُمَا عَنِ الآخَر تَارَةً (أَلَيْسَ ذَلِكَ) الفَعَّال لِهذِهِ الأَشيَاء (بِقَادِرٍ عَلَى أَنْ يُحْيِيَ الْمَوْتَى) قَالَ صَلَّى الله عَلَيهِ وسلم بَلى

ترجمه: انسان نه خو تصديق اوکړو او نه ئې مونځ اوکړو، ليکن هغه د قران کريم تکذيب اوکړو او

د ایمان نه ئې مخ واړولو او په تکبر (ځان خوښوئ) سره کور والو ته لاړو، افسوس دې په تا باندې په دې کښې د غیبت نه (د حاضر طرف ته) الفتات دې او ﴿ويل﴾ کلمه اسم فعل ده او لام د تبیین دپاره دې یعنی کوم څیز چه ته ناخوښه ګڼړې هغه تاته راتلونکی دی افسوس دې په تا باندې، پس هغه اولی دې ستا دپاره یعنی هغه ستا دپاره د نورو په اعتبار سره غوره دې، بیا تباهی ده ستا دپاره او خرابی ده دا تاکید دې آیا د انسان دا خیال دې چه هغه به بې کاره پریخودلې شي؟ چه هغه به د (احکامو) او شرائع مکلف کولې نه شي، ایا هغه د منئ نطفه نه وه کومه چه غورځولې شي په یاء او تاء سره یعنی په رحم کښې غورځولې شي بیا هغه د منئ قطره د غوښې ټکړه شوه د هغې نه روستو الله پاک د هغې نه انسان پیدا کړو بیا ئې د هغه اندامونه برابر کړل بیا د هغه نطفې د منی نه چه د وینې ټکړه شوې وه مضغه یعنی د غوښې ټکړه شوه د مذکر او مونث جوړه پیدا کړه کله هلك او جینئ جمع شي کله دواړه جدا جدا وی، آیا د دې څیزونو کونکې په دې خبره قادر نه دې چه مړی دوباره ژوندی کړی؟ رسول الله ﷺ اوفرمائیل آو ولې نه دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** ﴿ واللام للتبيين ﴾ ﴿ اولى لك ﴾ کښې لام د مفعول د وضاحت دپاره زائد دې کوم چه په مفعول باندې داخل دې، څنګه چه ﴿ سقيالك ﴾ او ﴿ ردف لكم ﴾ کښې دی.

**قوله:** ﴿ وليك ما تكره ﴾ دا د معنی د فعل بیان دې یعنی څه چه ته ناخوښه ګڼړې هغه به تا باندې راځی.

**قوله:** ﴿ يمنى بالياء والتاء ﴾ که په یاء سره وی نو مرجع به ئې منی وی او که په تاء سره وی نو مرجع به ئې نطفه وی.

**[٧٧] سورة الانسان (الدهر)**

**سورة الانسان مكية احدى وثلثون آية**

سورۃ انسان مکی دې، یو دیرش آیتونه دی.

**[ایاتوله: ١ - ٢٢]**

---

بسم الله الرحمن الرحيم (هل) قد (أتى على الإنسان) آدم (حين من الدهر) اربعون سنة (لم يكن) فيه (شيئا مذكورا) كان فيه مصورا من طين لا يذكر او المراد بالإنسان الجنس وبالحين مدة الحمل (إنا خلقنا الإنسان) الجنس (من نطفة أمشاج) اخلاط اي من ماء الرجل وماء المرأة المختلطين الممتزجين (نبتليه) نختبره بالتكليف والجملة مستانفة او حال مقدرة اي مريدين ابتلاءه حين تأهله (فجعلناه) بسبب ذلك (سميعا بصيرا) (إنا هديناه السبيل) بينا له طريق الهدى ببعث الرسل (إما شاكرا) اي مؤمنا (وإما كفورا) حالان من المفعول اي بينا له في حال شكره او كفره المقدرة وإما لتفصيل الأحوال (إنا أعتدنا)

هيانا ﴿للكافرين سلاسل﴾ يسحبون بها في النار ﴿وأغلالا﴾ في أعناقهم تشد فيها السلاسل ﴿وسعيرا﴾ نارا مسعرة اي مهيجة يعذبون بها ﴿إن الأبرار﴾ جمع بر او بار وهم المطيعون ﴿يشربون من كأس﴾ هو إناء شرب الخمر وهي فيه والمراد من خمر تسمية للحال باسم المحل ومن للتبعيض ﴿كان مزاجها﴾ ما تمزج به ﴿كافورا﴾ ﴿عينا﴾ بدل من كافورا فيها رائحته ﴿يشرب بها﴾ منها ﴿عباد الله﴾ اولياؤه ﴿يفجرونها تفجيرا﴾ يقودونها حيث شاءوا من منازلهم ﴿يوفون بالنذر﴾ في طاعة الله ﴿ويخافون يوما كان شره مستطيرا﴾ منتشرا ﴿ويطعمون الطعام على حبه﴾ اي الطعام وشهوتهم له ﴿مسكينا﴾ فقيرا ﴿ويتيما﴾ لا اب له ﴿وأسيرا﴾ يعني المحبوس بحق ﴿إنما نطعمكم لوجه الله﴾ لطلب ثوابه ﴿لا نريد منكم جزاء ولا شكورا﴾ شكرا فيه علة الإطعام وهل تكلموا بذلك او علمه الله منهم فاثنى عليهم به قولان ﴿إنا نخاف من ربنا يوما عبوسا﴾ تكلح الوجوه فيه اي كريه المنظر لشدته ﴿قمطريرا﴾ شديدا في ذلك ﴿فوقاهم الله شر ذلك اليوم ولقاهم﴾ اعطاهم ﴿نضرة﴾ حسنا واضاءة في وجوههم ﴿وسرورا﴾ ﴿وجزاهم بما صبروا﴾ بصبرهم عن المعصية ﴿جنة﴾ ادخلوها ﴿وحريرا﴾ البسوه ﴿متكئين﴾ حال من مرفوع ادخلوها المقدر ﴿فيها على الأرائك﴾ السرر في الحجال ﴿لا يرون﴾ لا يجدون حال ثانية ﴿فيها شمسا ولا زمهريرا﴾ لا حرا ولا بردا وقيل الزمهرير القمر فهي مضيئة من غير شمس ولا قمر ﴿ودانية﴾ قريبة عطف على محل لا يرون اي غير رائين ﴿عليهم﴾ منهم ﴿ظلالها﴾ شجرها ﴿وذللت قطوفها تذليلا﴾ ادنيت ثمارها فينالها القائم والقاعد والمضطجع ﴿ويطاف عليهم﴾ فيها ﴿بآنية من فضة وأكواب﴾ اقداح بلا عرى ﴿كانت قواريرا﴾ ﴿قواريرا من فضة﴾ اي انها من فضة يرى باطنها من ظاهرها كالزجاج ﴿قدروها﴾ اي الطائفون ﴿تقديرا﴾ على قدر ري الشاربين من غير زيادة ولا نقص وذلك الذ الشراب ﴿ويسقون فيها كأسا﴾ خمرا ﴿كان مزاجها﴾ ما تمزج به ﴿زنجبيلا﴾ ﴿عينا﴾ بدل من زنجبيلا ﴿فيها تسمى سلسبيلا﴾ يعني أن ماءها كالزنجبيل الذى تستلذ به العرب سهل المساغ في الحلق ﴿ويطوف عليهم ولدان مخلدون﴾ بصفة الولدان لا يشيبون ﴿إذا رأيتهم حسبتهم﴾ لحسنهم وانتشارهم في الخدمة ﴿لؤلؤا منثورا﴾ من سلكه او من صدفه وهو احسن منه في غير ذلك ﴿وإذا رأيت ثم﴾ اي وجدت الرؤية منك في الجنة ﴿رأيت﴾ جواب إذا ﴿نعيما﴾ لا يوصف ﴿وملكا كبيرا﴾ واسعا لا غاية له ﴿عاليهم﴾ فوقهم فنصبه على الظرفية وهو خبر لمبتدأ بعد وفي قراءة بسكون الياء مبتدأ وما بعده خبر والضمير المتصل به للمعطوف عليهم ﴿ثياب سندس﴾ حرير ﴿خضر﴾ بالرفع ﴿وإستبرق﴾ بالجر ما غلظ من الديباج فهو البطائن والسندس الظهائر وفي قراءة عكس ما ذكر فيهما وفي اخرى برفعهما وفي اخرى بجرهما ﴿وحلوا أساور من فضة﴾ وفي موضع من ذهب للإيذان بانهم يحلون من النوعين معا ومفرقا ﴿وسقاهم ربهم شرابا طهورا﴾ مبالغة في طهارته ونظافته بخلاف خمر الدنيا ﴿إن هذا﴾ النعيم ﴿كان لكم جزاء وكان سعيكم مشكورا﴾

---

**ترجمه:** په نوم د الله پاک چه ډير مهربانه او هميشه مهربانه دي شروع کوم! بيشکه انسان (يعنی) ادم عليه السلام باندي په زمانه کښي داسي وخت خلويښت کاله هم تير شوي دي چه هغه هيڅ قابل ذکر

تميز نه وو (بلکه) هغه په دغه زمانه کښې يو ناقابل ذکر د خاورې جوړ وجود وو. يا د انسان نه جنس انسان مراد دې او د ﴿حين﴾ نه د حمل موده مراد ده. بيشکه مونږ جنس انسان لره د مخلوط نطفې نه چه د سړي او زنانه په اوبو باندې مشتمل ده پيدا کړو چه په هغه ازميښت اوکړو (يعنې) حال دا چه مونږ هغه اهل کړو او په هغه ازميښت کونکي وو په دې وجه مونږ هغه اورېدونکې او ليدونکې جوړ کړو (يعنې) رسول ليږلو سره مو هغه ته د هدايت لاره واضحه کړه اوس که هغه شکر گزار جوړيږي يا ناشکره دواړه د مفعول نه حال دې يعنې د هغه حالت شکر يا حالت کفر کښې کوم چه د هغه دپاره مقدر دې (يعنې) لاره نې واضحه کړه، او ﴿اما﴾ د حالاتو تفصيل دې، بيشکه مونږ د کفارو دپاره زنجيرونه چه د هغې په ذريعه به اور کښې راښکلې شي او طوقونه د هغوی په ستونو کښې چه په هغې کښې به زنځيرونه اچولې شي او لمبې وهونکې اور چه په هغې کښې به هغوی ته عذاب ورکولې شي تيار کړې دې، بيشکه نيکان خلق به د شرابو داسې جامونه څکي چه په هغې کښې به د کافورو گډون وی ﴿کاس﴾ د شرابو هغه پيالۍ ته وائي چه په هغې کښې شراب وی او د کاس نه مراد د جام شراب دی، يعنې محل ونيلو سره حال مراد دې، او ﴿من﴾ تبعيضيه دې، (کافور) يوه چينه ده چه د هغې نه به د الله پاک نيک بندگان د هغه اولياء څکي ﴿عينا﴾ د ﴿کافور﴾ نه بدل دې، هغه چينه چه په هغې کښې به د کافورو خوشبوئي وی او په خپلو کورونو کښې چه به چرته غواړي د هغې نه به نهرونه ويستلو سره هغه بوځي او د الله پاك په طاعت کښې چه کوم نذرونه پوره کوی او د هغه ورځې نه ويريږی چه د هغې بدی څلورو واړو طرفونو ته خورېدونکې ده او مسکين يعنې فقير ته او يتيم ته د چا چه پلار نه وی او قيدي ته چه (په هغه چاچه د چا په حق کښې گير وی) د هغه خوراک د خواهش باوجود په هغوی خوروی (حال دا چه هغوی وائي) مونږ خو ئې په تاسو د الله پاک د رضا دپاره يعنې د ثواب په نيت خوروو، نه مونږ ستاسو نه بدله غواړو او نه شکر گزاری، په دې کښې د خوراك ورکولو د علت بيان دې، برابره خبره ده که هغوی دا خبره کړې وی يا د هغوی په باره کښې د دې خبرې د علم کيدو د وجې نه الله پاك د هغوی تعريف کړې وی، دواړه اقوال شته، بيشکه مونږ د خپل رب نه دخفگان د ورځې نه چه په هغې کښې به مخونه بدرنگ شی ويريږو يعنې د هغه ورځې د انتهائي شدت د وجې نه به بدرنگ شی پس هغوی الله پاک د هغه ورځې د بدئ نه بچ کړل او هغوی ته ئې تازگی (يعنې) حسن د مخ ښکلا او خوشحالي ورکړه او د هغوی د گناه نه ځان ساتلو باندې صبر کولو په بدله کښې ئ هغوی ته جنت کښې داخله او د ريښم جامه ورکړه، دا خلق به په تختونو باندې په خيمو کښې تکيه لگولو سره ناست وی ﴿متکئين﴾ د ﴿ادخلوها﴾ مقدر د ضميرِ مرفوع نه حال دې نه به هلته د نمر گرمی وينی او نه يخنی يعنې نه به گرمی وی او نه به يخنی وی. ﴿لايرون﴾ د ﴿لاجدون﴾ په معنی حال ثانيه دې، ونيلې شوې دی چه د ﴿زمهرير﴾ نه مراد قمر دې (جنت) به بغير د شمس وقمر

نه (د عرش په نور باندې منور وي) او په هغوی باندې به د جنت د اونو سوري رابنکته شوې وي د ﴿ دانية ﴾ عطف د ﴿ لا يرون ﴾ په محل باندې دې اې ﴿لا يرون﴾ د ﴿ غير رائين ﴾ په معنی دې او د هغه اونو د ميو غونچکونه به لاندې رازورند وي، يعني د هغه اونو ميوې به نږدې کړې شوې وي، چه هغه به په ولاړه، ناسته او ملاسته حاصلولې شي، او په جنت کښې به په هغوی باندې د سپينو زرو دلوخو او د داسې جامونو دور کولې شي کوم چه به د شيشې وي ﴿ اکواب ﴾ داسې جام چه په هغې کښې به لاسکې نه وي او شيشه به هم د سپينو زرو يعني هغه جامونه به د داسې سپينو زرو وي چه د هغې دننه حصه به د بهر نه په نظر راځي، د شيشې په شان او دور چلونکې به هغې جامونو لره په يو اندازسره د څکونکو د تندې مطابق بغير د زيادت او کمی نه ډکوي او دا (طريقه) لذيذ ترين طريقه ده او په هغوی باندې به داسې جامونه څکولې شي چه هغې کښې به د زنجبيل ګډون کړې شوې وي يعني مکس (ګډ شوې) به وي د جنت د يوې ولې نه چه د هغې نوم سلسبيل دې ﴿ عينا ﴾ د ﴿ زنجبيلا ﴾ نه بدل دې يعني د هغې اوبه به د زنجبيل په شان وي چه د هغې نه عرب لذت حاصلوی چه د هغې د حلق نه تيريدل به اسان وي او هغوی ته به داسې ځوانان هلکان ځي راځي کوم چه به هميشه هلکان وي يعني هميشه به ځوانان وي او کله به نه بوډاګان کيږي او کله چه ته هغوی وينې نو خيال به اوکړې چه هغه د اميل يا د صدف خورې ورې ملغلرې دی او په اميل يا صدف کښې د ښکلې معلوميدو د وجې نه .او ته چه هلته هر چرته نظر اچوی يعني چه کله هم ستا د طرف نه روئيت موندلې شي نو ته به صرف نعمتونه چه د هغې صفت نه شي بيانيدلې او لوئې ملک به وينی داسې وسيع چه د هغې به هيڅ انتهاء نه وي هغوی به د ښنو ريښمو پيرې او نرئ جامې اغوستلې وی ﴿ عاليهم ﴾ د ظرفيت د وجې نه منصوب دې او ددې مابعد د مبتداء دپاره خبر دې، او په يو قراءت کښې د ياء په سکون سره مبتداء ده او مابعد ئې خبر دې، او د ﴿ عاليهم ﴾ ضمير متصل معطوف عليه (يعني) د جنتيانو طرف ته راجع دې، ﴿ خضر ﴾ په رفع سره او ﴿ استبرق ﴾ په جر سره، د ريښمو پيرې کپړې ته وائی او هغه به استر وي او ﴿ سندس ﴾ ابرا (پورته پاسنئ کپړه) او په يو قراءت کښې د ذکر شوی قراءت عکس دې او په يو دريم قراءت کښې د د دواړو رفع ده او په يو قراءت کښې د دواړو جر دې او هغوی ته به د سپينو زرو بنګړی اچولې شی او يو بل ځائې دې چه هغوی ته به سپينو زرو کړئ اچولې شی، دا ددې خبرې طرف ته اشاره ده چه هغوی ته به دواړه قسم کالی يو ځائ يا جدا طريقې سره اچولې شی او هغوی باندې به د هغوی رب پاک صفا شراب څکوی او هغه شراب به په خپل طهارت او نظافت کښې انتهاء ته رسيدلې وي په خلاف د دنيا د شرابو (هغوی ته به وئيلې شي) دا نعمتونه ستاسو دپاره د بدلې په طور دی او ستاسو د کوشش قدر کړې شوې دې.

.....

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** ﴿ هل قد ﴾ په دې كښې اشاره ده چه ﴿ هل ﴾ په معنى د ﴿ قد ﴾ دې خكه چه د استفهام معنى د الله پاك دپاره محال ده، يا استفهام تقريرى كيدې شى.

**قوله:** ﴿ على الانسان ﴾ ادم ... دلته ئ د انسان تفسير په ادم عليه السلام سره كړې دې او د روستو راتلونكى انسان تفسير ئ په جنس ادم سره كړې دې، حال دا چه قاعده دا ده چه ﴿ اذا اعيدت المعرفة كانت عين الاولى ﴾ چه كله د معرفې اعاده اوكړې شى نو عين اولى مراد وى ددې مقتضى ده چه په دواړو ځايونو كښې د انسان تفسير په آدم سره اوكړې شى

**جواب:** دا قاعده اكثريه ده كليه نه ده.

**سويم جواب:** ﴿ خلقنا الانسان ﴾ كښې مضاف محذوف دې، اى خلقنا ذرية الانسان.

**قوله:** ﴿ نبتليه ﴾ جمله مستانفه ده يا د ﴿ خلقنا ﴾ د ضمير فاعل نه حال مقدره دې، اى خلقناه حال كونه مريدين ابتلاءه خكه چه ابتلاء بالتكاليف د سميع او بصير كيدو نه پس وى نه د هغې نه مخكښې.

**قوله:** ﴿ انا هديناه ﴾ دلته د هدايت نه مراد دلالت او رهنمائى ده مفسر علام په ﴿ بينا ﴾ وئيلو سره دې طرف ته اشاره كړې ده.

**قوله:** ﴿ كاس ﴾ جام د شرابو دلته ﴿ كاس ﴾ ذكر كولو سره مجازا شراب مراد دى يعنى ظرف وئيلو سره مظروف مراد دې او كه د ﴿ كاس ﴾ نه ظرف مراد واخستلې شى نو ﴿ من ﴾ به ابتدائيه منلې شى يعنى د شرابو څكلو ابتداء به د جام شراب نه وى، ظرف ذكر كولو سره به مظروف مراد كولو كښې د تكلف وجه دا ده چه ﴿ كان مزاجها كافورا ﴾ جمله د ﴿ كاس ﴾ صفت واقع كيږى، ترجمه به دا وى: جنتى به د داسې جام نه څكل كوى چه په هغې كښې به د كافور ګډون وى، حال دا چه په جام كښې د كافور د ګډون هيڅ مطلب نشته، البته په شرابو كښې ګډون كيدې شى هم ددې شبهې د دفع كولو دپاره ئې دا اوئيل چه د ﴿ كاس ﴾ نه مراد ﴿ ما فى الكاس ﴾ دې.

**قوله:** ﴿ يشرب بها ﴾ په باء كښې څو وجوه دى. ١: باء زائده اى يشربها په دې صورت كښې به ﴿ يشرب ﴾ متعدى بنفسه وى. ٢: په معنى د ﴿ من ﴾ مفسر علام هم دا معنى مراد كړې ده.
٣: باء حاليه، اى ممزوجة بها ٤: ﴿ يشربون ﴾ د ﴿ يلتذون ﴾ معنى لره متضمن وى، اى يلتذون بها شاربين.

**قوله:** ﴿ المحبوس بحق ﴾ ددې مطلب دا دې چه په هغه باندې د چا حق واجب دې مثلا قرض وغيره كوم چه هغه نه شى ادا كولې، قرض خواه د خپل حق په عوض كښې هغه قيد كړې وى، خكه چه قرض غوښتونكى ته دا حق دې چه مقروض لره د قرض نه ادا كولو په صورت

کښې قيد کړی او که يو سړې په باطله او غلطه طريقه باندې قيد وی نو هغه ته خوراك ورکول به په طريق اولی د ثواب کار وی.

**قوله:** ﴿ انما نطعمكم لوجه الله ﴾ الخ... ﴿ قائلين ﴾ ددې نه مخکښې محذوف دې.

**قوله:** ﴿ شكورا ﴾ د ﴿ شكرا ﴾ په معنی کښې دې د فواصل د رعايت د وجې نه ﴿ شكورا ﴾ راوړلې شو، په يوه نسخه کښې ﴿ فيه علة الاطعام ﴾ دې، ددې مطلب دا دې چه ﴿ انما نطعمكم لوجه الله ﴾ دا د اطعام علت دې، او په بعض نسخو کښې د علة په ځائې ﴿ على ﴾ دې ددې مطلب دا دې چه مونږ تاسو ته لوجه الله خوراك درکوو په دې خوراك مونږ د شکر طالبان نه يو، خو په دې صورت کښې د ﴿ فيه ﴾ ضرورت نشته.

**قوله:** ﴿ وهل تكلموا بذلك اوعلمه الله منهم ﴾ ددې عبارت مقصد دا بيانول دی چه په ذکر شوې جمله کښې دوه احتمالات دی اول دا چه دا مقوله وی د خوراك ورکونکو او هغوی د مقال په ژبه دا خبرې کړې وی، او دويم احتمال دا دې چه دا مقوله د الله پاك وی، او الله پاك ته چونکه د هر شخص د نيت او ارادې علم دې او د الله پاك په علم کښې دا خبره وه چه هغوی خوراك لوجه الله ورکړې دې د څه صله يا شکريه طالب کيدو سره ئې نه دې ورکړې نو الله پاك د هغوی تعريف کولو سره دا جمله ارشاد اوفرمائيله.

**قوله:** ﴿ يوما عبوسا قمطريرا ﴾ ﴿ عبوس ﴾ د صفت مشبه صيغه ده مخ بدرنگونکې، تندې تريو کونکې، ﴿ قمطريرا ﴾ د مصيبت او غم اوږده ورځ (يعنی د قيامت ورځ) ته وئيلې شی، په اصل محاوره کښې ﴿ قمطرت الناقة ﴾ هغه وخت وئيلې شی چه کله اوښه لکۍ نيغه کړی، پوزه او خُله ورانولو سره بدرنگ شکل اختيار کړی، هم په دې وجه هر مکروه او تکليف ورکونکې ورځ ته ﴿ قمطرير ﴾ وئيلې شی، اصل ماده ئې ﴿ قطر ﴾ ده او ميم زائد دې (لغات القران) ﴿ يوما ﴾ موصوف دې، ﴿ عبوسا ﴾ ئې صفت اول دې او ﴿ قمطريرا ﴾ صفت ثانی دې جمله د ﴿ نخاف ﴾ ظرف دې.

**قوله:** ﴿ فی ذلك ﴾ ای فی العبوس

**قوله:** ﴿ لايرون ﴾ دا هم د ﴿ ادخلوا ﴾ د ضمير نه حال ثانيه دې.

**قوله:** ﴿ زمهريرا ﴾ د زمهرير معنی د سختې يخنۍ ده د فلاسفه په اصطلاح کښې زمهرير په فضاء کښې د انتهائی سختې يخې طبقې نوم دې د هغې نه علاوه په هوا کښې کره ناری او کره هوائی هم دې.

**قوله:** ﴿ على محل لايرون ﴾ د حال کيدو د وجې نه محلا منصوب دې هم په دې وجه ﴿ دانية ﴾ هم منصوب دې.

**قوله:** ﴿ عليهم بمنهم ﴾ د ﴿ على ﴾ تفسير په ﴿ من ﴾ سره کولو کښې اشاره ده چه ﴿ على ﴾ په معنی

د (من) دې ځکه چه د (دانية) صله من مستعمل ده نه (على).

**قوله:** (ظهورها) د (ظلالها) تفسير په (ظهورها) سره كولو كښې مقصد د يو اعتراض دفع كول دي، اعتراض دا دې چه د جنت سورې به په هغوی رابنکته شوې وی، حال دا چه سورې د نمر د وجې نه پيدا كيږی او په جنت كښې به نمر او سپوږمۍ نه وی نو سورې ځنګه كيدې شی؟ ددې جواب دا دې چه د (ظلال) نه مراد نفس شجر دې، يعنی د اونې څانګې به رابنکته شوې وی.

**قوله:** (احسن منه في غيرذلك) ددې عبارت د اضافې مقصد د يو سوال جواب وركول دي.

**سوال:** د جنت غلمانو ته د خورو ورو ملغلرو سره تشبيه وركولو كښې څه حكمت دې؟ حال دا چه عام طور تشبيه د منظوم او د پيللې شوې ملغلرو سره وركولې شی؟

**جواب:** د جنتی د غلمانو په حسن او انتشار كښې د غير مثقب ملغلرو سره تشبيه وركول مقصود دې، ځكه چه په ملغلره كښې د سورى كيدو نه پس چمك او صفائی كميږی كوم چه يو قسم نقص دې او غير مثقب ملغلرې خورې وی، يعنی ملغلره چه كله په صدف او سلك كښې نه وی نو هغه په حسن او خوبۍ كښې بهتر وی د هغه ملغلرې نه كومه چه په صدف او سلك كښې وی.

**قوله:** (اذارايت) (اى وجدت) د (رايت) تفسير په (وجدت) سره كولو كښې ئې اشاره اوكړه چه (رايت) دلته لازم دې هم په دې وجه د دې مفعول حذف كړې شوې دې.

**[اياتونه: ٢٣ - ٣١]**

{إِنَّا نَحْنُ} تأكيد لِاسْمِ إنَّ أوْ فَصْل {نزلنا عليك القرآن تنزيلا} خبر إن اي فصلناه ولم ننزله جملة واحدة {فاصبر لحكم ربك} عليك بتبليغ رسالته {ولا تطع منهم} اي الكفار {آثما أو كفورا} اي عتبة بن ربيعة والوليد بن المغيرة قالا للنبي صلى الله عليه وسلم ارجع عن هذا الأمر ويجوز أن يراد كل آثم وكافر أي لا تطع أحدهما أيا كان فيما دعاك إليه من إثم او كفر {واذكر اسم ربك} في الصلاة {بكرة وأصيلا} يعني الفجر والظهر والعصر {ومن الليل فاسجد له} يعني المغرب والعشاء {وسبحه ليلا طويلا} صل التطوع فيه كما تقدم من ثلثيه او نصفه او ثلثه {إن هؤلاء يحبون العاجلة} الدنيا {ويذرون وراءهم يوما ثقيلا} شديدا اي يوم القيامة لا يعملون له {نحن خلقناهم وشددنا} قوينا {أسرهم} اعضاءهم ومفاصلهم {وإذا شئنا بدلنا} جعلنا {أمثالهم} في الخلقة بدلا منهم بان نهلكهم {تبديلا} تأكيد ووقعت إذا موقع إن نحو إن يشأ يذهبكم لأنه تعالى لم يشأ ذلك وإذا لما يقع {إن هذه} السورة {تذكرة} عظة للخلق {فمن شاء اتخذ إلى ربه سبيلا} طريقا بالطاعة {وما تشاءون} بالتاء والياء اتخاذ السبيل بالطاعة {إلا أن يشاء الله} ذلك {إن الله كان عليما} بخلقه {حكيما} في فعله {يدخل من يشاء في رحمته} جنته وهم المؤمنون {والظالمين} ناصبه فعل مقدر اي اعد يفسره {أعد لهم عذابا أليما} مؤلما وهم الكافرون

ترجمه: بیشکه مونږ قران کریم په تا باندې په تدریج سره نازل کړې دې (نحن) د ان د اسم تاکید دې یا د فصل دپاره دې (نزلنا علیك القرآن) د ان خبر دې یعنی مونږ قران کریم لږ لږ نازل کړې دې پس ته د خپل رب په حکم باندې دا پیغام رسولو سره قائم او سیږه او په دې کفارو کښې د هیڅ گناهگار او ناشکره خبره مه منه یعنی د عتبه بن ربیعه او ولید بن مغیره چا چه نبی ﷺ ته ونیلي وو چه ته ددې خپل دعوت نه قلار شه او دا هم صحیح ده چه هر گناهگار او کافر مراد وی یعنی په هغوی کښې ته د چا هم خبره مه منه دهغه گناه او د کفر په معامله کښې د کوم طرف ته چه هغوی تاته دعوت درکوی، او د خپل رب د نوم په مانځه کښې سحر او ماښام ذکر کوه یعنی سحر، ماسپخین او مازیگر کښې اود شپې په وختونو کښې هغه ته سجده کوه یعنی د ماښام او ماسخوتن مونځ کوه، او د شپې ډیره حصه د هغه پاکی بیانوه (یعنی) د شپې نفل مونځ کوه لکه چه مخکښې تیر شوې دی، دوه حصې یا نیمائی شپه یا یوه حصه د شپې، بیشکه دا خلق دنیا غوره کوی او د ځانه روستو یوه درنه ورځ پریږدی سخته ورځ، یعنی د قیامت ورځ، چه د هغې دپاره عمل نه کوی، مونږ دوی پیدا کړې دی او د دوی اندامونه او جوړونه مو مضبوط کړې دی او مونږ چه کله اوغواړو د هغوی په بدله کښې به په تخلیق کښې د دوی په شان (نور خلق) راولو په داسې طریقه چه دوی به هلاك کړو (تبدیلا) تاکید دې، او (لا) د (ان) په ځائې واقع دې لکه (ان یشأ یذهبکم) کښې خو الله پاك داسې او نه غوښتل، او (اذا) د یقینی الوقوع دپاره استعمالیږی بیشکه دا سورة د مخلوق دپاره نصیحت دې پس چه څوك غواړی د طاعت په ذریعه دې د خپل رب لاره اختیار کړی او تاسو به د طاعت په ذریعه لاره نه غواړئ مگر دا چه الله پاك اوغواړی (تشاؤن) په تاء او یاء سره بیشکه الله پاك د خپل مخلوق او د خپل فعل په باره کښې علم او حکمت والا دې څوك چه اوغواړی په خپل رحمت کښې ئې داخل کړی او هغه مومنان دی او د ظالمانو دپاره هغه دردونکې عذاب تیار کړې دې او هغوی کفار دی د (الظالمین) ناصب فعل مقدر دې او هغه (اعد) دې چه د هغې تفسیر (اعدلهم) کوی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

قوله: (تاکید لاسم ان اوفصل) د دې عبارت مقصد د (انا نحن نزلنا القرآن) د دوؤ ترکیبونو طرف ته اشاره ده، ۱: (نحن) د (انا) د ضمیر تاکید دې او تاکید د موکد سره مبتدا او (نزلنا) ئې خبر دې. ۲: (انا) مبتدا اول (نحن) ضمیر فصل مبتداء ثانی، (نزلنا) خبر د مبتداء ثانی، هغه د خپل خبر سره د خبر د مبتداء اول

قوله: (ان هولاء یحبون العاجلة) دا د ماقبل مذکور امر او نهی علت دې، یعنی ته د ذکر شوو خلقو نه اعراض او د الله پاك ذکر ته توجه په دې وجه کوه چه ددې خلقو د الله پاك طرف ته توجه نه کولو وجه دنیا طلبی او د آخرت نه بې ویرې کیدل دی.

قوله: ﴿ ويذرون وراءهم يوما ثقيلا ﴾ ﴿ وراءهم ﴾ د ﴿ يوما ﴾ نه حال مقدم دې حکه چه په اصل کښې ﴿ وراءهم ﴾ د ﴿ يوما ﴾ نکره صفت دې، ﴿ يوما ثقيلا ﴾ موصوف صفت د ﴿ يذرون ﴾ دپاره مفعول دې.

قوله: ﴿ وقعت اذا موقعه ان ﴾ دده عبارت مقصد د يو سوال جواب ورکول دی.

سوال: ﴿ اذا ﴾ د امور محققه دپاره استعماليږی او دا تبديلی نه ده واقع شوې خکه چه الله پاك اونه غوبښتل نو دا امر محتمل شو نه محقق او د امور محتمله دپاره ﴿ ان ﴾ راخی نه ﴿ اذا ﴾؟

جواب: ﴿ اذا ﴾ په معنی د ﴿ ان ﴾ دې مجازا.

قوله: ذلك اى اتخاذ السبيل

قوله: ناصبه فعل مقدر. دا د ما اضمر عامله على شريطة التفسير قبيل نه دې يعنی الظالمين د فعل مقدر د وجې نه منصوب دې اى اعد الظالمين اعد لهم

## [٧٧] سورة المرسلات

## سورة المرسلات مكية خمسون آية

سورة مرسلات مکی دې، پنځوس آيتونه دی.

### [ايا تونه: ١ - ٤٠]

بسم الله الرحمن الرحيم ﴿وَالْمُرْسَلَاتِ عُرْفًا﴾ أَيِ الرِّيَاحِ مُتَتَابِعَةً كَعُرْفِ الْفَرَسِ يَتْلُو بَعْضُهُ بَعْضًا وَنَصْبُهُ عَلَى الْحَالِ ﴿فَالْعَاصِفَاتِ عَصْفًا﴾ الرِّيَاحِ الشَّدِيدَةِ ﴿وَالنَّاشِرَاتِ نَشْرًا﴾ الرِّيَاحِ تَنْشُرُ الْمَطَرَ ﴿فَالْفَارِقَاتِ فَرْقًا﴾ أَيْ آيَاتِ الْقُرْآنِ تُفَرِّقُ بَيْنَ الْحَقِّ وَالْبَاطِلِ وَالْحَلَالِ وَالْحَرَامِ ﴿فَالْمُلْقِيَاتِ ذِكْرًا﴾ أَيِ الْمَلَائِكَةِ تَنْزِلُ بِالْوَحْيِ إِلَى الْأَنْبِيَاءِ وَالرُّسُلِ يُلْقُونَ الْوَحْيَ إِلَى الْأُمَمِ ﴿عُذْرًا أَوْ نُذْرًا﴾ أَيْ لِلْإِعْذَارِ وَالْإِنْذَارِ مِنَ اللهِ تَعَالَى وَفِي قِرَاءَةٍ بِضَمِّ ذَالِ نُذُرًا وَقُرِئَ بِضَمِّ ذَالِ عُذُرًا ﴿إِنَّمَا تُوعَدُونَ﴾ أَيْ يَا كُفَّارَ مَكَّةَ مِنَ الْبَعْثِ وَالْعَذَابِ ﴿لَوَاقِعٌ﴾ كَائِنٌ لَا مَحَالَةَ ﴿فَإِذَا النُّجُومُ طُمِسَتْ﴾ مُحِيَ نُورُهَا ﴿وَإِذَا السَّمَاءُ فُرِجَتْ﴾ شُقَّتْ ﴿وَإِذَا الْجِبَالُ نُسِفَتْ﴾ فُتِّتَتْ وَسُيِّرَتْ ﴿وَإِذَا الرُّسُلُ أُقِّتَتْ﴾ بِالْوَاوِ وَبِالْهَمْزَةِ بَدَلًا مِنْهَا أَيْ جُمِعَتْ لِوَقْتٍ ﴿لِأَيِّ يَوْمٍ﴾ لِيَوْمٍ عَظِيمٍ ﴿أُجِّلَتْ﴾ لِلشَّهَادَةِ عَلَى أُمَمِهِمْ بِالتَّبْلِيغِ ﴿لِيَوْمِ الْفَصْلِ﴾ بَيْنَ الْخَلْقِ وَيُؤْخَذُ مِنْهُ جَوَابُ إِذَا أَيْ وَقَعَ الْفَصْلُ بَيْنَ الْخَلَائِقِ ﴿وَمَا أَدْرَاكَ مَا يَوْمُ الْفَصْلِ﴾ تَهْوِيلٌ لِشَأْنِهِ ﴿وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِلْمُكَذِّبِينَ﴾ هَذَا وَعِيدٌ لَهُمْ ﴿أَلَمْ نُهْلِكِ الْأَوَّلِينَ﴾ بِتَكْذِيبِهِمْ أَيْ أَهْلَكْنَاهُمْ ﴿ثُمَّ نُتْبِعُهُمُ الْآخِرِينَ﴾ مِمَّنْ كَذَّبُوا كَكُفَّارِ مَكَّةَ فَنُهْلِكُهُمْ ﴿كَذَلِكَ﴾ مِثْلَ مَا فَعَلْنَا بِالْمُكَذِّبِينَ ﴿نَفْعَلُ بِالْمُجْرِمِينَ﴾ بِكُلِّ مَنْ أَجْرَمَ فِيمَا يُسْتَقْبَلُ فَنُهْلِكُهُمْ ﴿وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِلْمُكَذِّبِينَ﴾ تَأْكِيدٌ ﴿أَلَمْ نَخْلُقْكُمْ مِنْ مَاءٍ مَهِينٍ﴾ ضَعِيفٍ وَهُوَ الْمَنِيُّ ﴿فَجَعَلْنَاهُ فِي قَرَارٍ مَكِينٍ﴾ حَرِيزٍ وَهُوَ الرَّحِمُ ﴿إِلَى قَدَرٍ مَعْلُومٍ﴾ وَهُوَ وَقْتُ الْوِلَادَةِ ﴿فَقَدَرْنَا﴾ عَلَى ذَلِكَ ﴿فَنِعْمَ الْقَادِرُونَ﴾ نَحْنُ ﴿وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِلْمُكَذِّبِينَ. أَلَمْ نَجْعَلِ الْأَرْضَ كِفَاتًا﴾ مَصْدَرُ كَفَتَ بِمَعْنَى ضَمَّ أَيْ ضَامَّةً ﴿أَحْيَاءً﴾ عَلَى ظَهْرِهَا ﴿وَأَمْوَاتًا﴾ فِي بَطْنِهَا ﴿وَجَعَلْنَا فِيهَا رَوَاسِيَ شَامِخَاتٍ﴾

جِمَالًا مُرْتَفِعَات ﴿وَأَسْقَيْنَاكُم مَّاءً فُرَاتًا﴾ عذبا ﴿وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ﴾ وَيُقَال لِلْمُكَذِّبِينَ يَوْم الْقِيَامَة ﴿انطَلِقُوا إِلَىٰ مَا كُنتُم بِهِ﴾ مِنَ الْعَذَاب ﴿تُكَذِّبُونَ﴾ ﴿انطَلِقُوا إِلَىٰ ظِلٍّ ذِي ثَلَاثِ شُعَبٍ﴾ هُوَ دُخَان جَهَنَّم إِذَا ارْتَفَعَ افْتَرَقَ ثَلَاث فِرَق لعظمه ﴿لَّا ظَلِيلٍ﴾ كَنِين يُظِلّهُمْ مِنْ حَرّ ذَلِكَ الْيَوْم ﴿وَلَا يُغْنِي﴾ يَرُدّ عَنْهُمْ شَيْئًا ﴿مِنَ اللَّهَبِ﴾ النار ﴿إِنَّهَا﴾ أَيْ النَّار ﴿تَرْمِي بِشَرَرٍ﴾ هُوَ مَا تَطَايَرَ مِنْهَا ﴿كَالْقَصْرِ﴾ مِنَ الْبِنَاء فِي عِظَمه وارتفاعه ﴿كَأَنَّهُ جِمَالَاتٌ﴾ جمع جمالت جَمْع جَمَل وَفِي قِرَاءَة جِمَالَت ﴿صُفْرٌ﴾ فِي هَيْئَتهَا وَلَوْنهَا وَفِي الْحَدِيث شِرَار النَّاس أَسْوَد كَالْقِير وَالْعَرَب تُسَمِّي سُود الْإِبِل صُفْرًا لِشَوْبِ سَوَادهَا بِصُفْرَة فَقِيلَ صُفْر فِي الْآيَة بِمَعْنَى سُود لِمَا ذُكِرَ وَقِيلَ لَا وَالشَّرَر جَمْع شرارة والقير القار ﴿ويل يومئذ للمكذبين﴾ ﴿هَٰذَا﴾ أَيْ يَوْم الْقِيَامَة ﴿يَوْمُ لَا يَنطِقُونَ﴾ فيه بشيء ﴿وَلَا يُؤْذَنُ لَهُمْ﴾ فِي الْعُذْر ﴿فَيَعْتَذِرُونَ﴾ عَطْف عَلَى يُؤْذَن مِنْ غَيْر تَسَبُّب عَنْهُ فَهُوَ دَاخِل فِي حَيِّز النَّفْي أَيْ لَا إِذْن فلا اعتذار ﴿ويل يومئذ للمكذبين﴾ ﴿هَٰذَا يَوْمُ الْفَصْلِ جَمَعْنَاكُمْ﴾ أَيُّهَا الْمُكَذِّبُونَ مِنْ هَذِهِ الْأُمَّة ﴿وَالْأَوَّلِينَ﴾ مِنَ الْمُكَذِّبِينَ قَبْلكُمْ فَتُحَاسَبُونَ وتعذبون جميعا ﴿فَإِن كَانَ لَكُمْ كَيْدٌ﴾ حِيلَة فِي دَفْع العذاب عنكم ﴿فَكِيدُونِ﴾ فافعلوها ﴿ويل يومئذ للمكذبين﴾

ترجمه: په نوم د الله پاک چه ډیر مهربانه او همیشه مهربانه دې شروع کوم، قسم دې په مسلسل الوتونکو هواګانو باندې یعنی په هغه هواګانو چه په تسلسل کښې د اس د سټ د ویښتو په شان دی، ﴿ عرفا ﴾ د حال کیدو د وجې نه منصوب دې، بیا قسم کوم په زور سره الوتونکو هواګانو باندې، یعنی په زور دارو هواګانو او قسم کوم په خورونکو هواګانو یعنی هغه هواګانې چه وریځې خوروی بیا قسم کوم په فرق کونکو آیتونو باندې یعنی په قرانی آیتونو کوم چه د حق او باطل او د حلال او حرام ترمینځه فرق کوی، بیا قسم کوم په هغه فرښتو چه د وحی القاء کوی یعنی قسم په هغه ملائکو چه په انبیاؤ ﷺ باندې وحی نازلوی یا په هغه رسولانو قسم کوم چه دا وحی امتونو ته رسوی، د الله پاک د طرف نه د توبې یا د ویرولو القاء کوی او په یو قرامت کښې ﴿ نذرا ﴾ د ذال په ضمیر سره ﴿ نذرا ﴾ راغلې دې، او ﴿ عذرا ﴾ هم د ذال په ضمې سره لوستلې شوې دې. اې د مکې کافرو! د کوم بعث چه تاسو سره وعده کولې شی هغه یقینا کیدونکې دې یعنی ضرور واقع کیدونکې دې چه کله ستوری بې نوره کړې شی یعنی نور به ترې ختم کړې شی او چه کله اسمان څیرې کړې شی او غرونه ماتولو سره والوځولې شی او چه کله رسولان په مقرره وخت باندې جمع کړې شی ﴿ وقتت ﴾ په واو سره او د واؤ په عوض کښې همزې سره، د کومې ورځې دپاره (به دوی تول) موخر کړې شی؟ په لویه ورځ کښې په امتونو باندې د تبلیغ (رسالت) د شهادت دپاره به موخر کړې شی، د مخلوق ترمینځه د فیصلې د ورځې دپاره (به موخر کړې شی) او د دې نه د ﴿ اذا ﴾ جواب اخذ کولې شی او هغه جواب ﴿ وقع الفصل بين الخلائق ﴾ دې او تاته څه معلومه ده چه د فیصلې ورځ څه ده؟ (ابهام) د هغه ورځې د سختۍ د بیانولو دپاره دې، په دغه ورځ باندې د تکذیب کونکو دپاره خرابی ده دا د هغوی

دپاره وعيد دي ايا مونږ مخكښې تير شوي خلق د هغوي د تكذيب د وجې نه هلاک کړي نه دي؟ يعني هغوي مو هلاك كړل بيا به مونږ د هغوي نه روستو په تكذيب كونكو كښې روستني راولو لكه كفار مكه چه هغوي مونږ هلاك كړل او مونږ هم دغه شان د تكذيب كونكو سره د كولو په شان د هر يو مجرم سره اوكړو يعني د هر هغه سړي سره كوم چه به په مستقبل كښې جرم كوي، هغه به هم هلاكوو، په دغه ورځ د تكذيب كونكو دپاره لويه تباهي ده دا تاكيد دې، ايا مونږ تاسو د سپكو اوبو نه چه هغه د منئ نطفه ده نه ئې پيدا كړي چه مونږ هغه (اوبه) د يو مقرر وخت دپاره په يو محفوظ ځائې كښې چه د مور رحم دې كيخودلې او هغه وخت د ولادت دې غرض مونږ ئې منصوبه بندي اوكړه (يعني پلاننګ) او مونږ څه ښه منصوبه بندي كونكي يو! د تكذيب كونكو دپاره په دغه ورځ باندې تباهي ده، آيا مونږ زمكه د ژوندو دپاره په خپله شا باندې او مړو لره په خپله خيټه كښې ځائې وركونكې نه ده جوړه كړې؟ (كفاتا) د (كفت) مصدر دې (كفت) بمعنى (ضم) يعني راټولونكې او مونږ په دې كښې لوړ لوړ غرونه كيخودل او مونږ په تاسو باندې خوږې اوبه اوڅكولې، په هغه ورځ د تكذيب كونكو دپاره تباهي ده! د قيامت په ورځ باندې به تكذيب كونكو ته اوئيلې شي چه تاسو د هغه عذاب طرف ته روان شئ د كوم چه به تاسو تكذيب كولو، د يو سوري طرف ته روان شئ چه د هغې درې څانګې دي او هغه د دوزخ لوږې دې، چه كله هغه اوچت شي نو د عظمت د وجې نه په ئې درې څانګې وي چه په هغې كښې نه يخ سورې شته چه د هغه ورځې د ګرمئ نه هغوي بچ كړي او نه به هغوي لره د اور د شغلو نه (لږ هم) بچ كړي هغه اور به داسې سپرغئ اولي شرر هغه سپرغئ ته وائي كومه چه د اور نه الوځي د محل په شان يعني هغه سپرغئ به په عظمت او اوچت والي كښې د كورونو په شان وي ګويا هغه تور تور اوښان دي په هيئت كښې او په رنګ كښې، جمالات د جمالة جمع ده او جمالة د جمل جمع ده او په يو قراءت كښې (جمالة) دې، او په حديث كښې دي چه د اور شعلې به د تاركولو په شان تورې وي، عرب تورو اوښانو ته (صفر) وائي د هغې په تور والي كښې د زيړ والي د يوځائې كيدو د وجې نه لهذا وئيلې شوې دي چه په آيت كريمه كښې (صفر) په معنى د (سود) دې، د ذكر شوي قول د وجې نه او وئيلې شوي دي چه (صفر) په معنى د (سود) نه دې او (شرر) د (شررة) جمع ده او د (شرار) او (شرارة) جمع ده او د (قير) معنى د قار (تاركولو) ده، په دغه ورځ د تكذيب كونكو دپاره تباهي ده دا دقيامت ورځ داسې ده چه دوي به په دغه ورځ هيڅ هم نه شي وئيلې اونه به دوي ته د عذر كولو اجازت وي چه په هغې كښې دوي معذرت اوكړي، دا په يؤذن باندې عطف دې، دمعطوف عليه نه د تسبب نه بغير، لهذا دا د نفي لاندې داخل دې أي لااذن فلااعتذار يعني هر كله چه اجازت نشته نو معذرت هم نشته. دا د فيصلې ورځ ده اې په دې امت كښې تكذيب كونكو! مونږ تاسو او ستاسو نه مخكښې تكذيب كونكي راجمع كړل لهذا ستاسو ټولو نه به حساب اخستلې شي او

عذاب به درکولی شی. که تاسو سره تاسو نه د عذاب دفع کولو څه تدبیر وی نو اوکړئ، په
هغه ورځ د تکذیب کونکو دپاره لویه خرابی ده.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

قوله: ﴿ والمرسلات عرفا ﴾ الله پاك په پنځو صفاتو قسم کړي دي، چه د هغې موصوف محذوف دي، بعض حضرات ټول موصوفات ﴿ الرياح ﴾ (هواګاني) محذوف مني او بعضې په ټولو کښې ملائکه موصوفات محذوف او بعض مختلف يعنى د بعض ملائك او د بعض ﴿ الرياح ﴾

قوله: ﴿ عرفا ﴾ ﴿ عرف ﴾ د اس د سټ ویښتو ته ونیلې شی، بیا د حقیقت عرفیه په طور د تسلسل او تتابع په معنی کښې استعمال شو.

قوله: ﴿ انما توعدون ﴾ دا جواب قسم دي او ﴿ ما ﴾ بمعنى ﴿ الذى ﴾ دي او عائد محذوف دي ﴿ اى توعدونه ﴾

قوله: ﴿ ویوخذ منه جواب اذا منه اى من یوم الفصل ﴾ يعنى د ﴿ اذا ﴾ شرط محذوف دي کوم چه د ﴿ لیوم الفصل ﴾ نه مفهوم دي ﴿ اى وقع الفصل بين الخلائق ﴾

قوله: ﴿ ویل یومئذ للمکذبین ﴾ ﴿ ویل ﴾ په اصل کښې مصدر دي کوم چه د خپل فعل قائم مقام دي خو په ثبات او دوام باندې د دلالت کولو دپاره د نصب نه رفع طرف ته عدول کړي شوي دي، لکه ﴿ سلام علیکم ﴾ کښې چه دی، چه په اصل کښې ﴿ سلمت سلاما ﴾ وو.

قوله: ﴿ لاظلیل ﴾ لا نافیه ده دا د ﴿ ظل ﴾ صفت دي او په طور د تهکم د مشرکانو د وهم رد دي، ځکه چه ظل خو هسې هم ظلیل وی د هغوی دا وهم ئې ﴿ لاظلیل ﴾ ونیلو سره رد کړو چه ظل به بالکل وی نه.

قوله: ﴿ من غیر تسبب عنه ﴾ دا د یو سوالِ مقدر جواب دي.

سوال: دا دي چه د فاء په ذریعه منفی باندې عطف په معطوف باندې د نصب تقاضه کوی ځکه چه معطوف هم د منفی په حکم کښې وی، حال دا چه دلته ﴿ فیعتذرون ﴾ په حالت رفع کښې راوړلې شوې دي؟

جواب: د جواب حاصل دا دي چه ما بعد فاء باندې نصب هغه وخت وی چه کله معطوف علیه د معطوف سبب وی او دلته داسې نه ده يعنى داسې خبره نه ده چه د هغوی د طرف نه معذرت په دې وجه نه دې شوې چه هغوی ته د معذرت اجازت نه دې ملاؤ شوې. ﴿ أی لا اذن فلا اعتذار ﴾ او معطوف علیه د معطوف دپاره سبب وی نو مطلب به دا وی چه هغوی معذرت په دې وجه اونکړې شو چه هغوی ته د عذر کولو اجازت ملاؤ نه شو، په دې باندې دا وهم پیدا کیږی چه په حقیقت کښې هغه معذور وو خو د عذر کولو اجازت ورته ملاؤ نه

شو، اودا د واقعې خلاف ده که معطوف عليه لره د معطوف سبب اومنلې شي نو په معطوف باندې به د نون د حذف په طور نصب راغی لکه ﴿ لا يقضى عليهم فيموتوا ﴾ دلته چونکه معطوف عليه د معطوف سبب دې په دې وجه معطوف د نون په حذف سره منصوب دې يعنی د نه مر کيدو سبب د هغوی د مرګ فيصله نه کيدل دی، ابن عطيه رحمه الله فرمائيلې دی چه ﴿ فيعتذرون ﴾ د نون په حذف سره د نه منصوب کيدو وجه د فواصل رعايت دې، مطلب دا چه د فواصل د رعايت د وجې نه ﴿ فيعتذرون ﴾ کښې نون نه دې حذف کړې شوې.

**[ايات تولہ: ٤١ - ٥٠]**

(إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي ظِلَالٍ) أَيْ تَكَاثُف أَشْجَار إِذْ لَا شَمْس يُظِلّ مِنْ حَرّهَا (وَعُيُونٍ) نَابِعَة مِنَ الْمَاء (وَفَوَاكِهَ مِمَّا يَشْتَهُونَ) فِيهِ إِعْلَام بِأَنَّ الْمَأْكَل وَالْمَشْرَب فِي الْجَنَّة بِحَسَبِ شَهَوَاتِهِمْ بِخِلَافِ الدُّنْيَا فَبِحَسَبِ مَا يَجِد النَّاس فِي الْأَغْلَب وَيُقَال لهم (كُلُوا وَاشْرَبُوا هَنِيئًا) حَال أَيْ مُتَهَنِّئِينَ (بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ) مِنَ الطَّاعَة (إنا كذلك) كما جزينا المتقين (نجزي المحسنين) (ويل يومئذ للمكذبين) (كُلُوا وَتَمَتَّعُوا) خِطَاب لِلْكُفَّار فِي الدُّنْيَا (قَلِيلًا) مِنَ الزَّمَان وَغَايَته إِلَى الْمَوْت وَفِي هَذَا تهديد لهم (إنكم مجرمون) (ويل يومئذ للمكذبين) (وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ ارْكَعُوا) صَلُّوا (لَا يَرْكَعُونَ) لا يصلون (ويل يومئذ للمكذبين) (فَبِأَيِّ حَدِيثٍ بَعْدَهُ) أَيِ الْقُرْآن (يُؤْمِنُونَ) أَيْ لَا يُمْكِن إِيمَانهمْ بِغَيْرِهِ مِنْ كُتُب اللّٰه بَعْد تَكْذِيبهمْ بِهِ لِاشْتِمَالِهِ عَلَى الْإِعْجَاز الَّذِي لم يشتمل عليه غيره

ترجمه: بېشکه پرهيزګاره خلق به په سورو يعنی ګڼړو ګهورواونو کښې به وی خکه چه هلته به نمر نه وی، چه د هغه د ګرمۍ نه سورې حاصل کړې شی او د بهيدونکو اوبو په چينو کښې به وی، يعنی د راوتونکو اوبو، او د زړه خوښونکو ميوو کښې به وی، په دې کښې دې خبرې طرف ته اشاره ده چه په جنت کښې به د خوراك څکاك څيزونه ټول د خواهش مطابق وی په خلاف د دنيا چه دلته هم هغه ميوې ملاوېږی کومې چه اغلبا خلقو ته دستياب وی او هغوی ته به وئيلې شی (اې جنتيانو) تاسو په خوشحالۍ سره د خپل اعمالو د طاعت په صله کښې خورئ او څکئ ﴿ هنيئا ﴾ حال دې اى متهنئين بېشکه مونږ داسې جزاء لکه چه ټولو پرهيزګارو ته مو ورکړه ټولو نيکانو ته ورکړو، په دغه ورځ د تکذيب کونکو دپاره تباهی ده (اې تکذيب کونکو) دا کفارو ته خطاب دې تاسو په دنيا کښې لږې ورځې يعنی مرګ پورې اوخورئ او اوڅکئ او مزې اوکړئ په دې کښې تهديد (دهمکی) ده بېشکه تاسو مجرمان يئ، په دغه ورځ باندې د تکذيب کونکو دپاره هلاکت دې اوس به ددې قران نه پس تاسو په کومه خبره ايمان راوړئ؟ يعنی ددې کتاب (قران کريم) د تکذيب نه پس د هغوی دپاره ممکنه نه ده چه په نورو اسمانی کتابونو باندې ايمان راوړی، ددې قران په داسې اعجاز باندې د مشتمل کيدو د وجې نه چه نور کتابونه په دې اعجاز مشتمل نه دی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** ﴿ من تكـاثف الاشجار ﴾ دا اضافت صفت الى الموصوف د قبیل نه دي، اى الاشجار المتكاثفة.

**قوله:** ﴿ كمـا جزينا المتقين ﴾ نجزى المحسنين

**قوله:** دلته یو سوال پیدا کیږي چه په ﴿ متقین ﴾ او ﴿ محسنین ﴾ کښې مغایرت نشته بلکه دواړه یو دي لهذا دلته دا فرمائیل چه مونږ څنګه جزاء متقیانو ته ورکړې ده هغه شان به محسنین ته هم ورکوو دا تشبیه الشئ بنفسه ده کومه چه صحیح نه ده؟

**جواب:** د متقین نه مراد ﴿ كاملين فى الطاعة ﴾ دي او د ﴿ محسنين ﴾ نه مراد هغه خلق دي چا چه نفس ایمان راوړې دې، پس مغایرت بیا موندلې شو. فلا اشكال

**پاره نمبر-٣٠ [عَمّ]**

**[٧٨] سورة النبا**

**سورة النبا مكية احدى واربعون آية**

سورة نبأ مکی دې، یو څلویښت آیتونه دی.

**[ایاتونه: ١-٢٠]**

---

بسم الله الرحمن الرحيم ﴿عَمَّ﴾ عَنْ أيِّ شَيْء ﴿يَتَسَاءَلُونَ﴾ يَسْأَل بَعْض قُرَيْش بعضا ﴿عَنِ النَّبَإِ الْعَظِيمِ﴾ بَيَان لِذَلِكَ الشَّيْء وَالِاسْتِفْهَام لِتَفْخِيمِهِ وَهُوَ مَا جَاءَ بِهِ النَّبِيّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ الْقُرْآن الْمُشْتَمِل عَلَى البعث وغيره ﴿الَّذِي هُمْ فِيهِ مُخْتَلِفُونَ﴾ فَالْمُؤْمِنُونَ يُثْبِتُونَهُ وَالْكَافِرُونَ ينكرونه ﴿كَلَّا﴾ رَدْع ﴿سَيَعْلَمُونَ﴾ مَا يَحِلّ بِهِمْ عَلَى إنكارهم له ﴿ثُمَّ كَلَّا سَيَعْلَمُونَ﴾ تَأْكِيد وَجِيءَ فِيهِ بِثُمَّ لِلْإِيذَانِ بِأَنَّ الْوَعِيد الثَّانِي أَشَدّ مِنْ الْأَوَّل ثُمَّ أَوْمَأَ تَعَالَى إلَى الْقُدْرَة عَلَى الْبَعْث فقال ﴿أَلَمْ نَجْعَلِ الْأَرْضَ مِهَادًا﴾ فِرَاشًا كَالْمَهْدِ ﴿وَالْجِبَالَ أَوْتَادًا﴾ تُثَبَّت بِهَا الْأَرْض كَمَا تُثَبَّت الْخِيَام بِالْأَوْتَادِ وَالِاسْتِفْهَام لِلتَّقْرِيرِ ﴿وَخَلَقْنَاكُمْ أَزْوَاجًا﴾ ذُكُورًا وَإِنَاثًا ﴿وَجَعَلْنَا نَوْمَكُمْ سُبَاتًا﴾ رَاحَة لِأَبْدَانِكُمْ ﴿وَجَعَلْنَا اللَّيْلَ لِبَاسًا﴾ سَاتِرًا بِسَوَادِهِ ﴿وَجَعَلْنَا النَّهَارَ مَعَاشًا﴾ وَقْتًا لِلْمَعَايِشِ ﴿وَبَنَيْنَا فَوْقَكُمْ سَبْعًا﴾ سَبْع سَمَاوَات ﴿شِدَادًا﴾ جَمْع شَدِيدَة أَيْ قَوِيَّة مُحْكَمَة لَا يُؤَثِّر فِيهَا مرور الزمان ﴿وَجَعَلْنَا سِرَاجًا﴾ مُنِيرًا ﴿وَهَّاجًا﴾ وَقَّادًا يَعْنِي الشَّمْس ﴿وَأَنْزَلْنَا مِنَ الْمُعْصِرَاتِ﴾ السَّحَابَات الَّتِي حَانَ لَهَا أَنْ تُمْطِر كَالْمُعْصِرِ الْجَارِيَة الَّتِي دَنَتْ مِنْ الْحَيْض ﴿مَاءً ثَجَّاجًا﴾ صَبَّابًا ﴿لِنُخْرِجَ بِهِ حَبًّا﴾ كَالْحِنْطَةِ ﴿وَنَبَاتًا﴾ كَالتِّبْنِ ﴿وَجَنَّاتٍ﴾ بَسَاتِين ﴿أَلْفَافًا﴾ مُلْتَفَّة جَمْع لَفِيف كَشَرِيفٍ وَأَشْرَاف ﴿إِنَّ يَوْمَ الْفَصْلِ﴾ بَيْن الْخَلَائِق ﴿كَانَ مِيقَاتًا﴾ وَقْتًا لِلثَّوَابِ وَالْعِقَاب ﴿يَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّورِ﴾ الْقَرْن بَدَل مِنْ يَوْم الْفَصْل أَوْ بَيَان لَهُ وَالنَّافِخ إسْرَافِيل ﴿فَتَأْتُونَ﴾ مِنْ قُبُورِكُمْ إلَى الْمَوْقِف ﴿أَفْوَاجًا﴾ جَمَاعَات مختلفة ﴿وَفُتِحَتِ السَّمَاءُ﴾ بِالتَّشْدِيدِ وَالتَّخْفِيف شُقِّقَتْ لِنُزُولِ الْمَلَائِكَة ﴿فَكَانَتْ أَبْوَابًا﴾ ذَات أَبْوَاب ﴿وَسُيِّرَتِ الْجِبَالُ﴾ ذُهِبَ بِهَا عَنْ أَمَاكِنهَا ﴿فَكَانَتْ سَرَابًا﴾ هَبَاء أَيْ مِثْله فِي خِفَّة سَيْرهَا ﴿إِنَّ جَهَنَّمَ

كَانَتْ مِرْصَادًا﴾ رَاصِدَةً أَوْ مُرْصَدَةً ﴿لِلطَّاغِينَ﴾ الْكَافِرِينَ فَلَا يَتَجَاوَزُونَهَا ﴿مَآبًا﴾ مَرْجِعًا لَهُمْ فيدخلونها ﴿لَابِثِينَ﴾ حَال مُقَدَّرَة أَيْ مُقَدَّرًا لُبْثهمْ ﴿فِيهَا أَحْقَابًا﴾ دُهُورًا لَا نِهَايَة لَهَا جَمْع حُقْب بضم أوله ﴿لَا يَذُوقُونَ فِيهَا بَرْدًا﴾ نَوْمًا فَإِنَّهُمْ لَا يَذُوقُونَهُ ﴿وَلَا شَرَابًا﴾ مَا يُشْرَب تَلَذُّذًا ﴿إِلَّا﴾ لَكِنْ ﴿حَمِيمًا﴾ مَاء حَارًّا غَايَة الْحَرَارَة ﴿وَغَسَّاقًا﴾ بالتخفيف والتشديد ما يسيل عن صَدِيد أَهْل النَّار فَإِنَّهُمْ يَذُوقُونَهُ جوزوا بِذَلِكَ ﴿جَزَاءً وِفَاقًا﴾ مُوَافِقًا لِعَمَلِهِمْ فَلَا ذَنْب أَعْظَم مِنْ الْكُفْر وَلَا عَذَاب أَعْظَم مِنْ النَّار ﴿إِنَّهُمْ كَانُوا لَا يَرْجُونَ﴾ يَخَافُونَ ﴿حِسَابًا﴾ لِإِنْكَارِهِمْ الْبَعْث ﴿وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا﴾ الْقُرْآن ﴿كِذَّابًا﴾ تَكْذِيبًا ﴿وَكُلَّ شَيْءٍ﴾ مِنْ الْأَعْمَال ﴿أَحْصَيْنَاهُ﴾ ضَبَطْنَاهُ ﴿كِتَابًا﴾ كَتْبًا فِي اللَّوْح الْمَحْفُوظ لِنُجَازِيَ عَلَيْهِ وَمِنْ ذَلِكَ تَكْذِيبهمْ بِالْقُرْآنِ ﴿فَذُوقُوا﴾ أَيْ فَيُقَال لَهُمْ فِي الْآخِرَة عِنْد وُقُوع الْعَذَاب ذُوقُوا جَزَاءَكُمْ ﴿فَلَنْ نَزِيدَكُمْ إِلَّا عَذَابًا﴾ فَوْق عَذَابكُمْ

---

ترجمه: په نوم د الله پاک چه ډير مهربانه او هميشه مهربانه دي شروع کوم! دا د قريشو خلق د کوم څيز په باره کښې په خپل مينځ کښې تپوسونه کوی؟ آيا د هغه لوئي خبر متعلق چه په هغې کښې دا خلق مختلف قسم خبرې کوی؟ (عن النبأ العظيم) د (هم مسئول) عطف بيان دې او استفهام د هغه څيز د عظمت بيانولو دپاره دې او هغه قران کريم دې کوم چه نبی ﷺ راوړې دې کوم چه په بعث وغيره باندې مشتمل دې (په داسې طريقه) چه مومنان ئې ثابتوی او کافر ترې نه انکار کوی خبردار هغوی ته به نزدې هغه څيز معلومه شی کوم چه به په هغوی باندې ددې انکار د وجې نه نازليږی (کلا) حرف توبيخ دې، بيا باليقين هغوی ته به ډير زر معلومه شی دا تاکيد دې په دې کښې (ثم) ددې خبرې د بيان دپاره راوړلې شو چه دويم وعيد د اول نه ډير سخت دې، بيا الله پاک د قدرت على البعث طرف ته اشاره کولو سره اوفرمائيل (الم نجعل الخ) ايا دا حقيقت نه دې چه مونږ زمکه د خانګو په شان خوره کړه او غرونه مو پرې د ميخونو په شان ښخ کړل زمکه مو د غرونو په ذريعه ساکن (نه خوزيدونکې) کړه څنګه چه خيمې د ميخونو په ذريعه قائمولې شی، او استفهام د تقرير دپاره دې، او مونږ تاسو د سړو او زنانو د جوړو په شکل کښې پيدا کړی يئ او ستاسو خوب مونږ ستاسو د بدنونو دپاره (باعث) ارام جوړ کړو او مونږ شپه يعنی د هغې د تيارې د وجې نه پټونکې جوړه کړه او ورځې لره معاش يعنی د معاش وخت جوړ کړو او ستاسو دپاسه مو اووه مضبوط اسمانونه قائم کړل (شدادا) د (شديدة) جمع ده يعنی داسې قوی او مضبوط چه په هغې کښې به د زمانې تيريدل هم اثر نه کوی او يو انتهائی روښانه او پرقيدونکې ډيوه يعنی نمر او مونږ د اوبو نه ډکو وريځو نه يعنی هغه وريځو نه چه وريدو ته نزدې شوې وی په مثل د هغه زنانه کومه چه قريب البلوغ وی او د چا د حيض زمانه چه نزدې شوې وی بهيدونکې اوبه راوروليې، چه مونږ د هغې اوبو په ذريعه غله لکه غنم او ګيا په شان د بهوسو پيدا کړی دی او ګڼ ګڼر باغونه ئې پيدا کړی دی (الفاف د لفيف جمع ده لکه چه اشراف د شريف جمع دہ، بيشکه د مخلوق ترمينځه د فيصلې وخت مقرر

دې (يعني) د ثواب او عقاب وخت دې په کومه ورځ چه په شپېلۍ کښې پوکې او وهلې شي (صور) بمعنى (قرن) (يوم ينفخ) د يوم الفصل. نه بدل دې يا ددې عطف بيان دې، او شپېلۍ وهونکې (حضرت) اسرافيل عليه السلام دې نو تاسو به د خپلو قبرونو نه د محشر طرف ته د مختلف جماعتونو په شکل راروان شئ او اسمان به پرانستلې شي (فتحت) تشديد او تخفيف سره دې يعنى (آسمان) به د نزول ملائکه دپاره څيرې کړې شي، نو هغه به دروازې دروازې شي يعنى دروازو والا به شي او غرونه به روان کړې شي يعنى هغه به د خپل ځائې نه او ويستلې شي نو هغه په د پرقيدونکې شېې په شان شي (يعنى) په الوتلو کښې او په سپك والى کښې به د ګرد په شان شي بيشکه جهنم د کفارو په کمين کښې دې د سرکشو دپاره د استوګنې ځائې دې چه د هغه نه به بچ نه شي يا (د کفارو دپاره) تيار کړې شوې دې چه د هغوى استوګنه ده چه هغې ته به داخليږى او هغوى به په هغې کښې اوږده موده اوسيږى (لابثين) حال مقدره دې يعنى د هغوى دپاره په هغې کښې داخليدل مقدر شوې دى نه به هغوى هلته يخ والې او څکې او نه په خوند سره د څکلو څه څيز او که څه ملاؤ شي نو انتهائى ګرم او بهيدونکې پيپ (غساقا) په تخفيف او تشديد سره يعنى هغه څيز کوم چه به د دوزخيانو د زخمونو نه راوځى، بس هم هغه به خورى، هغوى ته به د هغوى د اعمالو مطابق پوره پوره بدله ورکولې شى دې خلقو به د آخرت په ورځ دوباره ژوند نه د انکار په وجه د حساب اميد نه لرلو او زمونږ د آيتونو قران کريم تکذيب ئې کولو، او حال دا چه مونږ د هغوى هر يو عمل په ليکلو سره محفوظ کړې وو يعنى په لوح محفوظ کښې ليکلې وو ددې دپاره چه مونږ ورته د هغې بدله ورکړو او د دوى په دغه اعمالو کښې د قران کريم تکذيب کول هم دى اوس مزې اوڅکئ يعنى په هغوى باندې د عذاب د واقع کولو په وخت به هغوى ته ونيلې شي چه د خپلو اعمالو بدله اوڅکئ اوس به مونږ ستاسو دپاره صرف د عذاب دپاسه د عذاب اضافه کوو.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

قوله: (عم) د دوؤ حروفو (عن) او (ما) نه مرکب دې، په اصل کښې (عما) وو، (ما) استفهاميه ده په هغې باندې حرف جر داخل دې د قاعدې معروفې د وجې نه د (ما) نه الف حذف شو، قاعده معروفه دا ده چه کله په (ما) استفهاميه باندې حرف جر داخل شى نو الف حذف کولې شى خو د ضرورت شعرى د وجې نه باقى هم پريخودلې کيدې شى. (ما) استفهاميه دلته د تفخيم او عظمت دپاره ده، ځکه چه دلته د استفهام حقيقى معنى ممکن نه ده ځکه چه د استفهام دپاره د مستفهم ناواقف کيدل ضرورى دى او دا د الله پاك دپاره محال دى

قوله: (النبأ) (نبأ) عظيم الشان او لوئې خبر ته وائى دلته د عظيم الشان خبر نه مراد

قيامت دي، ﴿كلا﴾ دا حرف زجر او توبيخ دي، په دې كښې وعيد د تهديد په معنى دې.
قوله: ﴿ما يحل بهم﴾ دا د ﴿يعلمون﴾ مفعول به دې.
قوله: ﴿وجئ بثم للايذان الغ﴾ ددې عبارت د اضافې مقصد د يو اعتراض دفع كول دى.
اعتراض: دا دې چه كوم مفهوم د معطوف عليه دې هم هغه بعينه د معطوف دې او دا عطف الشئ على نفسه دې كوم چه جائز نه دې؟
جواب: د جواب حاصل دا دې چه د ﴿ثم﴾ په ذريعه عطف كولو سره دې خبرې طرف ته اشاره اوكړې شوه چه دويم تاكيد د اولنى په نسبت زيات سخت دې، پس په دواړو كښې تغاير موجود دې لهذا د عطف الشئ على نفسه اعتراض دفع شو.
قوله: ﴿الم نجعل الارض مهادا﴾ ﴿الارض﴾ مفعول به اول دې او ﴿مهادا﴾ مفعول به ثانى دې كه ﴿جعل﴾ په معنى د ﴿صير﴾ وى او كه په معنى د ﴿خلق﴾ وى نو ﴿مهادا﴾ به د ﴿الارض﴾ نه حال وى.
قوله: ﴿سباتا﴾ (سبات) د ﴿سبت﴾ نه مشتق دې ددې معنى د خرولو او قطع كولو دې، خوب چونكه فكرونه او غمونه ختموى چه د هغې په وجه باندې جسم ته ارام او دماغو ته سكون نصيب كيږى، هم په دې وجه بعض حضرات د ﴿سبات﴾ معنى ارام او راحت كوى ، هم په هغوى كښې مفسر علامءرحمه الله دې، ﴿يوم السبت﴾ ته ﴿سبت﴾ په دې وجه وئيلې شى چه په ﴿يوم السبت﴾ كښې په قول د يهوديانو الله پاك د كائنات د تخليق كولو نه فارغيدو سره ارام فرمائيلې وو.
قوله: ﴿وقتا للمعايش﴾ په دې كښې اشاره كوى چه معاش مصدر ميمى په معنى د ظرف زمان دې.
قوله: ﴿الجارية﴾ دلته مطلق انثى مراد ده.
قوله: ﴿ان يوم الفصل﴾ دا كلام مستانف دې كوم چه د يو سوال مقدر جواب دې، سوال دا دې چه هغه وخت كوم يو دې كوم چه د ادله متقدمه نه ثابت كړې شوې دې؟ ددې جواب په ﴿ان يوم الفصل﴾ سره وركړې شو چه هغه د مخلوق ترمينځه د فيصلې ورځ ده او د هغه ورځې په راتلو كښې چونكه كفارو ته تردد وو په دې وجه كلام د ﴿ان﴾ په ذريعه مؤكد راوړلې شو.
قوله: ﴿جوزوا بذلك﴾ ددې عبارت په اضافې سره ئې اشاره اوكړه چه ﴿جزاء وفاقا﴾ د فعل محذوف مفعول مطلق دې، اى جوزوا جزاء وفاقا
قوله: ﴿موافقا لعملهم﴾ په دې سره ئې اشاره اوكړه چه ﴿وفاقا﴾ مصدر په معنى د اسم فاعل او ﴿جزاء﴾ صفت دې، ﴿اى جزاء موافقا لعملهم﴾

قوله: ﴿ وكل شيء ﴾ دا د اشتغال د وجې نه منصوب دې د عبارت تقدير داسې دې ﴿احصينا كل شيء احصيناه﴾ او بعض حضراتو ﴿كل﴾ د ابتداء د وجې نه مرفوع لوستلې دې او ددې مابعد ددې خبر دې، او دا جمله د سبب او مسبب ترمينځه معترضه ده.

قوله: ﴿ كتابا ﴾ كتابا د مصدريت د وجې نه منصوب دې ځکه چه ﴿ احصينا ﴾ په معنی د ﴿كتبنا﴾ دې اې كتبناه كتابا.

قوله: ﴿ فذوقوا فلن نزيدكم الا عذابا ﴾ دا جمله د هغوی د كفر او تكذيب مسبب دې.

[ايات قوله: ۳۱-٤۰]

﴿إِنَّ لِلْمُتَّقِينَ مَفَازًا﴾ مَكَان فوز فِي الْجَنَّة ﴿حَدَائِقَ﴾ بَسَاتِين بَدَل مِنْ مَفَازًا أَوْ بَيَان لَهُ ﴿وَأَعْنَابًا﴾ عَطف عَلَى مَفَازًا ﴿وَكَوَاعِبَ﴾ جَوَارِي تَكَعَّبَتْ ثُدِيّهنَّ جَمْع كَاعِب ﴿أَتْرَابًا﴾ عَلَى سِنّ وَاحِد جَمْع تِرْب بِكَسْرِ التَّاء وسكون الراء ﴿وَكَأْسًا دِهَاقًا﴾ خَمْرًا مَالِئَة مَحَالّهَا وَفِي سُورَة الْقِتَال وَأَنْهَار مِنْ خَمْر ﴿لَا يَسْمَعُونَ فِيهَا﴾ أَيْ الْجَنَّة عِنْد شُرْب الْخَمْر وَغَيْرهَا مِنْ الْأَحْوَال ﴿لَغْوًا﴾ بَاطِلًا مِنْ الْقَوْل ﴿وَلَا كِذَّابًا﴾ بِالتَّخْفِيفِ أَيْ كَذِبًا وَبِالتَّشْدِيدِ أَيْ تَكْذِيبًا مِنْ وَاحِد لِغَيْرِهِ بِخِلَافِ مَا يَقَع فِي الدُّنْيَا عِنْد شُرْب الْخَمْر ﴿جَزَاءً مِنْ رَبِّكَ﴾ أَيْ جَزَاهُمْ اللَّه بِذَلِكَ جَزَاء ﴿عَطَاءً﴾ بَدَل مِنْ جَزَاء ﴿حِسَابًا﴾ أَيْ كَثِيرًا مِنْ قَوْلهمْ أَعْطَانِي فَأَحْسَبَنِي أَيْ أَكْثَر عَلَيَّ حَتَّى قُلْت حَسْبِي ﴿رَبِّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾ بِالْجَرِّ وَالرَّفْع ﴿وَمَا بَيْنَهُمَا الرَّحْمَنِ﴾ كَذَلِكَ وَبِرَفْعِهِ مَعَ جَرّ رَبّ ﴿لَا يَمْلِكُونَ﴾ أَيْ الْخَلْق ﴿مِنْهُ﴾ تَعَالَى ﴿خِطَابًا﴾ أَيْ لَا يَقْدِر أَحَد أَنْ يُخَاطِبهُ خَوْفًا مِنْهُ ﴿يَوْمَ﴾ ظَرْف لِ لَا يَمْلِكُونَ ﴿يَقُومُ الرُّوحُ﴾ جِبْرِيل أَوْ جُنْد اللَّه ﴿وَالْمَلَائِكَةُ صَفًّا﴾ حَال أَيْ مُصْطَفِّينَ ﴿لَا يَتَكَلَّمُونَ﴾ أَيْ الْخَلْق ﴿إِلَّا مَنْ أَذِنَ لَهُ الرَّحْمَنُ﴾ فِي الْكَلَام ﴿وَقَالَ﴾ قَوْلًا ﴿صَوَابًا﴾ مِنْ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمَلَائِكَة كَأَنْ يَشْفَعُوا لمن ارتضى ﴿ذَلِكَ الْيَوْمُ الْحَقُّ﴾ الثَّابِت وُقُوعه وَهُوَ يَوْم الْقِيَامَة ﴿فَمَنْ شَاءَ اتَّخَذَ إِلَى رَبِّهِ مَآبًا﴾ مَرْجِعًا أَيْ رَجَعَ إِلَى اللَّه بِطَاعَتِهِ لِيَسْلَم مِنْ الْعَذَاب فِيهِ؟ ﴿إِنَّا أَنْذَرْنَاكُمْ﴾ يَا كُفَّار مَكَّة ﴿عَذَابًا قَرِيبًا﴾ عَذَاب يَوْم الْقِيَامَة الْآتِي وَكُلّ آتٍ قَرِيب ﴿يَوْمَ﴾ ظَرْف لِعَذَابًا بِصِفَتِهِ ﴿يَنْظُرُ الْمَرْءُ﴾ كُلّ امْرِئٍ ﴿مَا قَدَّمَتْ يَدَاهُ﴾ مِنْ خَيْر وَشَرّ ﴿وَيَقُولُ الْكَافِرُ يَا﴾ حَرْف تَنْبِيه ﴿لَيْتَنِي كُنْتُ تُرَابًا﴾ يَعْنِي فَلَا أُعَذَّب يَقُول ذَلِكَ عِنْدَمَا يَقُول اللَّه تَعَالَى لِلْبَهَائِمِ بَعْد الِاقْتِصَاص مِنْ بعضها لبعض كوني ترابا

ترجمه: يقينا د پرهيزګارو دپاره كاميابي ده (يعنى) په جنت كښې د كاميابۍ مقام دې باغونه دی (حدائق) د ﴿ مفازا ﴾ نه بدل دې يا ددې عطف بيان دې او انګور دی ﴿ مفازا ﴾ باندې عطف دې او همزولې لوړو سينو والا جينكۍ دی ﴿كواعب﴾ د ﴿كاعبة﴾ جمع ده هغه جينكۍ چه ځوانې وی او سينې ئې نيغې نيغې وی، (اتراب) د ﴿ ترب ﴾ جمع ده همزولې ته وئيلې شی او ډک جامونه د شرابو (يعنى) داسې شراب دې كوم چه جامونو لره ډكونكې دې او په سوره قتال كښې دی او د شرابو نهرونه دی، هلته يعنى په جنت كښې به هيڅ وخت د شرابو د څكلو په وخت او نه د

هغې نه علاوه نه خو بیهوده کلام وی یعنی باطل قول او نه به دروغ خبرې اوری (کذابا) په تخفیف سره په معنی د ﴿ کذب ﴾ او په تشدید سره په معنی د ﴿ تکذیب ﴾ دې یعنی د چا تکذیب به نه اوری، په خلاف د هغې چه په دنیا کښې د شرابو د څکلو وخت وی (یعنی په دنیا کښې چه د شراب څکلو سره د نشې په حالت کښې کومې کنځلې او بکواس کوی دا کیفیت به د جنت په شرابو کښې نه وی) دا ستا د رب د طرف نه بدله ده یعنی الله پاك هغوی ته دا جزاء ورکړه کوم چه به کثیر انعام وی (عطاء) د ﴿ جزاء ﴾ نه بدل دې او دا د عربو قول ﴿ اعطانی فاحسبنی ﴾ نه مشتق دې یعنی په ما باندې ئې دومره کثرت سره انعامات اوکړل (باران ئې اوکړو) چه ما بس بس اوونیل (دا بدله) به د هغه رب د طرف نه وی کوم چه د اسمانانو او زمکې او څه چه د هغې ترمینځه دی، مالک دې، (والارض) په جر او رفع سره دې (او کوم چه) رحمن دې په دې کښې هم دواړه اعرابونه دی، هیڅ مخلوق ته به هغه سره د خبرو کولو اختیار نه وی یعنی د ویرې د وجې نه به د هغه سره په خبرو کولو باندې څوك هم قادر نه وی د ﴿ رب ﴾ په کسرې سره، په ﴿ رحمن ﴾ باندې رفع هم صحیح ده، په کومه ورځ به چه روح یعنی جبرائیل علیه السلام یا د الله پاك لښکر او فرشتې قطار قطار ولاړ وی (صفا) حال دې په معنی د ﴿ مصطفین ﴾ نو هیڅ مخلوق به خبرې اونکړې شی سوا د هغه چا نه کوم ته چه رحمن د کلام اجازت ورکړی او مومنان او فرشتو نه صحیح خبره اوکړی په داسې طریقه چه د هغې سفارش اوکړی، د چا دپاره چه الله پاك رضامندی ښکاره کړه، دا ورځ حق ده یعنی د هغه وقوع ثابت ده او هغه د قیامت ورځ ده اوس چه څوک غواړی د خپل رب سره دې ټهکانه جوړه کړی یعنی د هغه اطاعت کولو سره دې د هغه طرف ته رجوع اوکړی، ددې دپاره چه په هغه ټهکانه کښې د عذاب نه محفوظ شی اې کفار مکه! مونږ تاسو د نزدې راتلونکی عذاب نه اوېرولئ یعنی د قیامت په ورځ د راتلونکی عذاب نه، او هر راتلونکې، نزدې وی، په کومه ورځ چه انسان د خپلو لاسونو کسب کړې خیر او شر اوینی (یوم) د عذابا سره دهغې د صفت ظرف دې او کافر به وائی چه ارمان زه خاورې شوې وې یا حرف تنبیه دې یعنی بیا به ماته عذاب نه شو راکولې، دا به هغه وخت وائی چه الله پاك د څاروو ته د بعض نه د بعضو بدله اغستلو نه پس اووائی: تاسو خاورې شئ.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

قوله: ﴿ ان للمتقین ﴾ دا کلام مستانف دې، د اهل جنت د احوالو بیانولو دپاره راوړلې شوې دې، ددې نه مخکښې ئې د اهل نار احوال بیان کړل، ﴿ للمتقین ﴾ د ﴿ ان ﴾ خبر مقدم دې او ﴿ مفازا ﴾ ئې اسم مؤخر دې، ﴿ ان للمتقین مفازا ﴾ د ﴿ ان للطاغین مآبا ﴾ په مقابله کښې راوړلې شوې دې.

قوله: ﴿ عطف على مفازا ﴾ مناسب دا دي چه د ﴿ اعنابا ﴾ عطف په ﴿ حدائق ﴾ باندې وی او دا عطف د خاص علی العام د قبیل نه وی.

قوله: ﴿ الثدیین ﴾ دا د ﴿ الثدی ﴾ جمع ده په معنی د زنانه سینه.

قوله: ﴿ خمرامالئة ﴾ مفسر علامﷺ د ﴿ کاسا ﴾ تفسیر په خمرا سره کړې دې او د ﴿ دهاقا ﴾ تفسیر ئې په ﴿ مالئة ﴾ سره کړې دې. یعنی جام لره ډکونکې شراب، ګویا ظرف وئیلو سره ئې مظروف مراد کړې دې، زیاته غوره به دا وې چه ﴿ کاسا ﴾ ئې په خپله معنی پریخودلې وې او ﴿ مالئة ﴾ په معنی د ﴿ ممتلئة ﴾ وی مطلب واضح دې، د سر پورې ډک جام

قوله: ﴿ عند شرب الخمروغیرها ﴾ ها ضمیر د شرب طرف ته راجع دې، دلته به سوال پیدا کیږی چه ﴿ ها ﴾ ضمیر مونث دې او ﴿ شرب ﴾ مذکر دې لهذا د ﴿ شرب ﴾ طرف ته ضمیر واپس کول صحیح نه دی؟

جواب: د جواب حاصل دا دې چه شرب تانیث د خپل مضاف الیه (خمرا) نه حاصل کړې دې او دا خبره صحیح ده چه د مضاف الیه په رعایت سره د مونث ضمیر راوړلې شی ﴿ خمر ﴾ مونث سماعی دې، اګرچه بعض وخت مذکر هم استعمالیږی او په بعض نسخو کښې د ﴿ غیرها ﴾ په ځائې ﴿ غیره ﴾ دې، په دې صورت کښې به هیڅ اشکال نه وی.

قوله: ﴿ حسابا ﴾ دا د ﴿ عطاء ﴾ صفت دې، ﴿ حسابا ﴾ اګرچه مصدر دې خو د صفت قائم مقام دې، یا په طور د مبالغې وصف دې، یا مضاف محذوف دې، ای ذوکفایة په دې صورت کښې به د زید عدل د قبیل نه وی.

قوله: ﴿ کذالك وبرفعه مع جرورب ﴾ یعنی د رب چه کوم اعراب دې یعنی رفع او جر دې هم هغه اعراب د ﴿ الرحمن ﴾ هم دې، یو بل اعراب په ﴿ رحمن ﴾ کښې دا هم دې چه د ﴿ رب ﴾ د جر باوجود په ﴿ رحمن ﴾ باندې رفع وی، په دې صورت کښې به ﴿ رحمن ﴾ د ﴿ هو ﴾ مبتداء محذوف خبر وی، یا ﴿ الرحمن ﴾ به مبتدا وی او ﴿ لایملکون ﴾ به ئې خبر وی.

## [٧٩] سورة النازعات

### سورة والنازعات مكية ستّ واربعون آية

سورة والنازعات مکی دې، شپږ څلویښت آیتونه دی.

### [اياتوله: ١ - ٣٦]

بسم الله الرحمن الرحيم (وَالنَّازِعَاتِ) الْمَلَائِكَة تَنْزِع أَرْوَاح الْكُفَّار (غَرْقًا) نَزْعًا بِشِدَّة (وَالنَّاشِطَاتِ نَشْطًا) الْمَلَائِكَة تَنْشِط أَرْوَاح الْمُؤْمِنِينَ أَيْ تَسُلّهَا بِرِفْق (وَالسَّابِحَاتِ سَبْحًا) الْمَلَائِكَة تَسْبَح مِنَ السَّمَاء بِأَمْرِهِ تَعَالَى أَيْ تَنْزِل (فَالسَّابِقَاتِ سَبْقًا) الْمَلَائِكَة تَسْبِق بِأَرْوَاحِ الْمُؤْمِنِينَ إِلَى الْجَنَّة (فَالْمُدَبِّرَاتِ أَمْرًا) الْمَلَائِكَة تُدَبِّر أَمْر الدُّنْيَا أَيْ تَنْزِل بِتَدْبِيرِهِ وَجَوَاب هَذِهِ الْأَقْسَام مَحْذُوف أَيْ لَتُبْعَثُنَّ يَا كُفَّار مَكَّة وَهُوَ عَامِل فِي (يَوْمَ تَرْجُفُ

الرَّاجِفَةُ﴾ النَّفخة الأُولَى بِهَا يَرْجُف كُلّ شَيْء أَيْ يَتَزَلْزَل فَوُصِفَتْ بِمَا يَحْدُث منها ﴿تَتْبَعُهَا الرَّادِفَةُ﴾ النَّفخة الثَّانِيَة وَبَيْنهمَا أَرْبَعُونَ سَنَة وَالْجُمْلَة حَال مِنَ الرَّاجِفَة فَالْيَوْم وَاسِع لِلنَّفْخَتَيْنِ وَغَيْرهمَا فَصَحَّ ظَرْفِيَّته لِلْبَعْثِ الْوَاقِع عَقِب الثَّانِيَة ﴿قُلُوبٌ يَوْمَئِذٍ وَاجِفَةٌ﴾ خَائِفَة قَلِقَة ﴿أَبْصَارُهَا خَاشِعَةٌ﴾ ذَلِيلَة لِهَوْلِ مَا تَرَى ﴿يَقُولُونَ﴾ أَيْ أَرْبَاب الْقُلُوب وَالأَبْصَار اِسْتِهْزَاء وَإِنْكَارًا لِلْبَعْثِ ﴿أَإِنَّا﴾ بِتَحْقِيقِ الْهَمْزَتَيْنِ وَتَسْهِيل الثَّانِيَة وَإِدْخَال أَلِف بَيْنهمَا عَلَى الْوَجْهَيْنِ فِي الْمَوْضِعَيْنِ ﴿لَمَرْدُودُونَ فِي الْحَافِرَةِ﴾ أَيْ أَنُرَدُّ بَعْد الْمَوْت إِلَى الْحَيَاة وَالْحَافِرَة اِسْم لِأَوَّلِ الأَمْر وَمِنْهُ رَجَعَ فُلَان فِي حَافِرَته إِذَا رَجَعَ مِنْ حَيْثُ جَاءَ ﴿أَإِذَا كُنَّا عِظَامًا نَخِرَةً﴾ وَفِي قِرَاءَة نَاخِرَة بَالِيَة مُتَفَتِّتَة نَحْيَا ﴿قَالُوا تِلْكَ﴾ أَيْ رَجْعَتنَا إِلَى الْحَيَاة ﴿إِذًا﴾ إِن صحت ﴿كَرَّةٌ﴾ رجعة ﴿خَاسِرَةٌ﴾ ذات خسر إن قال تعالى ﴿فَإِنَّمَا هِيَ﴾ أَيْ الرَّادِفَة الَّتِي يَعْقُبهَا الْبَعْث ﴿زَجْرَةٌ﴾ نَفْخَة ﴿وَاحِدَةٌ﴾ فَإِذَا نُفِخَتْ ﴿فَإِذَا هُمْ﴾ أَيْ كُلّ الْخَلَائِق ﴿بِالسَّاهِرَةِ﴾ بِوَجْهِ الأرض احياء بعد ما كَانُوا بِبَطْنِهَا أَمْوَاتًا ﴿هَلْ أَتَاكَ﴾ يَا مُحَمَّد ﴿حَدِيثُ مُوسَى﴾ عَامِل فِي ﴿إِذْ نَادَاهُ رَبُّهُ بِالْوَادِ الْمُقَدَّسِ طُوًى﴾ اِسْم الوادي بالتنوين وتركه فقال ﴿اذْهَبْ إِلَى فِرْعَوْنَ إِنَّهُ طَغَى﴾ تَجَاوَزَ الْحَدّ في الكفر ﴿فَقُلْ هَلْ لَكَ﴾ أدعوك ﴿إِلَى أَنْ تَزَكَّى﴾ وَفِي قِرَاءَة بِتَشْدِيدِ الزَّاي بِإِدْغَامِ التَّاء الثَّانِيَة فِي الأَصْل فِيهَا تَتَطَهَّر مِنَ الشِّرْك بِأَنْ تَشْهَد أَنْ لَا إِلَه إِلَّا الله ﴿وَأَهْدِيَكَ إِلَى رَبِّكَ﴾ أَدُلّك عَلَى مَعْرِفَته بِبُرْهَانٍ ﴿فَتَخْشَى﴾ فتخافه ﴿فَأَرَاهُ الْآيَةَ الْكُبْرَى﴾ مِنْ آيَاته السَّبْع وَهِيَ الْيَد أَوْ الْعَصَا ﴿فَكَذَّبَ﴾ فِرْعَوْن مُوسَى ﴿وَعَصَى﴾ اللّه تَعَالَى ﴿ثُمَّ أَدْبَرَ﴾ عَنْ الإِيمَان ﴿يَسْعَى﴾ فِي الأَرْض بِالْفَسَادِ ﴿فَحَشَرَ﴾ جَمَعَ السَّحَرَة وَجُنْده ﴿فَنَادَى﴾ ﴿فَقَالَ أَنَا رَبُّكُمُ الْأَعْلَى﴾ لَا رَبّ فَوْقِي ﴿فَأَخَذَهُ اللَّهُ﴾ أَهْلَكَهُ بِالْغَرَقِ ﴿نَكَالَ﴾ عُقُوبَة ﴿الْآخِرَةِ﴾ أَيْ هَذِهِ الْكَلِمَة ﴿وَالْأُولَى﴾ أَيْ قَوْله قَبْلهَا مَا عَلِمْت لَكُمْ مِنْ إِلَه غَيْرِي وَكَانَ بَيْنهمَا أَرْبَعُونَ سَنَة ﴿إِنَّ فِي ذَلِكَ﴾ الْمَذْكُور ﴿لَعِبْرَةً لِمَنْ يَخْشَى﴾

---

ترجمه: شروع كوم په نوم د الله پاک چه ډير مهربانه او هميشه مهربانه دې قسم دې په هغې ملائكو چه د كفارو روحونه په ډوبيدو سره په سخته باندې راښكلو والا دى، قسم دې په هغې ملائكو كوم چه په نرمۍ سره د مسلمانانو روحونه ويستونكى دى يعنى روح لره په نرمۍ سره ويستونكى دى، قسم دې په هغه ملائكو كوم چه د الله پاك په حكم سره په اسمان كښې لامبو وهونكى دى يعنى نازليدونكى دى بيا قسم دې په هغې ملائكو كوم چه د مومنانو روحونه اخستلو سره د جنت طرف ته مخكښې كيدونكى دى، بيا قسم دې په هغې ملائكو كوم چه د دنيا د معاملاتو تدبير كونكى دى يعنى د دنيا د تدبير سره نازليږى، ددې قسمونو جواب محذوف دې او هغه ﴿ لتبعثن ياكفار مكة ﴾ دې راې د مكې كافرو تاسو به ضرور د مرګ نه پس ژوندى كولې شئ او هم دا په ﴿ يوم ترجف الراجفة ﴾ كښې عامل دې په كومه ورځ چه به اوخوزوى خوزونكې (يعنى) اولنۍ شپيلۍ، د هغې د وجې نه به هر يو څيز په رپيدو شى يعنى هر يو څيز به متزلزل شى (د قيامت ورځ) هم په هغه صفت سره متصف كړې شوې ده كوم چه به د هغې نه پيدا كيږى، او هغې پسې شاته به يوه بله جهټكه راځى يعنى دويمه نفخه،

او د دوارو نفخو ترمينځه به د څلويښتو کالو فاصله وي او جمله د ﴿ راجفة ﴾ نه حال دي، (د قيامت په ورځ به) د دوارو نفخو ګنجائش وي، لهذا د قيامت د ورځې ددې بعث دپاره ظرف جوړيدل صحيح دي، کوم چه به د نفخه ثانيه نه روستو واقع کيږي ډير زړونه به داسې وي کوم چه به هغه ورځ د ويرې د وجې نه رپيږي يعنې د اضطراب د وجې نه به په ويره کښې وي د هغوی سترګې به ټيټې وي د هغه سختې د وجې نه کومه چه به هغوی وينې، ښکته به وي دا خلق وائي چه آيا مونږ به په اولنی حالت باندې راوستلې شو يعنې دا قلب او نظر والا (کفار مکه) د استهزاء او د انکارِ بعث په طور وائي (آيا مونږ به اولنی حالت ته دوباره راوستلې شو) يعنی آيا مونږ به د مرګ نه پس واپس کولې شو او ﴿ حافرة ﴾ د اول امر نوم دې هم ددې نه (رجع فلان فی حافرته) دې (يعنی فلانې سړې په خپل سابقه حال باندې راغلی) دا هغه وخت وئيلې شی چه کله هم هغه طرف ته واپس شی د کوم ځائې نه چه راغلې وو آيا هغه وخت چه کله مونږ زړيدلې هډوکی شو او په يو قراءت کښې ﴿ ناخرة ﴾ دې يعنی زاړه، ذره ذره، ژوندی کولې به شو؟ وائی بيا خو به دا زمونږ دوباره ژوند ته واپس کيدل ډير د تاوان وی الله پاك فرمانی پس هغه نفخه ثانيه خو به يو اواز وی چه د هغې نه روستو به بعث وی چه کله هغه پوك کړې شی نو ناڅاپه به ټول مخلوق ژوندی کيدو سره د زمکې په سطح باندې راشی حال دا چه هغوی مړه وو د زمکې د لاندې، ايا تاته اې محمد ﷺ د موسی علیه السلام خبر راغلې دې (حديث) په ﴿ اذ ناداه ﴾ کښې عامل دې (نه اتاك) چه کله هغه ته د هغه رب په پاک (مقدس) ميدان طوی کښې اواز اوکړو (طوی) د يو ميدان نوم دې په تنوين سره او بغير د تنوين نه نووی فرمائيل چه ته فرعون ته لاړ شه ځکه چه هغه سرکشی کړې ده يعنی په کفر کښې ئې د حد نه تجاوز کړې دې هغه ته اوايه چه ايا ته غواړې چه زه تاته د داسې څيز دعوت درکړم چه ته پاک شې؟ په يو قراءت کښې په ﴿ تزکی ﴾ کښې د زا په تشديد سره دې، د ﴿ تزکی ﴾ تاء ثانيه لره په اصل کښې په زاء کښې ادغام کولو سره، يعنی د شرك نه پاك شې په دې طريقه چه د ﴿ لا اله الا الله ﴾ شهادت ورکړې او دا چه زه تاته ستا د رب لاره اوښائم چه ته د هغه نه اوويريږې يعنی دليل سره کاته د هغه د معرفت طرف ته رهنمائی اوکړم بيا موسی علیه السلام هغه ته نهه (٩) نخښو کښې يوه لويه نخښه اوښودله او هغه د يد بيضاء يا همسا نخښه ده، خو فرعون د موسی علیه السلام تکذيب اوکړو او د الله پاك نافرمانی ئې اوکړه بيا (هغه) ايمان نه شا واړوله او د فساد فی الارض دپاره ئې منډې ترړې شروع کړې بيا هغه جادوګر او خپل لښکر راجمع کړو او اواز ئې اوکړو چه زه ستاسو لوئې رب يم زما نه لوئې رب بل نشته بيا الله پاك هغه لره د اوبو په ذريعه غرق کړو او د دنيا او اخرت په عذاب ئې اونيولو يعنی د اخری کلمې نه مخکښې ئې د کلمې په عذاب کښې (او هغه اول کلمه) ﴿ ما علمت لکم من اله غيری ﴾ دې او د دې دوارو کلمو ترمينځه د

خلوېښتو کالو فاصله وه ېيشکه په دې (مذکوره قصه) کښې د هغه چا دپاره عبرت دې کوم چه د الله پاك نه وېرېږي.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

قوله: ﴿النّٰزِعٰتِ﴾ (ض) د نزع نه اسم فاعل جمع مونث، په زور سره راويستونکي، دلته د (طائفة) په معنی کښې ملائك مراد دي.

قوله: ﴿غَرْقًا﴾ دا د حذف زوائد سره مصدر دې ﴿اى اغراقا﴾ د خپل عامل ﴿النّٰزِعٰتِ﴾ په معنی کښې د کيدو د وجې نه مفعول مطلق دې لکه ﴿قمت وقوفا﴾ يا ﴿قعدت جلوسا﴾ يا حال دې اى ذوات اغراق، اغراق فى النزع هغه وخت وئيلې شي چه کله په يوه معامله کښې انتهائي حد ته اورسيږي.

قوله: ﴿النّٰشِطٰتِ﴾ (ض) د نشطا نه اسم فاعل جمع مونث دې، پرانستونکې، سهولت کونکې، ﴿نشط فى العمل﴾ هغه وخت وئيلې شي چه کله په يو څيز کښې سهولت او تندي کولې شي، ﴿نشطا﴾ او د دې نه روستو ټول د خپل عواملو تاکيد کونکي مصادر دي.

قوله: ﴿اى تنزل بتدبيره﴾ د دې اضافې مقصد دا بيانول دي چه د تدبير نسبت د ملائکو طرف ته د اسناد مجازي په طور دې، اصل مدبر الله پاك دې، هم په دې حکم سره ملائك تدبير کوي.

قوله: ﴿لتبعثن يا كفار مكة﴾ دا د ذکر شوې قسمونو جواب دې، د کفار مکه تخصيص صرف په دې وجه دې چه هغوی د بعث منکر دی گني بعث د کافر او مومن ټول دپاره دې.

قوله: ﴿فالیوم ولسم للنفختين﴾ دا د يو سوال مقدر جواب دې.

سوال: سوال دا دې چه د ﴿يوم ترجف الراجفة﴾ نه نفخه اولی مراد ده، کوم چه به د مرگ سبب وي، نو بيا هغه د ﴿لتبعثن﴾ مقدر ظرف څنګه کيدې شي؟ څکه چه بعث خو به د نفخه ثانيه په وخت وي؟

جواب: د جواب حاصل دا دې چه هغه ورځ به دومره لويه وي چه په هغې کښې به د دواړو نفخو گنجائش وي اگرچه د دواړو نفخو ترمينځه به د څلوېښتو کالو فاصله وي، د څلوېښتو کالو مطلب دا دې چه يوه ورځ به د څلوېښتو کالو برابر وي، ﴿فصح ظرفيته للبعث﴾ يعنی د يوم د بعث مقدر دپاره ظرف واقع کيدل صحيح شو.

قوله: ﴿تتبعها الرادفة﴾ د ﴿رادفة﴾ معنی ده متصلا روستو راتلونکې، نفخه ثانيه به چونکه د نفخه اولی نه پس واقع کيږي د دوی ترمينځه به نور يو څيز هم حائل نه وي هم په دې وجه نفخه ثانيه ته رادفة اوئيلې شو.

قوله: ﴿قلوب يومئذ واجفة﴾ ﴿قلوب﴾ مبتداء ده او ﴿ابصارها﴾ ئې خبر دې.

**سوال:** ﴿قلوب﴾ نکره دي د دې مبتداء جوړيدل صحيح نه دي.
**جواب:** ﴿واجفة﴾ د قلوب صفت مخصصه دې، چه د هغې په وجه د نکره مبتدا جوړيدل صحيح دي، يعنى ﴿واجفة﴾ د ﴿يومئذ﴾ (د خپل ظرف سره) د قلوب صفت دې، په ﴿ابصارها﴾ كښې ها ضمير د قلوب طرف ته راجع دې، او د ﴿قلوب﴾ مضاف محذوف دې. اى ابصار اصحاب القلوب خاشعة.
**تركيب:** ﴿قلوب﴾ موصوف ﴿يومئذ﴾ د ﴿واجفة﴾ ظرف مقدم، ﴿واجفة﴾ د خپل ظرف مقدم سره د ﴿قلوب﴾ صفت، موصوف سره د صفت نه مبتداء، ﴿ابصارها﴾ مبتدا ثانى، ﴿خاشعة﴾ د دې خبر، مبتداء د خبر ـ ـ جمله د مبتداء اول خبر دې.
**قوله:** ﴿فى الحافرة﴾ اى الى الحافرة فى بمعنى الى او حافرة په معنى د حيات.
**قوله:** ﴿ءاذا كنا عظاما نخرة﴾ د ﴿اذا﴾ عامل محذوف دې چه په هغې ﴿مردودون﴾ دلالت كوى، اى ءاذا كنا عظاما بالية نردونبعث؟
**قوله:** ﴿نخرة﴾ دا د ﴿نخر العظم﴾ نه ماخوذ دې زړو او ډډو هډوكو ته وئيلې شى.
**قوله:** ﴿قالوا تلك﴾ ﴿تلك﴾ مبتداء ده، او مشار اليه ئې ﴿رجعة﴾ دې، ﴿كرة﴾ په معنى د ﴿رجعة﴾ موصوف دې، ﴿خاسرة﴾ صفت دې، موصوف سره د صفت نه د مبتداء خبر دې.
**قوله:** ﴿خاسرة﴾ د دې تفسير په ﴿ذات خسران﴾ سره كولو كښې د يو سوال مقدر د جواب طرف ته اشاره اوكړې شوه.
**سوال:** د ﴿خاسرة﴾ حمل په ﴿كرة﴾ باندې صحيح نه دې.
**جواب:** د جواب خلاصه دا ده چه ﴿خاسرة﴾ د ﴿ذات خسران﴾ په معنى دې، يا د ﴿خاسرة﴾ اصحاب خسران مراد دى، او اسناد مجازى دې لكه په ﴿ربحت تجارتهم﴾ كښې چه اسناد مجازى دې.
**قوله:** ﴿فاذا نفخت﴾ د دې عبارت د اضافه كولو مقصد دا بيانول دى چه ﴿فاذا هم بالساهرة﴾ د شرط محذوف جزاء ده.
**قوله:** فقال اى فقال تعالى
**قوله:** بالتنوين وتركه: يعنى ﴿طوى﴾ كه د مكان په معنى وى نو د منصرف كيدو د وجې نه به منون وى اوكه د ﴿بقعة﴾ په معنى وى نو د غير منصرف كيدو د وجې نه به غير منون وى.
**قوله:** ﴿نكال الآخرة﴾ د ﴿اخرة﴾ نه مراد روستو كلمه ده كومه چه ﴿انا ربكم الاعلى﴾ ده او د ﴿اولى﴾ نه مراد اوله كلمه ده او هغه ﴿ما علمت لكم من اله غيرى﴾ ده او بعض خلقو د ﴿اولى﴾ نه مراد د غرقيدو عذاب و ـ ـ ٤ نه مراد د سوزيدو عذاب اخستلې دې. (والله اعلم)

[ایاتونه ٢٧ - ٤٦]

الله تعالى (ءَأَنتُمْ) بتحقيق الهمزتين وإبدال الثانية ألفا وتسهيلها وإدخال الف بين المسهلة والاخرى وتركه اي منكرو البعث (أَشَدُّ خَلْقًا أَمِ السَّمَاءُ) اشد خلقا (بَنَاهَا) بيان لكيفية خلقها (رَفَعَ سَمْكَهَا) تفسير لكيفية البناء اي جعل سمتها في جهة العلو رفيعا وقيل سمكها سقفها (فَسَوَّاهَا) جعلها مستوية بلا عيب (وَأَغْطَشَ لَيْلَهَا) اظلمه (وَأَخْرَجَ ضُحَاهَا) ابرز نور شمسها وأضيف إليها الليل لأنه ظلها والشمس لانها سراجها (وَالْأَرْضَ بَعْدَ ذَٰلِكَ دَحَاهَا) بسطها وكانت مخلوقة قبل السماء من غير دحو (أَخْرَجَ) حال باضمار قد اي مخرجا (مِنْهَا مَاءَهَا) بتفجير عيونها (وَمَرْعَاهَا) ما ترعاه النعم من الشجر والعشب وما يأكله الناس من الأقوات والثمار وإطلاق المرعى عليه استعارة (وَالْجِبَالَ أَرْسَاهَا) اثبتها على وجه الأرض لتسكن (مَتَاعًا) مفعول له لمقدر اي فعل ذلك متعة أو مصدر اي تمتيعا (لَّكُمْ وَلِأَنْعَامِكُمْ) جمع نعم وهي الإبل والبقر والغنم (فَإِذَا جَاءَتِ الطَّامَّةُ الْكُبْرَىٰ) النفخة الثانية (يَوْمَ يَتَذَكَّرُ الْإِنسَانُ) بدل من إذا (مَا سَعَىٰ) في الدنيا من خير وشر (وَبُرِّزَتِ) أظهرت (الْجَحِيمُ) النار المحرقة (لِمَن يَرَىٰ) لكل راء وجواب إذا (فَأَمَّا مَن طَغَىٰ) كفر (وَآثَرَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا) باتباع الشهوات (فَإِنَّ الْجَحِيمَ هِيَ الْمَأْوَىٰ) مأواه (وَأَمَّا مَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ) قيامه بين يديه (وَنَهَى النَّفْسَ) الأمارة (عَنِ الْهَوَىٰ) المردي باتباع الشهوات (فَإِنَّ الْجَنَّةَ هِيَ الْمَأْوَىٰ) وحاصل الجواب فالعاصي في النار والمطيع في الجنة (يَسْأَلُونَكَ) أي كفار مكة (عَنِ السَّاعَةِ أَيَّانَ مُرْسَاهَا) متى وقوعها وقيامها (فِيمَ) في أي شيء (أَنتَ مِن ذِكْرَاهَا) اي ليس عندك علمها حتى تذكرها (إِلَىٰ رَبِّكَ مُنتَهَاهَا) منتهى علمها لا يعلمه غيره (إِنَّمَا أَنتَ مُنذِرُ) إنما ينفع إنذارك (مَن يَخْشَاهَا) يخافها (كَأَنَّهُمْ يَوْمَ يَرَوْنَهَا لَمْ يَلْبَثُوا) في قبورهم (إِلَّا عَشِيَّةً أَوْ ضُحَاهَا) عشية يوم أو بكرته وصح إضافة الضحى إلى العشية لما بينهما من الملابسة إذ هما طرفا النهار وحسن الإضافة وقوع الكلمة فاصلة

ترجمه: اې د بعث نه منكرو! ايا ستاسو پيدا كول ډير گران دى يا د اسمان؟ ﴿ أأنتم ﴾ د دواړو همزو تحقيق او ثانى لره په الف باندې بدلولو سره د ثانى د تسهيل سره او مسهله او د دويم ترمينځه الف لره داخلولو سره او د ترك ادخال سره، الله پاك هغه جوړ كړې دې دا د اسمان د تخليق د كيفيت بيان دې هغه ئې اوچت جوړ كړو دا د بناء د كيفيت بيان دې يعنى د هغې اوچت والې ئې اوچت كړو، وئيلې شوې دى چه ﴿ رفع سمكها ﴾ نه مراد ﴿ رفع سقفها ﴾ دې، يعنى چهت ئې ورله ښه اوچت كړو، بيا ئې هغه ښه برابر كړو (يعنى) بغير د نقص نه ئې اوچت كړو او د هغې شپه ئې تياره كړه او د هغې ورځ ئې راوويستله يعنى د هغې د نمر نور ئې ښكاره كړو، او د ﴿ ليل ﴾ اضافت د اسمان طرف ته په دې وجه اوكړې شو چه شپه د هغه سورې دې او د شمس اضافت د اسمان طرف ته كړې شوې دې ځكه چه شمس ئې ډيوه ده. او د هغې نه پس ئې زمكه خوره كړه د هغې تخليق د اسمان د پيدائش نه مخكښې شوې وو او د

هغې نه ئې د هغې اوبه راويستلې او د هغې چينې ئې جارې کړې ﴿ اخرج ﴾ د ﴿ قد ﴾ د اضمار سره حال دې د ﴿ مرعها ﴾ په معنى کښې، او د هغې چاره ئې راويستله يعنى هغه کومه چه څاروى خورى که د اوښې د قبيل نه وى يا د ګياه، او هغه څيز ئې پيدا کړو کوم چه انسانان خورى که غله وى يا ميوه، او انسانى خوراك باندې د ﴿ مرعى ﴾ اطلاق په طور د استعارې (مجاز) دې، او غرونه ئې پرې قائم کړل يعنى په زمکه ئې ثبت کړل، ددې دپاره چه اضطراب ئې ختم شى دا ټول ستاسو او ستاسو د حيواناتو د فائدې دپاره دى ﴿ متاعا ﴾ د فعل مقدر مفعول له دې اى فعل ذلك متعة (متاعا بمعنى تمتيعا مصدر دې، (د دې فعل به هم متعنا مقدر وى اى متعنا تمتيعا) العامر د نعم جمع ده او العام اوبښ، غوا او بيزې ته ونيلې شى، پس کله چه هغه لوئې افت راشى يعنى نفخه ثانيه يعنى په کومه ورځ چه به انسان په دنيا کښې خپل کړې خير او شر لره يادکړى ﴿ يوم ﴾ د ﴿ اذا ﴾ نه بدل دې او د هر کتونکى مخې ته به جهنم يعنى سوزونکې اور ظاهر کړې شى او د ﴿ اذا ﴾ جواب ﴿ فامامن طغى ﴾ دې نو چا چه سرکشى يعنى کفر اوکړو او د خواهشاتو د وجې نه ئې د دنيا ژوند ته ترجيح ورکړه د هغه ټهکانه دوزخ دې او چه کوم کس د خپل رب مخې ته د اودريدو نه ويريدو او خپل نفس اماره ئې د شهوتونو د اتباع په ذريعه د هلاکونکى خواهشاتو نه منع کړې وى نو د هغه ټهکانه جنت دې او د جواب حاصل دا دې چه نافرمان به په دوزخ کښې وى او فرمانبردار به جنت کښې، کفار مکه ستا نه د قيامت د واقع کيدو وخت تپوسى يعنى چه هغه به کله واقع کيږى؟ د هغې د علم انتهاء د الله پاک طرف ته ده يعنى د قيامت د وقوع د علم انتهاء هم د هغه طرف ته ده يعنى د الله پاك نه سوا په هغې څوك هم نه پوهيږى، ته خو صرف د هغې نه ويريدونکو لره ويره ورکونکې ئې يعنى ستا ويرول به صرف هغه چاته فائده ورکوى کوم چه د هغې نه ويريږى په کومه ورځ چه دوى هغې لره وينى نو داسې به معلوميږى چه دوى په خپلو قبرونو کښې د مازيګرى برابر يا ساختى برابر وخت تير کړو يعنى د يوې ورځې د سحر يا د ماښام مقدار، او د ﴿ ضحى ﴾ اضافت د ﴿ عشية ﴾ طرف ته په دې وجه دې چه د ددې ترمينځه تعلق دې، په دې وجه چه دواړه د ورځې غارې دى او اضافت لره کلمه فاصله ﴿ او ﴾ واقع کيدو ښکلې کړو.

## د قيودانو فوائد او تسهيل

قوله: ﴿ االتم ﴾ دا استفهام د منکرين بعث د توبيخ دپاره دې.

قوله: ﴿ بتحقيق الهمزتين اى مع ادخال الالف وترکه ﴾ اوله همزه هميشه محقق وى تسهيل او تحقيق صرف په دويمه کښې وى، لهذا د دواړو همزو د محقق کيدو په صورت کښې ادخال الف او ترك ادخال، دا دوه قراتونه شو او د دويم همزه د مسهله کيدو په صورت کښې هم ادخال الف او ترك ادخال، دوه دا شو، او دويم همزه لره په الف سره بدلولو باندې يو قرات

دا شو، ټول پنځه قرا متونه شو.

قوله: ﴿ اشد خلقا ﴾ په دې کښې ئې اشاره اوکړه چه ﴿ ام السماء ﴾ مبتداء ده او ﴿ اشد خلقا ﴾ ددې خبر محذوف دې.

قوله: ﴿ والارض ﴾ ﴿ الارض ﴾ د اشتعال د وجې نه محذوف دې.

قوله: ﴿ كانت مخلوقة ﴾ دا د يو سوالِ مقدر جواب دې.

سوال: په سورة فصلت کښې دی چه د تخليق شروع د ﴿ ارض ﴾ نه شوې ده د هغې نه روستو اسمان پيدا شو او دلته د هغې عکس دې کوم چه تعارض دې؟

جواب: د جواب حاصل دا دې چه د زمکې د مادې تخليق خو د اسمان د تخليق نه مقدم دې خو د هغې خوروَل روستو دی لهذا هيڅ قسم تعارض نشته.

قوله: ﴿ واطلاق المرعى عليه استعارة ﴾ دا ددې شبهې جواب دې چه د انسان په خوراك باندې د چارې اطلاق کړې شوې دې کوم چه مناسب نه دې، ځکه چه چاره د څاروو خوراك ته وئيلې شي؟ د جواب حاصل دا دې چه دا اطلاق په طور د مجاز دې يعنی ددې نه مطلقا ماکول مراد دې، چه په هغې کښې انسانی او حيوانی ټول خوراکونه شامل دی.

قوله: ﴿ وجواب اذا فاما من طغى الخ ﴾ يعنی د ﴿ اذا ﴾ جواب ﴿ فاما من طغى ﴾ دې، په دې کښې لږ شان تسهل دې، ځکه چه ﴿ فاما من طغى ﴾ په دنيا کښې د خلقو د حالت بيان دې، او ﴿ فاذا جاءت الطامة الكبرى ﴾ په اخرت کښې د خلقو د حالت بيان دې، چه د هغې د وجې نه به جزا او شرط دواړه په جدا جدا مقامانو کښې وی، لهذا غوره دا ده چه د ﴿ اذا ﴾ جواب محذوف اومنلې شی لکه چه نورو مفسرينو منلې دې او هغه دا دې ﴿ دخل اهل النار النار واهل الجنة الجنة ﴾

قوله: ﴿ مأواه ﴾ په دې کښې اشاره ده چه په ﴿ هى المأوى ﴾ کښې الف لام د ضمير په عوض کښې دی کوم چه د ﴿ من طغى ﴾ طرف ته راجع دې، د ﴿ اذا ﴾ د جواب حاصل دا دې چه عاصی به جهنم کښې او مطيع به په جنت کښې وی، دا ددې خبرې طرف ته اشاره ده چه د ﴿ اذا ﴾ جواب ﴿ فاما من طغى ﴾ لره منلو په ځائې محذوف اومنلې شی نو زيات به غوره وی، لکه چه مخکښې اشاره اوکړې شوه. (صاوی)

قوله: ﴿ فيم انت ﴾ په اصل کښې ﴿ فيما ﴾ وو د قاعده معروفه د وجې نه الف حذف کړې شو، ﴿ فيم ﴾ خبر مقدم دې، او ﴿ انت ﴾ مبتداء موخر.

قوله: ﴿ وصح اضافة الضحى ﴾ دا د يو سوالِ مقدر جواب دې.

سوال: دا دې چه د شپې دپاره ﴿ ضحى ﴾ نه وی، ﴿ ضحى ﴾ خو د ورځې دپاره وی نو څه وجه ده چه د ضحی اضافت ئې د ﴿ عشية ﴾ طرف ته واپس کيدونکی ضمير طرف ته اوکړو؟

**جواب:** د جواب حاصل دا دي چه (ضحٰه) او (ضحى) دواړه د يوم اطراف (غاړې) دى لهذا د دواړو ترمينځه ربط او تعلق دې، هم په دې وجه د يو اضافت د بل طرف ته صحيح دې.
**قوله:** (وحسن الاضافة وقوع الكلمة فاصلة) مطلب دا دي چه ددې ادنى مناسبت د وجې نه په اضافت كښې د فواصل ايات رعايت حسن پيدا كړو

**[٨٠] سورة عبس**

**سورة عبس مكية اثنتان واربعون آية**

سورة عبس مكى دې، دوه څلويښت آيتونه دى.

**[اياتونه: ١ - ٤٢]**

بسم الله الرحمن الرحيم {عَبَسَ} النَّبِيّ كَلَحَ وَجْهه {وَتَوَلَّى} أَعْرَضَ لِأَجْلِ {أَنْ جَاءَهُ الْأَعْمَى} عَبْد اللّٰه بْن أُمّ مَكْتُوم فَقَطَعَهُ عَمَّا هُوَ مَشْغُول بِهِ مِمَّنْ يَرْجُو إِسْلَامه مِنْ أَشْرَاف قُرَيْش الَّذِينَ هُوَ حَرِيص عَلَى إِسْلَامهمْ وَلَمْ يَدْرِ الْأَعْمَى أَنَّهُ مَشْغُول بِذَلِكَ فَنَادَاهُ عَلِّمْنِي مِمَّا عَلَّمَك اللّٰه فَانْصَرَفَ النَّبِيّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى بَيْته فَعُوتِبَ فِي ذَلِكَ بِمَا نَزَلَ فِي هَذِهِ السُّورَة فَكَانَ بَعْد ذَلِكَ يَقُول لَهُ إِذَا جَاءَ مَرْحَبًا بِمَنْ عَاتَبَنِي فِيهِ رَبِّي وَيَبْسُط لَهُ رِدَاءَهُ {وَمَا يُدْرِيكَ} يُعْلِمك {لَعَلَّهُ يَزَّكَّى} فِيهِ إِدْغَام التَّاء فِي الْأَصْل فِي الزَّاي أَيْ يَتَطَهَّر مِنَ الذُّنُوب بِمَا يَسْمَع مِنْك {أَوْ يَذَّكَّرُ} فِيهِ إِدْغَام التَّاء فِي الْأَصْل فِي الذَّال أَيْ يَتَّعِظ {فَتَنْفَعَهُ الذِّكْرَى} الْعِظَة الْمَسْمُوعَة مِنْك وَفِي قِرَاءَة بِنَصْبِ تَنْفَعهُ جَوَاب التَّرَجِّي {أَمَّا مَنِ اسْتَغْنَى} بِالْمَالِ {فَأَنْتَ لَهُ تَصَدَّى} وَفِي قِرَاءَة بِتَشْدِيدِ الصَّاد بِإِدْغَامِ التَّاء الثَّانِيَة فِي الْأَصْل فِيهَا تُقْبِل وَتَتَعَرَّض {وَمَا عَلَيْكَ أَلَّا يَزَّكَّى} يُؤْمِن {وَأَمَّا مَنْ جَاءَكَ يَسْعَى} حَال مِنْ فَاعِل جَاءَ {وَهُوَ يَخْشَى} اللّٰه حَال مِنْ فَاعِل يَسْعَى وَهُوَ الْأَعْمَى {فَأَنْتَ عَنْهُ تَلَهَّى} فِيهِ حَذْف التَّاء الْأُخْرَى فِي الْأَصْل أَيْ تَتَشَاغَل {كَلَّا} لَا تَفْعَل مِثْل ذَلِكَ {إِنَّهَا} أَيْ السُّورَة أَوْ الْآيَات {تَذْكِرَةٌ} عِظَة لِلْخَلْقِ {فَمَنْ شَاءَ ذَكَرَهُ} حَفِظَ ذَلِكَ فَاتَّعَظَ بِهِ {فِي صُحُفٍ} خَبَر ثَانٍ لِأَنَّهَا وَمَا قَبْله اِعْتِرَاض {مُكَرَّمَةٍ} عِنْد اللّٰه {مَرْفُوعَةٍ} فِي السَّمَاء {مُطَهَّرَةٍ} مُنَزَّهَة عَنْ مَسّ الشَّيَاطِين {بِأَيْدِي سَفَرَةٍ} كَتَبَة يَنْسَخُونَهَا مِنَ اللَّوْح الْمَحْفُوظ {كِرَامٍ بَرَرَةٍ} مُطِيعِينَ لِلّٰهِ تَعَالَى وَهُمْ الْمَلَائِكَة {قُتِلَ الْإِنْسَانُ} لُعِنَ الْكَافِر {مَا أَكْفَرَهُ} اِسْتِفْهَام تَوْبِيخ أَيْ مَا حَمَلَهُ عَلَى الْكُفْر {مِنْ أَيِّ شَيْءٍ خَلَقَهُ} اِسْتِفْهَام تَقْرِير ثُمَّ بَيَّنَهُ فَقَالَ {مِنْ نُطْفَةٍ خَلَقَهُ فَقَدَّرَهُ} عَلَقَة ثُمَّ مُضْغَة إِلَى آخِر خَلْقه {ثُمَّ السَّبِيلَ} أَيْ طَرِيق خُرُوجه مِنْ بَطْن أُمّه {يَسَّرَهُ} {ثُمَّ أَمَاتَهُ فَأَقْبَرَهُ} جَعَلَهُ فِي قَبْر يَسْتُرهُ {ثُمَّ إِذَا شَاءَ أَنْشَرَهُ} لِلْبَعْثِ {كَلَّا} حَقًّا {لَمَّا يَقْضِ} لَمْ يَفْعَل {مَا أَمَرَهُ} بِهِ رَبّه {فَلْيَنْظُرِ الْإِنْسَانُ} نَظَر اِعْتِبَار {إِلَى طَعَامِهِ} كَيْف قُدِّرَ وَدُبِّرَ لَهُ {أَنَّا صَبَبْنَا الْمَاءَ} مِنَ السَّحَاب {صَبًّا} {ثُمَّ شَقَقْنَا الْأَرْضَ} بِالنَّبَاتِ {شَقًّا} {فَأَنْبَتْنَا فِيهَا حَبًّا} كَالْحِنْطَةِ وَالشَّعِير {وَعِنَبًا وَقَضْبًا} هُوَ الْقَتّ الرَّطْب {وَزَيْتُونًا وَنَخْلًا} {وَحَدَائِقَ غُلْبًا} بَسَاتِين كَثِيرَة الْأَشْجَار {وَفَاكِهَةً وَأَبًّا} مَا تَرْعَاهُ الْبَهَائِم وَقِيلَ التِّبْن {مَتَاعًا} مُتْعَة أَوْ تَمْتِيعًا كَمَا تَقَدَّمَ فِي السُّورَة قَبْلهَا {لَكُمْ وَلِأَنْعَامِكُمْ} تَقَدَّمَ فِيهَا أَيْضًا {فَإِذَا جَاءَتِ الصَّاخَّةُ} النَّفْخَة الثَّانِيَة {يَوْمَ يَفِرُّ الْمَرْءُ مِنْ

أبيه، (وأمه وأبيه) (وَصَاحِبَتِه) زَوْجَته (وَبَنِيهِ) يَوْم بَدَل مِنْ إذَا وجوابها دل عليها (لِكُلِّ امْرِءٍ مِنْهُمْ يَوْمَئِذٍ شَأنٌ يُغْنِيه) حَال يَشْغَلهُ عَنْ شَأن غَيْره اَيْ اِشْتَغَلَ كُلّ واحد بنفسه (وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ مُسْفِرَةٌ) مُضِيئة (ضَاحِكَةٌ مُسْتَبْشِرَةٌ) فَرِحَة وَهُمْ الْمُؤْمِنُونَ (وَوُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ عَلَيْهَا غَبَرَةٌ) غُبَار (تَرْهَقُهَا) تَغْشَاهَا (قَتَرَةٌ) ظُلْمَة وَسَوَاد (أُولَئِكَ) أهْل هٰذِهِ الْحَالَة (هُمُ الْكَفَرَةُ الْفَجَرَةُ) اي الجامعون بين الكفر والفجور .

ترجمه: په نوم د الله پاک چه ډیر مهربانه او همیشه مهربانه دې شروع کوم! رسول الله ﷺ تندې تریو کړو يعنى خفګان ئې ښکاره کړو او اعراض ئې اوکړو د دې وجې نه چه یو ړوند سړې هغه ته راغلو عبدالله بن ام مکتوم رضی الله عنه پس هغه د رسول الله ﷺ په هغه کار کښې خلل واچولو په کوم کښې چه هغه مشغول وو د اشراف قریش دځه کسانو سره د چا د اسلام قبلولو چه رسول الله ﷺ امید لرلو، په دې وجه چه رسول الله ﷺ د هغوی د اسلام ډیر حریص وو، او هغه ړوند سړی ته د دې علم نه وو چه رسول الله ﷺ په څه اهم کار کښې مشغول دې، نو هغه رسول الله ﷺ ته اوازونه ورکول شروع کړل چه ما ته د هغې وحی نه څه اوښایه کومه چه تا ته ستا رب ښودلې ده بیا رسول الله ﷺ خپل کور ته تشریف یوړلو، دې باره کښې په رسول الله ﷺ باندې عتاب نازل شو د هغه مضمون په ذریعه کوم چه په دې سورت کښې نازل شو. نو د دې نه روستو به رسول الله ﷺ عبدالله بن ام مکتوم رضی الله عنه ته فرمائیل چه کله به هغه راتلو، چه د هغه سړی دپاره دې هر کلې وی چه د هغه په باره کښې زما رب په ما باندې عتاب اوکړو او رسول الله ﷺ به ورته خپل څادر خوررولو. او تا ته څه معلومه ده کیدې شی چه هغه پاک شوې وې (يزكى) کښې د تاء ادغام دې په اصل زاء کښې يعنى د ګناهونو نه به پاک شوې وې د رسول الله ﷺ خبرې اوریدلو سره او نصیحت به ئې قبول کړې وې (يذكر) په اصل کښې د تاء ادغام دې په ذال کښې، يعنى نصیحت به ئې قبول کړې وې او نصیحت به د هغه دپاره نافع وې يعنى د رسول الله ﷺ نه اوریدلې نصحیت به د هغه دپاره فائده مند وې او په یو قراءت کښې د جواب ترجی د وجې نه (فتنفعه) په نصب سره دې. څوک چه د مال د وجې نه بې پرواهی کوی ته د هغوی په فکر کښې خوئې او په یو قراءت کښې د صاد په تشدید سره دې، اصل کښې تاء ثانیه لره په صاد کښې ادغام کولو سره (يعنى) توجه کوې او فکر کوې، حال دا چه که هغه ایمان رانوړی نو په تا باندې د دې هیڅ ذمه داری نشته او څوک چه تا ته په منډه منډه راځی د فاعل نه حال دې او د الله پاک نه ویرېږی هم دا د (يسعى) د فاعل نه حال دې او هغه نابینا دې نو ته د هغه نه بې رخی کوې په دې کښې په اصل کښې د تاء ثانیه حذف دې، يعنى ته د هغه پرواه نه کوې، خبردار ته هیڅ کله داسې مه کوه دا سورت یا ایتونه خو نصیحت دې د مخلوق دپاره څوک چه غواړی نصحیت دې قبول کړی (یاد دې اوساتی) او نصیحت دې حاصل کړی په داسې صحیفو کښې لیکلې شوې دې چه د الله پاک په نزد عزتمندې دی (لې

صحف) دا د ان خبر ثاني دې او ددې نه مخکښې جمله معترضه ده په اسمان کښې اوچتې مرتبې والا دی د شیطانانو د مس کولو نه پاکې دی د معززو او نیکانو یعني د الله پاك فرمانبردار لیکونکو په لاس کښې دی کوم چه هغې لره د لوح محفوظ نه نقل کوی، او هغه ملائکې دی لعنت دې وی په کافر انسان څنګه د حق سخت منکر دې؟ استفهام د توبیخ دپاره دې یعني چا هغه دې کفر ته تیار کړو؟ د څومره سپک څیز نه الله پاك هغه پیدا کړو دا استفهام تقریری دې، بیایې هغه پخپله بیان فرمائیلو سره ارشاد اوفرمائیلو د نطفې نه، د هغه صورت ئې جوړ کړو بیا ئې پکښې مختلف اطوار جاری کړل (اول) ئې چلك وینه جوړه کړه بیا ئې د غوښې ټکړه جوړه کړه، د هغه د تخلیق د پوره کیدو پورې ئې تغیرات جاری اوفرمائیل بیائې د هغه د مور د خیټې نه د هغه د راوتلو دپاره لاره اسانه کړه بیا ئې هغه ته مرګ ورکړو او هغه ئې قبر ته اورسولو یعني هغه ئې داسې قبر ته اورسولو کوم چه هغه لره پټ کړو. بیا چه کله الله پاك غواړی هغه به د بعث دپاره ژوندې کړی، هرګز داسې نه! دې انسان هغه فرض ادا نه کړل د کوم چه هغه ته د هغه رب حکم کړې وو! بیا دې انسان لږ د عبرت په نظر خپل خوراك ته اوګوری! چه څنګه الله هغه مقدر کړې دې او د هغې دپاره ئې تدبیر کړې دې چه مونږ د وریځو نه ښه اوبه راورولې بیا مونږ د نباتاتو په ذریعه زمکه په عجیبه طریقې سره څیرې کړه بیا مونږ په هغې کښې غله مثلاً غنم، جوار، اوربشې، او انګور او سبزی او هغه شنه چاره ده زیتون او کهجورې او ګڼ باغونه (یعني) د ګڼړو اونو والا باغونه او میوې او چاره مو پیدا کړه چه په هغې کښې څاروی څرېږی او وئیلې شوې دی چاره (پیدا کړل) ستاسو او ستاسو د څاروو د فائدې دپاره چه فائده اورسوی تاسو ته فائده رسول، لکه چه هم په دې سورت کښې ددې نه مخکښې تیر شوې دی، د ﴿ولانعامکم﴾ تفسیر هم په ﴿ابل، بقر، غنم﴾ سره مخکښې تیر شوې دې بیا چه کله به هغه غوږونو لره کڼړونکې آواز راشی یعني نفخه ثانیه هغه ورځ سړې د خپل رور نه او د خپلې مور او د خپل پلار نه او د خپلې ښځې او د خپل اولاد نه تختی ﴿یوم﴾ د اذا نه بدل دې او ددې جواب هغه دې په کوم چه ﴿لکل امرء﴾ دلالت کوی هغې ورځ کښې به هر سړی دپاره داسې مشغله وی چه هغه به بل طرف نه متوجه کیدو ته نه پرېږدی (یعني) داسې حال به وی کوم چه به هغه لره د نورو د حال نه بې خبره کړې وی یعني هر سړې به په خپل حال کښې اخته وی، څه مخونه به په دغه ورځ باندې روښانه تازه وی یعني خوشحاله به وی او دا مومنان دی او څه مخونه به په دغه ورځ باندې ګرد الوده وی او تیاره به پرې خوره وی یعني تور والې او سیاهي، ددې حالت والا خلق به کافر او بدکردار وی یعني د کفر او فجور جامع به وی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله** ﴿عبس وتولی﴾ (ض) ﴿عبسا﴾ ﴿عبوسا﴾ تندې تریو کول، د خفګان اظهار کول، او که د تندی تریو کولو سره سره ئې څانښونه هم ښکاره شی نو بیا ورته ﴿کلح﴾ وئیلې شی او که

مخ هم ورسره وران شي نو ﴿ثم﴾ ورته ونيلې شي او که ورسره غصه هم وي نو ﴿بسل﴾ ورته ونيلې شي. (لغات القران) ﴿عبس﴾ او ﴿وتولى﴾ کښې د غائب صيغې استعمالول، د انتهائي لطف او کرم د اظهار په طور دي چه د عتاب په وخت ئې د حاضر صيغې استعمال نه کړي، چه داسې معلومه شي چه په کوم کار باندې عتاب کولې شي هغه رسول الله ﷺ نه دي کړي، بلکه بل چا کړي دي بيا ورانديې ﴿وما يدريك﴾ او ﴿وما عليك الا يزكى﴾ کښې ئې د حاضر په صيغې سره خطاب اوفرمائيلو، په دې کښې هم د رسول الله ﷺ د زړه ساتلو او احترام لحاظ ساتلې شوې دې که بالکليه د خطاب صيغه نه وه فرمائيلې شوې نو د دې نه به د اعراض شبه پيدا شوې وې چه هغې سره به رسول الله ﷺ ته ناقابل برداشت خفگان او غم رسيدلې وې.

قوله: ﴿عبس وتولى﴾ دې دواړو افعالو په ﴿ان جاءه الاعمى﴾ کښې تنازع اوکړه، دواړه هغه لره مفعول لاجله جوړول غواړي، يو لره عمل ورکولو سره د دويم دپاره ضمير حذف کړې شو د ﴿لفظه﴾ کيدو د وجې نه.

قوله: ﴿عبدالله بن ام مكتوم﴾ اى ابن شريح بن مالك بن ربيعة الفهرى من بنى عامر بن لوى د خپلې نيا په کنيت سره مشهور دې، قديم الاسلام دې، عبدالله بن ام مکتوم رضي الله عنه د سيده خديجه بنت خويلد رضي الله عنها د خاله خوئې دې، رسول الله ﷺ هغه ديارلس کرته د ځان نه روستو په مدينه منوره باندې والي مقرر کړې دې، هغه په جنګ قادسيه کښې شهيد شوې دې.

قوله: ﴿وما يدريك﴾ په دې کښې د غيبت نه د خطاب طرف ته التفات دې، ﴿ما﴾ استفهاميه مبتداء ده ﴿يدريك﴾ فعل متعدى بدو مفعول دې، کاف مفعول اول دې او ﴿لعله يزكى﴾ جمله قائم مقام د دويم مفعول ده.

قوله: ﴿فتنفعه﴾ مرفوع دې په ﴿يذكر﴾ باندې د عطف د وجې نه او منصوب دې د جواب ترجى کيدو د وجې نه.

قوله: ﴿فانت له تصدى﴾ جار مجرور د ﴿تصدى﴾ سره متعلق دې، د فواصل د رعايت د وجې نه مقدم کړې شوې دې.

قوله: ﴿تصدى﴾ په اصل کښې ﴿تصدد﴾ وو دويم دال په حرف علت (ياء) سره بدل کړې شو.

قوله: ﴿وما عليك﴾ ما نافيه ده او ﴿عليك﴾ د مبتداء محذوف خبر دې او ﴿الا يزكى﴾ د مبتداء محذوف سره متعلق دې، د عبارت تقدير داسې دې: ﴿ليس عليك باس فى عدم تزكيته﴾

قوله: ﴿وما قبله اعتراض﴾ يعنى د (ان) دواړو خبرونو ترمينځه جمله معترضه ده.

قوله: ﴿بايدى سفرة﴾ په معنى د ﴿كاتبين﴾ ﴿سفرة﴾ د سافر جمع ده لکه چه ﴿كتبة﴾ د ﴿كاتب﴾ جمع ده.

قوله: ﴿ لعن الكافر ﴾ په دې كښې اشاره ده چه د انسان نه مراد مطلق انسان نه دې بلكه كافر انسان مراد دې
قوله: ﴿ قتل الانسان ﴾ په دې آيت كريمه كښې دوه طريقو سره اشكال دې
اولني اشكال: دا چه په دې كښې د بد دعا (خيرو) وهم پيدا كيږي او دعا يا بد دعا عاجز كوي، او حال دا چه الله پاك قادر مطلق ذات دې لهذا دا د هغه شايان شان نه دې؟
دويم اشكال: تعجب په هغه امر عظيم باندې كولې شي چه د هغې سبب پټ وي، او دا معنى د الله پاك دپاره محال ده؛ ځكه چه هغه خو د عالم د ټولو څيزونو نه اجمالاً او تفصيلاً خبر دې؟
د اولني اشكال رومبي جواب: دا كلام د عربو د كلام په طرز او اسلوب باندې دې ګويا په دې كښې د عذاب عظيم د مستحق كېدو طرف ته اشاره ده د هغوى د عظيم ترين جرم د ارتكاب كولو د وجې نه، عرب چه كله په يو څيز باندې تعجب كوي نو وائي؛ ﴿ قاتله اللهما اخبثه ﴾ الله پاك دې هغه هلاك كړي څومره خبيث دې.
دويم جواب: ﴿ قتل الانسان ﴾ خيري نه دې، بلكه دا ددې خبري خبر وركول دي چه الله پاك هغه لره د خپل رحمت نه لرې كړې دې.
د دويم اشكال جواب: دا استفهام تعجب نه دې بلكه استفهام توبيخ دې او مفسر علامﷺ هم دا اختيار كړې دې.
قوله: ﴿ فقدره ﴾ دا د ﴿ من نطفة علقه ﴾ تفصيل دې ﴿ اى قدره اطواره ﴾ يعنى د هغه د تخليق مراحل ئې مقدر كړې دي.
قوله: ﴿ ثم السبيل يسره ﴾ دا د باب اشتغال نه دې ﴿ اى يسر السبيل يسره ﴾
قوله: ﴿ اذا شاء انشره ﴾ د مشيئت مفعول حذف دې، ﴿ اى اذا شاء انشاره انشره ﴾
قوله: ﴿ هو القت الرطب ﴾ د څاروو ګيا او چاره، شنې ګيا او چارې ته ئې ﴿ قضبا ﴾ وئيلې دې، ځكه چه د قضبا معنى د پرې كولو ده.
او ګيا او چاره چونكه بار بار پرې كولې شي په دې وجه ورته ﴿ قضب ﴾ اوئيلې شو.
قوله: ﴿ غلبا ﴾ دا د ﴿ اغلب ﴾ او ﴿ غلباء ﴾ جمع ده، لكه د ﴿ احمر ﴾ او ﴿ حمراء ﴾ جمع چه ﴿ حُمْر ﴾ راځي، ګڼړو او ګهور اونو ته وئيلې شي.
قوله: ﴿ وابا ﴾ ﴿ اب ﴾ هم د څاروو ګيا او چارې ته وئيلې شي، خو په ﴿ قضب ﴾ او ﴿ اب ﴾ كښې فرق دا دې چه ﴿ قضب ﴾ شنې ګيا ته وئيلې شي او ﴿ اب ﴾ عام دې كه شنه وي او كه اوچه وي.
قوله: ﴿ قيل التبن ﴾ دا د ﴿ اب ﴾ د دويمې معنى بيان دې، ﴿ تبن ﴾ په معنى د اوچې ګيا دې، ددې معنى په اعتبار سره ﴿ اب ﴾ د ﴿ قضب ﴾ ضد دې.
قوله: ﴿ متعة ﴾ او ﴿ تمتيعا ﴾ د ﴿ معاشا ﴾ تفسير په ﴿ متعة ﴾ او ﴿ تمتيعا ﴾ سره كولو كښې ئې اشاره

کړه چه دا مفعول له هم کیدې شی او مفعول مطلق هم.

**قوله:** (الصاخة) (صاخة) زوردار اواز کوم چه غوږونه کاڼه کړی.

**قوله:** (لکل امرء) د تیختې د سبب د بیانولو دپاره جمله مستانفه ده.

**قوله:** (لشغل کل واحد بنفسه) دا د (اذا) جواب محذوف دې

## [٨١] سورة التكوير

### سورة التكوير مكية تسع وعشرون آية

سورة تکویر مکی دې، یو کم دیرش آیتونه دی.

**[ایاتونه: ١ - ٢٩]**

بسم الله الرحمن الرحيم ﴿إِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ﴾ لُفَّتْ وَذُهِبَ بِنُورِهَا ﴿وَإِذَا النُّجُومُ انْكَدَرَتْ﴾ اِنْقَضَّتْ وَتَسَاقَطَتْ عَلَى الْأَرْضِ ﴿وَإِذَا الْجِبَالُ سُيِّرَتْ﴾ ذُهِبَ بِهَا عَنْ وَجْهِ الْأَرْضِ فَصَارَتْ هَبَاءً مُنْبَثًّا ﴿وَإِذَا الْعِشَارُ﴾ النُّوقُ الْحَوَامِلُ ﴿عُطِّلَتْ﴾ تُرِكَتْ بِلَا رَاعٍ أَوْ بِلَا حَلْبٍ لِمَا دَهَاهُمْ مِنَ الْأَمْرِ وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مَالٌ أَعْجَبَ إِلَيْهِمْ منها ﴿وَإِذَا الْوُحُوشُ حُشِرَتْ﴾ جُمِعَتْ بَعْدَ الْبَعْثِ لِيُقْتَصَّ لِبَعْضٍ مِنْ بَعْضٍ ثُمَّ تَصِيرُ تُرَابًا ﴿وَإِذَا الْبِحَارُ سُجِّرَتْ﴾ بِالتَّخْفِيفِ وَالتَّشْدِيدِ أُوقِدَتْ فَصَارَتْ نارا ﴿وإذا النفوس زوجت﴾ قرنت باجسادها ﴿وإذا الموؤدة﴾ الْجَارِيَةُ تُدْفَنُ حَيَّةً خَوْفَ الْعَارِ وَالْحَاجَةِ ﴿سُئِلَتْ﴾ تبكيتا لقاتلها ﴿بِأَيِّ ذَنْبٍ قُتِلَتْ﴾ وَقُرِئَ بِكَسْرِ التَّاءِ حِكَايَةً لِمَا تُخَاطَبُ بِهِ وَجَوَابُهَا أَنْ تَقُولَ قُتِلت بلا ذنب ﴿وَإِذَا الصُّحُفُ﴾ صُحُفُ الْأَعْمَالِ ﴿نُشِرَتْ﴾ بِالتَّخْفِيفِ وَالتَّشْدِيدِ فتحت وبسطت ﴿وَإِذَا السَّمَاءُ كُشِطَتْ﴾ نُزِعَتْ عَنْ أَمَاكِنِهَا كَمَا يُنْزَعُ الْجِلْدُ عَنِ الشَّاةِ ﴿وَإِذَا الْجَحِيمُ﴾ النَّارُ ﴿سُعِّرَتْ﴾ بِالتَّخْفِيفِ وَالتَّشْدِيدِ أُجِّجَتْ ﴿وَإِذَا الْجَنَّةُ أُزْلِفَتْ﴾ قُرِّبَتْ لِأَهْلِهَا لِيَدْخُلُوهَا وَجَوَابُ إِذَا أَوَّلَ السُّورَةِ وَمَا عُطِفَ عَلَيْهَا ﴿عَلِمَتْ نَفْسٌ﴾ كُلُّ نَفْسٍ وَقْتَ هَذِهِ الْمَذْكُورَاتِ وَهُوَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ ﴿مَا أَحْضَرَتْ﴾ مِنْ خَيْرٍ وشر ﴿فَلَا أُقْسِمُ﴾ لَا زَائِدَةٌ ﴿بِالْخُنَّسِ﴾ ﴿الْجَوَارِ الْكُنَّسِ﴾ هِيَ النُّجُومُ الْخَمْسَةُ زُحَلُ وَالْمُشْتَرِي وَالْمِرِّيخُ وَالزُّهَرَةُ وَعُطَارِدُ تَخْنُسُ بِضَمِّ النُّونِ أَيْ تَرْجِعُ فِي مَجْرَاهَا وَرَاءَهَا بَيْنَمَا نَرَى النَّجْمَ فِي آخِرِ الْبُرْجِ إِذْ كَرَّ رَاجِعًا إِلَى أَوَّلِهِ وتكنس النُّونُ تَدْخُلُ فِي كِنَاسِهَا أَيْ تَغِيبُ فِي الْمَوَاضِعِ الَّتِي تَغِيبُ فِيهَا ﴿وَاللَّيْلِ إِذَا عَسْعَسَ﴾ أَقْبَلَ بِظَلَامِهِ أَوْ أَدْبَرَ ﴿وَالصُّبْحِ إِذَا تَنَفَّسَ﴾ امْتَدَّ حَتَّى يَصِيرَ نَهَارًا بينا ﴿إِنَّهُ﴾ أَيِ الْقُرْآنَ ﴿لَقَوْلُ رَسُولٍ كَرِيمٍ﴾ عَلَى اللَّهِ تَعَالَى وَهُوَ جِبْرِيلُ أُضِيفَ إِلَيْهِ لِنُزُولِهِ به ﴿ذِي قُوَّةٍ﴾ أَيْ شَدِيدِ الْقُوَى ﴿عِنْدَ ذِي الْعَرْشِ﴾ أَيِ اللَّهِ تَعَالَى ﴿مَكِينٍ﴾ ذِي مَكَانَةٍ مُتَعَلِّقٌ بِهِ عِنْدَ ﴿مُطَاعٍ ثَمَّ﴾ تُطِيعُهُ الْمَلَائِكَةُ فِي السَّمَاوَاتِ ﴿أَمِينٍ﴾ على الوحي ﴿وَمَا صَاحِبُكُمْ﴾ مُحَمَّدٌ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عُطِفَ عَلَى إِنَّهُ إِلَى آخِرِ الْمُقْسَمِ عَلَيْهِ ﴿بِمَجْنُونٍ﴾ كَمَا زَعَمْتُمْ ﴿وَلَقَدْ رَآهُ﴾ رَأَى مُحَمَّدٌ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جِبْرِيلَ عَلَى صُورَتِهِ الَّتِي خُلِقَ عَلَيْهَا ﴿بِالْأُفُقِ الْمُبِينِ﴾ الْبَيِّنِ وَهُوَ الْأَعْلَى بِنَاحِيَةِ الْمَشْرِقِ ﴿وَمَا هُوَ﴾ مُحَمَّدٌ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ﴿عَلَى الْغَيْبِ﴾ مَا غَابَ مِنَ الْوَحْيِ وَخَبَرِ السَّمَاءِ ﴿بِظَنِينٍ﴾ أَيْ بِمُتَّهَمٍ وَفِي قِرَاءَةٍ بِالضَّادِ أَيْ بِبَخِيلٍ فَيَنْتَقِصُ شَيْئًا مِنْهُ ﴿وَمَا هُوَ﴾ أَيِ الْقُرْآنُ ﴿بِقَوْلِ شَيْطَانٍ﴾ مُسْتَرِق

السَّمْعِ (رَجِيمٍ) مَرْجُومٍ (فَأَيْنَ تَذْهَبُونَ) فَبِأَيِّ طَرِيقٍ تَسْلُكُونَ فِي إِنْكَارِكُمُ الْقُرْآنَ وَإِعْرَاضِكُمْ عَنْهُ (إِنْ) مَا (هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ) عِظَةٌ (لِلْعَالَمِينَ) الإنس والجن (لِمَنْ شَاءَ مِنْكُمْ) بَدَلٌ مِنَ الْعَالَمِينَ بِإِعَادَةِ الجار (أن يستقيم) باتباع الحق (وما تشاؤون) الإِسْتِقَامَةَ عَلَى الْحَقِّ (إِلَّا أَنْ يَشَاءَ اللَّهُ رب العالمين) الخلائق استقامتكم عليه

**ترجمه:** په نوم د الله پاک چه ډير مهربانه او هميشه مهربانه دې شروع کوم کله چه نمر را تول کړې شي او د هغې رڼرا ختمه کړې شي او کله چه ستوري اودوريږي او په زمکه باندې راوغورځيږي او کله چه غرونه روان کړې شي يعنې هغه د زمکې د سطح نه ويستلې شي، نو هغه به د الوتونکي غبار په شان شي او کله چه د لسو مياشتو بلاربې اوښې په خپل حال باندې پريخودلې شي (يعنې) بغير د نګران نه يا بغير د لوشلو نه به پريخودلې شي، ځکه چه هغوى به يوې لوئې آفت په ويره کښې غورځولې وى او د عربو په نزد د لسو مياشتو د اوښې نه زيات غوره مال هيڅ نه وو او کله چه د بعث نه پس ځنګلي حيوانات را جمع کړې شي چه د بعضو د بعض نه بدله واخستلې شي او بيا خاورې شي او کله چه په سمندر اور بل کړې شي په تخفيف او تشديد سره نو هغه به د اور په شان شي او کله چه روحونه د خپلو بدنونو سره يوځائې کړې شي او کله چه به د ژوندئ ښخې کړې شوې جينئ نه د قاتل د لاجواب کولو دپاره تپوس اوکړې شي چه هغه په څه قصور باندې قتل کړې شوه؟ او (قتلت) د تاء په کسرې سره هم لوستلې شوې دې، ددې حکايت کولو سره د کوم په ذريعه چه به هغه ته خطاب کولې شي او ددې جواب به دا وى چه هغه به وائى چه زه بغير د څه ګناه نه قتل کړې شوم؟ او کله چه اعمال نامې پرانستلې شي او خورې کړې شي، په تخفيف او تشديد سره، او کله چه د اسمان پرده لرې کړې شي (يعنې) د خپل ځائې نه بيرته کړې شي ځنګه چه د بيزې نه څرمن ويستلې شي او کله چه جهنم يعنې د هغې اور ګرم کړې شي (سعرت) په تخفيف او تشديد سره او کله چه جنت نزدې کړې شي د جنتيانو دپاره چه هغې ته داخل شي، په اول سورت کښې د (اذا) او په هغې چه کوم معطوف دې د هغې جواب (علمت نفس الخ) دې (هغه وخت به) هر نفس ته معلومه شي يعنې هر سړى ته به په دې ذکر شوې وختونو کښې او هغه د قيامت ورځ ده (معلومه شي) چه هغه د خير او شر نه څه راوړې دى؟ پس زه قسم خورم په واپس کيدونکو او پټيدونکو ستورو باندې (لازائده ده) او پنځه ستورى دا دى ١: زحل، ٢: مشترى، ٣: مريخ، ٤: زهره، ٥: عطارد، (الخنس) د نون په ضمې سره يعنې په خپله لاره کښې شاته طرف ته واپس کيږي، کله چه ته دا ستورى په اخرى برج کښې وينې چه ناڅاپه واپس کيږي د خپل اول برج طرف ته او (الكنس) د نون په کسرې سره، (د دې معنى ده) داخل شي په خپل ځاځ کښې يعنې داسې مقام ته چرته چه هغه پټ شي. او (قسم دې) په شپه کله چه هغه د خپلې تيارې سره راشي يا لاړه شي او په سحر چه کله هغه اوږد شي تر دې چه روښانه شي دا قران کريم في

الواقع د يو پيغمبر قول دي كوم چه د الله پاك په نزد عزت مند دي او هغه سيدنا جبرائيل ﷺ دي، د قول نسبت د هغه طرف ته ددې د نازلولو د وجې نه كړې شوې دې طاقت والا يعنى مضبوط طاقتونو والا دې او د عرش والا يعنى الله په نزد اوچتې مرتبې والا دې ﴿عند ذى العرش﴾ د ﴿مكين﴾ سره متعلق دې هلته د هغه حكم منلې شى يعنى په اسمانونو كښې ملائك د هغه حكم منى او هغه د وحى په باره كښې با اعتماد دې او (اې مكې والو) ستاسو ملګرې محمد ﷺ لكه چه تاسو ګمان كوئ ليونې نه دې ﴿وما صاحبكم﴾ ددې عطف په ﴿انه لقول الخ﴾ مقسم عليه باندې دې هغه دا استاذې يعنى رسول الله ﷺ جبرائيل ﷺ لره د هغه په اصلى صورت كښې په صفا غاړه باندې ليدلې دې په كوم چه هغه پيدا كړې شوې دې، كله چه هغه د مشرق په طرف په اوچته غاړه باندې وو، او هغه يعنى محمد ﷺ د مغيباتو په باره كښې كوم چه وحى او اسمانى خبرونه دى متهم نه دې او په يو قراءت كښې ضاد سره دې يعنى بخيل نه دې چه د وحى نه څه پټ كړى او هغه يعنى قران كريم په غلا د اوريدونكى شيطان مردود كلام نه دې بيا تاسو كوم طرف ته روان يئ؟ يعنى د قران كريم نه انكار كولو او ددې نه اعراض كولو سره تاسو په كومه لاره باندې روان يئ؟ دا خو د ټول جهان والو يعنى انسانانو او پيريانو دپاره نصيحت دې، په تاسو كښې د هر هغه كس دپاره چه ﴿لمن شاء الخ﴾ د اعاده جار سره ﴿العالمين﴾ نه بدل دې، د اتباع حق په ذريعه په نيغه لاره باندې تلل غواړى، ستاسو په استقامت على الحق غوښتلو هيڅ نه كيږى ترڅو چه الله پاك رب العالمين ستاسو دپاره استقامت على الحق اونۀ غواړى.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

قوله: ﴿اذا الشمس كورت﴾ ﴿الشمس﴾ د باب اشتغال نه دې، د بصريانو په نزد د فعل محذوف د وجې نه مرفوع دې روستنې فعل، د فعلِ محذوف تفسير كوى ځكه چه حرف شرط د بصريانو په نزد په اسم باندې نه داخليږى، د عبارت تقدير داسې دې ﴿اذا كورت الشمس كورت﴾ البته د اخفش او كوفيانو په نزد ﴿الشمس﴾ د مبتداء كيدو د وجې نه مرفوع كيدل صحيح دى، د مبتدا مابعد د مبتدا خبر دې، ﴿اذا﴾ په دولسو ځايونو كښې واقع شوې دې، هغه ټول شرطونه دى او ﴿علمت نفس ما احضرت﴾ جواب شرط دې.

قوله: ﴿العشار﴾ د لسو مياشتو بلاربه اوښه، ﴿عشار﴾ د ﴿عشراء﴾ جمع ده لكه چه ﴿نفاس﴾ د ﴿نفساء﴾ جمع ده.

قوله: ﴿خنس﴾ شاته كيدونكى، دا د ﴿خانس﴾ جمع ده، د بعض مفسرينو په نزد مطلق ستورى مراد دى او د بعض په نزد نمر او سپوږمۍ، ځكه چه دا د ورځې پټيږى، او د بعض

په نږد مريخ، زحل، عطارد، زهره او مشتري مراد دي، دې ته خمسه متحيره ونيلې شي، دا پنځه واړه ستوري وراندې تلو تلو سره ناڅاپه شاته طرف ته راواپس شي.

قوله: (كنس) دا د (كانس) جمع ده، (كناس) د اوسې ځاځ ته ونيلې شي، او په ځاځ كښې پټيدو ته هم ونيلې شي. (لغات القران ملخصا)

قوله: (بينا ترى النجم) په بعض نسخو كښې (بينما) دې په (بينا) كښې الف د اشباع دې، په اصل كښې (بين) دې او په (بينما) كښې ميم هم زائد دې دا د ظروف زمانيه نه دې، (بينا) په اصل كښې د (بان يبين) مصدر دې، د (بين) اضافت هميشه د مفرد طرف ته وى كه د جملې طرف ته ئې اضافت اوكړې شى نو فتحه رابنكلې شى چه د هغې د وجې نه الف شى، د مفسر علام جلال الدين رحمه الله د قول معنى دا ده چه اې مخاطبه! چه كله ته ستورى لره په اخرى برج كښې وينې نو هغه په تيزئ سره د برج اولنئ حصې ته راواپس كيږى

قوله: (اذكر)... (اذ) مفاجاتيه او (كر) په معنى د (امرع راجعا) دې.

قوله: (اقبل بظلامه اوادبر) ددې اضافې مقصد دا بيانول دى چه (عسعس) د اضداد نه دې، ددې معنى د وراندې كيدو او شاته كيدو دوارو دى.

قوله: (والصبح اذا تنفس)... (اذا تنفس) بالفارسية: انكاه كه دم زند. يعنى طلوع كند. صبا كيدل.

قوله: (متعلق به عند) د (به) ضمير د (مكين) طرف ته راجع دې يعنى، (عند) د (مكين) سره متعلق دې، (عند) خبر مقدم او (مكين) مبتداء موخر ده.

قوله: (الى امر المقسم عليه) اى عند ذى العرش

قوله: (من الوحى الغ) من بيانيه دې.

## [۷۱] سورة الانفطار

### سورة الانفطار مكية تسع عشرة آية

سورة انفطار مكى دې، يو كم ديرش آيتونه دى.

[اياتوله: ۱ - ۱۹]

بسم الله الرحمن الرحيم ﴿إِذَا السَّمَاءُ انفَطَرَتْ﴾ انشقت ﴿وَإِذَا الْكَوَاكِبُ انتَثَرَتْ﴾ انقضت وتساقطت ﴿وَإِذَا الْبِحَارُ فُجِّرَتْ﴾ فتح بعضها في بعض فصارت بحرا واحدا واختلط العذب بالملح ﴿وَإِذَا الْقُبُورُ بُعْثِرَتْ﴾ قلب ترابها وبعث موتاها وجواب إذا وما عطف عليها ﴿عَلِمَتْ نَفْسٌ﴾ أي كل نفس وقت هذه المذكورات وهو يوم القيامة ﴿مَّا قَدَّمَتْ﴾ من الأعمال ﴿و﴾ ما ﴿أَخَّرَتْ﴾ منها فلم تعمله ﴿يَا أَيُّهَا الْإِنسَانُ﴾ الكافر ﴿مَا غَرَّكَ بِرَبِّكَ الْكَرِيمِ﴾ حتى عصيته ﴿الَّذِي خَلَقَكَ﴾ بعد أن لم تكن ﴿فَسَوَّاكَ﴾ جعلك مستوي الخلقة سالم الأعضاء ﴿فَعَدَلَكَ﴾ بالتخفيف والتشديد جعلك معتدل الخلق متناسب الأعضاء ليست يد أو رجل أطول من الأخرى ﴿فِي أَيِّ صُورَةٍ مَّا﴾ صلة ﴿شَاءَ رَكَّبَكَ﴾ ﴿كَلَّا﴾ ردع عن الاغترار بكرم الله تعالى ﴿بَلْ تُكَذِّبُونَ﴾ أي

كفار مكة (بِالدِّينِ) بالجزاء على الاعمال (وَإِنَّ عَلَيْكُمْ لَحَافِظِينَ) من الملائكة لاعمالكم (كِرَامًا) على الله (كَاتِبِينَ) لها (يَعْلَمُونَ مَا تَفْعَلُونَ) جميعه (إِنَّ الْأَبْرَارَ) المؤمنين الصادقين في ايمانهم (لَفِي نَعِيمٍ) جنة (وَإِنَّ الْفُجَّارَ) الكفار (لَفِي جَحِيمٍ) نار محرقة (يَصْلَوْنَهَا) يدخلونها ويقاسون حرها (يَوْمَ الدِّينِ) الجزاء (وَمَا هُمْ عَنْهَا بِغَائِبِينَ) بمخرجين (وَمَا أَدْرَاكَ) اعلمك (مَا يَوْمُ الدِّينِ) (ثُمَّ مَا أَدْرَاكَ مَا يَوْمُ الدِّينِ) تعظيم لشانه (يَوْمَ) بالرفع اي هو يوم (لَا تَمْلِكُ نَفْسٌ لِنَفْسٍ شَيْئًا) من المنفعة (وَالْأَمْرُ يَوْمَئِذٍ لِلَّهِ) لا امر لغيره فيه اي لم يمكن احدا من التوسط فيه بخلاف الدنيا

ترجمه: په نوم د الله پاک چه ډیر مهربانه او همیشه مهربانه دې شروع کوم، چه کله اسمان او چوی او کله چه ستوری او دوریږی او راوغورځیږی او کله چه ټول دریابونه روان کړې شی او روستو به یو بل سره یوځائې شی نو ټول به یوځائې کیدو سره یو سمندر شی او خوږې او تروې اوبه به یوځائې شی او کله چه قبرونه اوسپردلې شی د هغې خاورې به واړولې شی او په هغې کښې ښخ مړی به ژوندی کړې شی ﴿ اذا ﴾ او په هغې باندې د معطوف جواب ﴿ علمت نفس ﴾ دې، هر نفس په خپل وړاندې اعمال او روستو اعمال کوم چه ئې نه وی کړې یعنی هر یو نفس به په دغه ذکر شوې وختونو کښې کوم چه د قیامت ورځ ده پوهه شی، اې کافر انسانه! ته د خپل کریم رب په باره کښې څه څیز په دهوکه کښې واچولې؟ تردې چه تا د هغه نافرمانی اوکړه چا چه ته پس د دې نه چه ته نه وې پیدا کړې، بیا ئې ته برابر کړې تاته ئې د اندامونو د سلامتئ سره مناسب اعتدال درکړو او ته ئې متناسب (الاعضاء) جوړ کړې ﴿ فعدلك ﴾ د دال په تخفیف او تشدید سره، یعنی ته ئې معتدل الخلق او متناسب الاعضاء جوړ کړې، چه یو لاس دې د بل لاس نه او یوه خپه دې د بلې خپې نه اوږده نه ده. په کوم صورت کښې چه ئې ته اوغوښتلې جوړ کړې ﴿ ما ﴾ زائده ده هرګز نه وه! ﴿ کلا ﴾ د الله پاک په باره کښې په دهوکه کښې د پریوتلو نه د منع کولو دپاره حرف توبیخ دې، بلکه (اصل خبره دا ده) اې د مکې کافرو! تاسو د جزاء اعمال تکذیب کوئ حال دا چه په تاسو باندې د ملائکو نه ستاسو د اعمالو نګران مقرر دی داسې د الله پاک په نزد معزز د اعمالو لیکونکی څه چه تاسو کوئ هغه ټول ورته معلوم دی، بیشکه په خپل ایمان کښې مخلصین به د نعمتونو په جنتونو کښې وی او بیشکه کفار فجار به په سوزونکی اور کښې وی هغې ته به د جزاء په ورځ داخلیږی او د هغې ګرمی به برداشت کوی د هغې نه به نه بهر کیږی (یعنی) نه به راوځی او تاته څه خبر دې چه د جزاء ورځ څه ده؟ بیا (مکرر) تاته څه خبر شته چه د جزاء ورځ څه ده؟ (دا تکرار) د یوم جزاء د تعظیم دپاره دې، ﴿ یوم ﴾ په رفع سره دې، ای هو یوم هغه داسې ورځ ده چه په هغې کښې به یو نفس د بل نفس دپاره د هیڅ واک نه لری او ټول حکومت به په دغه ورځ د الله پاک دپاره وی په دغه ورځ به د غیر حکومت نه وی یعنی په دغه ورځ به د چا واسطه ممکن نه وی، په خلاف د دنیا.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** ﴿ وقت هذه المذكورات ﴾ أي المذكورات الأربعة (١) اذا السماء انفطرت (٢) اذا الكواكب انتثرت (٣) اذا البحار فجرت (٤) اذا القبور بعثرت.

**قوله:** ﴿ ما قدمت ﴾ يعنى نفس چه كوم ښه او بد اعمال كړي دى، هغه به په خپلو اعمال نامو كښ وينى، ﴿ ما اخرت ﴾ نه هغه نيك او بد رسمونه مراد دى كوم چه هغه په دنيا كښ جارى كړل، د هغې عذاب يا ثواب به هغه ته هميشه دپاره ملاويږي، او بعض حضراتو وئيلي دى چه د ﴿ ما قدمت ﴾ نه مراد هغه فرائض دى كوم چه هغه ادا كړل او د ﴿ ما اخرت ﴾ نه هغه فرائض مراد دى كوم چه هغه نه دى ادا كړي.

**قوله:** ﴿ في اي صورة ﴾ دا د ﴿ ركبك ﴾ سره متعلق دې او ﴿ ما ﴾ د ﴿ صورة ﴾ صفت دې.

**قوله:** ﴿ وما ادراك ﴾ ﴿ ما ﴾ استفهاميه مبتداء، ﴿ ادرا ﴾ فعل، كاف مفعول اول، ﴿ ما يوم الدين ﴾ مبتداء د خبر د ﴿ ادرا ﴾ مفعول ثانى.

**قوله:** ﴿ يوم الدين ﴾ ﴿ هو ﴾ د مبتداء محذوف د خبر كيدو د وجې نه مرفوع، او د ﴿ اعنى ﴾ فعل محذوف د مفعول كيدو د وجې نه منصوب.

### [٨٣] سورة المطففين

**سورة المطففين مكية او مدنية ست وثلاثون آية**

سورة مطففين مكى دې يا مدنى دې، شپږ ديرش آيتونه دى.

**[اياتونه: ١ - ٣٦]**

بسم الله الرحمن الرحيم ﴿وَيْلٌ﴾ كَلِمَة عَذَاب أوْ وَادٍ فِي جَهَنَّم ﴿للمطففين﴾ ﴿الَّذِينَ إِذَا اكْتَالُوا عَلَى﴾ أيْ مِنَ ﴿النَّاس يستوفون﴾ الكيل ﴿وَإِذَا كَالُوهُمْ﴾ أيْ كَالُوا لَهُمْ ﴿أَوْ وَزَنُوهُمْ﴾ أيْ وَزَنُوا لَهُمْ ﴿يُخْسِرُونَ﴾ يُنْقِصُونَ الْكَيْل أوْ الوزن ﴿أَلَا﴾ إسْتِفْهَام تَوْبِيخ ﴿يَظُنُّ﴾ يَتَيَقَّن ﴿أُولَئِكَ أَنَّهُمْ مبعوثون﴾ ﴿لِيَوْمٍ عَظِيمٍ﴾ أيْ فِيهِ وَهُوَ يَوْم الْقِيَامَة ﴿يَوْمَ﴾ بَدَل مِنْ مَحَلّ لِيَوْمٍ فَنَاصِبه مَبْعُوثُونَ ﴿يَقُومُ النَّاس﴾ مِنْ قُبُورهمْ ﴿لِرَبِّ الْعَالَمِينَ﴾ الْخَلَائِق لِأَجْلِ أمْره وَحِسَابه وَجَزَائِهِ ﴿كَلَّا﴾ حَقًّا ﴿إِنَّ كِتَابَ الْفُجَّارِ﴾ أيْ كِتَاب أعْمَال الْكُفَّار ﴿لَفِي سِجِّينٍ﴾ قِيلَ هُوَ كِتَاب جَامِع لِأَعْمَالِ الشَّيَاطِين وَالْكَفَرَة وَقِيلَ هُوَ مَكَان أسْفَل الْأَرْض السَّابِعَة وَهُوَ مَحَلّ إبْلِيس وَجُنُوده ﴿وَمَا أَدْرَاكَ مَا سِجِّينٌ﴾ مَا كِتَاب سِجِّين ﴿كتاب مرقوم﴾ مختوم ﴿ويل يومئذ للمكذبين﴾ ﴿الَّذِينَ يُكَذِّبُونَ بِيَوْمِ الدِّينِ﴾ الْجَزَاء بَدَل أوْ بيان للمكذبين ﴿وَمَا يُكَذِّبُ بِهِ إِلَّا كُلُّ مُعْتَدٍ﴾ مُتَجَاوِز الْحَدّ ﴿أَثِيمٍ﴾ صِيغَة مُبَالَغَة ﴿إِذَا تُتْلَى عَلَيْهِ آيَاتُنَا﴾ الْقُرْآن ﴿قَالَ أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ﴾ الْحِكَايَات الَّتِي سُطِّرَتْ قَدِيمًا جَمْع أُسْطُورَة بِالضَّمِّ أوْ إسْطَارَة بِالْكَسْرِ ﴿كَلَّا﴾ رَدْع وَزَجْر لِقَوْلِهِمْ ذَلِكَ ﴿بَلْ رَانَ﴾ غَلَبَ ﴿عَلَى قُلُوبِهِمْ﴾ فَغَشِيَهَا ﴿مَا كَانُوا يَكْسِبُونَ﴾ مِنَ الْمَعَاصِي فَهُوَ كَالصَّدَأ ﴿كَلَّا﴾ حَقًّا ﴿إِنَّهُمْ عَنْ رَبِّهِمْ يَوْمَئِذٍ﴾ يَوْم القيامة ﴿لمحجوبون﴾ فلا يرونه ﴿ثم إنهم لصالوا الْجَحِيمِ﴾ لَدَاخِلُو النَّار الْمُحْرِقَة ﴿ثُمَّ يُقَالُ﴾ لَهُمْ ﴿هَذَا﴾ أيْ الْعَذَاب ﴿الَّذِي كُنْتُمْ بِهِ﴾

يُكَذِّبُونَ} {كَلَّا} حقًّا {إِنَّ كِتَابَ الْأَبْرَارِ} أي كتاب أعمال المؤمنين الصادقين في إيمانهم {لَفِي عِلِّيِّينَ} قيل هو كتاب جامع لأعمال الخير من الملائكة ومؤمني الثقلين وقيل هو مكان في السماء السابعة تحت العرش {وَمَا أَدْرَاكَ} أعلمك {مَا عِلِّيُّونَ} ما كتاب عليين هو {كِتَابٌ مَرْقُومٌ} مختوم {يَشْهَدُهُ الْمُقَرَّبُونَ} من الملائكة {إِنَّ الْأَبْرَارَ لَفِي نَعِيمٍ} جنة {عَلَى الْأَرَائِكِ} السرر في الحجال {يَنْظُرُونَ} ما أعطوا من النعيم {تَعْرِفُ فِي وُجُوهِهِمْ نَضْرَةَ النَّعِيمِ} بهجة التنعم وحسنه {يُسْقَوْنَ مِنْ رَحِيقٍ} خمر خالصة من الدنس {مَخْتُومٍ} على إنائها لا يفك ختمه غيرهم {خِتَامُهُ مِسْكٌ} أي آخر شربه تفوح منه رائحة المسك {وَفِي ذَٰلِكَ فَلْيَتَنَافَسِ الْمُتَنَافِسُونَ} فليرغبوا بالمبادرة إلى طاعة الله {وَمِزَاجُهُ} أي ما يمزج به {مِنْ تَسْنِيمٍ} فسر بقوله {عَيْنًا} فنصبه بأمدح مقدرا {يَشْرَبُ بِهَا الْمُقَرَّبُونَ} منها أو ضمن يشرب معنى يلتذ {إِنَّ الَّذِينَ أَجْرَمُوا} كأبي جهل ونحوه {كَانُوا مِنَ الَّذِينَ آمَنُوا} كعمار وبلال ونحوهما {يَضْحَكُونَ} استهزاء بهم {وَإِذَا مَرُّوا} أي المؤمنون {بِهِمْ يَتَغَامَزُونَ} يشير المجرمون إلى المؤمنين بالجفن والحاجب استهزاء {وَإِذَا انْقَلَبُوا} رجعوا {إِلَىٰ أَهْلِهِمُ انْقَلَبُوا فَكِهِينَ} وفي قراءة فكهين معجبين بذكرهم المؤمنين {وَإِذَا رَأَوْهُمْ} أي المؤمنين {قَالُوا إِنَّ هَٰؤُلَاءِ لَضَالُّونَ} لإيمانهم بمحمد صلى الله عليه وسلم قال تعالى {وَمَا أُرْسِلُوا} أي الكفار {عَلَيْهِمْ} على المؤمنين {حَافِظِينَ} لهم أو لأعمالهم حتى يردوهم إلى مصالحهم {فَالْيَوْمَ} أي يوم القيامة {الَّذِينَ آمَنُوا مِنَ الْكُفَّارِ يَضْحَكُونَ} {عَلَى الْأَرَائِكِ} في الجنة {يَنْظُرُونَ} من منازلهم إلى الكفار وهم يعذبون فيضحكون منهم كما ضحك الكفار منهم في الدنيا {هَلْ ثُوِّبَ} جوزي {الْكُفَّارُ مَا كَانُوا يَفْعَلُونَ} نعم

ترجمه: په نوم د الله پاک چه ډیر مهربانه او همیشه مهربانه دي شروع کوم، لويه خرابي ده (ويل) کلمه د عذاب ده يا په دوزخ کښې يوه کنده ده په ناپ تول کښې د کمي کونکو دپاره چه کله د خلقو نه څه اخلي نو پوره اخلي او چه کله هغوی ته ناپ کولو سره يا تول کولو سره ورکوي نو کم ورکوي يعني په ناپ تول کښې کمي کوي آيا هغوی ته دا استفهام د توبيخ دپاره دي يقين نشته چه هغوی به په يوه لويه سخته ورځ کښې ژوندي کولو سره راپورته کړې شي او هغه د قيامت ورځ ده په کومه ورځ چه به خلق د خپلو قبرونو نه د رب العالمين يعني د مخلوق د رب په حضور کښې د هغه په حکم سره د خپل حساب او جزاء دپاره اودريږي (يوم) د (ليوم) د محل نه بدل دي او د دې ناصب (مبعوثون) دي، هرگز نه! يقينا د کفارو عمل نامه د قيد خانې په دفتر کښې ده ونيلې شوې دي چه هغه د شيطانانو او کفارو د اعمالو دپاره يو جامع کتاب دي او ونيلې شوې دي چه هغه د اوومې زمکې د لاندې يو مقام دي او هغه د ابليس او د هغه د لښکر ځای دی تهکانه ده تاته څه معلومه ده چه سجين څه څيز دي؟ يعني د جيل خانې دفتر څه څيز دي؟ يو کتاب دي ليکلې شوې مهر شوې، په دغه ورځ باندې د تکذيب کونکو دپاره خرابي ده کوم چه د جزاء د ورځې تکذيب کوي (الذين) د (مکذبين) بيان يا بدل دي او د هغې تکذيب هم هغه څوک کوي کوم چه د حد نه تجاوز کونکې بد عمله دي (اثيم) د مبالغې صيغه ده، چه کله هغه ته

زمونږ کتاب قران کريم اورولې شي نو وائي چه دا د پخوانو خلقو قصې دي يعنى هغه قصې کومې چه پخوا زمانه کښ ليکلې شوې دي (اساطير د اسطورة بالضم يا اسطارة بالكسر جمع ده (دا خبره) هرگز نه ده! (كلا ان الخ) د هغه د قول دپاره حرف توبيخ دې بلکه حقيقت دا دې چه د هغوى په زړونو باندې د هغوى د بدو اعمالو د وجې نه زنګ ختلې دې پس هغه بد عملى د زنګ په شان ده هرگز! داسې نه ده پکار! يقينا دا خلق به د قيامت په ورځ د الله پاک د ديدار نه محروم وى چه د هغې د وجې نه به هغوى ته د الله پاك ديدار نه نصيب كيږى بيا به هغوى جهنم ته داخل شي يعنى سوزونكى اور ته به داخليږى بيا به هغوى ته اوئيلې شي دا هم هغه عذاب دې د كوم چه به تاسو تكذيب كولو، هرگز داسې نه ده پكار! بيشكه د نيكانو خلقو عمل نامه يعنى د مومنانو او صادقين فى الايمان عمل نامې په عليين كښ دى ونيلې شوې دى چه عليين د ملائكو او مومنانو د جن او انس د اعمال خير يو جامع كتاب دې او ونيلې شوې دى چه هغه د عرش د لاندې يو مقام دې تاته څه معلومه ده چه عليون څه څيز دې؟ هغه خو ليکلې شوې مهر شوې يو كتاب دې چه د هغې نګران مقرب ملائک دى يقينا نيكان خلق به د جنت په خيمو كښ په تختونو باندې وى كوم څيزونه چه هغوى ته وركولې شى هغې ته به گورى د هغوى په مخونو باندې به ته د خوشحالئ د ول او د هغې تازګى محسوسوې په دې خلقو به د خيرو نه پاك مهر كړې شوې شراب څكولې شى يعنى د شرابو سر به ئې سيل بند وى د هغې سيل به پخپله هغوى پرانيزى او د هغې په اخرى گوټ كښ به د مشكو خوشبوئى وى، مخكښ كيدونكو لره په دې كښ مخكښ كيدل پكار دى لهذا هغوى لره د الله پاك طاعت طرف سبقت كولو كښ سبقت كول پكار دى او په هغې كښ به د تسنيم گدون وى د (تسنيم) تفسير په (عينا) سره كړې شوې دې لهذا د (عينا) نصب د (امدح) مقدر د وجې نه دې. د هغه چينې اوبه به مقرب خلق څكى يا (يشرب) د (يتلذذ) معنى لره متضمن دې، او ابوجهل او د هغه په شان مجرمانو خلقو به د ايمان والو مثلا عمار او بلال ﷺ او د هغوى په شان خلقو پورې ټوقې كولې او مومنان چه به كله په هغوى باندې تيريدل نو مجرمانو به د مومنانو طرف ته كتلو سره په روخې باندې استهزاء اشارې كولې او كله چه به د خپل كور والو ته واپس كيدل نو (هلته به هم ى) ټوقې كولې او په يو قراءت كښ (فكهين) دې يعنى د مومنانو په ذكر سره به ئې تعجب كولو (مزې به ئې ترې اخستلې) او كله چه به ئې مومنان ليدل نو وئيل به ئې يقينا دا خلق محمد ﷺ باندې ايمان راوړلو سره ګمراهان دى الله پاك فرمائى دوى كفار په مومنانو باندې يا د هغوى په اعمالو باندې نګهبان جوړولو سره نه وو ليږلې شوې چه دوى هغوى د اصلاح طرف ته واپس كړى پس نن د قيامت په ورځ به ايمان والا په كفارو پورې خاندى جنت كښ به په لوړو تختونو باندې ناست وى او د كفارو تهكانه ته به گورى په داسې حال كښ چه هغوى ته به عذاب وركولې شي نو مومنان به په كفارو پورې داسې خاندى لكه چه هغوى به وريسې په دنيا

کښې خاندل یقینا کفارو ته د هغوی د کړي کارونو بدله ملاو شوه.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

قوله: ﴿ ویل ﴾ ددې لفظ مفسر علامه ﷫ دوه معنې بیان کړی دی: یو په معنی د عذاب او دویم دوزخ کښې د یوې کندې نوم ﴿ ویل ﴾ که په معنی د عذاب وی نو نکره به وی او که د جهنم د کندې علم وی نو معرفه به وی! ﴿ ویل ﴾ مبتداء او ﴿ للمطففین ﴾ ددې خبر، د علم په صورت کښې د ﴿ ویل ﴾ په مبتداء جوړیدو کښې څه قباحت نشته خو که په معنی د عذاب وی نو دا اعتراض به وی چه ﴿ ویل ﴾ نکره ده او د نکره مبتداء واقع کیدل صحیح نه دی؟ ددې جواب به دا وی چه نکره چه کله د دعا یا د بددعا په معنی وی نو ددې مبتداء واقع کیدل صحیح وی، ﴿ ویل ﴾ دلته د بد دعا په معنی دې لهذا ددې مبتداء جوړیدل صحیح دی.

قوله: ﴿ مطففین ﴾ دا د مطفف جمع ده، کمونکی ته وئیلې شی، کمې که په ناپ تول کښې وی یا په بل څیز کښې، سیدنا عمر ﷛ یو سړي په زر زر مونځ کولو باندې اولیدو چه کله هغه د مانځه نه فارغ شو نو ورته وې اوفرمائیل: ﴿ طففت یارجل ﴾ اې سړیه! تا د مانځه حق ادا نه کړو!

قوله: ﴿ من الناس ﴾ په دې کښې اشاره ده چه ﴿ علی ﴾ په معنی د ﴿ من ﴾ دې.

قوله: ﴿ ای کالوا لهم ﴾ په دې کښې دې طرف ته اشاره ده چه ﴿ کالوهم ﴾ کښې ﴿ هم ﴾ ضمیر مفعول دې، دا په اصل کښې ﴿ لهم ﴾ وو، لام حرف جر حذف کړې شو، د حرف جر د حذف کیدو نه پس ﴿ کالوا ﴾ متعدی بنفسه شو.

قوله: ﴿ ای فیه ﴾ په دې کښې اشاره ده چه په ﴿ لیوم ﴾ کښې لام په معنی د ﴿ فی ﴾ دې، ﴿ لیوم ﴾ د ﴿ مبعوثون ﴾ د ظرف کیدو د وجې نه محلا منصوب دې، په ﴿ یوم یقوم الناس ﴾ کښې ﴿ یوم ﴾ د ﴿ لیوم ﴾ په محل باندې د عطف کیدو د وجې نه منصوب دې.

قوله: ﴿ کتب عملهم مکتوب ﴾ په ﴿ اعمال الکفار ﴾ کښې د حذف مضاف طرف ته اشاره ده او دې طرف ته هم اشاره ده چه ﴿ کتاب ﴾ په معنی د ﴿ کتب ﴾ دې.

قوله: ﴿ سجین ﴾ د ﴿ سجین ﴾ د نون په باره کښې اختلاف دې بعض وائی چه نون اصلی دې او دا لفظ د ﴿ سجن ﴾ نه مشتق دې چه د هغې معنی د قید او بند ده او بعض حضرات وائی چه نون په لام سره بدل شوې دې دا په اصل کښې ﴿ سجیل ﴾ کوم چه د ﴿ سجل ﴾ نه ماخوذ دې، ددې معنی د لیکلو ده، او ﴿ سجیل ﴾ په معنی د ﴿ کتاب جامع ﴾ دې.

قوله: ﴿ مرقوم ﴾ دا په ﴿ کتاب الفجار ﴾ کښې د ذکر شوې کتاب بیان دې، مطلب دا دې چه دا هغه کتاب دې چه په هغې کښې اعمال لیکلې شوې دی، بعض حضراتو ﴿ رقم ﴾ په معنی د

ختم (مهر) اخستلي دي، مفسر علامﷺ هم دا معنى مراد كړي ده.
قوله: ( عليين ) دا اسم مفرد د جمع په وزن دې، په الفاظو كښې د دې جمع نشته.

[٨٤] سورة الانشقاق

سورة الانشقاق مكية ثلاث او خمس وعشرون آية

سورة انشقاق مكي دې، درې ويشت يا پنځه ويشت آيتونه دي.

[اياتوله: ١ - ٢٥]

بسم الله الرحمن الرحيم (إذا السماء انشقت) (وَأَذِنَتْ) سَمِعَتْ وَأَطَاعَتْ فِي الإنْشِقَاق (لِرَبِّهَا وَحُقَّتْ) أيْ وَحُقَّ لَهَا أنْ تَسْمَع وَتُطِيع (وَإِذَا الْأَرْض مُدَّتْ) زِيدَ فِي سَعَتهَا كَمَا يُمَدّ الْأَدِيم وَلَمْ يَبْقَ عَلَيْهَا بِنَاء وَلَا جبل (وَأَلْقَتْ مَا فِيهَا) مِنَ الْمَوْتَى إلَى ظَاهِرهَا (وتخلت) عنه (وَأَذِنَتْ) سَمِعَتْ وَأَطَاعَتْ فِي ذَلِكَ (لِرَبِّهَا وَحُقَّتْ) وَذَلِكَ كُلّه يَكُون يَوْم الْقِيَامَة وَجَوَاب إذَا وَمَا عُطِفَ عَلَيْهَا مَحْذُوف دَلَّ عَلَيْهِ مَا بَعْده تَقْدِيره لَقِيَ الْإِنْسَان عَمَله (يَا أَيُّهَا الْإِنْسَان إنَّك كَادِح) جَاهِد فِي عَمَلك (إلَى) لِقَاء (رَبّك) وَهُوَ الْمَوْت (كَدْحًا فَمُلَاقِيه) أيْ مُلَاقٍ عَمَلك الْمَذْكُور مِنْ خَيْر أَوْ شَرّ يَوْم الْقِيَامَة (فَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَابه) كِتَاب عَمَله (بِيَمِينِهِ) هو المؤمن (فَسَوْفَ يُحَاسَب حِسَابًا يَسِيرًا) هُوَ عَرْض عَمَله عَلَيْهِ كَمَا فِي حَدِيث الصَّحِيحَيْنِ وَفِيهِ مَنْ نُوقِشَ الْحِسَاب هَلَكَ وَبَعْد الْعَرْض يُتَجَاوَز عَنْهُ (وَيَنْقَلِب إلَى أَهْله) فِي الْجَنَّة (مَسْرُورًا) بِذَلِكَ (وَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَابه وَرَاء ظَهْره) هُوَ الْكَافِر تُغَلّ يُمْنَاهُ إلَى عُنُقه وَتُجْعَل يُسْرَاهُ وَرَاء ظَهْره فَيَأْخُذ بِهَا كتابه (فَسَوْفَ يَدْعُو) عِنْد رُؤْيَته مَا فِيهِ (ثُبُورًا) يُنَادِي هَلَاكه بِقَوْلِهِ يَا ثُبُوراه (وَيَصْلَى سَعِيرًا) يَدْخُل النَّار الشَّدِيدَة وَفِي قِرَاءَة بِضَمِّ الْيَاء وَفَتْح الصَّاد وَاللَّام الْمُشَدَّدَة (إنَّهُ كَانَ فِي أَهْله) عَشِيرَته فِي الدُّنْيَا (مسرورا) بطرا باتباعه هواه (إنَّهُ ظَنَّ إنْ) مُخَفَّفَة مِنَ الثَّقِيلَة وَاسْمهَا مَحْذُوف أيْ أَنَّهُ (لَنْ يَحُور) يَرْجِع إلَى ربه (بَلَى) يَرْجِع إلَيْهِ (إنَّ رَبّه كَانَ بِهِ بَصِيرًا) عَالِمًا بِرُجُوعِهِ إلَيْهِ (فَلَا أُقْسِم) لَا زَائِدَة (بِالشَّفَقِ) هُوَ الْحُمْرَة فِي الْأُفُق بَعْد غُرُوب الشَّمْس (وَاللَّيْل وَمَا وَسَقَ) جَمَعَ مَا دَخَلَ عَلَيْهِ مِنَ الدَّوَابّ وَغَيْرهَا (وَالْقَمَر إذَا اتَّسَقَ) اجْتَمَعَ وَتَمَّ نُوره وَذَلِكَ فِي اللَّيَالِي الْبِيض (لَتَرْكَبُنَّ) أيُّهَا النَّاس أَصْله تَرْكَبُونَنَّ حُذِفَتْ نُون الرَّفْع لِتَوَالِي الْأَمْثَال وَالْوَاو لِالْتِقَاءِ السَّاكِنَيْنِ (طَبَقًا عَنْ طَبَق) حَالًا بَعْد حَال وَهُوَ الْمَوْت ثُمَّ الْحَيَاة وَمَا بَعْدهَا مِنْ أَحْوَال الْقِيَامَة (فَمَا لَهُمْ) أيْ الْكُفَّار (لَا يُؤْمِنُونَ) أيْ أيّ مَانِع مِنَ الْإِيمَان أَوْ أيّ حُجَّة لَهُمْ فِي تَرْكه مَعَ وُجُود بَرَاهِينه (و) مالهم (إذَا قُرِئَ عَلَيْهِمُ الْقُرْآن لَا يَسْجُدُونَ) يَخْضَعُونَ بِأَنْ يُؤْمِنُوا بِهِ لِإِعْجَازِهِ (بَلِ الَّذِينَ كَفَرُوا يُكَذِّبُونَ) بِالْبَعْثِ وَغَيْره (وَاللَّهُ أَعْلَم بِمَا يُوعُونَ) يَجْمَعُونَ فِي صُحُفهمْ مِنَ الْكُفْر وَالتَّكْذِيب وَأعمال السُّوء (فَبَشِّرْهُمْ) أَخْبِرْهُمْ (بِعَذَابٍ أَلِيم) مُؤْلِم (إلَّا) لكن (الذين آمنوا وعملوا الصالحات لهم أجر غير ممنون) غَيْر مَقْطُوع وَلَا مَنْقُوص وَلَا يمن به عليه

ترجمه: په نوم د الله پاک چه ډير مهربانه او هميشه مهربانه دې شروع كوم، چه كله اسمان اوچوی او د خپل رب حكم ته غوږ كيږدی (يعنی) د هغه حكم به واوری، او په چاودلو كښې به د هغه

تعميل اوكړي، او دهغه دپاره همدغه حق ده (چه دخپل رب حكم اومني) يعني په هغه باندې لازم كړې شوي دي چه واورې او اطاعت اوكړي. او كله چه زمكه هواره كړې شي يعني د هغې په فراخئ كښې اضافه اوكړې شي څنګه چه څرمنه خوروليې شي او نه به پرې څه ابادي پاتې شي او نه غر، او مرې (وغيره) څه چه په دې كښې دي هغه به بهر راغورځوي او خالي به شي او د خپل رب حكم به اوري او په دې بهر راغورځولو كښې به د خپل رب د حكم اطاعت اوكړي او د هغې دپاره هم دا لائق ده او دا هر څه به د قيامت په ورځ باندې كيږي او د ﴿ اذا ﴾ او په هغې باندې معطوف د ټولو څيزونو جواب محذوف دې، چه په هغې باندې د هغې مابعد دلالت كوي د هغې تقدير ﴿ لقي الانسان عمله ﴾ دې. اې انسانه ته په خپل عمل كښې د خپل رب سره د ملاويدو په كوشش كښې لګيدليې ئې او هغه د مرګ وخت دې پس ته هغه سره ملاويدونكې ئې يعني د قيامت په ورځ باندې د خپل ښه او بد ذكر شوي عمل سره ملاويدونكې ئې، پس د چا په ښي لاس كښې چه د هغه عمل نامه وركړې شي حال دا چه هغه مومن هم وي نو هغه سره به اسان حساب كوليې شي، او هغه د هغه عمل لره په هغه باندې پيش كول دي لكه چه د صحيحين په حديث كښې تفسير كړې شوې دې، او په حديث كښې دي چه چا سره په حساب كښې جانچ پړتال (سختي) اوكړې شوه، هغه هلاك شو، او د پيش كولو نه پس به هغه ته بخښنه كوليې شي، او هغه به جنت كښې د خپل اهل وعيال طرف ته په دې خبره باندې خوشحاله واپس شي، خو پاتې شو هغه كښې چه د هغه عمل نامه هغه ته د هغه د شا د طرف نه وركړې شي (او) حال دا چه هغه كافر وي نو د هغه ښې لاس به د هغه د سټ پورې اوتړليې شي او د هغه كس لاس به د هغه شا ته طرف ته تاؤ كړې شي نو هغه به په هغې سره خپله عمل نامه اونيسي نو هغه به په دې كښې ليكلې شوې اعمال كتلو سره مرګ رابلي (يعني) خپل هلاكت ته به اواز كوي په خپل قول ﴿ ياثبوراه ﴾ سره او انتهائي سخت اور كښې به داخليږي او په يو قراءت كښې د ﴿ يا ﴾ په ضمې او د صاد په فتحې او د لام په تشديد سره دې هغه به خپل كور والو كښې يعني په دنيا كښې په خپل خاندان والو كښې خوشحاله وو د هغه د خپل خواهش د اتباع كولو د وجې نه، د هغه خيال وو چه هغه به كله هم د خپل رب طرف ته نه واپس كيږي ﴿ ان ﴾ مخففه عن الثقيله دې او د دې اسم محذوف دې، ولې به نه واپس كيږي د هغه طرف ته به واپس كيږي يقينا د هغه رب خپل طرف ته د هغه د واپس كيدو نه ښه خبر وو، پس زه قسم كوم په شفق باندې ﴿ لا ﴾ زائد دې، هغه د غروب شمس نه پس د اسمان د غاړې سرخي ده او قسم دې په شپه باندې او په هغه څيز چه څان ته ئې راټولوي يعني هر هغه څيز جمع كوي په كوم چه هغه داخليږي مثلا څاروي وغيره او په سپوږمئ چه كله كامله شي او د هغه نور كامل شي او دا د مياشتې په مينځو شپو كښې وي، اې انسانانو! تاسو به د يو حالت نه بل حالت ته اوړئ (څئ) او (هغه حالت) مرګ دې او بيا ژوند دې او د هغې نه روستو د قيامت حالات دي ﴿ لتركبن ﴾

(تركبون) وو د څو نونونو د جمع كيدو د وجې نه نون رفع حذف كړې شو او واو د التقاء ساكنين د وجې نه حذف كړې شو بيا په دوى كفارو باندې څه شوې دى چه ايمان نه راورى؟ يعنى د هغه د ايمان نه راوړلو نه څه مانع دې؟ يعنى د ترك ايمان هغوى سره څه دليل دې؟ حال دا چه د ايمان د راوړلو دليل موجود دې، او كله چه د هغوى مخكښې قران كريم لوستلې شى نو سجده نه كوى چه سر ښكته كړى په داسې طريقه چه په قران كريم باندې ايمان راورى، د قران د اعجاز د وجې نه بلكه دا كفار خو د بعث وغيره تكذيب كوى حال دا چه دوى چه څه په خپلو اعمال نامو كښې جمع كوى الله پاک هغه ښه پيژنى د هغوى كفر او تكذيب او د هغوى بد اعمالو لره، لهذا هغوى ته د دردونكى عذاب خبر وركړه، مگر هغه خلق چه ايمان ئې راوړې دې او نيک اعمال ئې كړې دى دهغوى دپاره نه ختميدونكې او نه كميدونكى اجر دې او نه به په هغوى باندې ددې ثواب زياتنه كولې شى.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

قوله: (وحقت) ماضى مجهول واحد مونث غائب، ددې فاعل او مفعول دواړه محذوف دى، په اصل كښې (حق الله عليها استماعها) فاعل او مفعول دواړو لره حذف كولو سره د فعل اسناد (سماوات) ته واپس كيدونكى ضمير طرف ته اوكړې شو.

قوله: (اذنت لربها وحقت) دا تكرار نه دې ځكه چه اول د (سماوات) په باره كښې دې او دا د (ارض) په باره كښې، د (اذا) جواب محذوف دې چه په هغې باندې د هغې مابعد يعنى (فملاقيه) دلالت كوى، او جواب شرط (لقى الانسان عمله) دې، او بعض حضراتو (علمت نفس) لره جواب شرط محذوف منلې دې، او دا زيات مناسب دې ځكه چه په سورة تكوير او انفطار كښې ى (علمت نفس) لره محذوف منلې دې.

قوله: (كادح)، (الكدح) العمل والكسب والسعي... كوشش كول.

قوله: (الى ربك) الى حرف غايت دې، او معنى ده (كدحك فى الخير والشر ينتهى بلقاء ربك وهو الموت)

قوله: (فملاقيه) ددې عطف په (كادح) باندې دې، يا د (فانت) مبتداء محذوف خبر دې، اى فانت ملاقيه او جمله معطوف ده، په سابقه جمله (انك كادح) باندې.

قوله: اى (ملاق عملك) په دې كښې دې طرف ته اشاره ده چه د (فملاقيه) ضمير مفعول (كدح) په معنى د عمل طرف ته راجع دې او مضاف محذوف دې، اى فملاق حساب عمله او دا هم صحيح ده چه د (ملاقيه) ضمير د الله پاك طرف ته راجع وى، (اى فملاق ربه) يعنى د هغه دپاره هيڅ مفر نشته.

قوله: (يدعوا ثبورا اى هلاكه) د مرگ د رابللو مطلب دې د مرگ ارزو كول. ځكه چه د (لا يعقل) تمنداء تمنا وى.

قوله: (فلا اقسم) دا د شرط محذوف جواب دې اى (اذا عرفت هذا فلا اقسم) دلته لا زائده ده.

## [٨٥] سورة البروج

### سورة البروج مكية اثنتان وعشرون آية

سورة بروج مکی دی، دوه ویشت آیتونه دي.

### [ایاتونه: ١-٢٢]

بسم الله الرحمن الرحيم ﴿وَالسَّمَاءِ ذَاتِ الْبُرُوجِ﴾ الكواكب اثني عشر برجا تقدمت في الفرقان ﴿وَالْيَوْمِ الْمَوْعُودِ﴾ يوم القيامة ﴿وَشَاهِدٍ﴾ يوم الجمعة ﴿وَمَشْهُودٍ﴾ يوم عرفة كذا فسرت الثلاثة في الحديث فالأول موعود به والثاني شاهد بالعمل فيه والثالث تشهده الناس والملائكة وجواب القسم محذوف صدره تقديره لقد ﴿قُتِلَ﴾ لعن ﴿أَصْحَابُ الْأُخْدُودِ﴾ الشق في الأرض ﴿النَّارِ﴾ بدل اشتمال منه ﴿ذَاتِ الْوَقُودِ﴾ ما توقد به ﴿إِذْ هُمْ عَلَيْهَا﴾ حولها على جانب الأخدود على الكراسي ﴿قُعُودٌ﴾ ﴿وَهُمْ عَلَىٰ مَا يَفْعَلُونَ بِالْمُؤْمِنِينَ﴾ بالله من تعذيبهم بالإلقاء في النار إن لم يرجعوا عن إيمانهم ﴿شُهُودٌ﴾ حضور روي أن الله أنجى المؤمنين الملقين في النار بقبض أرواحهم قبل وقوعهم فيها وخرجت النار إلى من ثم فأحرقتهم ﴿وَمَا نَقَمُوا مِنْهُمْ إِلَّا أَنْ يُؤْمِنُوا بِاللَّهِ الْعَزِيزِ﴾ في ملكه ﴿الْحَمِيدِ﴾ المحمود ﴿الَّذِي لَهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ﴾ أي ما أنكر الكفار على المؤمنين إلا إيمانهم ﴿إِنَّ الَّذِينَ فَتَنُوا الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ﴾ بالإحراق ﴿ثُمَّ لَمْ يَتُوبُوا فَلَهُمْ عَذَابُ جَهَنَّمَ﴾ بكفرهم ﴿وَلَهُمْ عَذَابُ الْحَرِيقِ﴾ أي عذاب إحراقهم المؤمنين في الآخرة وقيل في الدنيا بأن أخرجت النار فأحرقتهم كما تقدم ﴿إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَهُمْ جَنَّاتٌ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ ذَٰلِكَ الْفَوْزُ الْكَبِيرُ﴾ ﴿إِنَّ بَطْشَ رَبِّكَ﴾ بالكفار ﴿لَشَدِيدٌ﴾ بحسب إرادته ﴿إِنَّهُ هُوَ يُبْدِئُ﴾ الخلق ﴿وَيُعِيدُ﴾ فلا يعجزه ما يريد ﴿وَهُوَ الْغَفُورُ﴾ للمذنبين المؤمنين ﴿الْوَدُودُ﴾ المتودد إلى أوليائه بالكرامة ﴿ذُو الْعَرْشِ﴾ خالقه ومالكه ﴿الْمَجِيدُ﴾ بالرفع المستحق لكمال صفات العلو ﴿فَعَّالٌ لِمَا يُرِيدُ﴾ لا يعجزه شيء ﴿هَلْ أَتَاكَ﴾ يا محمد ﴿حَدِيثُ الْجُنُودِ﴾ ﴿فِرْعَوْنَ وَثَمُودَ﴾ بدل من الجنود واستغني بذكر فرعون عن أتباعه وحديثهم أنهم أهلكوا بكفرهم وهذا تنبيه لمن كفر بالنبي صلى الله عليه وسلم والقرآن ليتعظوا ﴿بَلِ الَّذِينَ كَفَرُوا فِي تَكْذِيبٍ﴾ بما ذكر ﴿وَاللَّهُ مِنْ وَرَائِهِمْ مُحِيطٌ﴾ لا عاصم لهم منه ﴿بَلْ هُوَ قُرْآنٌ مَجِيدٌ﴾ عظيم ﴿فِي لَوْحٍ﴾ هو في الهواء فوق السماء السابعة ﴿مَحْفُوظٍ﴾ بالجر من الشياطين ومن تغيير شيء منه طوله ما بين السماء والأرض وعرضه ما بين المشرق والمغرب وهو من درة بيضاء قاله ابن عباس رضي الله عنهما

**ترجمه:** په نوم د الله پاک چه ډیر مهربانه او همیشه مهربانه دې شروع کوم قسم دې په اسمان چه د برجونو خاوند دې د اووه سیارو دولس برجونه دي (چه د هغې تفصیل په سورة فرقان کښې تیر شوې دې) او قسم دې په هغه ورځ چه وعده ئې کړې شوې دې یعنی د قیامت د ورځې او په حاضریدونکی د جمعې ورځ باندې قسم، او په هغه ورځ قسم چه په هغې کښې حاضری کولې شی یعنی د عرفې په ورځ، په حدیث شریف کښې د درې وارو هم دغه شان تفسیر کړې شوې

دي، اول موعود به دې دويم (يعني جمعه) په هغې کښې د عمل شهادت ورکونکې ده او دريم (عرفه) چه هغې ته انسانان او ملائک حاضريږی او د جواب قسم صدر محذوف دې. او هغه (لقد) دې اې (لقد قتل اصحاب الاخدود) هلاک کړې شو کندو والا يعنی په زمکه کښې خندقونه کنستلو والا هغه يو اور وو خشاک والا، (النار) د (الاخدود) نه بدل الاشتمال دې، (وقود) هغه خشاک ته وئيلې شی چه د هغې په ذريعه اور بلولې شی په داسې حال کښې چه هغه خلق د دې خندقونو په غاړو باندې په کرسو ناست وو او مومنانو سره د ايمان بالله نه د نه اوختلو په صورت کښې په اور کښې د اچولو چه کوم عمل هغوی کولو هغه ئې ليدلو، روايت کړې شوې دې چه الله پاك په اور کښې اچولې کيدونکی مومنان په اور کښې د اچولو نه مخکښې د هغوی روح قبض کولو سره هغوی ته خلاصې ورکړو او اور د هغه خلقو طرف ته لاړو چا چه تماشه کوله او هغوی ئې اوسيزل او اهل ايمان سره د هغوی د دشمنئ وجه دا دې نه سوا هيڅ نه وه چه هغوی په الله پاک چه په خپل ملك کښې غالب او ستائيلې شوې دې ايمان لرلو، او د اسمانونو او د زمکې ملکيت هم د هغه دې او هغه هر څه وينی يعنی د کفارو د مومنانو صرف د هغوی ايمان راوړل خوښ نه وو. يقينا د هغه خلقو دپاره چا چه په مومنانو سړو او مومنانو زنانو باندې اور بلولو سره ظلم اوکړو بيا ئې توبه اونکړه نو د هغوی دپاره د هغوی د کفر د وجې نه د جهنم عذاب دې، او د هغوی دپاره په اخرت کښې سيزلو يعنی د مومنانو په اور کښې د سيزلو د وجې نه عذاب دې او وئيلې شوې دی چه په دنيا کښې دې، په دې طريقه چه (خندق نه) اور راوتلو او هغوی ئې اوسيزل لکه چه مخکښې تير شو کومو خلقو چه ايمان راوړلو او نيک عملونه ئې اوکړل يقينا د هغوی دپاره د جنت باغونه دی چه د هغې د لاندې نهرونه روان دی دا لويه کاميابی ده بيشکه په کافرو باندې ستا د رب نيول سخت دی د هغه د ارادې مطابق هم هغه مخلوق لره اول کرت پيدا کوی او هم هغه به ئې دوباره پيدا کوی هغه لره څوك هم د هغه د ارادې نه نه شی منع کولې هغه گنهگارو مومنانو لره زيرې ورکونکې دې او د اکرام په ذريعه د خپلو اولياء سره محبت کونکې دې او د عرش مالک دې يعنی دد هغې خالق دې، او مالك دې. او عزت والا اولوئ دې (المجيد) په رفع سره، د صفات کماليه مستحق دې. او څه چه غواړی (دهغې) کونکې دې هغه لره يو څيز هم نه شی عاجز کولې؟ آيا اې نبی ﷺ تا ته د فرعون او د ثمود د لښکرو خبر راغلې دې؟ دا د جنود نه بدل دې او د فرعون د ذکر د وجې نه د هغه د تابعدارو د ذکر ضرورت نشته، او د هغوی واقعه دا ده چه هغوی د خپل د کفر د وجې نه هلاك کړې شو، او (په اصل کښې) هغه خلقو ته تنبيه ده چا چه د نبی ﷺ او د قران کريم انکار اوکړو، ددې دپاره چه هغوی نصيحت حاصل کړی مگر چا چه کفر اوکړو هغوی د مذکور په تکذيب کولو کښې لگيدلی دی حال دا چه الله پاک هغوی لره د هر طرف نه گير کړې دی دهغه نه هغوی لره څوك نه شی بچ کولې بلکه دا قران کريم دې لوئې مرتبې والا هغه په لوح

محفوظ کښې کوم چه په فضاء کښې د اووؤ اسمانونو دپاسه دې محفوظ دې او د هغې اوږدوالې د اسمانونو او د زمکې برابر دې او د هغې پلن والې د مشرق نه مغرب پورې دې. او هغه (لوح) سپینه ملغلره ده هم دا خبره ابن عباس رضي الله عنهما فرمائيلې ده.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

١: الحمل ٢: الثور ٣: الجوزاء ٤: السرطان ٥: الاسد ٦: السنبلة ٧: الميزان ٨: العقرب ٩: القوس ١٠: الجدى ١١: الدلو ١٢: الحوت.

دا ذکر شوې دولس برجونه د اووؤ سیارو دی، د مریخ دوه برجونه دی، حمل او عقرب، او د زهره هم دوه برجونه دی، ثور او میزان، او د عطارد هم دوه برجونه دی، الجوزاء او سنبله، د قمر یو برج دې او هغه سرطان دې، او د شمس هم یو دې او هغه اسد دې، او د مشتری دوه دی، القوس او حوت، او زحل ددې هم دوه دی، الجدی او دلو.

**قوله:** (الموعود) اى موعود به هو القيامة.

**قوله:** (محذوف صدرة) یعنی ماضی مثبت چه معمول ئې مقدم نه وی چه کله جواب قسم واقع شی نو په هغې باندې (لام) او (قد) داخلول ضروری دی په یو باندې اکتفاء جائز نه ده، البته د طول کلام یا ضرورت د وجې نه په یو باندې اکتفاء کیدلې شی، لکه چه په (قد افلح) کښې د طول کلام د وجې نه صرف په (قد) باندې اکتفاء کړې شوې ده (قتل اصحاب الاخدود) اى لقد قتل اصحاب الاخدود، اخدود مفرد دې جمع ئې اخادید راځی په معنی د خندق.

**قوله:** (النار بدل الاشتمال منه) (النار) د (اخدود) نه بدل اشتمال دې ځکه چه (اخدود) په نار باندې مشتمل دې.

**قوله:** (الوقود) د واؤ په فتحې سره په معنی د خشاك او په ضمې سره مصدر دې، سیزل.

**قوله:** (اذ هم عليها) د (قتل) مقدم ظرف موخر دې، یعنی مومنانو لره د خندق په اور کښې د سیزلو په وخت د خندقونو په غاړو په کرسو باندې ناست وو، (شهود) بعض وائی چه د (شهادة) په معنی د ګواهۍ نه مشتق دې، یعنی د بادشاه په وړاندې به بعضو د بعض د حسن کارکردګۍ شهادت ورکولو یا د شهادة په معنی د حضور نه مشتق دې، مفسر علام هم دا قول مراد کړې دې مطلب دا دې چه د مومنانو سره چه د تعذیب او (احراق فى النار) معامله کولې شوه هغه به ئې په کرسو باندې ناست د تماشې په طور کتل او خوشحالیدل به.

**قوله:** (الذى له ملك السموات والارض) دا د (العزيز الحميد) بیان دې.

**قوله:** (فلهم عذاب جهنم) دا د (ان الذين فتنوا) خبر دې، مبتداء چونکه متضمن معنی د شرط لره ده په دې وجه په خبر باندې (فاء) داخله شوې ده.

قوله: ﴿ بدل من الجنود ﴾ فرعون د مضاف په حذف سره د جنود نه بدل دې، اى جنود فرعون، د فرعون د ذکر کولو نه پس د اتباع فرعون د ذکر کولو ضرورت نشته.

قوله: ﴿ عما ذكر ﴾ اى القران والنبى ﷺ د ﴿ ما ﴾ نه مراد قران یا نبی ﷺ دې.

## [٨٦] سورة الطارق

### سورة الطارق مكية سبع عشرة آية

سورة طارق مکی دې، اوولس آیتونه دی.

[ایاتونه: ١ - ١٧]

بسم الله الرحمن الرحيم ﴿وَالسَّمَاءِ وَالطَّارِقِ﴾ أصله كُلّ آتٍ لَيْلًا وَمِنْهُ النُّجُوم لِطُلُوعِهَا لَيْلًا ﴿وَمَا أَدْرَاكَ﴾ أعْلَمك ﴿مَا الطَّارِقُ﴾ مُبْتَدَأ وَخَبَر فِي مَحَلّ الْمَفْعُول الثَّانِي لِأَدْرَى وَمَا بَعْد مَا الْأُولَى خَبَرهَا وَفِيهِ تَعْظِيم لِشَأْنِ الطَّارِق الْمُفَسَّر بِمَا بَعْده هُوَ ﴿النَّجْمُ﴾ أَيْ الثُّرَيَّا أَوْ كُلّ نَجْم ﴿الثَّاقِبُ﴾ الْمُضِيء لِثَقْبِهِ الظَّلَام بِضَوْئِهِ وَجَوَاب الْقَسَم ﴿إِنْ كُلُّ نَفْسٍ لَمَّا عَلَيْهَا حَافِظٌ﴾ بِتَخْفِيفِ مَا فَهِيَ مَزِيدَة وَإِنْ مُخَفَّفَة مِنْ الثَّقِيلَة وَاسْمهَا مَحْذُوف أَيْ إِنَّهُ وَاللَّام فَارِقَة وَبِتَشْدِيدِهَا فَإِنْ نَافِيَة وَلَمَّا بِمَعْنَى إِلَّا وَالْحَافِظ مِنْ الْمَلَائِكَة يَحْفَظ عَمَلهَا مِنْ خَيْر وَشَرّ ﴿فَلْيَنْظُرِ الْإِنْسَانُ﴾ نَظَر اعْتِبَار ﴿مِمَّ خُلِقَ﴾ مِنْ اي شيء جوابه ﴿خُلِقَ مِنْ مَاءٍ دَافِقٍ﴾ ذِي انْدِفَاق مِنْ الرَّجُل وَالْمَرْأَة فِي رَحِمهَا ﴿يَخْرُجُ مِنْ بَيْنِ الصُّلْبِ﴾ لِلرَّجُلِ ﴿وَالتَّرَائِبِ﴾ لِلْمَرْأَةِ وَهِيَ عِظَام الصَّدْر ﴿إِنَّهُ﴾ تَعَالَى ﴿عَلَى رَجْعِهِ﴾ بَعْث الْإِنْسَان بَعْد مَوْته ﴿لَقَادِرٌ﴾ فَإِذَا اعْتَبَرَ أَصْله عَلِمَ أَنَّ الْقَادِر عَلَى ذَلِكَ قَادِر عَلَى بَعْثه ﴿يَوْمَ تُبْلَى﴾ تُخْتَبَر وَتُكْشَف ﴿السَّرَائِرُ﴾ ضَمَائِر الْقُلُوب فِي العقائد والنيات ﴿فَمَا لَهُ﴾ لِمُنْكِرِ الْبَعْث ﴿مِنْ قُوَّةٍ﴾ يَمْتَنِع بِهَا مِنْ الْعَذَاب ﴿وَلَا نَاصِرٍ﴾ يَدْفَعهُ عَنْهُ ﴿وَالسَّمَاءِ ذَاتِ الرَّجْعِ﴾ الْمَطَر لِعَوْدِهِ كُلّ حِين ﴿وَالْأَرْضِ ذَاتِ الصَّدْعِ﴾ الشَّقّ عَنْ النَّبَات ﴿إِنَّهُ﴾ أَيْ الْقُرْآن ﴿لَقَوْلٌ فَصْلٌ﴾ يَفْصِل بَيْن الحقّ والباطل ﴿وَمَا هُوَ بِالْهَزْلِ﴾ بِاللَّعِبِ وَالْبَاطِل ﴿إِنَّهُمْ﴾ أَيْ الْكُفَّار ﴿يَكِيدُونَ كَيْدًا﴾ يَعْمَلُونَ الْمَكَايِد لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ﴿وَأَكِيدُ كَيْدًا﴾ أَسْتَدْرِجهُمْ مِنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُونَ ﴿فَمَهِّلِ﴾ يَا مُحَمَّد ﴿الْكَافِرِينَ أَمْهِلْهُمْ﴾ تَأْكِيد حَسَّنَهُ مُخَالَفَة اللَّفْظ أَيْ أَنْظِرْهُمْ ﴿رُوَيْدًا﴾ قَلِيلًا وَهُوَ مَصدر مؤكد لمعنى العالم مُصَغَّر رُوْد أَوْ أَرْوَاد عَلَى التَّرْخِيم وَقَدْ أَخَذَهُمْ اللَّه تَعَالَى بِبَدْرٍ وَنُسِخَ الْإِمْهَال بِآيَةِ السيف أي الأمر بالقتال والجهاد

ترجمه: په نوم د الله پاک چه ډير مهربانه او هميشه مهربانه دې شروع کوم، قسم دې په اسمان او په هغه څيز چه د شپې ښکاره کيدونکې دې طارق په اصل کښ د شپې هر راتلونکى ته وائى، او هم د هغې نه ستورى دى ځکه چه دا هم په شپه کښ طلوع کيږى او تاته معلومه ده چه د شپې په وخت راتلونکې څه څيز دې؟ ﴿ ما الطارق ﴾ مبتداء او خبر دى کوم چه د ﴿ ادرى ﴾ د مفعول ثانى په محل کښ دى او د اولنى ﴿ ما ﴾ مابعد د دې خبر دې او په دې کښ د طارق د شان تعظيم دې چه د هغې د مابعد په ذريعه تفسير کړې شوې دې. (او طارق) روښانه ثريا دې يا هر روښانه ستورې دې کوم چه د خپلې رڼا په ذريعه د تيرې د ختمولو د وجې نه

ناقب بللې شي او جواب د قسم محذوف دې. يو ساه لرونكې هم داسې نشته چه د هغه د پاسه يو نگهبان نه وي د (ما) په تخفيف سره، پس هغه زائده دې، او (ان) د ثقيله نه مخففه دې او د دې اسم محذوف دې اى (انه) او لام د مخففه او نافيه ترمينځه فارقه دې او (لما) په تشديد سره هم دې پس (ان) نافيه دې او (لما) په معنى د (الا) دې او نگرانى كونكى ملائك دي كوم چه د هر يو نفس د ښو او بدو اعمالو نگرانى كوي بيا دې انسان هم په دې د عبرت نظر اوكړي چه هغه د څه څيز نه پيدا كړې شوې دې؟ د دې جواب (خلق من ماء دافق) دې (يعنى) د سړي او زنانه په رحم كښې د توپ وهونكې اوبو نه پيدا كړې شوې دې كوم چه د سړي د شا او د زنانو د پښتو ترمينځه اوځي او (ترائب) د سينې هډوكو ته وئيلې شي يقينا الله پاک د انسان په دوباره پيدا كولو باندې قادر دې پس كله چه انسان په خپل اصل باندې د عبرت نظر كولو سره غور اوكړي نو په دې خبره به پوهه شي چه كوم ذات د هغه د تخليق په ابتدا باندې قادر دې هغه په اعاده باندې هم قادر دې، په كومه ورځ چه به پټ رازونه ازميښتلې شي او ښكاره به كړې شي يعنى د عقيدې او د نيتونو په باره كښې به د زړونو د پټو رازونو ازميښت كولې شي نو هغه وخت به هغه منكر بعث سره نه خپل څه زور وي چه د هغې په ذريعه د عذاب نه بچ شي او نه به څوک د هغه مدد كونكې وي چه د هغه دفاع اوكړي او قسم دې په باران ورونكى اسمان باندې (مطر) ته د رجع وئيلو وجه داده چه هغه بار بار رجوع كوي او په چودونكې زمكه باندې يعنى هغه چودنه كومه چه د بوټو په راتو كيدو باندې كيږي بيشكه دا قران يو فيصله كونكې قول دې (كوم چه) د حق او باطل ترمينځه فيصله كونكې دې او څه توقې ټقالې نه دي يعنى لهو او لعب او باطلې خبرې نه دي دا كفار بعض چالونه كوي يعنى د رسول الله ﷺ سره مكر كوي او زه هم يو چال كوم يعنى هغوى ته مهلت وركوم په داسې طريقه چه هغوى نه پوهيږي پس اې محمد ﷺ دا كفار پريږده (امهلهم) تاكيد دې لفظى مخالفت په دې كښې حسن پيدا كړې دې يعنى هغوى ته څه وخت مهلت وركړئ (رويدا) معنى د عامل دپاره موكد دې او (رُوَدًا) په حذف د زوائدو سره مصغر دې، او بيشك الله پاک هغوى په بدر كښې اونيول، او مهلت په آيت سيف سره منسوخ شو، يعنى د قتال او جهاد په حكم سره.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

قوله: (اصله كل ات ليلا) طارق په لغت كښې دروازه ټكونكى ته وئيلې شي، شپه كښې راتلونكى ته په دې وجه طارق وائي چه هغه هم دروازه ټكوي، بيا په دې كښې وسعت كولو سره د شپې په وخت كښې هر ظاهريدونكى باندې د دې اطلاق كيدل شروع شو، بيا په دې كښې هم توسيع اوشوه او مطلقا ښكاره كيدونكى څيز ته وئيل شروع شو كه په ورځ كښې

ظاهر شي یا په شپه کښې، هم د دې نه دا حدیث هم دی: ﴿اعوذبك من شر طارق اللیل والنهار الا طارقا یطرق بخیر یا رحمن﴾

قوله: ﴿ وما ادراك﴾ استفهام انکاری دې او په ﴿ ما الطارق ﴾ کښې استفهام د تعظیم او تفخیم دپاره دې.

قوله: ﴿ النجم﴾ د ﴿ هو﴾ مبتدا محذوف خبر دې، او دا دهغه ابهام تفسیر هم دې کوم چه د استفهام نه پیدا شوې دې.

قوله: ﴿ الثریا او کل نجم﴾ دا د ﴿ النجم﴾ د تفسیر په درې اقوالو کښې دوه اقوال دی، دریم قول د ﴿ زحل﴾ دې او د زحل مقام اووم اسمان دې، ﴿ زحل﴾ د اسمان په ښکلې ځیزونو کښې دې.

قوله: ﴿ ان کل نفس الخ﴾ جواب قسم دې د قسم او جواب قسم ترمینځه ﴿ وما ادراك الخ﴾ جمله معترضه ده کوم چه د مقسم به د عظمت بیانولو دپاره راوړلې شوې ده.

قوله: ﴿ بالتخفیف ما﴾ په ﴿ لما﴾ کښې دوه قراءتونه دی اول د ﴿ ما﴾ په تخفیف سره زائده، په دې صورت کښې په ﴿ ان﴾ مخففه عن الثقیله وی او د دې اسم به محذوف وی، ای ﴿انه﴾ او د ﴿ لما﴾ لام به د ﴿ ان﴾ مخففه او نافیه ترمینځه فارقه وی.

قوله: ﴿ بتشدیدها﴾ دا د ﴿ لما﴾ د دویم قراءت بیان دې په دې صورت کښې به ﴿ لما﴾ مشدد په معنی د ﴿ الا﴾ وی او ﴿ ان﴾ به نافیه وی.

قوله: ﴿ذی اندفاق﴾ دا د ﴿ دافق﴾ تفسیر دې د دې تفسیر مقصد دې خبرې ته اشاره کول دی چه دافق اسم فاعل د نسبت دپاره دې لکه چه ﴿ لابن﴾ پئ خرڅونکې، ﴿ تامر﴾ کهجورې خرڅونکې، ﴿ دافق﴾ توپ وهونکې.

قوله: ﴿فی رحمها﴾ دا د ﴿ دافق﴾ سره متعلق دې، مطلب دا دې چه د سړی د نطفې اندفاق د مور په خیټې کښې وی او او د زنانه د نطفې اله اندفاع خو د هغې په رحم کښې دننه وی دغه شان د سړی او زنانه د نطفې اندفاع په رحم کښې وی.

قوله: ﴿ من بین الصلب﴾ کښې ﴿ بین﴾ زائده دې ځکه چه د ﴿ بین﴾ استعمال په متعدد کښې کیږی او په صلب کښې تعدد نشته مګر دا چه د صلب نه مراد اجزاءِ صلب وی نو د تعدد صورت کیدې شی.

قوله: ﴿ انه لقول فصل﴾ فصل په معنی د فاصل دې، دا د ﴿ والسماء ذات الرجع﴾ جواب قسم دې.

قوله: ﴿ تاکید حسنه مخالفة اللفظ﴾ یعنی ﴿امهلهم﴾ د ﴿ فمهل﴾ تاکید دې د موکد او موکَد ترمینځه لفظی اختلاف یو قسم حسن پیدا کړو او هغه اختلاف دا دې چه مؤکد یعنی ﴿فمهل﴾ کښې اسناد د اسم ظاهر یعنی د کافرین طرف ته دې او په مؤکَد یعنی ﴿ امهلهم﴾ کښې د ضمیر (هم) طرف ته دې، په دې اختلاف سره نوې فائده اوشوه کوم چه په حکم کښې د

تاسيس دي او تاسيس د تاكيد نه غوره دي، او د مؤكَد او مؤكِد په مينځ كښې د صيغې په اعتبار سره هم اختلاف دې، دا اختلاف هم د عبارت په تنوع باندې دلالت كوي كوم چه مطلوب دې.

**قوله:** ﴿ على الترخيم ﴾ د دې تعلق د ﴿ ارْوادا ﴾ سره دې، او ﴿ رويدا ﴾ د ﴿ ارْوادا ﴾ تصغير دې د حذف زوائد نه پس، د امهال حكم د جهاد په حكم سره منسوخ شو.

**[٨٧] سورة الاعلى**

**سورة الأعلى مكية تسع عشرة آية**

سورة أعلى مكي دې، نورلس آيتونه دي.

**[اياتونه: ١ - ١٩]**

بسم الله الرحمن الرحيم ﴿سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ﴾ أَيْ نَزِّهْ رَبَّكَ عَمَّا لَا يَلِيقُ بِهٖ وَاسْمٌ زَائِدٌ ﴿الْأَعْلَى﴾ صفة لربك ﴿الَّذِي خَلَقَ فَسَوّٰى﴾ مخلوقه وجعله مُتَنَاسِبَ الْأَجْزَاءِ غَيْرَ مُتَفَاوِتٍ ﴿وَالَّذِي قَدَّرَ﴾ مَا شَاءَ ﴿فَهَدٰى﴾ إِلَى مَا قَدَّرَهُ مِنْ خَيْرٍ وَشَرٍّ ﴿وَالَّذِي أَخْرَجَ الْمَرْعٰى﴾ أَنْبَتَ الْعُشْبَ ﴿فَجَعَلَهُ﴾ بَعْدَ الْخُضْرَةِ ﴿غُثَاءً﴾ جَافًّا هَشِيمًا ﴿أَحْوٰى﴾ أَسْوَدَ يَابِسًا ﴿سَنُقْرِئُكَ﴾ الْقُرْآنَ ﴿فَلَا تَنْسٰى﴾ مَا تَقْرَؤُهُ ﴿إِلَّا مَا شَاءَ اللّٰهُ﴾ أَنْ تَنْسَاهُ بِنَسْخِ تِلَاوَتِهِ وَحُكْمِهِ وَكَانَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَجْهَرُ بِالْقِرَاءَةِ مَعَ قِرَاءَةِ جِبْرِيلَ خَوْفَ النِّسْيَانِ فَكَأَنَّهُ قِيلَ لَهُ لَا تَعْجَلْ بِهَا إِنَّكَ لَا تَنْسٰى فَلَا تُتْعِبْ نَفْسَكَ بِالْجَهْرِ بِهَا ﴿إِنَّهُ﴾ تَعَالَى ﴿يَعْلَمُ الْجَهْرَ﴾ مِنَ الْقَوْلِ وَالْفِعْلِ ﴿وَمَا يَخْفٰى﴾ مِنْهُمَا ﴿وَنُيَسِّرُكَ لِلْيُسْرٰى﴾ لِلشَّرِيعَةِ السَّهْلَةِ وَهِيَ الْإِسْلَامُ ﴿فَذَكِّرْ﴾ عِظْ بِالْقُرْآنِ ﴿إِنْ نَفَعَتِ الذِّكْرٰى﴾ مِنْ تَذْكِرَةِ الْمَذْكُورِ فِي سَيَذَّكَّرُ يَعْنِي وَإِنْ لَمْ تَنْفَعْ وَنَفْعُهَا لِبَعْضٍ وَعَدَمُ النَّفْعِ لِبَعْضٍ آخَرَ ﴿سَيَذَّكَّرُ﴾ بِهَا ﴿مَنْ يَخْشٰى﴾ يَخَافُ اللّٰهَ تَعَالَى كَآيَةِ فَذَكِّرْ بِالْقُرْآنِ مَنْ يَخَافُ وَعِيدِ ﴿وَيَتَجَنَّبُهَا﴾ أَيِ الذِّكْرَى أَيْ يَتْرُكُهَا جَانِبًا لَا يَلْتَفِتُ إِلَيْهَا ﴿الْأَشْقَى﴾ بِمَعْنَى الشَّقِيِّ أَيِ الْكَافِرِ ﴿الَّذِي يَصْلَى النَّارَ الْكُبْرٰى﴾ هِيَ نَارُ الْآخِرَةِ وَالصُّغْرٰى نَارُ الدُّنْيَا ﴿ثُمَّ لَا يَمُوتُ فِيهَا﴾ فيستريح ﴿وَلَا يَحْيٰى﴾ حياة هنيئة ﴿قَدْ أَفْلَحَ﴾ فَازَ ﴿مَنْ تَزَكّٰى﴾ تَطَهَّرَ بِالْإِيمَانِ ﴿وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهٖ﴾ مكبرا ﴿فَصَلّٰى﴾ الصلوات الْخَمْسَ وَذٰلِكَ مِنْ أُمُورِ الْآخِرَةِ وَكُفَّارُ مَكَّةَ معرضون عنها ﴿بَلْ تُؤْثِرُونَ﴾ بِالْفَوْقَانِيَّةِ وَالتَّحْتَانِيَّةِ ﴿الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا﴾ عَلَى الْآخِرَةِ ﴿وَالْآخِرَةُ﴾ الْمُشْتَمِلَةُ عَلَى الْجَنَّةِ ﴿خَيْرٌ وَّأَبْقٰى﴾ ﴿إِنَّ هٰذَا﴾ إفلاح من تزكى وكون الآخرة خيرا ﴿لَفِي الصُّحُفِ الْأُولٰى﴾ أَيِ الْمُنَزَّلَةِ قَبْلَ الْقُرْآنِ ﴿صُحُفِ إِبْرٰهِيمَ وَمُوسٰى﴾ وَهِيَ عَشْرُ صُحُفٍ لِإِبْرَاهِيمَ والتوراة لموسى

**ترجمه:** په نوم د الله پاک چه ډير مهربانه او هميشه مهربانه دې شروع كوم! (اې نبي ﷺ) د خپل رب د نوم چه اوچت دې تسبيح وايه يعنى د خپل رب د هغه څيزونو نه پاكي بيانوه كوم چه د هغه شايان شان نه دي، او لفظ اسم زائد دې ﴿ الاعلى ﴾ د رب صفت دې چا چه پيدا كړل او خپل مخلوق ئې برابر كړو (يعنى) متناسب الاعضاء ئې جوړ كړو نه غير متناسب الاعضاء، هغه ذات چه څنګه ئې اوغوښتلو تقدير ئې جوړ كړو بيا هغه د خير او شر لاره اوښودله كومه چه هغه

مقدر کړې ده هغه ذات چه نباتات گیاه ئې راوتو کول بیا ئې د شین والی نه پس اوچه توره خزله کړه مونږ به قران په تا اولولو نو بیا به ته چه څه تاته اولوستلې شی نه هیروې سوا د هغې نه کوم چه الله پاک هیرول غواړی د هغې حکم او د هغې تلاوت منسوخ کولو سره، رسول الله ﷺ به د جبرائیل ﷺ د قراءت سره سره د هیریدلو د ویرې نه په زور زور باندې قراءت کولو گویا رسول الله ﷺ ته دا اوفرمائیلې شو چه تندی مه کوئ، ستاسو نه به هیرېږی نه، په دې وجه په زوره لوستلو سره ځان مه سترې کوئ. او الله پاک ظاهر قول وفعل باندې هم عالم دې او پټ قول وفعل باندې هم خبر دې او مونږ تاته د آسان شریعت سهولت درکوو او هغه اسلام دې پس ته د قران کریم په ذریعه نصیحت کوه که نصیحت فائده ورکوی لکه چه په ﴿ فذكر بالقرآن من يخاف وعيد ﴾ کښې دی، یعنی ته هغه چاته نصیحت ورکوه څوك چه د وعید نه ویرېږی اود دې نصیحت نه به هغه سړې ډډه کوی یعنی د هغې طرف ته به توجه نه کوی کوم چه انتهائی بدبخت دې کوم چه به لوئې اور ته داخلیږی او ﴿ الاشقى ﴾ په معنی د ﴿ شقى ﴾ دې، یعنی کافر دې او هغه (لوئې اور) د اخرت اور دې، او وړوکې اور د دنیا اور دې بیا به پکښې هغه نه مری چه په ارام شی او نه به په مزیدار ژوند سره ژوندې وی، هغه سړې کامیاب شو چا چه د ایمان په ذریعه پاکوالې اختیار کړو او د خپل رب نوم ئې یاد کړو تکبیر وئیلو سره، بیا ئې پنځه وخته مونځ اوکړو او دا د اخرت د امورو نه دې او د مکې کافر سرکشی کوی تاسو خلق دنیا ته په اخرت باندې ترجیح ورکوئ ﴿ تؤثرون ﴾ په یاء او تاء سره دې حال دا چه اخرت کوم چه په جنت باندې مشتمل دې بهتر او باقی پاتې کیدونکې دې بیشکه هم دا خبره یعنی د پاکی حاصلونکی فلاح او د اخرت غوره او دائمی کیدل په اولنو صحیفو کښې دی او د ابراهیم او موسی علیهما السلام په صحیفو کښې هم کوم چه د قران کریم نه مخکښې نازلې شوې دی او هغه د ابراهیم ﷺ لس صحیفې او د موسی ﷺ تورات دې.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

**قوله:** ﴿ صفة لربك ﴾ یعنی ﴿ الاعلى ﴾ د رب صفت دې، ددې اضافې مقصد دا بیانول دی چه ﴿ الاعلى ﴾ د اسم صفت نه دې ځکه چه ﴿ الذى ﴾ د ﴿ ربك ﴾ صفت دې، گنې دا خرابی به لازم شی چه موصوف ﴿ ربك ﴾ او صفت ﴿ الذى ﴾ ﴿ خلق ﴾ ترمینځه د غیر صفت یعنی د ﴿ الاعلى ﴾ فصل دې کوم چه صحیح نه دې.

**قوله:** ﴿ غثاء ﴾ هغه خزلې ته وئیلې شی، کومه چه د اوبو په سطح باندې بهیدلو سره راځی، دلته مطلقا اوچه توره خزله مراد ده، یعنی مقید د مطلق په معنی استعمال کړې شوې دې.

**قوله:** ﴿ من تذكره المذكور لسيذكر ﴾ دلته ﴿ من ﴾ موصوله دې او د ﴿ نفعت ﴾ مفعول دې، او د ﴿ تذكر ﴾ ضمیر مرفوع مخاطب یعنی رسول الله ﷺ ته راجع دې او ضمیر منصوب (٥) د

موصول طرف ته راجع دي او ﴿المذكور﴾ د موصول صفت دي، مطلب دا دي چه ته نصيحت كوه كه نصيحت هغه سړي ته فائده وركوي كوم ته چه ته نصيحت كوي، او د چا ذكر چه په ﴿سيذكر من يخشى﴾ كښې دي، د ﴿من تذكره﴾ د اضافې مقصد دې خبرې ته اشاره كول دي چه په ﴿ان نفعت الذكرى﴾ كښې د نفع په باره كښې تردد دي هغه د ﴿ذكرى﴾ د مفعول په نسبت سره دې نه د فاعل په نسبت سره، خكه چه د فاعل په نسبت سره د ذكر فائده متحقق ده. (كما لا يخفى)

**قوله:** ﴿فيستريح﴾ دا د هغه سوال مقدر جواب دي چه ﴿لا يموت فيها ولا يحيى﴾ نه معلوميږي چه د مرګ او ژوند ترمينځه څه واسطه شته حال دا چه داسې نه ده.؟

**جواب:** د جواب حاصل دا دې چه داسې مرګ به پرې نه راځي چه د مرګ نه پس په آرام شي او نه به داسې ژوند وي چه مزيدار وي.

## [٨٨] سورة الغاشية

## سورة الغاشية مكية ست وعشرون آية

سورة غاشيه مكي دې، شپږويشت آيتونه دي.

**[ايا تونه: ١ - ٢٦]**

بسم الله الرحمن الرحيم ﴿هَلْ﴾ قَد ﴿أَتَاكَ حَدِيثُ الْغَاشِيَةِ﴾ القيامة لأنها تغشى الخلائق بأهوالها ﴿وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ﴾ عبّر بها عن الذوات في الموضعين ﴿خَاشِعَةٌ﴾ ذليلة ﴿عَامِلَةٌ نَّاصِبَةٌ﴾ ذات نصب وتعب بالسلاسل والأغلال ﴿تَصْلَى﴾ بفتح التاء وضمها ﴿نَارًا حَامِيَةً﴾ ﴿تُسْقَى مِنْ عَيْنٍ آنِيَةٍ﴾ شديدة الحرارة ﴿لَيْسَ لَهُمْ طَعَامٌ إِلَّا مِن ضَرِيعٍ﴾ هو نوع من الشوك لا ترعاه دابة لخبثه ﴿لا يسمن ولا يغني من جوع﴾ ﴿وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَّاعِمَةٌ﴾ حسنة ﴿لِّسَعْيِهَا﴾ في الدنيا بالطاعة ﴿رَاضِيَةٌ﴾ في الآخرة لما رأت ثوابه ﴿في جنة عالية﴾ حسا ومعنى ﴿لا يسمع﴾ بالياء والتاء ﴿فِيهَا لَاغِيَةً﴾ أي نفس ذات لغو هذيان من الكلام ﴿فِيهَا عَيْنٌ جَارِيَةٌ﴾ بالماء بمعنى عيون ﴿فِيهَا سُرُرٌ مَّرْفُوعَةٌ﴾ ذاتا وقدرا ومحلا ﴿وَأَكْوَابٌ﴾ أقداح لا عرا لها ﴿مَّوْضُوعَةٌ﴾ على حافات العيون معدّة لشربهم ﴿وَنَمَارِقُ﴾ وسائد ﴿مَصْفُوفَةٌ﴾ بعضها بجنب بعض يستند إليها ﴿وَزَرَابِيُّ﴾ بسط طنافس لها خمل ﴿مَبْثُوثَةٌ﴾ مبسوطة ﴿أَفَلَا يَنظُرُونَ﴾ أي كفار مكة نظر اعتبار ﴿إلى الإبل كيف خلقت﴾ ﴿وإلى السماء كيف رفعت﴾ ﴿وإلى الجبال كيف نصبت﴾ ﴿وَإِلَى الْأَرْضِ كَيْفَ سُطِحَتْ﴾ أي بسطت فيستدلون بها على قدرة الله تعالى ووحدانيته وصدرت بالإبل لأنهم أشد ملابسة لها من غيرها وقوله سطحت ظاهر في أن الأرض سطح وعليه علماء الشرع لا كرة كما قاله أهل الهيئة وإن لم ينقض ركنا من اركان الشرع ﴿فَذَكِّرْ﴾ هم نعم الله ودلائل توحيده ﴿إنما أنت مذكر﴾ ﴿لَّسْتَ عَلَيْهِم بِمُصَيْطِرٍ﴾ وفي قراءة بالسين بدل الصاد أي بمسلط وهذا قبل الأمر بالجهاد ﴿إِلَّا﴾ لكن ﴿مَن تَوَلَّى﴾ أعرض عن الإيمان ﴿وكفر﴾ بالقرآن ﴿فَيُعَذِّبُهُ اللَّهُ الْعَذَابَ الْأَكْبَرَ﴾ عذاب الآخرة والأصغر عذاب الدنيا بالقتل والأسر ﴿إِنَّ إِلَيْنَا إِيَابَهُمْ﴾ رجوعهم بعد الموت ﴿ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا حِسَابَهُمْ﴾ جزاءهم لا نتركه أبدا

ترجمه: په نوم د الله پاک چه ډیر مهربانه او همیشه مهربانه دې شروع کوم ایا تاته د پټونکی قیامت خبر راغلي دې (قیامت ته غاشیة) په دې وجه اونیلې شوه چه هغه به د خپل هیبت د وجې نه ټول مخلوق باندې خوره شي او هغوی به پټ کړی څه مخونه به په دغه ورځ باندې ذلیله وی په دوارو ځایونو کښې د شخصیات نه په (وجوه) سره تعبیر کړې شوې دې سخت محنت کونکی او ستړی ستومانه به وی د طوق او زنځیرونو د وجې نه به ډیر په سخته کښې وی هغوی به په سخت اور کښې سوزولې شي (تصلی) د تاء په ضمې او فتحې دوارو سره دې د انتهائی ګرمو او خوټکیدونکو اوبو نه به پرې څکولې شي د هغوی دپاره به سوا د ازغنو اونو نه بل هیڅ خوراک نه وی (ضریع) یو قسم ازغني ګیاه ده کوم چه د هغې د خباثت د وجې نه یو حیوان هم نه خوری چه نه به څربول کوی او نه به لوږه ختموی، څه مخونه به په دغه ورځ روښانه وی په دنیا کښې د طاعت په کارګزارۍ باندې به خوشحاله وی چه کله حسا او معنا په عالی مقام جنتونو کښې د خپلې سعی ثواب اوینی، اې مخاطبه! ته به هلته هیڅ فضول خبره نه اورې (یسمع) په یاء او تاء سره، یعنی فضول خبرې، هلته به د اوبو بهیدونکي چیني وی (عین) په معنی د (عیون) دې په هغې کښې به د ذات او د مرتبې په اعتبار سره اوچت اوچت تختونه وی او د چینو په غاړو باندې به بغیر د دستې (لاسکې) نه جامونه کیخودلی شوی کوم چه به د جنتیانو د څکلو دپاره جوړ کړې شوې وی ، او د بالختونو او تکیو قطارونه به لګیدلې وی چه هغې ته به تکیه وهلې شي. او د مخمل قالینونه به خواره کړې شوې وی یعنی داسې فرشونه چه مالوچو به وی، آیا دوی (دا کفار مکه) د عبرت په نظر اوښانو ته نه ګوری چه څنګه جوړ کړې شوی دی؟ (او آیا) اسمان ته نه ګوری چه څنګه اوچت جوړ کړې شوې دې؟ او (آیا) غرونو ته نه ګوری چه څنګه مضبوط کړې شوې دی؟ او (آیا) زمکې ته نه ګوری چه څنګه خوره کړې شوې ده؟ چه د هغې په ذریعه د الله پاک په قدرت او د هغه په وحدانیت باندې استدلال اوکړی، (ابل) په شروع کښې راوړلې شو ځکه چه د عربو به د نورو څیزونو په نسبت زیات تعلق دې سره وو، او د الله پاک قول (سطحت) په دې باندې ظاهر الدلالة دې چه زمکه مسطح ده او هم په دې نظریه باندې علماء شرع دی، نه ګول، لکه چه د اهل هیئت قول دې، اګرچه د زمکې په ګول کیدو باندې د شریعت څه رکن نه ماتیږی پس ته نصیحت کوه یقینا ته صرف نصیحت کونکې ئې ته په دوی باندې نګهبان نه ئې او په یو قراءت کښې د (سین) په ځائې په (صاد) سره دې یعنی ته مسلط نه ئې او دا حکم د جهاد د حکم راتلو نه مخکښې دې البته څوک چه د ایمان نه اعراض اوکړی او د قرآن نه انکار اوکړی نو الله پاک به ورته لوئې عذاب ورکوی (یعنی) د اخرت عذاب، او اصغر د دنیا عذاب دې په قتل او قید سره بیشکه دې خلقو د مرګ نه پس واپسی زمونږ طرف ته ده، بیا د هغوی حساب اخستل یعنی د هغوی جزاء او سزا زمونږ په ذمه دی. چه مونږ به هغه هرګز ترک نه کړو.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

قوله: ﴿ هل اتاك ﴾ يو جماعت وئيلى دى چه ﴿ هل ﴾ په معنى د ﴿ قد ﴾ دى، اى قد جاءك يا محمد ﷺ حديث الغاشية او وئيلى شوى دى چه ﴿ هل ﴾ په خپله معنى دى او د تعجب معنى لره متضمن دى.

قوله: ﴿ وجوه يومئذ ﴾ دا جمله مستانفه د سوالِ مقدر جواب دى.

سوال: ما حديث الغاشية؟

جواب: وجوه يومئذ خاشعة ﴿ وجوه ﴾ مبتداء ده او ﴿ خاشعة ﴾ ئي خبر دى.

سوال: ﴿ وجوه ﴾ نكره ده ددى مبتداء جوړيدل څنګه صحيح دى؟

جواب: نكره چونكه په مقام د تفصيل كښ واقع ده لهذا مبتداء جوړيدل ئي صحيح دى، په ﴿ يومئذ ﴾ كښ تنوين د مضاف اليه په عوض كښ دى اى يوم غشيان الغاشية دلته د ﴿ وجوه ﴾ نه مراد ﴿ اصحاب الوجوه ﴾ دى، دا د اطلاق الجزء على الكل د قبيل نه دى، وجه چونكه اشرف الاعضاء دى په دى وجه دا اختيار كړى شو.

قوله: ﴿ عاملة ﴾ محنت كونكى، مشقت اوچتونكى.

قوله: ﴿ ناصبة ﴾ ستړى كيدونكى. ﴿ عاملة ناصبة ﴾ په رفع سره دا دواړه د مبتداء دويم خبر دى.

قوله: ﴿ آنية ﴾ خوټكيدلى اوبه، ﴿ انى ﴾ نه اسم فاعل واحد مونث.

قوله: ﴿ ضريع ﴾ ازغنو والا ګيا، ﴿ ضريع ﴾ يوه ګيا ده كوم ته چه شبرق وئيلى شى، او دا ګياه چه كله اوچه شى نو اهل حجاز ورته ضريع وائى او دا زهر دى. (صحيح بخارى. كتاب التفسير)

قوله: ﴿ لا تسمع فيها لاغية ﴾ ١: د جمهورو په نزد د تاء فوقانيه په فتحې سره او د ﴿ لاغية ﴾ په نصب سره دى، اى لا تسمع انت ايها الصاحب فيها لاغية (يا) لا تسمع تلك الوجوه لاغية. ٢: او ابن كثير او ابو عمرو په ياء تحتانيه مضمومه سره مبنى للمفعول د لاغية په رفع سره لوستلى دى. ٣: او نافع په تاء فوقانيه مضمومه سره مبنى للمفعول لوستلى دى. ٤: او فضل او جحدرى د تاء فوقانيه په فتحې سره مبنى للفاعل او د ﴿ لاغية ﴾ په نصب سره لوستلى دى ﴿ لاغية ﴾ دا د موصوف محذوف صفت دى، اى كلمة لاغية يا نفسا لاغية يا د عافية په وزن مصدر په معنى د ﴿ لغوا ﴾ دى، اى لا يسمع فيها لغوا.

قوله: اى نفس ذات لغو: ددى اضافى مقصد دى خبرى ته اشاره كول دى چه ﴿ نفس ﴾ د ﴿ لا تسمع ﴾ فاعل دى، ﴿ لاغية ﴾ مفعول به، او د تاء والا قرات كښ دا هم كيدى شى چه د ﴿ لا تسمع ﴾ فاعل ﴿ انت ﴾ محذوف وى او ﴿ نفسا لاغية ﴾ مفعول په دى صورت كښ د ﴿ نفسا ﴾ محذوف منلو په ځائى ﴿ كلمة ﴾ هم محذوف منلى كيدى شى. اى كلمة ذات لغو.

قوله: ﴿ اكواب ﴾ اقداح لا عرى لها، اكواب د كوب جمع ده په وزن د قفل واقفال، كوب هغه لوښي ته وائي چه په هغې كښې دسته او توتې نه وي، مثلاً ګلاس او پياله وغيره.

قوله: ﴿ نمارق ﴾ دا د نُمرُقة جمع ده، د نون او راء په ضمې او د دواړو په كسرې سره په معنى د تكيه، مسند.

قوله: زرابي د زربية جمع ده.

قوله: طنافس دا د طنفسة (مثلث) جمع ده، دمالوچو فرش، او قالين، د مخمل والا فرش.

## [٨٩] سورة الفجر

### سورة الفجر مكية او مدنية ثلاثون آية

سورة فجر مكى يا مدنى دي، ديرش آيتونه دي.

[اياتونه: ١-٣٠]

بسم الله الرحمن الرحيم ﴿وَالْفَجْرِ﴾ أي فجر كل يوم ﴿وَلَيَالٍ عَشْرٍ﴾ أي عشر ذي الحجة ﴿وَالشَّفْعِ﴾ الزوج ﴿وَالْوَتْرِ﴾ بفتح الواو وكسرها لغتان الفرد ﴿وَاللَّيْلِ إِذَا يَسْرِ﴾ مقبلا ومدبرا ﴿هَلْ فِي ذَٰلِكَ﴾ القسم ﴿قَسَمٌ لِّذِي حِجْرٍ﴾ عقل وجواب القسم محذوف أي لتعذبن يا كفار مكة ﴿أَلَمْ تَرَ﴾ تعلم يا محمد ﴿كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِعَادٍ﴾ ﴿إِرَمَ﴾ هي عاد الأولى فإرم عطف بيان أو بدل ومنع الصرف للعلمية والتأنيث ﴿ذَاتِ الْعِمَادِ﴾ أي الطول كان طول الطويل منهم اربعمائة ذراع ﴿الَّتِي لَمْ يُخْلَقْ مِثْلُهَا فِي الْبِلَادِ﴾ في بطشهم وقوتهم ﴿وَثَمُودَ الَّذِينَ جَابُوا﴾ قطعوا ﴿الصَّخْرَ﴾ جمع صخرة واتخذوها بيوتا ﴿بِالْوَادِ﴾ وادي القرى ﴿وَفِرْعَوْنَ ذِي الْأَوْتَادِ﴾ كان يتد اربعة أوتاد يشد إليها يدي ورجلي من يعذبه ﴿الَّذِينَ طَغَوْا﴾ تجبروا ﴿فِي الْبِلَادِ﴾ ﴿فَأَكْثَرُوا فِيهَا الْفَسَادَ﴾ القتل وغيره ﴿فَصَبَّ عَلَيْهِمْ رَبُّكَ سَوْطَ﴾ نوع ﴿عَذَابٍ﴾ ﴿إِنَّ رَبَّكَ لَبِالْمِرْصَادِ﴾ يرصد اعمال العباد فلا يفوته منها شيء ليجازيهم عليها ﴿فَأَمَّا الْإِنسَانُ﴾ الكافر ﴿إِذَا مَا ابْتَلَاهُ﴾ اختبره ﴿رَبُّهُ فَأَكْرَمَهُ﴾ بالمال وغيره ﴿وَنَعَّمَهُ فَيَقُولُ رَبِّي أَكْرَمَنِ﴾ ﴿وَأَمَّا إِذَا مَا ابْتَلَاهُ فَقَدَرَ﴾ ضيق ﴿عَلَيْهِ رِزْقَهُ فَيَقُولُ رَبِّي أَهَانَنِ﴾ ﴿كَلَّا﴾ ردع أي ليس الإكرام بالغنى والإهانة بالفقر وإنما هو بالطاعة والمعصية وكفار مكة لا ينتبهون لذلك ﴿بَل لَّا تُكْرِمُونَ الْيَتِيمَ﴾ لا يحسنون إليه مع غناهم أو لا يعطونه حقه من الميراث ﴿وَلَا تَحَاضُّونَ﴾ أنفسهم أو غيرهم ﴿عَلَىٰ طَعَامِ﴾ أي إطعام ﴿الْمِسْكِينِ﴾ ﴿وَتَأْكُلُونَ التُّرَاثَ﴾ الميراث ﴿أَكْلًا لَّمًّا﴾ أي شديدا للمهم نصيب النساء والصبيان من الميراث مع نصيبهم منه او مع مالهم ﴿وَتُحِبُّونَ الْمَالَ حُبًّا جَمًّا﴾ أي كثيرا فلا ينفقونه وفي قراءة بالفوقانية في الأفعال الأربعة ﴿كَلَّا﴾ ردع لهم عن ذلك ﴿إِذَا دُكَّتِ الْأَرْضُ دَكًّا دَكًّا﴾ زلزلت حتى ينهدم كل بناء عليها وينعدم ﴿وَجَاءَ رَبُّكَ﴾ أي أمره ﴿وَالْمَلَكُ﴾ أي الملائكة ﴿صَفًّا صَفًّا﴾ حال أي مصطفين أو ذوي صفوف كثيرة ﴿وَجِيءَ يَوْمَئِذٍ بِجَهَنَّمَ﴾ تقاد بسبعين ألف زمام كل زمام بأيدي سبعين ألف ملك لها زفير وتغيظ ﴿يَوْمَئِذٍ﴾ بدل من إذا وجوابها ﴿يَتَذَكَّرُ الْإِنسَانُ﴾ أي الكافر ما فرط فيه ﴿وَأَنَّىٰ لَهُ الذِّكْرَىٰ﴾ استفهام بمعنى

التلي أي لا ينفعهُ تذكّره ذلِكَ (يقول) مع تذكره (يا) للتنبه (ليتني قدّمتُ) الخير والإيمان (لِحَيَاتي) الطيبة في الآخرة أو وقت حياتي في الدنيا (فيومئذٍ لا يُعذِّب) بكسر الذال (عَذابه) أي الله (أحد) أي لا يكِلُهُ إلى غيره (و) كذا (لا يُوثِق) بكسر الثاء (وثاقه أحد) وفي قراءة بفتح الذال والثاء فضمير عذابه ووثاقه للكافر والمعنى لا يُعذَّب أحد مثل تعذيبه ولا يُوثق مثل إيثاقه (يا أيتها النفس المطمئنة) الآمنة وهي المؤمنة (ارجعي إلى ربك) يقال لها ذلك عند الموت أي ارجعي إلى أمره وإرادته (راضية) بالثواب (مرضية) عند الله بعملك أي جامعة بين الوصفين وهما حالان ويقال لها في القيامة (فادخلي في) جملة (عبادي) الصالحين (وادخلي جنتي) معهم

ترجمه: په نوم د الله پاک چه ډير مهربانه او هميشه مهربانه دې شروع کوم، قسم دې په صبا باندې يعنی د هرې ورځې په صبا ، او په لسو شپو باندې يعنی د ذی الحجة په لسو شپو باندې او په جفت باندې يعنی په زوج او په طاق باندې او (الوتر) د واؤ په فتحې او کسرې سره دې دا دوه لغتونه دی (وتر) په معنی د فرد ، او په شپه چه کله هغه رخصتيږی يعنی کله چه هغه راشی او لاړه شی آيا په دې قسم کښې د عقلمندو دپاره کافی قسم (نه) دې؟ او د قسم جواب محذوف دې (او هغه) (لتعذبن يا کفار مکة) (اې کفار مکه! تاسو ته به ضرور عذاب درکولې شی) آيا اې محمد ﷺ تاته معلومه نه ده چه ستا رب د عاديانو سره يعنی قوم ارم سره څه اوکړل؟ ارم عاد اولی دی، ارم عطف بيان يا بدل دې او د علميت او د تانيث د وجې نه غير منصرف دې چه د هغوی قد وقامت په اوږدوالی کښې د ستنو په شان وو په هغوی کښې د تولو نه اوږد څلور سوه ګزه وو، په زور او طاقت کښې په دنيا کښې د هغوی په شان څوک نه وو پيدا کړی شوی، او د قوم ثمود سره ئې څه معامله اوکړه؟ چه په قرى ميدان کښې ئې کاڼړی تراشل او د هغې نه به ئې کورونه جوړول، (صخر) د (صخرة) جمع ده، او د ميخونو والا فرعون سره ئې څه معامله اوکړه؟ او هغه به څلور ميخونه ټک وهل او چاته چه به سزا ورکول وو د هغه لاسونه او خپې به ئې په هغې پورې اوتړل چا چه په ښارونو کښې لويه سرکشی کړې وه او په هغې کښې ئې به قتل وغيره سره ډير فساد خور کړې وو پس ستا رب په هغوی باندې د عذاب کوړه راووروله، بيشکه ستا رب په کمين کښې دې د بندګانو د اعمالو نګرانی کوی لهذا هيڅ عمل د هغه نه پټ نه دې چه د هغې جزاء ورنکړی پس هغه کافر انسان باندې چه کله د هغه رب ازميښت کوی په داسې طريقه چه د مال وغيره په ذريعه د هغه اکرام کوی او هغه ته انعام ورکوی نو وائی چه زما رب زما قدر زيات کړو (يعنی ماته ئې عزت راکړو) او چه کله هغه باندې (بل شان) ازميښت کوی يعنی روزی پرې تنګه کړی نو وائی چه زما رب زما قدر ختم کړو (يعنی زه ئې ذليل کړم) داسې هرګز نه ده! يعنی چه د مالداری د وجې نه دې اکرام وی او د فقر د وجې نه دې سپکاوې وی، ددې دواړو تعلق د اطاعت او معصيت سره دې، خو کفار مکه ددې خبرو نه نه دی خبر بلکه

تاسو د يتيمانو عزت نه كوئ يعنى سره ددې چه دا خلق مالدار دی خو هغوی سره ښه سلوك نه كوی يا د ميراث نه د هغوی حق نه وركوی او خپل مينځ كښې يو بل ته مسكين ته د خوراك وركولو ترغيب نه وركوئ نه خان ته او نه نورو ته، ﴿طعـام﴾ په معنى د ﴿ اطعـام﴾ دې، او د ميراث مال ټول خورئ د زنانو او د ماشومانو د ميراث په مال باندې د سخت حرص د وجې نه، د خپلې حصې سره يا د خپل مال سره، او د مال په محبت كښې ډير بد گرفتاريئ چه د هغې په وجه هغه خرچ كوئ نه، او په يو قراءت كښې څلورو وارو افعال په تاء فوقانيه سره دی، داسې هرگز نه وه پكار (خبردار) دا د هغوی په خصلت باندې تنبيه ده چه كله زمكه په ټكولو سره برابر كړې شی (يعنى) زمكه به اوخوزولې شى تردې چه په هغې به هره يوه ابادى راغورځيږى او ختمه به شى او ستا رب به راشى يعنى د هغه حكم په داسې حال كښې چه ملائك به په صفونو كښې ولاړ وی ﴿ صفاصفا﴾ حال دې په معنى د ﴿ مصطفين﴾ يا به د ملائكو ډير صفونه وی، او جهنم به په دغه ورځ د اويا زره وارو په ذريعه رابنكلو سره مخامخ راوستلې شی او دا وارې به د اويا زره ملائكو په لاسونو كښې وی او سخت اواز او جوش به وی هغه ورځ به انسان يعنى كافر انسان په هغه څيز پوهه شی، ﴿ يومئذ﴾ د ﴿ اذا﴾ نه بدل دې او ددې جواب ﴿ يتذكر الانسان﴾ دې، چه په هغې كښې به هغه د حد نه تجاوز كړې وی، او هغه وخت به د هغه د پوهيدو نه څه حاصل شی، استفهام په معنى د نفى دې، يعنى هغه وخت به پوهيدل د هغه دپاره نافع نه وی، پوهيدلو سره به هغه اووائى افسوس! چه ما د آخرت دپاره څه خير وراندې راليږلې وې يا مې په دنياوى ژوند كښې څه نيك اعمال كړې وې پيا به په دغه ورځ الله پاك (پخپله) عذاب وركوی بل (څوک) به نه وركوی ﴿ يعذب﴾ په كسرې سره دې، يعنى هغه به دا عذاب وركول بل چاته نه سپاری او نه په د هغه د تړلو په شان څوك تړولو والا وی په ﴿ يوثق﴾ كښې د ذال په كسرې سره دې او په يو قراءت كښې د ذال او ثاء په فتحې سره دې لهذا د﴿ عذابه﴾ او د﴿ وثاقه﴾ ضمائر به د كافر طرف ته راجع وی او معنى به دا وی چه نه به د هغه په شان چاته عذاب وركړې شی او نه به د هغه په شان څوك او تړلې شی (بل طرف ته به ارشاد اوفرمائيلې شی) اې مطمئن نفسه! (يعنى) په امن والا، حال دا چه هغه په مومن وی د خپل رب طرف ته په داسې حال كښې روان شه چه ته په ثواب خوشحاله ئې او د خپل عمل په وجه باندې د الله پاك په نزد خوښ كړې شوې ئې يعنى د دوارو صفتونو جامع به وی او هغه دواړه حال دی، دا خبره به هغه ته د مرگ په وخت كولې شی، يعنى ته د هغه د امر او ارادې طرف ته واپس شه، او د قيامت په ورځ به هغه ته وئيلې شی چه ته زما په نيكانو بندگانو كښې داخل شه او زما جنت ته د هغوی سره داخل شه.

....

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

قوله: ﴿ والفجر ﴾ الفجر اسم فعل، مصدر په معنی ، د سحر رڼا راتلل، شلولو سره بهیول، د سحر وخت، او ددې نه علاوه د نورو ډیرو معنو دپاره استعمالیږي. په قرآن کریم کښې صرف د سحر د وخت او د سحر د طلوع کیدو دپاره ددې استعمال شوې دې. (لغات القران)
د فجر نه مراد یا خو د هرې ورځې صبا راختل مراد دی یا خاص طور د لسم ذی الحجې یا د محرم د اولنی تاریخ فجر مراد دې ځکه چه هم ددې ورځې نه د عربي نوې کال شروع کیږي، او د ﴿ لیال عشر ﴾ نه د ذی الحجة ابتدائی لس شپې مراد دی، ځکه چه ددې ډیر فضیلت راغلې دې.
قوله: ﴿ والشفع والوتر ﴾ ددې معنی جفت او طاق ده، د ﴿ شفع ﴾ او ﴿ وتر ﴾ په معنی کښې د مفسرینو ډیر اختلاف دې تردې چه د جفت او طاق په تعیین کښې ۳۶ اقوال ملاویږي.
قوله: ﴿ اذا یسر ﴾ په اصل کښې ﴿ یسری ﴾ وو، تخفیفا یاء د فواصل د رعایت د وجې نه حذف کړې شوې ده.
قوله: ﴿ هل فی ذلك قسم لذی حجر ﴾ دا استفهام تقریری دې یعنی په دې قسمونو کښې د عقلمندو دپاره کافی قسم دې، د قوم عاد طرف ته سیدنا هود علیه السلام لیږلې شوې وو، ددې قوم دوه نومونه دی ۱: عاد، ۲: ارم، ځکه چه عاد خوئې دې د عوص، او عوص خوئې دې د ارم، او ارم خوئې دې د سام بن نوح علیه السلام لهذا کله خو ددې قوم پلار (عاد) طرف ته نسبت کولو سره قوم عاد وئیلې شی او کله د هغوی د نیکه طرف ته نسبت کولو سره قوم ارم بللې شی، پس عاد او ثمود دواړه په ارم کښې یوځائې کیږي، عاد په واسطې د عوص او ثمود په واسطې د عابر، او دلته ارم په دې وجه زیات کړې شوې دې چه په دې قوم کښې دوه طبقې دی یوه د متقدمینو کوم ته چه عاد اولی وئیلې شی او دویمه د متاخرینو کوم ته چه عاد اخری وئیلې شی، ددې نه معلومه شوه چه دلته عاد اولی مراد دی، د عاد دولس سوه کاله عمر وو چه د هغه صلبی اولاد څلور زره وو هغه د زرو زنانو سره ودونه کړی وو او هغه د کفر په حالت کښې مړ شو. (جمل)
مخکښې د څلورو څیزونو قسم ذکر شوې دې د هغې جواب قسم محذوف دې او هغه (لیعذبن یا کفار مکة) دې، او بعض مفسرین وائی چه جواب قسم ذکر دې او هغه د الله پاك قول ﴿ ان ربك لبالمرصاد ﴾ دې، مفسر علام اول قول اختیار کړې دې.
قوله: ﴿ ذات العماد ﴾ بعض حضراتو ددې ترجمه اوږد قد والا کړې ده، او لوړ قد والاپنځه سوه لاسه د هغه خپل لاس مطابق، او کم قد والا په کښې سل لاسه وو. او بعض حضراتو د ﴿ ذات العماد ﴾ معنی د ستنو لوړو کورونو والا، مراد کړې ده. (جمل) مفسر علام اوله معنی مراد کړې ده.

## [٩٠] سورة البلد

## سورة البلد مكية عشرون آية

## سورة بلد مكي دي، شل آيتونه دی.

## [اياتوله: ١-٢٠]

بسم الله الرحمن الرحيم (لَا) زَائِدَةٌ (أُقْسِمُ بِهَذَا الْبَلَدِ) مَكَّةَ (وَأَنتَ) يَا مُحَمَّدُ (حِلٌّ) حَلَالٌ (بِهَذَا الْبَلَدِ) بِأَنْ يَحِلَّ لَكَ فَتُقَاتِلَ فِيهِ وَقَدْ أَنْجَزَ اللَّهُ لَهُ هَذَا الْوَعْدَ يَوْمَ الْفَتْحِ فَالْجُمْلَةُ اعْتِرَاضٌ بَيْنَ الْمُقْسَمِ بِهِ وَمَا عُطِفَ عَلَيْهِ (وَوَالِدٍ) أَيْ آدَمَ (وَمَا وَلَدَ) أَيْ ذُرِّيَّتِهِ وَمَا بِمَعْنَى مَنْ (لَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنسَانَ) أَيِ الْجِنْسَ (فِي كَبَدٍ) نَصَبٍ وَشِدَّةٍ يُكَابِدُ مَصَائِبَ الدُّنْيَا وَشَدَائِدَ الْآخِرَةِ (أَيَحْسَبُ) أَيَظُنُّ الْإِنْسَانُ قَوِيُّ قُرَيْشٍ وَهُوَ أَبُو الْأَشَدِّ بْنُ كَلَدَةَ بِقُوَّتِهِ (أَن) مُخَفَّفَةٌ مِنَ الثَّقِيلَةِ وَاسْمُهَا مَحْذُوفٌ أَيْ أَنَّهُ (لَّن يَقْدِرَ عَلَيْهِ أَحَدٌ) وَاللَّهُ قَادِرٌ عَلَيْهِ (يَقُولُ أَهْلَكْتُ) عَلَى عَدَاوَةِ مُحَمَّدٍ (مَالًا لُّبَدًا) كَثِيرًا بَعْضُهُ عَلَى بَعْضٍ (أَيَحْسَبُ أَن) أَيْ أَنَّهُ (لَّمْ يَرَهُ أَحَدٌ) فِيمَا أَنْفَقَهُ فَيَعْلَمُ قَدْرَهُ وَاللَّهُ عَالِمٌ بِقَدْرِهِ وَأَنَّهُ لَيْسَ مِمَّا يَتَكَثَّرُ بِهِ وَمُجَازِيهِ عَلَى فِعْلِهِ السَّيِّءِ (أَلَمْ نَجْعَل) اسْتِفْهَامُ تَقْرِيرٍ أَيْ جَعَلْنَا (لَّهُ عَيْنَيْنِ) (وَلِسَانًا وَشَفَتَيْنِ) (وَهَدَيْنَاهُ النَّجْدَيْنِ) بَيَّنَّا لَهُ طَرِيقَ الْخَيْرِ وَالشَّرِّ (فَلَا) فَهَلَّا (اقْتَحَمَ الْعَقَبَةَ) جَاوَزَهَا (وَمَا أَدْرَاكَ) أَعْلَمَكَ (مَا الْعَقَبَةُ) الَّتِي يَقْتَحِمُهَا تَعْظِيمًا لِشَأْنِهَا وَالْجُمْلَةُ اعْتِرَاضٌ وَبَيَّنَ سَبَبَ جَوَازِهَا بِقَوْلِهِ (فَكُّ رَقَبَةٍ) مِنَ الرِّقِّ بِأَنْ أَعْتَقَهَا (أَوْ إِطْعَامٌ فِي يَوْمٍ ذِي مَسْغَبَةٍ) مَجَاعَةٍ (يَتِيمًا ذَا مَقْرَبَةٍ) قَرَابَةٍ (أَوْ مِسْكِينًا ذَا مَتْرَبَةٍ) لُصُوقٍ بِالتُّرَابِ لِفَقْرِهِ وَفِي قِرَاءَةٍ بَدَلَ الْفِعْلَيْنِ مَصْدَرَانِ مَرْفُوعَانِ مُضَافُ الْأَوَّلِ لِرَقَبَةٍ وَيُنَوَّنُ الثَّانِي فَيُقَدَّرُ قَبْلَ الْعَقَبَةِ اقْتِحَامٌ وَالْقِرَاءَةُ الْمَذْكُورَةُ بَيَانُهُ (ثُمَّ كَانَ) عَطْفٌ عَلَى اقْتَحَمَ وَثُمَّ لِلتَّرْتِيبِ الذِّكْرِيِّ وَالْمَعْنَى كَانَ وَقْتَ الْاِقْتِحَامِ (مِنَ الَّذِينَ آمَنُوا وَتَوَاصَوْا) أَوْصَى بَعْضُهُمْ بَعْضًا (بِالصَّبْرِ) عَلَى الطَّاعَةِ وَعَنِ الْمَعْصِيَةِ (وَتَوَاصَوْا بِالْمَرْحَمَةِ) الرَّحْمَةِ عَلَى الْخَلْقِ (أُولَئِكَ) الْمَوْصُوفُونَ بِهَذِهِ الصِّفَاتِ (أَصْحَابُ الْمَيْمَنَةِ) الْيَمِينِ (وَالَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِنَا هُمْ أَصْحَابُ الْمَشْأَمَةِ) الشِّمَالِ (عَلَيْهِمْ نَارٌ مُّؤْصَدَةٌ) بِالْهَمْزَةِ وَالْوَاوِ بَدَلَهُ مُطْبَقَةٌ

ترجمه: په نوم د الله پاک چه ډير مهربانه او هميشه مهربانه دې شروع کوم، قسم کوم په دې ښهر مکه باندې په (لا اقسم) کښې لا زائده ده او اې محمد ﷺ ستا دپاره په دې ښهر کښې قتال حلاليدونکې دې په داسې طريقه چه ستا دپاره به پکښې قتال حلال کړې شي، نو تاسو به په دې کښې قتال کوئ، پس الله پاك دا وعده د فتح مکه په ورځ باندې پوره کړه (انت حل الخ) مقسم به او د دې ترمينځه د کوم چه په مقسم به باندې عطف کړې شوې دې، جمله معترضه ده، او قسم دې په والد آدم ﷺ او د هغه په اولاد باندې يعنی د هغه په ذريت او دلته (ما) په معنی د (من) دې يقينا مونږ انسان لره يعنی جنس انسان لره په مشقت او شدت کښې پيدا کړې دې چه هغه د دنيا مصيبتونه او د اخرت مشقت برداشت کوی ايا انسان

يعنې د قريشو طاقتور شخص او هغه ابو الاشد کلده دی د خپل طاقت د وجې نه دا خيال کوی چه په هغه به څوک قابو بيا نه مومی؟ حال دا چه الله پاك پرې قابو موندونکې دې ان مخففه من الثقيلة دی او ددې اسم محذوف دې، اې انه هغه وائی چه د محمد ﷺ په دشمنۍ کښې، ما ډير جمع شوی مال خرچ کړو ايا د هغه دا خيال دې چه هغه چا نه دې ليدلې چه هغه هغه مال په څه کښې خرچ کړو؟ (او څومره ئې خرچ کړو؟) چه هغه د هغې مقدار خلقو ته بيانوی، او حال دا چه الله پاك د هغې په مقدار باندې عالم دې او هغه مال دومره نه دې چه په هغې باندې فخر اوکړې شی او هغه د هغه په بدکردارۍ باندې سزا ورکونکې دې. ايا مونږ هغه ته دوه سترګې او يوه ژبه او دوه شونډې نه دی ورکړی؟ دا استفهام تقريری دې يعنی مونږ هغه ته دا څيزونه ورکړې دی او مونږ هغه ته د خير او شر دواړه لارې اوښودلې، نو بيا ولې هغه په کنډو کښې داخل نه شو؟ او تاته څه معلومه ده چه هغه سخت کنډو څه څيز دې؟ کوم ته چه به هغه داخليږی (دا استفهام) د عقبة د عظمت شان بيانولو دپاره دې او جمله معترضه ده، او کنډو ته د داخليدو طريقه الله پاك په خپل قول ﴿ فك رقبة ﴾ کښې بيان فرمائيلې ده، يعنی د غلامۍ نه ستونه خلاصول په دې طريقه چه هغه لره ازاد کړی يا د لوږې په ورځ باندې په يو نزدې (رشته دار) يتيم يا په خاورو ککړ مسکين باندې خوراک کول يعنی هغه فقير کوم چه د خپل فقر د وجې نه په خاورو کښې پروت وی، او په يو قرات کښې د دواړو فعلونو په ځائې دواړه مرفوع مصدر دی، اول مصدر د ﴿ رقبة ﴾ مضاف دې او دويم مصدر منون دې، لهذا د ﴿ العقبة ﴾ نه مخکښې به ﴿ اقتحام ﴾ مقدر منلې شی، او ذکر شوې قرات به د اقتحام بيان وی، او بيا هغه اقتحام (يعنی کنډو کښې د داخليدو په وخت) د مومنانو نه وی او چا چه خپل مينځ کښې يو بل لره په طاعت باندې او د معصيت نه په پرهيز کولو باندې د صبر او د الله پاك په مخلوق باندې د رحم ترغيب ورکړې وی دا خلق کوم چه په دې صفاتو سره متصف وی دا ښی لاس والا دی، او چا چه زمونږ د آيتونو نه انکار اوکړو هغه د ګس لاس والا دی، په هغوی باندې به اور خور شوې وی. (موصدة) په همزې سره دې او د همزې په ځائې په واؤ سره هم دې په معنی د خور شوی.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

قوله: لا اقسم: دا يو قول دې او يو قول دا هم دې چه دا د منکرين بعث د قول نفی ده، مطلب دا چه اې مشرکين مکه څنګه چه تاسو وايئ نو داسې خبره نه ده.

قوله: وانت حل بهذا البلد: دا رسول الله ﷺ ته تسلی ده او د بيا دپاره د فتح مکه زيرې دې، د يقينی الوقوع کيدو د وجې نه د حال په صيغې سره تعبير کړې شوې دې، لکه چه ﴿ انك ميت وانهم ميتون ﴾ کښې دې، ﴿ وانت حل ﴾ جمله معترضه ده، نه ئې د مخکښې سره تعلق شته

او نه د روستو سره، بلکه په دې جملې سره د راتلونکې واقعې خبر ورکړې شوې دې، او غوره دا ده چه دې جملې ته حاليه اونيلې شي.

**قوله:** بِأَنْ يُحِلَّ لَكَ: دا دې خبرې ته اشاره ده چه مصدر په معنى د مستقبل دې. (صاوی)

**قوله:** ﴿ لَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنسَانَ ﴾ دا مقسم عليه (جواب قسم) دې.

**قوله:** ﴿ وَمَا وَلَدَ ﴾ دلته ﴿ ما ﴾ په معنى د ﴿ من ﴾ دې.

**قوله:** ﴿ فَهَلَّا ﴾ په دې کښې اشاره ده چه ﴿ لا ﴾ په معنى د ﴿ فهلا ﴾ دې، او په خپل اصل باندې هم کيدې شي.

**سوال:** ﴿ لا ﴾ چه کله په ماضى باندې داخله شي نو د ﴿ لا ﴾ تکرار ضروری وی لکه ﴿ فلا صدق ولا صلى ﴾؟

**جواب:** معنى تکرار شته اګرچه لفظا نشته، ځکه چه په اصل کښې ﴿ فلا فك رقبة ولا اطعم مسکينا ﴾ دې.

**قوله:** ﴿ الْعَقَبَةَ ﴾ عقبه په غرونو په مينځ کښې سختې لارې ته وائى، ﴿ الاقتحام ﴾ په معنى د کندو ته داخليدل بيا مطلقا د ترك محرمات اود فعل الطاعات کښې دمجاهدې دپاره استعمال شو.

**قوله:** ﴿ جَاوَزَهَا ﴾ دا د اقتحام العقبة تفسير دې.

**قوله:** ﴿ بَيَّنَ سَبَبَ جَوَازِهَا ﴾ اى بين طريق دخولها، وفى قراءة بدل الفعلين مصدران مرفوعان دا په ﴿ فك رقبة او اطعام ﴾ کښې د دويم قراءت بيان دې، مفسر علام رحمه الله فرمائى چه په بعض قراءتونو کښې د ذکر شوى دوه فعلونو په ځائې يعنى د ﴿ فك ﴾ په ځائې ﴿ فك ﴾ او ﴿ اطعم ﴾ په ځائې ﴿ اطعام ﴾ دى، معلوميږى چه د مفسر علام رحمه الله مخې ته چه د قران کريم کومه نسخه ده په هغې کښې د مصدر په ځائې فعل دې، او زمونږ مخې ته چه کومه نسخه ده په هغې کښې په دوارو ځايونو کښې مصدر دې، که د مصدرونو په ځائې افعال اومنلې شى نو بيا به دواړه افعال د ﴿ فلا اقتحم ﴾ نه بدل وى يعنى هغه په عقبه کښې داخل نه شو يعنى ستونه ئې ازاد نه کړل او د لوږې په ورځ ئې خوراك ورنکړو، او که د دوارو فعلونو په ځائې مصدر اومنلې شى لکه چه زمونږ په نسخه کښې دى نو دا دواړه مصدرونه به د ﴿ العقبة ﴾ تفسير وى خو په دې صورت کښې به د ذات تفسير په مصدر سره کيدل لازم شى، ځکه چه عقبة ذات دې او ﴿ فك ﴾ او ﴿ اطعام ﴾ مصدر دى او دا جائز نه دى؟ لهذا د عقبه نه مخکښې اقتحام مصدر منل ضرورى دى، د عبارت تقدير به داسې وى: ﴿ ما اقتحام العقبة؟ هو فك رقبة او اطعام يوم ذى مسغبة ﴾ د دې تقدير نه پس د مصدر حمل په ذات باندې کيدل نه لازميږى.

**قوله:** ﴿ ثُمَّ لِلتَّرْتِيبِ الذِّكْرِيِّ ﴾: د دې عبارت د اضافې مقصد د يو سوال جواب ورکول دى.

**سوال:** په پورته آيت کريمه کښې د طاعات بدنيه او ماليه په ذريعه د مجاهدې حکم ورکړې

شوي دي او په ﴿ لم كان من الذين آمنوا ﴾ كښې د ايمان راوړلو حكم وركړې شوې دې حال دا چه ايمان د طاعت نه مقدم دې؟

**جواب:** د جواب خلاصه دا ده چه ﴿ ثم ﴾ د ترتيب ذكرى دپاره دې د ترتيب زماني دپاره نه دې او مطلب دا دې چه د مجاهده نفس بالاطاعت په وخت مومن وى.

## [٩١] سورة الشمس

### سورة الشمس مكية خمس عشرة آية

سورة والشمس مكي دې، پنځلس آيتونه دى.

### [ايا تونه: ١ - ١٥]

بسم الله الرحمن الرحيم ﴿وَالشَّمْسِ وَضُحَاهَا﴾ ضَوْئِهَا ﴿وَالْقَمَرِ إِذَا تَلَاهَا﴾ تَبِعَهَا طَالِعًا عِنْد غُرُوبِهَا ﴿وَالنَّهَارِ إِذَا جَلَّاهَا﴾ بِارْتِفَاعِهِ ﴿وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشَاهَا﴾ يُغَطِّيهَا بِظُلْمَتِهِ وَإِذَا فِي الثَّلَاثَة لِمُجَرَّدِ الظَّرْفِيَّة وَالْعَامِل فِيهَا فِعْل الْقَسَم ﴿والسماء وما بناها﴾ ﴿وَالْأَرْضِ وَمَا طَحَاهَا﴾ بَسَطَهَا ﴿وَنَفْسٍ﴾ بِمَعْنَى نُفُوس ﴿وَمَا سَوَّاهَا﴾ فِي الْخِلْقَة وَمَا فِي الثَّلَاثَة مَصْدَرِيَّة أَوْ بِمَعْنَى مَنْ ﴿فَأَلْهَمَهَا فُجُورَهَا وَتَقْوَاهَا﴾ بَيَّنَ لَهَا طَرِيق الْخَيْر والشر واخر التقوى رعاية لرؤوس الآي وجواب القسم ﴿قَدْ أَفْلَحَ﴾ حُذِفَتْ مِنْهُ اللَّام لِطُولِ الْكَلَام ﴿مَنْ زَكَّاهَا﴾ طَهَّرَهَا مِنَ الذُّنُوب ﴿وَقَدْ خَابَ﴾ خَسِرَ ﴿مَنْ دَسَّاهَا﴾ أَخْفَاهَا بِالْمَعْصِيَةِ وَأَصْله دَسَّسَهَا أُبْدِلَتْ السِّين الثَّانِيَة أَلِفًا تَخْفِيفًا ﴿كَذَّبَتْ ثَمُودُ﴾ رَسُولَهَا صَالِحًا ﴿بِطَغْوَاهَا﴾ بِسَبَبِ طُغْيَانهَا ﴿إِذِ انْبَعَثَ﴾ أَسْرَعَ ﴿أَشْقَاهَا﴾ وَاسْمه قُدَار إِلَى عَقْر النَّاقَة بِرِضَاهُمْ ﴿فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ﴾ صَالِح ﴿نَاقَةَ اللَّهِ﴾ أَيْ ذَرُوهَا ﴿وَسُقْيَاهَا﴾ شُرْبهَا فِي يَوْمهَا وَكَانَ لَهَا يَوْم وَلَهُمْ يَوْم ﴿فَكَذَّبُوهُ﴾ فِي قَوْله ذَلِكَ عَنِ اللَّه الْمُرَتَّب عَلَيْهِ نُزُول الْعَذَاب بِهِمْ إِنْ خَالَفُوهُ ﴿فَعَقَرُوهَا﴾ قَتَلُوهَا لِيَسْلَم لَهُمْ مَاء شُرْبهَا ﴿فَدَمْدَمَ﴾ أَطْبَقَ ﴿عَلَيْهِمْ رَبُّهُمْ﴾ الْعَذَاب ﴿بِذَنْبِهِمْ فَسَوَّاهَا﴾ أَيْ الدَّمْدَمَة عَلَيْهِمْ أَيْ عَمَّهُمْ بِهَا فَلَمْ يَفْلِت مِنْهُمْ احد ﴿ولا﴾ بالواو والفاء ﴿يخاف عقباها﴾ تبعتها

**ترجمه:** په نوم د الله پاک چه ډير مهربانه او هميشه مهربانه دې شروع كوم، قسم كوم په نمر او د هغې په رڼرا او قسم كوم په سپوږمۍ چه كله هغه په نمر پسې شاته راځي يعنى د هغې د غروب كيدو نه پس راخيژى او قسم دې په ورځ چه كله هغه د خپل پورته كيدو سره نمر لره روښانه كړى او قسم دې په شپه باندې چه كله هغه نمر لره د خپلې تيارې په ذريعه پټ كړى او ﴿ اذا ﴾ په درې وارو ځايونو كښې صرف د ظرفيت دپاره دې او عامل په ﴿ اذا ﴾ كښې فعل قسم دې او قسم دې په اسمان او په هغه ذات چه چا دا قائم كړې دې او په زمكه او په هغه ذات چا چه دا خوره كړې ده، او قسم دې په نفس او په هغه ذات چا چه د هغه تخليق برابر كړو او نفس دلته په معنى د ﴿ نفوس ﴾ دې او ﴿ ما ﴾ درې وارو ځايونو كښې مصدريه ده يا په معنى د ﴿ من ﴾ ده. بيا ئې ورته د نفس د بدكارۍ او پرهيزګارۍ الهام او كړو يعنى د خير او شر دواړو طريقې ئې ورته واضحې كړې او

تقوى ئې د فواصل د رعايت د وجې نه موخر كړو، او جواب قسم ﴿ قد افلح ﴾ دې، د جواب قسم نه لام د طول كلام د وجې نه حذف كړې شوې دې، يقينا هغه كس مراد ته اورسيدو چا چه دا نفس د ګناهونو نه پاک كړو او يقينا هغه څوک نامراد شو چا چه نفس لره په ګناه باندې ككړ كړو ﴿ دسّٰها ﴾ په اصل كښې ﴿ دسّسها ﴾ وو دويم سين تخفيفا په الف سره بدل كړې شو، او قوم ثمود د خپل رسول صالح عليه السلام د خپلې سركشۍ په سبب تكذيب اوكړو چه كله د هغه قوم بدبخت ترين سړې چه د هغه نوم قُدار وو د خپل قوم په رضامندئ سره د هغه اوښې د خپو پرې كولو دپاره راپاسيدو، نو هغوى ته د الله رسول صالح عليه السلام اووئيل چه د الله پاک د اوښې نه ځان اوساتئ يعنى هغې ته په بد نيتئ سره لاس يونسئ او د هغې د نمبر په ورځ د اوبو څكلو نه خبردار اوسئ او يوه ورځ د هغې د نمبر وه او د قوم دپاره يوه ورځ وه پس هغوى د هغه صالح عليه السلام تكذيب اوكړو په دې خبره كښې چه دا د الله پاك د طرف نه دې كه هغوى د دې خلاف اوكړو نو په دې به نزول عذاب مرتب شى نو بيا هغوى هغه اوښه هلاكه كړه يعنى هغه ئې قتل كړه چه د هغه (اوښې) د اوبو څكلو نمبر خالص د هغوى دپاره شى نو د هغوى رب د هغوى د ګناهونو په سبب په هغوى باندې هلاكت نازل كړو بيا ئې هغه هلاكت په هغوى باندې عام كړو چه په هغوى كښې ئې څوك هم باقى پرينخودل، او الله پاک ته د دې د بد انجام ويره نشته ﴿ ولا ﴾ كښې واو او فا دواړه شته.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

قوله: ﴿ وَضُحٰىهَا ﴾ ﴿ الضحوة ﴾ ارتفاع النهار، او ﴿ الضحى بالضم والقصر ﴾ د ارتفاع النهار نه زيات شى، او ﴿ الضحاء ﴾ په فتحې او مد سره هغه وخت چه كله ورځ نصف النهار ته نژدې شى.

قوله: ﴿ وَالنَّهَارِ اِذَا جَلّٰىهَا ﴾ د ﴿ اذا جلاها ﴾ ضمير مرفوع مستتر يا خو د ﴿ نهار ﴾ طرف ته يا د ﴿ الله ﴾ طرف ته راجع دې او ضمير بارز يا خود شمس طرف ته راجع دې يا د ظلمت طرف ته.

قوله: ﴿ بِطَغْوٰىهَا والطاغية ﴾ دا د اضافت الصفت الى الموصوف د قبيل نه دې اى الطاغية المجردة عن الفرط.

قوله: ﴿ قَدْ اَفْلَحَ ﴾ دا جواب قسم دې، حذفت منه اللام يعنى په قد باندې د طول كلام د وجې نه لام حذف كړې شوې دې، ماضى مثبت چه كله جواب قسم واقع شى نو په هغې باندې لام او قد راوړل ضرورى وى، البته صرف په قد باندې هم اكتفاء جائز ده.

# [٩٢] سورة الليل

## سورة الليل مكية احدى وعشرون آية

## سورة الليل مكي دي، يوويشت آيتونه دي.

### [ايا تونه: ١ - ٢١]

بسم الله الرحمن الرحيم ﴿وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشَىٰ﴾ بِظُلْمَتِهِ كُلَّ مَا بَيْنَ السماء والأرض ﴿وَالنَّهَارِ إِذَا تَجَلَّىٰ﴾ تَكَشَّفَ وَظَهَرَ وَإِذَا فِي الْمَوْضِعَيْنِ لِمُجَرَّدِ الظَّرْفِيَّةِ وَالْعَامِلُ فِيهَا فِعْلُ الْقَسَمِ ﴿وَمَا﴾ بِمَعْنَى مَنْ أَوْ مَصْدَرِيَّةٌ ﴿خَلَقَ الذَّكَرَ وَالْأُنثَىٰ﴾ آدَمَ وَحَوَّاءَ وَكُلَّ ذَكَرٍ وَكُلَّ أُنْثَى وَالْخُنْثَى الْمُشْكِلُ عِنْدَنَا ذَكَرٌ أَوْ أُنْثَى عِنْدَ اللهِ تَعَالَى فَيَحْنَثُ بِتَكْلِيمِهِ مَنْ حَلَفَ لَا يُكَلِّمُ ذَكَرًا وَلَا أُنْثَى ﴿إِنَّ سَعْيَكُمْ﴾ عَمَلَكُمْ ﴿لَشَتَّىٰ﴾ مُخْتَلِفٌ فَعَامِلٌ لِلْجَنَّةِ بِالطَّاعَةِ وَعَامِلٌ لِلنَّارِ بِالْمَعْصِيَةِ ﴿فَأَمَّا مَنْ أَعْطَىٰ﴾ حَقَّ اللهِ ﴿وَاتَّقَىٰ﴾ اللهَ ﴿وَصَدَّقَ بِالْحُسْنَىٰ﴾ أَيْ بِلَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ فِي الموضعين ﴿فَسَنُيَسِّرُهُ لِلْيُسْرَىٰ﴾ لِلْجَنَّةِ ﴿وَأَمَّا مَن بَخِلَ﴾ بِحَقِّ اللهِ ﴿وَاسْتَغْنَىٰ﴾ عَنْ ثوابه ﴿وَكَذَّبَ بِالْحُسْنَىٰ﴾ ﴿فَسَنُيَسِّرُهُ﴾ نُهَيِّئُهُ ﴿لِلْعُسْرَىٰ﴾ لِلنَّارِ ﴿وَمَا﴾ نَافِيَةٌ ﴿يُغْنِي عَنْهُ مَالُهُ إِذَا تَرَدَّىٰ﴾ فِي النَّارِ ﴿إِنَّ عَلَيْنَا لَلْهُدَىٰ﴾ لَتَبْيِينَ طَرِيقِ الْهُدَى مِنْ طَرِيقِ الضَّلَالِ لِيَمْتَثِلَ أَمْرَنَا بِسُلُوكِ الْأَوَّلِ وَنَهْيَنَا عَنِ ارْتِكَابِ الثَّانِي ﴿وَإِنَّ لَنَا لَلْآخِرَةَ وَالْأُولَىٰ﴾ أَيِ الدُّنْيَا فَمَنْ طَلَبَهُمَا مِنْ غَيْرِنَا فَقَدْ أَخْطَأَ ﴿فَأَنذَرْتُكُمْ﴾ خَوَّفْتُكُمْ يَا أَهْلَ مَكَّةَ ﴿نَارًا تَلَظَّىٰ﴾ بِحَذْفِ إِحْدَى التَّاءَيْنِ مِنَ الْأَصْلِ وَقُرِئَ بِثُبُوتِهَا أي تتوقد ﴿لَا يَصْلَاهَا﴾ يَدْخُلُهَا ﴿إِلَّا الْأَشْقَى﴾ بِمَعْنَى الشَّقِيِّ ﴿الَّذِي كَذَّبَ﴾ النَّبِيَّ ﴿وَتَوَلَّىٰ﴾ عَنِ الْإِيمَانِ وَهَذَا الْحَصْرُ مُؤَوَّلٌ لِقَوْلِهِ تَعَالَى ﴿وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَن يَشَاءُ﴾ فَيَكُونُ الْمُرَادُ الصَّلْيَ الْمُؤَبَّدَ ﴿وَسَيُجَنَّبُهَا﴾ يُبْعَدُ عَنْهَا ﴿الْأَتْقَى﴾ بِمَعْنَى التَّقِيِّ ﴿الَّذِي يُؤْتِي مَالَهُ يَتَزَكَّىٰ﴾ مُتَزَكِّيًا بِهِ عِنْدَ اللهِ تَعَالَى بِأَنْ يُخْرِجَهُ لِلّٰهِ تَعَالَى لَا رِيَاءً وَلَا سُمْعَةً فَيَكُونُ زَاكِيًا عِنْدَ اللهِ وَهَذَا نَزَلَ فِي الصِّدِّيقِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لَمَّا اشْتَرَى بِلَالًا الْمُعَذَّبَ عَلَى إِيمَانِهِ وَأَعْتَقَهُ فَقَالَ الْكُفَّارُ إِنَّمَا فَعَلَ ذَلِكَ لِيَدٍ كَانَتْ لَهُ عِنْدَهُ فَنَزَلَتْ ﴿وما لأحد عنده من نعمة تجزى﴾ ﴿إِلَّا﴾ لَكِنْ فَعَلَ ذَلِكَ ﴿ابْتِغَاءَ وَجْهِ رَبِّهِ الْأَعْلَىٰ﴾ أَيْ طَلَبَ ثَوَابِ اللهِ ﴿وَلَسَوْفَ يَرْضَىٰ﴾ بِمَا يُعْطَاهُ مِنَ الثَّوَابِ فِي الْجَنَّةِ وَالْآيَةُ تَشْمَلُ مَنْ فَعَلَ مِثْلَ فِعْلِهِ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُ فَيُبْعَدُ عَنِ النَّارِ ويثاب

ترجمه: په نوم د الله پاک چه ډير مهربانه او هميشه مهربانه دې شروع کوم، قسم دې په شپه باندې چه کله هغه په خپلې تيارې سره د زمکې او اسمان په هر يو څيز خوره شي (پټ کړي)، او قسم دې په ورځ باندې چه کله روښانه شي (يعنې) چه کله هغه واضح او ظاهر شي، او ﴿ اذا ﴾ په دوارو ځايونو کښې د ظرفيت دپاره دې او په دې کښې عامل فعل قسم دې، او ﴿ ما ﴾ په معنى د ﴿من﴾ يا مصدريه ده. او قسم دې په هغه ذات چا چه نر او ماده پيدا کړل (يعنې) آدم او حوا عليهما السلام يا ئې مذکر او مؤنث پيدا کړل، او خنثى مشکل زمونږ په نزد دې، (خو) د الله پاک په نزد هغه مذکر دې يا مؤنث دې، لهذا هغه کس چا چه قسم اوخوړو چه هغه به د

سړی او ښځې سره خبره نه کوی نو هغه به د خنثی مشکل سره په کلام کولو باندې حانث شی، یقینا ستاسو کوشش (یعنی) عمل مختلف قسم دې، څه خلق د طاعت په ذریعه د جنت دپاره عمل کونکی دی او څه خلق د معصیت په ذریعه د جهنم دپاره عمل کونکی دی پس چا چه د الله پاك حق ادا کړو او د الله پاك نه اویریدو او د رشتینې خبرې تصدیق ئې اوکړو یعنی د ﴿لا اله الا الله﴾ په دوارو ځایونو کښې نو مونږ به د هغه دپاره د جنت لاره اسانه کړو او چا چه د الله پاك په حق کښې بخل اوکړو او د هغه د ثواب نه ئې ځان بې حاجته اوګڼړلو او د نبی خبرې تکذیب ئې اوکړو نو مونږ به هغه ته د سختې لارې یعنی اور دپاره سهولت پیدا کړو او د هغه مال به د هغه هیڅ پکار نه شی کله چه به هغه چه په اور کښې هلاك شی بیشکه لاره ښودل زمونږ په ذمه دی یعنی د هدایت لارې لره د ګمراهۍ د لارې نه جدا کول، چه په اول لارې باندې تلو سره زمونږ د حکم تعمیل اوکړی او زمونږ په نهی باندې عمل اوکړی او دویمه لاره اختیار نه کړی او بیشکه اخرت او اولی یعنی دنیا زمونږ ملکیت دی لهذا دنیا چه چا زمونږ د غیر نه طلب کړه هغه خطا اوکړه، پس ما تاسو اې اهل مکه د ګرم اور نه خبردار کړی یئ په اصل کښې یو تاء لره حذف کولو سره، او تاء لره باقی ساتلو سره هم، یعنی ﴿تتوقد﴾ هم لوستلې شوې دې، کوم ته چه به صرف هم هغه بدبخت داخلیږی چا چه د نبی ﷺ تکذیب کړې دې او د ایمان نه ئې اعراض کړې دې او ﴿اشقی﴾ په معنی د ﴿شقی﴾ دې، او دا حصر موؤل دې د الله پاك د قول ﴿ویغفر ما دون ذلك لمن یشآء﴾ د وجې نه لهذا دائمی دخول به مراد وی، او ددې اور نه به هغه متقی لرې ساتلې شی کوم چه خپل مال لره د الله پاك په نزد د پاکیدو دپاره ورکوی او ﴿اتقی﴾ په معنی د ﴿تقی﴾ دې، په داسې طریقه چه مال د الله پاك دپاره خرچ کوی نه د ښودلو او اورولو دپاره، لهذا دا کس به د الله پاك په نزد پاکیزه وی، او دا آیت کریمه د ابوبکر صدیق رضی الله عنه په باره کښې نازل شوې دې چه کله هغه بلال رضی الله عنه لره هغه وخت چه کله هغه د خپل ایمان په وجه باندې په تکلیف کښې وو اخستلو سره ازاد کړو نو کفارو اووئیل ابوبکر رضی الله عنه دا عمل په دې وجه اوکړو چه د بلال رضی الله عنه په هغه باندې یو احسان وو نو دا آیت کریمه نازل شو ﴿وما لاحد عنده﴾ یعنی د بلال وغیره په هغه باندې هیڅ احسان نشته چه د هغې بدله ورکول وی هغه خو صرف د خپل لوئی رب د رضا یعنی د الله پاك د طرف نه د بدلې د حاصلولو دپاره دا کار کوی او هغه به په هغه ثواب سره ضرور خوشحاله شی، کوم چه به په جنت کښې هغه ته ورکولې شی او آیت کریمه په هر هغه کس باندې مشتمل دې چا چه د ابوبکر صدیق رضی الله عنه په شان عمل اوکړو نو هغه به د دوزخ نه لرې ساتلې شی او هغه ته به اجر ورکولې شی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

قوله: ﴿كُلِّ مَا آتَيْتَ السَّمَاءَ وَالْأَرْضَ﴾ په دې کښې اشاره ده چه د ﴿یغشی﴾ مفعول به محذوف دې.

قوله: ﴿لِتَجَرُّدِ الظَّرْفِيَّةِ﴾ ای المجرد عن الشرط

قوله: ﴿آدم وحواء علیهما السلام﴾ په دې کښې اشاره ده چه د ﴿الذکر والانثی﴾ کښې الف لام عهدی دې.

قوله: ﴿أو كُلَّ ذَكَرٍ وَكُلَّ أُنْثَى﴾ په دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چه د ﴿الذکر والانثی﴾ الف لام د استغراق دپاره هم کیدې شی.

قوله: ﴿وَالْخُنْثَى الْمُشْكِلُ عِنْدَنَا﴾. ﴿الخنثی المشکل﴾ مبتداء ده او ﴿عندنا﴾ خبر، او د ﴿عندالله﴾ د ﴿ذکر او انثی﴾ ظرف دې، او دا د یو مقدر سوال جواب دې.

سوال: دا دې چه چه خنثی مشکل نه د مذکر په عموم کښې داخل دې او نه د انثی په عموم کښې نو هغه په دې حکم کښې څنګه داخل شو؟

جواب: د جواب خلاصه دا ده چه خنثی مشکل زمونږ د علم په اعتبار سره دې، خو د الله پاك د علم په اعتبار سره خنثی یا خو مذکر دې یا مونث دې، لهذا دا د ذکر او نثی په عموم کښې داخل دی، خنثی یو دریم جنس نه دې، ددې تائید د الله پاك ددې قول نه هم کیږی: ﴿یهب لمن یشاء اناثا ویهب لمن یشاء الذکور﴾

قوله: ﴿إِنَّ سَعْيَكُمْ لَشَتَّى﴾ دا جواب قسم دې ﴿سعیکم﴾ مصدر مضاف دې کوم چه د عموم فائده ورکوی لهذا د معنی په اعتبار سره جمع دې اګرچه د الفاظو په اعتبار سره مفرد دې او هم دا وجه ده چه ددې خبر جمع راوړې شوې دې او ﴿شتی﴾ په معنی د ﴿مساعیکم﴾ دې.

قوله: د ﴿حق الله﴾ او د ﴿اتقی﴾ نه پس د لفظ ﴿الله﴾ د اضافې مقصد دې خبرې ته اشاره کوّل دی چه د ﴿اعطی﴾ او ﴿اتقی﴾ مفعول به محذوف دی.

قوله: ﴿نُهَيِّئُهُ﴾ ددې لفظ د اضافې مقصد د یو سوال مقدر جواب ورکول دی.

سوال: د ﴿فَسَنُيَسِّرُهُ لِلْعُسْرَى﴾ نه معلومیږی چه د عسر دپاره هم یسر دې، حال دا چه په عسر کښې د یسر هیڅ مطلب نشته؟

جواب: د جواب حاصل دا دې چه دلته د ﴿یسر﴾ نه مراد اسباب برابرول دی کوم چه د ﴿یسر﴾ او ﴿عسر﴾ دواړو دپاره کیدې شی، یعنی مونږ به د هغه دپاره داسې اعمال اسان کړو کوم چه هغه د جهنم طرف ته بوځی.

قوله: ﴿وَهَذَا الْحَصْرُ مُؤَوَّلٌ﴾ یعنی دا حصر د خپل ظاهر نه اوړیدلې دې ددې عبارت د اضافې مقصد په فرقه مرجئه باندې رد کول دی، د چا عقیده چه دا ده چه د ایمان سره هیڅ ګناه مضر نه ده او استدلال د ذکر شوی آیت کریمه ﴿لایصلها الا الاشقی﴾ نه کوی یعنی جهنم ته به بدبخت ترین انسان داخلیږی او بدبخت ترین کافر وی، مومن به نه داخلیږی اګرچه د

کبیره گناه مرتکب ولې نه وی.
د رد خلاصه دا ده چه د دخول نه مراد دخول مؤبد دې لهذا دا د دې منافي نه ده چه گنهګار مومن جهنم ته داخل شي او بیا راویستلې شي.
**قوله:** ﴿یتزکی﴾ په دې کښې دوه احتمالات دی یو دا چه د ﴿یؤتی﴾ نه بدل وی او دویم دا چه د ﴿یؤتی﴾ د فاعل نه حال وی، مفسر علامﷺ ﴿متزکیا﴾ ونیلو سره دې خبرې ته اشاره اوکړه چه د هغوی په نزد حال کیدل راجح دی.

## [٩٣] سورة الضحیٰ

### سورة والضحیٰ مکیة احدی عشرة آیة

سورة والضحیٰ مکی دې، یوولس آیتونه دی.

**[ایاتونه: ١ - ١١]**

بسم الله الرحمن الرحیم ﴿وَالضُّحَىٰ﴾ أَيْ أَوَّل النَّهَار أَوْ كُلّه ﴿وَاللَّيْلِ إِذَا سَجَىٰ﴾ غَطّى بِظَلَامِهِ أَوْ سَكَنَ ﴿مَا وَدَّعَكَ﴾ تَرَكَكَ يَا مُحَمَّد ﴿رَبُّكَ وَمَا قَلَىٰ﴾ أَبْغَضَكَ نَزَلَ هَذَا لَمَّا قَالَ الْكُفَّار عِنْد تَأَخُّر الْوَحْي عَنْهُ خَمْسَة عَشَر يَوْمًا إِنَّ رَبّه وَدَّعَهُ وَقَلَاهُ ﴿وَلَلْآخِرَةُ خَيْرٌ لَكَ﴾ لِمَا فِيهَا مِنَ الْكَرَامَات لك ﴿مِنَ الْأُولَىٰ﴾ الدنيا ﴿وَلَسَوْفَ يُعْطِيكَ رَبُّكَ﴾ فِي الْآخِرَة مِنَ الْخَيْرَات عَطَاء جَزِيلًا ﴿فَتَرْضَىٰ﴾ بِهِ فَقَالَ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَنْ لَا أَرْضَى وَوَاحِد مِنْ أُمَّتِي فِي النَّار إِلَى هُنَا تَمَّ جَوَاب الْقَسَم بِمُثْبَتَيْنِ بَعْد مَنْفِيَّيْنِ ﴿أَلَمْ يَجِدْكَ﴾ اِسْتِفْهَام تَقْرِير أَيْ وَجَدَكَ ﴿يَتِيمًا﴾ بِفَقْدِ أَبِيك قَبْل وِلَادَتك أَوْ بَعْدهَا ﴿فَآوَىٰ﴾ بِأَنْ ضَمَّكَ إِلَى عَمّك أَبِي طَالِب ﴿وَوَجَدَكَ ضَالًّا﴾ عَمَّا أَنْتَ عَلَيْهِ مِنَ الشَّرِيعَة ﴿فَهَدَىٰ﴾ أَيْ هَدَاك إِلَيْهَا ﴿وَوَجَدَكَ عَائِلًا﴾ فَقِيرًا ﴿فَأَغْنَىٰ﴾ أَغْنَاك بِمَا قَنَّعَكَ بِهِ مِنَ الْغَنِيمَة وَغَيْرهَا وَفِي الْحَدِيث لَيْسَ الْغِنَى عَنْ كَثْرَة الْعَرَض وَلَكِنَّ الْغِنَى غِنَى النفس ﴿فَأَمَّا الْيَتِيمَ فَلَا تَقْهَرْ﴾ بِأَخْذِ مَاله أَوْ غَيْر ذَلِكَ ﴿وَأَمَّا السَّائِلَ فَلَا تَنْهَرْ﴾ تَزْجُرهُ لِفَقْرِهِ ﴿وَأَمَّا بِنِعْمَةِ رَبِّكَ﴾ عليك بالنبوة وغيره ﴿فَحَدِّثْ﴾ أَخْبِرْ وَحُذِفَ ضَمِيره صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وسلم فِي بعض الأفعال رعاية للفواصل

**ترجمه:** په نوم د الله پاک چه ډیر مهربانه او همیشه مهربانه دې شروع کوم قسم دې په شروع د ورځ یا په پوره ورځ او قسم دې په شپه باندې چه کله هغه د خپلې تیارې سره خوره شی یا پرسکون شی (اې محمد ﷺ) ستا رب هرګز ته نه ئې پریخودلې او نه هغه ستا نه ناراضه دې دا سورت هغه وخت نازل شو چه کله د رسول الله ﷺ نه تر پنځلسو ورځو پورې د وحې سلسله منقطع شوه نو کفارو ونیلې وو چه محمد ﷺ خو د هغه رب پریخودلو او د هغه نه ناراضه شو. او یقینا ستا دپاره آخرت د دنیا نه غوره دې ځکه چه په آخرت کښې د رسول الله ﷺ دپاره عظمتونه دی او نزدې ده چه ستا رب به تاته په آخرت کښې د خیر نه او بې انتهاء انعاماتو نه درکړی، چه ته به پرې خوشحاله شې او رسول الله ﷺ فرمائی نو بیا خو به زه تر هغه وخته پورې راضی نه شم ترڅو پورې چه زما یو امتی هم په اور کښې وی، دې ځائی پورې جواب قسم د دوؤ منفی

انعاماتو نه پس په دوؤ مثبت انعاماتو باندې ختم شو. آیا هغه ته یتیم بیا نه موندې؟ د رسول الله ﷺ د والد محترم، د رسول الله ﷺ د پیدائش نه مخکښې یا روستو وفات کیدو د وجې نه، نو تاته ئې ټهکانه (ځائې) درکړو استفهام د تقریر دپاره دې یعنی ته ئې یتیم بیا موندلې نو تاته ئې ستا د تره ابوطالب سره ځائې درکړو، او ته ئې دهغه شریعت نه بې خبره بیا موندلې په کوم باندې چه اوس ته ئې نو هغه تاته ددې طرفته لار اوښودله او ته ئې غریب بیا موندلې نو مستغنی ئې کړې د هغه مال غنیمت وغیره په ذریعه په کوم چه رسول الله ﷺ قناعت اوکړو، او په حدیث کښې دی چه غنا د مال او متاع په کثرت سره نه ده بلکه غنا خو د زړه غنا ده، لهذا ته هم په یتیم باندې د هغه مال وغیره اخستلو سره سختي مه کوه او مه سوالګرې د فقر د وجې نه رټه او په خپل خان باندې د خپل رب نبوت وغیره نعمتونه ظاهروه یعنی هغه بیانوه، او د بعض افعالو نه د رسول الله ﷺ طرف ته واپس کیدونکی ضمائر د فواصل د رعایت د وجې نه حذف کړې شوی دی.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

قوله: ﴿ الضُّحٰى ﴾ چه ورځ روښانه شی، د چاشت وخت، ضحی مذکر او مونث دواړو طریقو سره استعمالیږی.

قوله: ﴿ سَجٰى ﴾ د (نصر) نه د ماضی واحد مذکر غائب، هغه سکون بیا موندلو، هغه خور شو.

قوله: ﴿ وَمَا قَلٰى ﴾ دا په اصل کښې ﴿ قلٰك ﴾ وو، مفعول به لره په ماقبل باندې قیاس کولو سره حذف کړې شو.

قوله: ﴿ قَلٰى ﴾ د (ض-ن) نه ماضی واحد مذکر غائب، سخت نفرت کول.

قوله: ﴿ جَزِيلًا ﴾ ډیر زیارت، په کثرت سره.

قوله: ﴿ ثُمَّ جَوَابُ الْقَسَمِ عُطِفَتْ بَعْدَ مَنْفِيَّيْنِ ﴾ جواب قسم د ﴿ ودعك ﴾ نه شروع کیدو سره په ﴿ فترضى ﴾ باندې ختم شوې دې، په دې کښې د څلورو څیزونو بیان دې، اول دوه یعنی ﴿ ما ودعك ﴾ او ﴿ وما قلى ﴾ منفی دی او ددې نه روستو ﴿ وللآخرة خير لك من الاولى ﴾ او ﴿ ولسوف يعطيك ربك فترضى ﴾ په دې کښې د دوؤ څیزونو بیان دې یعنی د آخرت خیر او د الله پاك ورکړه دا دواړه مثبت دی.

قوله: ﴿ فَأَمَّا الْيَتِيمَ فَلَا تَقْهَرْ ﴾ ﴿ اليتيم ﴾ د ﴿ فلا تقهر ﴾ د وجې نه منصوب (مفعول به مقدم) دې.

قوله: ﴿ وَحُذِفَ ضَمِيرُهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَعْضِ الْأَفْعَالِ رِعَايَةً لِلْفَوَاصِلِ ﴾ او هغه درې افعال دی، ١: یعنی ﴿ فآوى ﴾ په اصل کښې ﴿ فآواك ﴾ وو. ٢: ﴿ فهدى ﴾ په اصل کښې ﴿ فهداك ﴾ وو، ٣: ﴿ فاغنى ﴾ په اصل کښې ﴿ فاغناك ﴾ وو، په ذکر شوی درې واړو افعالو کښې ضمیرِ مفعولی د فواصل د رعایت د وجې نه حذف کړې شوې دې.

## [٩٤] سورة ألم نشرح

## سورة الم نشرح مكية ثمان آيات

سورة الم نشرح مكي دي، اته آيتونه دي.

[اياتونه: ۱ - ۱۹]

بسم الله الرحمن الرحيم {ألم نشرح} إستفهام تقرير أي شرحنا {لك} يا محمد {صدرك} بالنبوة وغيرها {ووضعنا} حططنا {عنك وزرك} {الذي أنقض} أثقل {ظهرك} وهذا كقوله تعالى {ليغفر لك الله ما تقدم من ذنبك} {ورفعنا لك ذكرك} بأن تذكر مع ذكري في الأذان والإقامة والتشهد والخطبة وغيرها {فإن مع العسر} الشدة {يسرا} سهولة {إن مع العسر يسرا} والنبي صلى الله عليه وسلم قاسى من الكفار شدة ثم حصل له اليسر بنصره عليهم {فإذا فرغت} من الصلاة {فانصب} إتعب في الدعاء {وإلى ربك فارغب} تضرع

**ترجمه:** په نوم د الله پاک چه ډير مهربانه او هميشه مهربانه دې شروع کوم، اې محمد ﷺ آيا مونږ ستا سينه د نبوت وغيره دپاره نه ده پرانستلې؟ دا استفهام تقريری دې؟ يعنی پرانستلې مو ده او مونږ ستا نه ستا هغه بوج ښکته کړو کوم چه ستا ملا ماته کړې وه يعنی کوم چه ستا ملا درنه کړې وه، او دا هم داسې ده لکه چه د الله پاك قول دې ﴿ لِيَغْفِرَ لَكَ اللَّهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ ﴾ او مونږ ستا ذکر اوچت کړو په داسې طريقه چه په اذان او اقامت کښې او په تشهد او خطبه وغيره کښې زما د ذکر سره ستا هم ذکر کولې شی يقينا د مشکل سره اسانی ده بيشکه د مشکل سره اسانی ده او رسول الله ﷺ د کفارو د طرف نه ډير تکليفونه برداشت کړل، بيا ورته اسانی حاصله شوه په کفارو باندې فتح ورکولو سره. او چه کله ته د مانځه نه فارغ شې نو په دعا کښې کوشش کوه او خاص د خپل رب طرف ته توجه کوه يعنی عاجزی کوه.

### د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** ﴿ أَلَمْ نَشْرَحْ لَكَ صَدْرَكَ ﴾ دا استفهام تقريری دې، ځکه چه ﴿ لَمْ نَشْرَحْ ﴾ منفی دې، او په دې باندې استفهام انکاری داخل دې، لهذا د منفی نفی اوشوه، او د منفی نفی د تقرير فائده ورکوی، مفسر علام ﷫ په ﴿ اى شرحنا ﴾ سره ددې طرف ته اشاره اوکړه.

**قوله:** ﴿ وغيرها ﴾ په دې کښې د شق صدر وغيره طرف ته اشاره ده.

**قوله:** ﴿ وزر ﴾ په کسرې سره، بوج، ګرانی.

**قوله:** ﴿ وَهَذَا كَقَوْلِهِ تَعَالَى لِيَغْفِرَ لَكَ اللَّهُ الخ ﴾ مطلب دا دې چه څنګه ﴿ ليغفر لك الله ما تقدم ﴾ د خپل ظاهر نه مؤول دې هم دغه شان ﴿ انقض ظهرك ﴾ هم د خپل ظاهر نه مؤول دې، مطلب دا دې چه ستا نه مو سهو او نسيان معاف کړو، او بعض وائی چه د امت ګناهونه مراد دی، او بعض وائی چه مراد ترې نه ترك اولی دی.

**قوله:** ﴿ فَإِنَّ مَعَ الْعُسْرِ ﴾ کښې د تاکيد احتمال هم دې او د تاسيس هم، په دويم صورت کښې به جمله مستانفه وی.

## [٩٥] سورة التين

### سورة والتين مكية او مدنية ثمان آيات

### سورة والتين مکی یا مدنی دې، اته آیتونه دی

### [ایاتونه: ١-٨]

بسم الله الرحمن الرحيم (وَالتِّينِ وَالزَّيْتُونِ) اي الْمَاكُولَيْنِ أَوْ جَبَلَيْنِ بِالشَّامِ ينبتان الماكولين (وَطُورِ سِينِينَ) الْجَبَل الَّذِي كَلَّمَ اللّٰه تَعَالَى عَلَيْهِ مُوسَى وَمَعْنَى سِينِينَ الْمُبَارَك أَوْ الْحَسَن بِالْأَشْجَارِ الْمُثْمِرَة (وَهَٰذَا الْبَلَدِ الْأَمِينِ) مَكَّة لِأَمْنِ النَّاس فِيهَا جاهلية واسلاما (لَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ) الْجِنْس (فِي أَحْسَنِ تَقْوِيمٍ) تعديل لصورته (ثُمَّ رَدَدْنَاهُ) فِي بَعْض أَفْرَاده (أَسْفَلَ سَافِلِينَ) كِنَايَة عَنْ الْهَرَم وَالضَّعْف فَيَنْقُص عَمَل الْمُؤْمِن عن زمن الشباب ويكون له اجره بقوله تعالى (إِلَّا) لَكِنْ (الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ فَلَهُمْ أَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُونٍ) مَقْطُوع وَفِي الْحَدِيث إِذَا بَلَغَ الْمُؤْمِن مِنْ الْكِبَر مَا يُعْجِزهُ عَنْ الْعَمَل كُتِبَ لَهُ مَا كَانَ يَعْمَل (فَمَا يُكَذِّبُكَ) أَيُّهَا الْكَافِر (بَعْدُ) بَعْد مَا ذُكِرَ مِنْ خَلْق الْإِنْسَان فِي أَحْسَن صُورَة ثُمَّ رَدّه إِلَى أَرْذَل الْعُمُر الدَّالّ عَلَى الْقُدْرَة عَلَى الْبَعْث (بِالدِّينِ) بِالْجَزَاءِ الْمَسْبُوق بِالْبَعْثِ وَالْحِسَاب أَيْ مَا يَجْعَلك مُكَذِّبًا بِذَلِكَ وَلَا جاعل له (أَلَيْسَ اللّٰهُ بِأَحْكَمِ الْحَاكِمِينَ) هُوَ أَقْضَى الْقَاضِينَ وَحُكْمه بِالْجَزَاءِ مِنْ ذَلِكَ وَفِي الْحَدِيث مَنْ قَرَأَ وَالتِّين إِلَى آخِرهَا فَلْيَقُلْ بَلَى وَأَنَا على ذلك من الشاهدين

**ترجمه:** په نوم د الله پاک چه ډېر مهربانه او هميشه مهربانه دې شروع کوم! قسم دې په انځر او په زيتون باندې يعنى په خوړلې کيدونکو دوارو ميوو باندې، يا قسم دې په دوؤ غرونو چه په هغې باندې ذکر شوې دواړه قسم ميوې کيږي په ملك شام کښې. او قسم دې په طور سينين باندې يعنى هغه غر باندې په کوم باندې چه موسى عليه السلام د الله پاك سره خبرې کړې وې او د سينين معنى ده مبارك (يا هغه مقام) کوم چه د ميوه دارو اونو په وجه ښکلې وى او قسم دې په دې امن والا ښهر مکه باندې په دې کښې د خلقو په زمانه جاهليت او په اسلام کښې د مامون کيدو د وجې نه، او مونږ جنس انسان لره په بهترين معتدل صورت باندې پيدا کړې دې بيا مونږ دهغې بعض افراد د لاندو نه لاندې کړل دا د بوډا توب نه کنايه ده، پس د مومن عمل (د بوډا والى په زمانه کښې) د ځوانۍ د زمانې په نسبت کم شى، خو د هغه د اجر سلسله مسلسل جارى وى، د الله پاك د قول ﴿الا الذين آمنوا الخ﴾ په دليل سره، مگر هغه خلق چا چه ايمان راوړلو او نيک عمل ئې اوکړو د هغوى دپاره نه ختميدونکې اجر دې او په حديث کښې دى چه کله مومن د بوډا والى د وجې نه هغه حالت ته اورسيږى کوم چه هغه لره د عمل نه عاجز کړى نو د هغه دپاره هم هغه اجر ليکلې شى کوم چه هغه د ځوانۍ په زمانه کښې کولو پس اې کافره! ته اوس يعنى د ذکر شوى صورت حال نه پس او هغه صورت حال، انسان لره په احسن صورت کښې پيدا کول بيا هغه لره بيکاره عمر ته رسول کوم چه په بعث (بعد الموت)

باندې قدرت لرلو باندې دلالت کوي د جزاء د ورځې تکذيب ته څه څيز تيار کړې؟ هغه جزاء کومه چه به د بعث او حساب نه پس کيږي، يعنی کوم څيز ستا نه د هغې تکذيب کونکې جوړ کړو؟ حال دا چه د هغې هيڅ سبب نشته، آيا الله پاک د ټولو حاکمانو حاکم نه دې؟ يعنی هغه د ټولو فيصله کونکو نه غوره فيصله کونکې نه دې، او د هغه د جزا د حکم کولو تعلق هم ددې فيصلې سره دې، او په حديث شريف کښې راغلې دی چه څوك پوره سورة تين اولولی هغه لره ﴿ بَلٰى وَاَنَا عَلٰى ذٰلِكَ مِنَ الشّٰهِدِيْنَ ﴾ لوستل پکار دی.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله**: ﴿ وَالتِّيْنِ وَالزَّيْتُوْنِ، وَطُوْرِ سِيْنِيْنَ، وَهٰذَا الْبَلَدِ الْاَمِيْنِ ﴾ الله پاك د يو مقسم عليه دپاره څلور قسمونه خوړلی دی، ځکه چه د مقسم عليه په عظمت او اهميت باندې دلالت مقصود دې، او مقسم عليه ﴿ لَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ فِيْ اَحْسَنِ تَقْوِيْمٍ ﴾ دې.

**قوله**: ﴿ وَالتِّيْنِ وَالزَّيْتُوْنِ ﴾ د ﴿ تين ﴾ او ﴿ زيتون ﴾ نه څه مراد دې؟ په دې کښې دوه اقوال دی، ابن عباس رضي الله عنهما فرمائی: ددې نه مراد انځر، زيتون دواړه ميوې دی.

**فائده**: انځر د خوراك، دوائی او ميوې درې واړو صفتونو جامع دې، او د طبيبانو رائې ده چه انځر لطيف او زر هاضمه راوستونکې غذا ده، په معده کښې زيات وخت نه ايساريږي، طبيعت ته سکون ورکوی، بلغم کموی او ګردې صفا کوی، او هم دغه شان د مثانې فضله خارجوی، مثانه مضبوطوی، بدن څربوی او د اينې او تريخی سدې پرانيزی، او بعض حضرات فرمائی چه انځر خوړل د خُلې بدبوئی ختموی او ويښته اوږدوی، په روح المعانی کښې دا هم دی چه انځر بهترين خوراك دې که په نهره اوخوړلې شی او د هغې نه روستو څه او نه خوړلې شی او دا ئې هم ليکلې دی چه دا کثير النفع دوائی ده، سدې پرانيزی او اينه مضبوطوی، ورم طحال لره زائل کوی او په عسر البول کښې نافع دې هزال الکلی (ذبول ګرده)، او خفقان او ضيق النفس او هم دغه شان ټوخی او د سينې درد وغيره کښې مفيد دې. (روح المعانی) که په خوب کښې چا انځر اوليدلو نو هغه ته به مال حاصليږی او که انځر ئې اوخوړلو نو اولاد به ورته نصيب کيږی. (جمل، صاوی)

**قوله**: ﴿ وَطُوْرِ سِيْنِيْنَ ﴾ دا د اضافت موصوف الی الصفت د قبيل نه دې.

**قوله**: ﴿ فِيْ بَعْضِ اَلْمُرَادِهٖ ﴾ دا ددې خبرې طرف ته اشاره ده چه په آيت کريمه کښې صنعت استخدام دې په دې طريقه چه انسان ئې اولاً د جنس انسان په معنی کښې واخستلو بيا ئې چه کله د ﴿ رددناه ﴾ ضمير دې طرف ته راجع کړو نو انسان ئې په دويمه معنی کښې يعنی د بعض افراد انسان په معنی کښې واخستلو او بيا ئې ضمير د انسان طرف ته واپس کړو.

## [٩٦] سورة اقرا

## سورة اقرا مكية تسع عشرة آية

### سورة اقرأ مكي دي، نورلس آيتونه دي

### [ايا توله: ۱ - ۱۹]

بسم الله الرحمن الرحيم (اِقْرَاْ) اوجد القِرَاءَة مُبْتَدِئًا (بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِيْ خَلَقَ) الخلائق (خَلَقَ الْاِنْسَانَ) الجنس (مِنْ عَلَقٍ) جمع عَلَقَة وَهِيَ القِطعَة اليَسِيرَة مِنَ الدَّم الغَلِيظ (اِقْرَاْ) تاكيد لِلْاَوَّلِ (وَرَبُّكَ الْاَكْرَمُ) الَّذِي لا يُوَازِيه كريم حَال مِنَ الضَّمِير فِي اقرا (الَّذِيْ عَلَّمَ) الخط (بِالْقَلَمِ) وَاَوَّل مَن خَطَّ بِهِ اِدْرِيس عَلَيْهِ السَّلام (عَلَّمَ الْاِنْسَانَ) الجِنس (مَا لَمْ يَعْلَمْ) قَبل تَعْلِيمه مِنَ الهُدَى وَالكِتَابَة وَالصِّنَاعَة وَغَيْرهَا (كَلَّآ) حَقًّا (اِنَّ الْاِنْسَانَ لَيَطْغٰى) (اَنْ رَّاٰهُ) اَيْ نَفْسه (اسْتَغْنٰى) بِالمَالِ نَزَلَ فِي ابي جهل وراى عملية وَاسْتَغْنَى مَفعُول ثَانٍ وَاَنْ رَآهُ مَفعُول لَهُ (اِنَّ اِلٰى رَبِّكَ) يَا اِنسَان (الرُّجْعٰى) اَيْ الرُّجُوع تخويف لَهُ فَيُجَازِي الطَّاغِي بِمَا يَسْتَحِقُّهُ (اَرَاَيْتَ) فِي الثَّلاثَة مَوَاضِع لِلتَّعَجُّبِ (الَّذِيْ يَنْهٰى) هُوَ اَبُو جَهل (عَبْدًا) هُوَ النَّبِيّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (اِذَا صَلّٰى) (اَرَاَيْتَ اِنْ كَانَ) المَنْهِيّ (عَلَى الْهُدٰى) (اَوْ) لِلتَّقسِيم (اَمَرَ بِالتَّقْوٰى) (اَرَاَيْتَ اِنْ كَذَّبَ) اَيْ النَّاهِي النَّبِيّ (وَتَوَلّٰى) عن الايمان (اَلَمْ يَعْلَمْ بِاَنَّ اللّٰهَ يَرٰى) مَا صَدَرَ مِنْهُ اَيْ يَعْلَمهُ فَيُجَازِيه عَلَيْهِ اَيْ اِعْجَبْ مِنْهُ يَا مُخَاطَب مِن حَيْثُ نَهْيه عَنِ الصَّلاة وَمِن حَيْثُ اَنَّ المَنْهِيّ عَلَى الهُدَى آمِر بِالتَّقوَى وَمِن حَيْثُ اَنَّ النَّاهِي مُكَذِّب مُتَوَلٍّ عَنِ الاِيمَان (كَلَّا) رَدْع لَهُ (لَئِنْ) لام قَسَم (لَّمْ يَنْتَهِ) عَمَّا هُوَ عَلَيْهِ مِنَ الكُفر (لَنَسْفَعًا بِالنَّاصِيَةِ) لنجرن بِنَاصِيَتِهِ اِلَى النَّار (نَاصِيَةٍ) بَدَل نَكِرَة مِن مَعْرِفَة (كَاذِبَةٍ خَاطِئَةٍ) وَصَفَهَا بِذٰلِكَ مَجَاز وَالمُرَاد صَاحِبهَا (فَلْيَدْعُ نَادِيَهٗ) اَيْ اَهْل نَادِيه وَهُوَ المَجْلِس يُنْتَدَى يَتَحَدَّث فِيهِ القَوم وَكَانَ قَالَ لِلنَّبِيّ صلى الله عليه وسلم لما انتهره حَيْثُ نَهَاهُ عَنِ الصَّلاة لَقَد عَلِمْتَ مَا بِهَا رَجُل اَكْثَر نَادِيًا مِنِّي لَاَمْلَاَنَّ عَلَيْكَ هٰذَا الوَادِي اِن شِئْتَ خَيْلًا جُرْدًا وَرِجَالًا مردا (سَنَدْعُ الزَّبَانِيَةَ) المَلائِكَة الغِلاظ الشِّدَاد لِاِهْلَاكِهِ كَمَا فِي الحَدِيث لَو دَعَا نَادِيَهُ لَاَخَذَتْهُ الزَّبَانِيَة عيانا (كَلَّا) رَدْع لَهُ (لَا تُطِعْهُ) يَا مُحَمَّد فِي تَرْك الصَّلاة (وَاسْجُدْ) صَلِّ لِلّٰهِ (وَاقْتَرِبْ) منه بطاعته

ترجمه: په نوم د الله پاک چه ډير مهربانه او هميشه مهربانه دي شروع کوم، اولوله اي نبی ﷺ د خپل رب په نوم چا چه مخلوق پيدا کړو، جنس انسان ئې د چک وينې نه (علق) د (علقة) جمع ده، او هغه د چك وينې ټکرې ته وائی، اولوله دا د اولنی اقرا تاکيد دې ستا رب ډير کريم دې د هغه برابری هيڅ کريم نه شی کولې، (وربك) د اقرأ د ضمير نه حال دې چا چه د قلم په ذريعه د ليکلو تعليم ورکړو او د ټولو نه اول چه چا د قلم په ذريعه ليکل اوکړل هغه سيدنا ادريس عليه السلام وو، جنس انسان ته ئې هغه علم اوښودلو کوم چه هغه ته د ښودلو نه مخکښې نه وو معلوم، (مثلا) هدايت او کتابت او صنعت وغيره، په حقيقت کښې انسان سرکشی کوی په دې وجه چه هغه ځان د مال د وجې نه بې پرواه گنړی (دا آيت کريمه) د ابوجهل په باره کښې نازل

شوي دي، او د رؤيت نه رؤيت علميه مراد دي او استغناء مفعول ثاني دي او ﴿ان راه﴾ مفعول له دي. يقينا اې انسانه ته به د خپل رب طرف ته واپس كيږې دا انسان ته ويره وركول دي لهذا سركشه ته به سزا وركوى د كوم چه هغه مستحق دي ايا تا هغه سړي ليدلې دي كوم چه يو بنده محمد ﷺ لره منع كوى كله چه هغه مونځ كوى ﴿ارايت﴾ په درې واړو ځايونو كښې د تعجب دپاره دي او هغه (منع كونكې ابوجهل دي، ماته خبر راكړه، كه هغه منع كړې شوې په هدايت باندې وى يا د پرهيزگارۍ تلقين كوى ﴿او﴾ د تقسيم دپاره دي ماته خبر راكړه كه دا نبى ﷺ لره منع كونكې تكذيب كوى او د ايمان نه مخ اړوى، ايا هغه ته دا خبر نشته چه الله پاك هغه هر څه وينى كوم چه هغه كوى يعنى هغه ته معلوم دى لهذا هغه ته به په دې سزا وركوى، اې مخاطبه! ته د هغه نه تعجب اوكړه په دې حيثيت سره چه د هغه منع كول د مونځ نه دى او په دې حيثيت سره چه منع كونكې، تكذيب كونكې او د ايمان نه اعراض كونكې دې خبردار! كه هغه دده د اختيار كړى كفر نه منع نه شو، ﴿كلا﴾ حرف ردع دې، او په ﴿لئن﴾ كښې لام قسميه دې نو مونږ به يقينا د هغه د تندى ويښته رانيولو سره د جهنم طرف ته راكاږو دا نكره د معرفې نه بدل دې، داسې تندې كوم چه دروغژن او خطاكار دې او د ﴿ناصية﴾ صفت ﴿كاذبة﴾ راوړل مجاز دي (يعنى مجاز عقلى دې) او مراد ترې نه صاحب ناصيه دې، هغه دې خپل مجلس والا راوبلى او د مجلس نه مراد هغه دې كوم چه ددې دپاره رابللې شى چه د قوم خلق په دې كښې خبرې اوكړى، چه كله رسول الله ﷺ ابوجهل د مونځ نه په منع كولو باندې رټلې وو نو ابوجهل رسول الله ﷺ ته وئيلې وو چه تاته معلومه ده چه په مكه مكرمه كښې يو سړې هم زما نه لوئې مجلس والانه دې زه كه ستا خلاف اوغوارم نو دا ميدان د غوره اسونو (يعنى شهسوارانو) او ځوانانو سرو (پياده) نه ډك كړم، نو مونږ به هم دهغه هلاكولو دپاره سخت زړه والا ملائك راوبلو په حديث كښې دى چه كه هغه خپل حمايت كونكى رابللى وو نو د دوزخ ملائكو به هغه د ټولو وړاندې نيولې وې خبردار! دا رسول الله ﷺ ته تنبيه ده، اې محمد ﷺ په ترك صلاة كښې ته هرگز د هغه خبره مه منه او سجده كوه (يعنى) د الله پاك دپاره مونځ كوه او د هغه د طاعت په ذريعه د هغه قرب حاصلوه.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

سورة اقرأ. په بعض نسخو كښې سورة العلق دې او په بعض كښې سورة القلم، ددې نه معلومه شوه چه ددې سورة درې نومونه دى.

قوله: ﴿أَوْجِدِ الْقِرَاءَةَ﴾ دده عبارت د اضافې مقصد دا بيانول دى چه ﴿اقرأ﴾ د ﴿اوجد﴾ په معنى كښې په منزله د لازم دې يعنى لوستل شروع كړه او بعض حضراتو وئيلي دى چه ددې مفعول مقدر دې ﴿اى اقرأ القران﴾ بعض حضراتو وئيلي دى چه ﴿اسم﴾ د ﴿اقرأ﴾ مفعول دې

او باء زائده ده، خو مفسر علام مبتداء محذوف منلو سره دې طرف ته اشاره اوکړه چه اسم مفعول نه دې او نه باء زائده ده بلکه ﴿ بِاسْمِ رَبِّكَ ﴾ د مبتداء متعلق کیدو سره د ﴿ اقْرَأْ ﴾ د ضمیر فاعل ﴿ انت ﴾ نه حال دې.

قوله: ﴿ خَلَقَ ﴾ دخلق مفعول لره په عموم باندې د دلالت کولو دپاره ذکر نه کړې شو مفسر علام ﴿ الخلائق ﴾ مقدر منلو سره د عموم طرف ته اشاره اوکړه.

قوله: ﴿ خَلَقَ الْإِنْسَانَ ﴾ انسان د هغه د شرف د وجې نه مفرد راوړې شوې دې اګرچه په معنی کښې جمع دې، ځکه چه الف لام د استغراق دپاره دې.

قوله: ﴿عَلَقٍ ﴾ دا د ﴿ علقة ﴾ جمع ده، چك وینې ته وئیلې شي ﴿ أَنْ رَآهُ ﴾ سره دې طرف ته اشاره ده چه د ﴿ رای ﴾ د فاعل ضمیر د انسان طرف ته راجع دې، او ضمیر مفعولی هم د انسان طرف ته راجع دې او مراد ددې نه نفس انسان دې.

قوله: ﴿الرُّجْعَىٰ ﴾ (ض) مصدر دې واپس کیدل په وزن د ﴿ بشری ﴾ لازم هم استعمالیږي.

قوله: ﴿أَرَأَيْتَ ﴾ درې واړو ځایونو کښې د تعجب دپاره دې نه د استفهام دپاره، او د ﴿ أَرَأَيْتَ ﴾ تکرار د تاکید دپاره دې.

قوله: ﴿لَنَسْفَعًا ﴾ د ﴿ سفع ﴾ نه د مضارع جمع متکلم صیغه ده په اصل کښې ﴿ لنسفعن ﴾ وو، نون خفیفه لره په تنوین سره بدل کړې شو، ﴿ سفعا ﴾ یو څیز لره نیولو سره په سختئ باندې رابنکل، او په صراح کښې دي: موئے پیشانی گرفتن

قوله: ﴿ بَدَلُ نَكِرَةٍ مِنْ مَعْرِفَةٍ ﴾ ﴿ ناصية ﴾ د نکره صفت راوړلو د وجې نه د ﴿ الناصية ﴾ معرفه نه بدل واقع کیدل صحیح دي.

## [۹۷] سورة القدر

### سورة القدر مكية او مدنية خمس او ست آيات

سورة قدر مکی یا مدنی دې، پنځه یا شپږ آیتونه دي.

**[ایاتوله: ۱ - ۵]**

بسم الله الرحمن الرحيم ﴿إِنَّا أَنْزَلْنَاهُ﴾ أي القُرْآن جُمْلَة وَاحِدَة مِنَ اللَّوْحِ الْمَحْفُوظِ إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا ﴿فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ﴾ أي الشَّرَف العَظِيم ﴿وَمَا أَدْرَاكَ﴾ أعْلَمَك يَا مُحَمَّد ﴿مَا لَيْلَةُ الْقَدْرِ﴾ تَعْظِيم لِشَأْنِهَا وَتَعْجِيب مِنْهُ ﴿لَيْلَةُ الْقَدْرِ خَيْرٌ مِنْ أَلْفِ شَهْرٍ﴾ لَيْسَ فِيهَا لَيْلَة القَدْر فَالْعَمَل الصَّالِح فِيهَا خَيْر مِنْهُ فِي أَلْف شَهْر لَيْسَتْ فِيهَا ﴿تَنَزَّلُ الْمَلَائِكَةُ﴾ بِحَذْفِ إِحْدَى التَّاءَيْنِ مِنَ الأَصْل ﴿وَالرُّوحُ﴾ أي جِبْرِيل ﴿فِيهَا﴾ فِي اللَّيْلَة ﴿بِإِذْنِ رَبِّهِمْ﴾ بِأَمْرِهِ ﴿مِنْ كُلِّ أَمْرٍ﴾ قَضَاهُ اللهُ فِيهَا لِتِلْكَ السَّنَة إِلَى قَابِل وَمِنْ سَبَبِيَّة بمعنى الباء ﴿سَلَامٌ هِيَ﴾ خَبَر مُقَدَّم وَمُبْتَدَأ ﴿حَتَّىٰ مَطْلَعِ الْفَجْرِ﴾ بِفَتْحِ اللَّام وَكَسْرِهَا إِلَى وَقْت طُلُوعه جُعِلَتْ سَلَامًا لِكَثْرَةِ السَّلَام فِيهَا مِنَ الْمَلَائِكَة لَا تَمُرّ بِمُؤْمِنٍ وَلَا بِمُؤْمِنَةٍ إِلَّا سَلَّمَتْ عَلَيْهِ

**ترجمه**: په نوم د الله پاک چه ډیر مهربانه او همیشه مهربانه دې شروع کوم یقینا مونږ دا یعنی قرآن کریم په شب قدر کښې یعنی د شرف او عظمت والا شپه کښې د لوح محفوظ نه د دنیا د اسمان طرف ته په یو کرت نازل کړو او اې محمد ﷺ تا ته څه معلومه ده چه شب قدر څه څیز دې؟ (دا استفهام د لیلة القدر د عظمت او د هغې نه د تعجب د اظهار بیان دې شب قدر د زرو میاشتو نه غوره دې په کومو کښې چه شب قدر نه وی، یعنی شب قدر کښې عمل صالح کول د زرو میاشتو د عمل نه غوره دې په کومو کښې چه شب قدر نه وی هغه شپه کښې (عام) ملائک او جبرائیل ﷺ راکوزیږی د ﴿تنزل﴾ اصل ﴿تتنزل﴾ دې د یو تاء په حذف سره د خپل رب په حکم سره د هر کار د پوره کولو دپاره د کوم د کولو چه الله پاك په دې شپه کښې فیصله کړې ده د دې کال نه تر بل کاله پورې ﴿من﴾ سببیه دې په معنی د ﴿باء﴾ دا شپه سراسر سلامتی ده ﴿سلام﴾ د ﴿هی﴾ مبتداء دپاره خبر مقدم دې او د صبا د راختلو پورې وی (مطلع) د لام په فتحې او کسرې سره، یعنی د سحر د راختلو پورې دا توله شپه سلام جوړه کړې شوې ده، په دې شپه کښې د ملائکو د طرف نه د کثرت سلام کیدو د وجې نه، هغوی په یو مومن سړی او زنانه باندې نه ورتیریږی مگر هغوی ته سلام کوی.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله**: ﴿إِنَّا أَنزَلْنَاهُ﴾ بیشکه مونږ دا قرآن کریم نازل کړې دې.

**سوال**: د ﴿أَنزَلْنَاهُ﴾ د ضمیر مرجع قران کریم دې حال دا چه د قرآن کریم ذکر مخکښې نشته، دا اضمار قبل الذکر دې کوم چه ممنوع دې؟

**جواب**: د قرآن کریم په شرف او شهرت باندې اعتماد کولو سره د مرجع ذکر نه دې کړې شوې گویا قرآن کریم د خپل عظمت او شهرت د وجې نه په حکم د مذکور کښې دې او د هر سړی په زړه او دماغو کښې موجود دې، د عربو عادت دې چه د مرجع د مشهور او معروف کیدو د وجې نه د هغې ذکر ضروری نه گڼړی.

**سوال**: انزال د اجسامو صفت دې او قرآن کریم عرض دې لهذا د دې صفت انزال راوړل څنگه صحیح دی؟

**جواب**: انزال په معنی د ایحاء دې کوم چه د عرض دپاره وی.

**بل جواب**: د قرآن کریم طرف ته د نزول نسبت اسناد مجازی عقلی دې اصل دا دې چه اسناد د حامل قران طرف ته وی.

**قوله**: ﴿مِّن كُلِّ أَمْرٍ﴾ ﴿من﴾ سببیه دې ای لاجل کل امر.

**قوله**: ﴿سَلَامٌ هِيَ﴾. ﴿سلام﴾ خبر مقدم او ﴿هی﴾ مبتداء موخر ده، او دا تقدیم د قصر او حصر دپاره دې، یعنی الله پاك په دې شپه کښې صرف سلامتی مقدر کړې ده.

**قوله**: ﴿وَقْتَ طُلُوعِهِ﴾ دا د حذف مضاف طرف ته اشاره ده.

## [٩٨] سورة البينة

### سورة البينة مكية او مدنية تسع آيات

سورة بينه مكي يا مدني دي، نهه آيتونه دي.

[اياتونه: ١-٨]

بسم الله الرحمن الرحيم (لَمْ يَكُنِ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ) لِلْبَيَانِ (أَهْلِ الْكِتَابِ وَالْمُشْرِكِينَ) أَيْ عَبَدَةِ الْأَصْنَامِ عَطْف عَلَى أَهْل (مُنْفَكِّينَ) خَبَر يَكُنْ أَيْ زَائِلِينَ عَمَّا هُمْ عَلَيْهِ (حَتَّى تَأْتِيَهُمْ) أَيْ أَتَتْهُمْ (الْبَيِّنَةُ) أَيْ الْحُجَّة الْوَاضِحَة وَهِيَ مُحَمَّد صَلَّى الله عليه وسلم (رَسُولٌ مِنَ اللَّهِ) بَدَل مِنَ الْبَيِّنَة وَهُوَ النبي صلى الله عليه وسلم (يَتْلُو صُحُفًا مُطَهَّرَةً) مِنَ الْبَاطِل (فِيهَا كُتُبٌ) أَحْكَام مَكْتُوبَة (قَيِّمَةٌ) مُسْتَقِيمَة أَيْ يَتْلُو مَضْمُون ذَلِكَ وَهُوَ الْقُرْآن فَمِنْهُمْ مَنْ آمَنَ بِهِ وَمِنْهُمْ مَنْ كَفَرَ (وَمَا تَفَرَّقَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ) فِي الْإِيمَان بِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (إِلَّا مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَتْهُمُ الْبَيِّنَةُ) أَيْ هُوَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْ الْقُرْآن الْجَائِي بِهِ مُعْجِزَة لَهُ وَقَبْل مَجِيئِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانُوا مُجْتَمِعِينَ عَلَى الْإِيمَان بِهِ إِذَا جَاءَهُ فَحَسَدَهُ مَنْ كَفَرَ بِهِ مِنْهُمْ (وَمَا أُمِرُوا) فِي كِتَابِهِمْ التَّوْرَاة وَالْإِنْجِيل (إِلَّا لِيَعْبُدُوا اللَّهَ) أَيْ أَنْ يَعْبُدُوهُ فَحُذِفَتْ أَنْ وَزِيدَتْ اللَّام (مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ) مِنَ الشِّرْك (حُنَفَاءَ) مُسْتَقِيمِينَ عَلَى دِين إِبْرَاهِيم وَدِين مُحَمَّد إِذَا جَاءَ فَكَيْف كَفَرُوا بِهِ (وَيُقِيمُوا الصَّلَاةَ وَيُؤْتُوا الزَّكَاةَ وَذَلِكَ دِينُ) الْمِلَّة (الْقَيِّمَةِ) الْمُسْتَقِيمَة (إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ وَالْمُشْرِكِينَ فِي نَارِ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا) حَال مُقَدَّرَة أَيْ مُقَدَّرًا خُلُودهمْ فِيهَا مِنَ اللهِ تَعَالَى (أُولَئِكَ هُمْ شَرُّ الْبَرِيَّةِ) (إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ أُولَئِكَ هُمْ خَيْرُ الْبَرِيَّةِ) الْخَلِيقَة (جزاؤهم عند ربهم جنات عدن) إِقَامَة (تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ) بِطَاعَتِهِ (وَرَضُوا عَنْهُ) بِثَوَابِهِ (ذَلِكَ لِمَنْ خَشِيَ رَبَّهُ) خَاف عِقَابه فَانْتَهَى عن معصيته تعالى

**ترجمه:** په نوم د الله پاک چه ډير مهربانه او هميشه مهربانه دي شروع کوم په اهل کتاب او مشرکانو کښې چه کوم خلق کافر وو يعنې بت پرست وو د ﴿والمشركين﴾ عطف په ﴿اهل﴾ باندې دې او په ﴿من اهل الكتاب﴾ کښې ﴿من﴾ بيانيه دې، هغوی (د خپل کفر نه) منع کيدونکی نه وو ﴿منفكين﴾ د ﴿يكن﴾ خبر دې، يعنې په کوم (کفر) باندې چه هغوی وو د هغې پريخودونکی نه وو تردې چه هغوی ته واضح دليل راشي، يعنې د الله پاک د طرف نه يو رسول ﴿رسول من الله﴾ د ﴿البينة﴾ نه بدل دې او هغه نبي ﷺ دې کوم چه هغوی ته د باطل نه پاکې صحيفې لوستلو سره واوروی، چه په هغې کښې صحيح احکام ليکلې شوې وی يعنې د هغې مضامين ورته واوروی او هغه قرآن کريم دې، پس په هغوی کښې بعضو په دې باندې ايمان راوړلو او بعضو پکښې انکار اوکړو او اهل کتابو په رسول الله ﷺ باندې ايمان راوړلو کښې اختلاف نه دې کړې مګر پس د دې نه چه هغوی ته واضحه بيان راغلو او هغه محمد ﷺ دې يا

قرآن کريم دي کوم چه هغه راوړي دي، کوم چه د هغه معجزه ده او د رسول الله ﷺ د تشريف راوړلو نه مخکښې په هغه باندې ايمان راوړلو کښې متفق وو، خو چه کله رسول الله ﷺ راغلو نو هغه خلقو ترې انکار اوکړو ځکه چه د رسول الله ﷺ سره حسد اوکړو او د هغوی په کتاب تورات او انجيل کښې هغوی ته دې نه سوا هيڅ حکم نه وو ورکړې شوې چه هغوی دې د الله پاک بندګی کوی يعنی دا چه د هغه بندګی دې کوی، ﴿ ان ﴾ حذف کړې شوې دې او لام د هغې په ځائې زيات کړې شوې دې، خپل دين لره د هغه دپاره د شرك نه خالص کولو سره په دين ابراهيم او دين محمد ﷺ باندې د استقامت سره، او مونځ قائم کړی، او زکاة ورکړی هم دا برابر دين دې، په اهل کتاب او مشرکانو کښې چه کومو خلقو کفر کړې دې هغوی به يقينا د جهنم اور ته ځی، او ﴿ خالدين ﴾ حال مقدره دې يعنی د الله پاك د طرف نه د هغوی دپاره په جهنم کښې هميشه دپاره دخول مقدر شوې دې هم دا خلق په مخلوق کښې بدترين دی او کومو خلقو چه ايمان راوړلو او نيك عمل ئې اوکړو يقينا هغوی بهترين مخلوق دې د هغوی بدله د هغوی د رب په نزد د هميشه اوسيدو جنتونه دی چه د هغې د لاندې به نهرونه روان وی او هغوی به په هغې کښې هميشه هميشه وی الله پاك د هغوی نه د هغوی د طاعت د وجې نه راضی شو او هغوی د هغه نه د هغه د ثواب د وجې نه راضی شو دا ﴿بدله﴾ د هغه کس دپاره ده چا چه د خپل رب نه ويره اوکړه يعنی د هغه د سزا نه اويريدو او د الله پاك د نافرمانئ نه منع شو.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

قوله: ﴿ لَمْ يَكُنِ الَّذِينَ كَفَرُوا ﴾، ﴿ الَّذِينَ كَفَرُوا ﴾ د ﴿ يكن ﴾ دپاره اسم دې، ﴿ من ﴾ بيانيه دې نه تبعيضيه، ﴿ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ وَالْمُشْرِكِينَ ﴾ جمله د ﴿ كفروا ﴾ د ضمير نه حال دې، ﴿ الذين ﴾ د خپلې صلې سره د ﴿ يكن ﴾ اسم دې، ﴿ منفكين ﴾ د يکن خبر دې.

قوله: ﴿ مُنْفَكِّينَ ﴾ د انفكاك نه اسم فاعل دې، منع کيدونکی، جدا کيدونکی.

سوال: د ﴿ منفكين ﴾ مفعول څه دې. او د هغې په حذف څه دليل دې؟

جواب: مفسر علام رحمه الله ﴿ عما هم عليه ﴾ ونيلو سره د حذف مفعول طرف ته اشاره اوکړه او هغه کفر دې او دليل په حذف باندې د ﴿ الذين ﴾ صله ﴿ كفروا ﴾ ده.

سوال: د اهل کتاب دپاره د ﴿ كفروا ﴾ ماضی او مشرکانو دپاره ﴿ المشركين ﴾ اسم فاعل راوړلو کښې څه نکته ده؟

جواب: اهل کتاب د ابتداء نه کفار نه وو د رسول الله ﷺ د نبوت نه انکار کولو سره کافر شو، په خلاف د مشرکين عرب چه هغوی د شروع نه کافر وو.

قوله: ﴿ الْمِلَّةُ الرَّاجِحَةُ ﴾ دا د حذف موصوف طرف ته اشاره ده.

قوله: ﴿ يَتْلُوا مَطْهُونَ لِلْمَلَّة ﴾ دده عبارت د اضافې مقصد د يو سوالِ مقدر جواب ورکول دی.

**سوال:** ﴿ يَتلُوا صُحُفًا مُّطَهَّرَةً ﴾ نه معلوميږي چه رسول الله ﷺ به صحيفه يعنى قرآن كريم كښې ليكلي شوي هغوى ته اورولو، حال دا چه هغه وخت په مصحف كښې يو څيز هم نه وو ليكلي شوي، او رسول الله ﷺ به ورته په يادو اورولو؟

**جواب:** آيت كريمه د مضاف په حذف سره دي، ﴿ اى يتلو مضمون الصحف الذى يتضمنه الصحف ﴾ (فتح القدير. للشوكانى)

**قوله:** ﴿ أَنْ يَعْبُدُوا ﴾ دا هم د يو سوالِ مقدر جواب دي.

**سوال:** ﴿ إِلَّا لِيَعْبُدُوا اللَّهَ ﴾ كښې لام د غرض دپاره دي يعنى الله پاك ورته د خپل عبادت كولو دپاره حكم وركړې دي، او دا استكمال بالغير دي كوم چه د نقص علامت دي كوم چه د الله پاك د شانِ رفيع خلاف دي؟

**جواب:** اصل كښې ﴿ أَنْ يَعْبُدُوا ﴾ وو، ﴿ ان ﴾ لره حذف كولو سره لام راوړلې شو گويا دغه شان لام په معنى د ان دي.

**قوله:** ﴿ دِينُ الْقَيِّمَةِ ﴾ دلته هم يو سوال دي.

**سوال:** دا اضافت د موصوف الى الصفت د قبيل نه دي كوم چه د اضافت الشئ الى نفسه مترادف دي او هغه غير مستحسن دي نو هغه ئې ولې ذكر كړو؟

**جواب:** مفسر علام رحمه الله ﴿ الملة ﴾ محذوف منلو سره هم ددې سوال د جواب طرف ته اشاره اوفرمائيله. د جواب خلاصه دا ده چه په دين او ملت كښې فرق اعتبارى دي لهذا د اضافت الشئ الى نفسه اعتراض نه لازميږي.

**قوله:** ﴿ خَالِدِينَ فِيهَا حَالٌ مُقَدَّرَةٌ ﴾ ددې اضافي مقصد هم د يو سوال جواب وركول دي.

**سوال:** د حال او ذوالحال زمانه يوه وى دلته د دواړو زمانه يوه نه ده ځكه چه ﴿ خالدين ﴾ د ﴿ ان ﴾ د خبرِ محذوف د ضمير نه حال دي، او هغه ﴿ مشركون ﴾ دي، مطلب دا چه مونږ د هغوى جهنم ته د داخليدو اعتقاد لرو، ظاهره ده چه د اعتقاد زمانه دنيا ده او د خلود زمانه آخرت ده؟

**جواب:** د جواب خلاصه دا ده چه مونږ د الله پاك د طرف نه ددې كفارو د خلود مقدره اعتقاد ساتو، اعتقاد زمونږ كار دي او د هميشه دپاره په جهنم كښې ساتل د الله پاك كار دي، او د الله پاك د طرف نه د تقدير زمانه او د اعتقاد زمانه يوه ده، لهذا په دې كښې هيڅ حرج او اشكال نشته.

## [٩٩] سورة الزلزال

### سورة زلزلت مكية او مدنية تسع آيات

سورة زلزلت مكى يا مدنى دي، نهه آيتونه دي.

[اياتونه: ١-٨]

بسم الله الرحمن الرحيم ﴿إِذَا زُلْزِلَتِ الْأَرْضُ﴾ حُرِّكَتْ لِقِيَامِ السَّاعَةِ ﴿زِلْزَالَهَا﴾ تَحْرِيكَهَا الشَّدِيدَ الْمُنَاسِبَ لِعَظَمَتِهَا ﴿وَأَخْرَجَتِ الْأَرْضُ أَثْقَالَهَا﴾ كُنُوزَهَا وَمَوْتَاهَا فَأَلْقَتْهَا عَلَى ظَهْرِهَا ﴿وَقَالَ الْإِنْسَانُ﴾ الْكَافِرُ بِالْبَعْثِ ﴿مَا لَهَا﴾ إِنْكَارًا لِتِلْكَ الْحَالَةِ ﴿يَوْمَئِذٍ﴾ بَدَلٌ مِنْ إِذَا وَجَوَابُهَا ﴿تُحَدِّثُ أَخْبَارَهَا﴾ تُخْبِرُ بِمَا عُمِلَ عَلَيْهَا مِنْ خَيْرٍ وَشَرٍّ ﴿بِأَنَّ﴾ بِسَبَبِ أَنَّ ﴿رَبَّكَ أَوْحَى لَهَا﴾ أَيْ أَمَرَهَا بِذَلِكَ وَفِي الْحَدِيثِ تَشْهَدُ عَلَى كُلِّ عَبْدٍ أَوْ أَمَةٍ بِكُلِّ مَا عَمِلَ عَلَى ظَهْرِهَا ﴿يَوْمَئِذٍ يَصْدُرُ النَّاسُ﴾ يَنْصَرِفُونَ مِنْ مَوْقِفِ الْحِسَابِ ﴿أَشْتَاتًا﴾ مُتَفَرِّقِينَ فَآخِذٌ ذَاتَ الْيَمِينِ إِلَى الْجَنَّةِ وَآخِذٌ ذَاتَ الشِّمَالِ إِلَى النَّارِ ﴿لِيُرَوْا أَعْمَالَهُمْ﴾ أَيْ جَزَاءَهَا مِنَ الْجَنَّةِ أَوِ النَّارِ ﴿فَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ﴾ زِنَةَ نَمْلَةٍ صَغِيرَةٍ ﴿خَيْرًا يَرَهُ﴾ يَرَ ثَوَابَهُ ﴿وَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَرَهُ﴾ يَرَ جَزَاءَهُ

**ترجمه:** په نوم د الله پاک چه ډير مهربانه او هميشه مهربانه دې شروع کوم، چه کله زمکه په پوره شدت سره د قيامت د قائميدو په وخت اوخوزولې شي کوم چه به د هغې د عظمت مناسب وي او زمکه به خپل دننه تول بوجهونه مثلا د هغې خزانې او مړي راوباسي او هغه به په خپل ظاهري سطح باندې واچوي او د بعث منکر انسان به ددې حالت انکار کولو سره وائي چه په دې باندې څه شوي دي؟ هغه ورځ به ﴿يومئذ﴾ د ﴿اذا﴾ نه بدل دې او د ﴿اذا﴾ جواب ﴿تُحَدِّثُ أَخْبَارَهَا﴾ دې هغه خپل تول حالات بيان کړي کوم نيك او بد اعمال چه پرې کړې شوي وي دا به په دې وجه وي چه ستا رب به هغې ته وحي کړې وي يعني هغې ته به ئې د داسې کولو حکم کړې وي او په حديث شريف کښې دي چه زمکه به د هر نارينه زنانه خلاف د هغه عمل ګواهي ورکوي کوم چه په هغې کړې شوې وو. هغه ورځ به خلق د ميدان محشر نه په مختلف حالتونو کښې واپس کيږي ښي لاس کښې عمل نامه اخستونکي به جنت طرف ته واپس شي او ګس لاس کښې عمل نامه اخستلو والا به جهنم ته واپس شي ددې دپاره چه د هغوي اعمال يعنې د هغوي جزاء، که جنت وي او که دوزخ وي هغوي ته اوښودلې شي بيا چه چا د ذرې برابر يعنې د وړوکي ميږي برابر نيکي کړې وي هغه به هغې لره ويني او چا چه د ذرې برابر بدي کړې وي هغه به د هغې جزا هم اوويني.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** ﴿إِذَا زُلْزِلَتِ الْأَرْضُ زِلْزَالَهَا﴾ ﴿اذا﴾ ظرفيه متضمن بمعنى شرط. ﴿يومئذ﴾ ددې نه بدل دې او ﴿تحدث﴾ جواب شرط دې او د جمهورو په نزد هم دا د ظرف ناصب دې، او بعض حضراتو وئيلي دي چه د ظرف عامل محذوف دې او هغه ﴿يصدرون﴾ دې او بعض ﴿اذكر﴾ محذوف عامل منلي دې، خو په دې صورت کښې به ﴿اذا﴾ د ظرفيت او شرطيت نه خارج شي، ﴿تحدث﴾ متعدى دې دوؤ مفعولو ته، مفعول اول محذوف دې ﴿اى تحدث الناس اخبارها﴾، ﴿الناس﴾ مفعول اول دې او ﴿اخبارها﴾ مفعول ثاني، ﴿زلزالها﴾ د مصدر اضافت

د فاعل طرف ته دي

قوله ﴿ كُنُوزَهَا وَمَوْتَاهَا ﴾ مناسب د واو په ځاني او وو. ځکه چه د ﴿ لفوجهت الارض اثقالها ﴾ په تفسير کښي دوه اقوال دي، يعني د ﴿ ثقل ﴾ نه مراد خزانې يا مړي دي او دواړه هم کېدې شي نو واو به هم صحيح وي.

قوله: ﴿ إِنْكَارًا لِتِلْكَ الْحَالَةِ ﴾ د مفسر علام رحمه الله دپاره مناسب وه چه ﴿ تعجبا لتلك الحالة ﴾ئې فرمانيلې وې، ځکه چه دا وخت به د انکار نه وي بلکه د حيرت او تعجب به وي

قوله: ﴿ يَوْمَئِذٍ بَدَلٌ مِنْ إِذَا ﴾ ﴿ يومئذ ﴾ د ﴿ اذا ﴾ نه بدل دې او کوم عامل چه د مبدل منه دې هم هغه د بدل دې.

قوله: ﴿ يَوْمَئِذٍ يَصْدُرُ النَّاسُ أَشْتَاتًا ﴾ دا ﴿ يومئذ ﴾ د مخکښې ﴿ يومئذ ﴾ نه بدل دې او بعض حضراتو ﴿ يصدر ﴾ عامل منلې دې، او ﴿ اشتاتا ﴾ د ﴿ الناس ﴾ حال دې

قوله: ﴿ لِيُرَوْا أَعْمَالَهُمْ ﴾ ﴿ ليروا ﴾ د ﴿ يصدر الناس ﴾ سره متعلق دې او د رؤيت نه رؤيت بصري مراد دې، د باب افعال د همزې د وجې نه متعدي دې دوو مفعولو ته. اول مفعول د ﴿ ليروا ﴾ واو دې کوم چه نائب فاعل دې او دويم مفعول ﴿ اعمالهم ﴾ دې

قوله: ﴿ خيرا ﴾ دا د مثقال نه تميز دې او هم دغه شان ﴿ شرا ﴾ دې

## [١٠٠] سورة العاديات

### سورة العاديات مكية أو مدنية احدى عشرة آية

سورة عاديات مکي يا مدني دې، يوولس آيتونه دي

[اياتونه: ١ - ١١]

---

بسم الله الرحمن الرحيم ﴿وَالْعَادِيَاتِ﴾ الْخَيْلِ تَعْدُو فِي الْغَزْوِ وَتَضْبَحُ ﴿ضَبْحًا﴾ هُوَ صَوْتُ أَجْوَافِهَا إِذَا عَدَتْ ﴿فَالْمُورِيَاتِ﴾ الْخَيْلِ تُورِي النَّارَ ﴿قَدْحًا﴾ بِحَوَافِرِهَا إِذَا سَارَتْ فِي الْأَرْضِ ذَاتِ الْحِجَارَةِ بِاللَّيْلِ ﴿فَالْمُغِيرَاتِ صُبْحًا﴾ الْخَيْلِ تُغِيرُ عَلَى الْعَدُوِّ وَقْتَ الصُّبْحِ بِإِغَارَةِ أَصْحَابِهَا ﴿فَأَثَرْنَ﴾ هَيَّجْنَ ﴿بِهِ﴾ بِمَكَانِ عَدْوِهِنَّ أَوْ بِذَلِكَ الْوَقْتِ ﴿نَقْعًا﴾ غُبَارًا بِشِدَّةِ حَرَكَتِهِنَّ ﴿فَوَسَطْنَ بِهِ﴾ بِالنَّقْعِ ﴿جَمْعًا﴾ مِنَ الْعَدُوِّ أَيْ صِرْنَ وَسْطَهُ وَعُطِفَ الْفِعْلُ عَلَى الِاسْمِ لِأَنَّهُ فِي تَأْوِيلِ الْفِعْلِ أَيْ وَاللَّاتِي عَدَوْنَ فَأَوْرَيْنَ فَأَغَرْنَ ﴿إِنَّ الْإِنْسَانَ﴾ الْكَافِرَ ﴿لِرَبِّهِ لَكَنُودٌ﴾ لَكَفُورٌ يَجْحَدُ نِعَمَهُ تعالى ﴿وَإِنَّهُ عَلَى ذَلِكَ﴾ أَيْ كُنُودِهِ ﴿لَشَهِيدٌ﴾ يَشْهَدُ عَلَى نَفْسِهِ بِصُنْعِهِ ﴿وَإِنَّهُ لِحُبِّ الْخَيْرِ﴾ أَيِ الْمَالِ ﴿لَشَدِيدٌ﴾ الْحُبِّ لَهُ فَيَبْخَلُ بِهِ ﴿أَفَلَا يَعْلَمُ إِذَا بُعْثِرَ﴾ أُثِيرَ وَأُخْرِجَ ﴿مَا فِي الْقُبُورِ﴾ مِنَ الْمَوْتَى أَيْ بُعِثُوا ﴿وَحُصِّلَ﴾ بُيِّنَ وَأُفْرِزَ ﴿مَا فِي الصُّدُورِ﴾ الْقُلُوبِ مِنَ الْكُفْرِ وَالْإِيمَانِ ﴿إِنَّ رَبَّهُمْ بِهِمْ يَوْمَئِذٍ لَخَبِيرٌ﴾ لَعَالِمٌ فَيُجَازِيهِمْ عَلَى كُفْرِهِمْ أُعِيدَ الضَّمِيرُ جَمْعًا نَظَرًا لِمَعْنَى الْإِنْسَانِ وَهَذِهِ الْجُمْلَةُ دَلَّتْ عَلَى مَفْعُولِ يَعْلَمُ أَيْ إِنَّا نُجَازِيهِ وَقْتَ مَا ذُكِرَ وَتَعَلَّقَ خَبِيرٌ بِيَوْمَئِذٍ وَهُوَ تَعَالَى خَبِيرٌ دَائِمًا لِأَنَّهُ يوم المجازاة

ترجمه: په نوم د الله پاک چه ډیر مهربانه او همیشه مهربانه دې شروع کوم! قسم دې په هغه اسونو باندې کوم چه په جهاد کښې تیزو ساه ګانو (پرشار) سره منډې وهي، ﴿ ضبحا ﴾ د خیټې اواز ته وئیلې شي کوم چه د منډې وهلو په وخت اوخي. بیا په هغه اسونو باندې کوم چه د نالونو نه اور اوباسي بیا په هغه اسونو باندې کوم چه د سحر په وخت کښې په دشمن باندې حمله کوي، د خپل سور د حملې کولو د وجې نه بیا په دې موقع باندې یعنی د خپلې منډې په ځائې یا دې وخت کښې د خپل سخت حرکت د وجې نه غبار (دوړه) الوځوي بیا هم په دې غبار کښې په مجمع کښې ورننوځي یعنی د هغوی مینځ ته لاړ شي، او د فعل عطف په اسم باندې په دې وجه صحیح دې چه اسم د فعل په تاویل کښې دې یعنی په معنی کښې ﴿ واللاتي عدون فـأثرن فـأغرن ﴾ دې. حقیقت دا دې چه کافر انسان د خپل رب د نعمتونو انکار کولو سره ډیر ناشکره دې هغه پخپله په دې خپله ناشکرۍ باندې ګواه دې چه هغه په خپل عمل سره په خپل نفس باندې ګواه دې او هغه د مال په محبت کښې بد بد (ډیر) اخته دې یعنی هغه د مال سره ډیر محبت کونکې دې چه د هغې د وجې نه هغه د هغې په خرچ کولو کښې بخل کوي نو ایا دې هغه وخت نه پیژني چه کله به په قبرونو کښې مدفون مړي راویستلې شي؟ او په زړونو کښې چه کوم کفر او ایمان (پټ) دې هغه به راویستلې شي یعنی ظاهر او ښکاره به کړې شي د هغوی رب به په هغه ورځ د هغوی نه ښه خبر وي بیا به هغوی ته د هغوی د کفر سزا ورکړي، ﴿ هم ﴾ ضمیر لره د انسان د معنی لحاظ ساتلو سره جمع راوړلې شوې دې، او دا جمله د ﴿ یعلم ﴾ په مفعول باندې دلالت کوي یعنی مونږ به انسان ته په ذکر شوې وخت کښې جزا ورکړو، او د ﴿ خبیر ﴾ تعلق د ﴿ یومئذ ﴾ سره دې، حال دا چه الله پاك همیشه خبردار دې خکه چه هغه د بدله ورکولو ورځ ده.

## د قیوداتو فوائد اوتسهیل

قوله: ﴿ وَالْعَادِيَاتِ ﴾ د ﴿ عادیة ﴾ جمع ده، تیز منډې وهونکې، دا د ﴿ عدو ﴾ نه مشتق دې، چه د هغې معنی تجاوز کول او تیز منډې وهل دي، د واؤ نه مخکښې د کسرې د وجې نه واو لره په یاء سره بدل کړې شو، پس د ﴿ عدو ﴾ نه عادیات شو، لکه د ﴿ غزو ﴾ نه ﴿ غازیات ﴾ (لغات القران)

قوله: ﴿ ضَبْحًا ﴾ (ف) دا د ﴿ ضبح یضبح ﴾ مصدر دې، د اسونو د منډې وهلو په وخت تیزې ساه ګانې اخستل، د مفسر علامﷺ د ﴿ ضبحا ﴾ نه مخکښې ﴿ تضبح ﴾ اضافه کول د دې بیانولو دپاره دي چه ﴿ ضبحا ﴾ د فعل مقدر د وجې نه منصوب دې.

قوله: ﴿ الموریات ﴾ د ﴿ موریة ﴾ نه اسم فاعل جمع مونث دې، دا د ایراء نه مشتق دې، اور روښانه کونکې، ﴿ ایراء ﴾ (افعال) اور راویستل، مراد ترې نه هغه اسونه دي کوم چه په

کانړيزي زمکه باندې روان وي، نو د هغوی د ټالوټو په راښکلو سره د اور بسري اوځي
قوله: ﴿قَدۡحٗا﴾ (ف) د ﴿قدح﴾ مصدر دې، په کانړي باندې کانړي وهلو سره اور راويستل، ﴿قدح الزند﴾ چقماق موړلو سره ئې اور راويستلو، ﴿قدحا﴾ هم د ﴿ضبحا﴾ په شان د فعل مقدر په وجه منصوب دې، اى يقدح قدحا
قوله: ﴿فَالۡمُغِيرَٰتِ صُبۡحٗا﴾ د سحر په وخت کښې لوټ مار کونکي، حمله کونکي وباغارة: يُمل خيل بايمان بادرت كندر الثت صح. ﴿المغيرات﴾ اسم فاعل جمع مونث، واحد ئې ﴿المغيرة﴾ مصدر اغارة، لوټ کول، چهاپه وهل، مراد ترې نه چهاپه وهونکې دستې دي.
قوله: ﴿فَأَثَرۡنَ﴾ (ض، ن) ماضي صيغه جمع مونث غائب، دا د اثارة نه دې، په معنى: راپارولو، الوخول
قوله: ﴿فَوَسَطۡنَ بِهِۦ﴾ به اى ذلك الوقت.
سوال: د ﴿فَأَثَرۡنَ﴾ او د ﴿فَوَسَطۡنَ﴾ عطف په ﴿والعاديات، فالموريات فالمغيرات﴾ باندې دې، په دې کښې معطوف عليه اسماء دي او معطوف افعال دي کوم چه صحيح نه دی؟
جواب: مخکښې ذکر شوي درې واړه اسماء په تاويل کښې افعال دي، ځکه چه د موصول صله واقع شوي دي، لکه چه مفسر علام په ﴿واللاتى عدون﴾ وئيلو سره اشاره کړې ده، ﴿والعاديات﴾ په معنى د ﴿واللاتى عدون﴾ دي، ﴿هكذا الموريات﴾ او ﴿فالمغيرات﴾
قوله: ﴿وهذه الجملة دلت على مفعول يعلم﴾ ددې جملې مقصد ددې اعتراض جواب دې چه ﴿يعلم﴾ فعل متعدي دې چه د هغه دپاره د مفعول کيدل ضروري دي، خو دلته ئې مفعول نشته؟
جواب: د ﴿يعلم﴾ مفعول محذوف دې او په حذف باندې جمله ﴿إِنَّ رَبَّهُم بِهِمۡ يَوۡمَئِذٖ لَّخَبِيرُۢ﴾ دلالت کوي، او مفعول محذوف ﴿انا مجازيه﴾ دې، د عبارت تقدير داسې دې: ﴿أَفَلَا يَعۡلَمُ إِذَا بُعۡثِرَ مَا فِي ٱلۡقُبُورِ وَحُصِّلَ مَا فِي ٱلصُّدُورِ انا مجازيه﴾
قوله: ﴿وَحُصِّلَ﴾ دا تحصيل نه دې چه د هغې معنى د پوستکي نه مغز يا د وږي نه غله ويستل دي
قوله: ﴿لَّخَبِيرُۢ يَوۡمَئِذٖ﴾ دا د يو سوال مقدر جواب دې.
سوال: سوال دا دې چه ﴿يومئذ لخبير﴾ ئې ولې اووئيلو حال دا چه الله پاك د هر زمان او مکان نه خبر دې؟
جواب: د جواب حاصل دا دې چه الله پاك به په دغه ورځ هر سړي ته د هغه د عمل جزا ورکوي او ظاهره ده چه جزا د علم نه بغير ممکنه نه ده او په دې سره د الله پاك د عمومي علم نفي نه کيږي.

## [۱۰۱] سورة القارعة

## سورة القارعة مكية ثمان آيات

سورة القارعه مکی دي، اته آيتونه دي.

[ایاتونه: ۱-۱۱]

بسم الله الرحمن الرحيم (الْقَارِعَةُ) الْقِيَامَة الَّتِي تَقْرَع الْقُلُوب بِأَهْوَالِهَا (مَا الْقَارِعَةُ) تَهْوِيل لِشَأْنِهَا وَهُمَا مُبْتَدَأ وَخَبَر خَبَر القارعة (وَمَا أَدْرَاكَ) أَعْلَمَكَ (مَا الْقَارِعَةُ) زِيَادَة تَهْوِيل لَهَا وَمَا الْأُولَى مُبْتَدَأ وَمَا بَعْدهَا خَبَره وَمَا الثَّانِيَة وَخَبَرهَا فِي مَحَلّ الْمَفْعُول الثَّانِي لأدرى (يَوْمَ) نَاصِبه دَلَّ عَلَيْهِ الْقَارِعَة أَيْ تَقْرَع (يَكُونُ النَّاسُ كَالْفَرَاشِ الْمَبْثُوثِ) كَغَوْغَاء الْجَرَاد الْمُنْتَشِر يَمُوج بَعْضهمْ فِي بَعْض لِلْحِيرَةِ إِلَى أَنْ يدعوا للحساب (وَتَكُونُ الْجِبَالُ كَالْعِهْنِ الْمَنْفُوشِ) كَالصُّوفِ الْمَنْدُوف فِي خِفَّة سَيْرهَا حَتَّى تَسْتَوِي مَعَ الْأَرْض (فَأَمَّا مَنْ ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ) بِأَنْ رَجَحَتْ حَسَنَاته على سيئاته (فَهُوَ فِي عِيشَةٍ رَاضِيَةٍ) فِي الْجَنَّة أَيْ ذَات رِضًى بِأَنْ يَرْضَاهَا أَيْ مَرْضِيَّة لَهُ (وَأَمَّا مَنْ خَفَّتْ مَوَازِينُهُ) بِأَنْ رَجَحَتْ سَيِّئَاته على حسناته (فَأُمُّهُ) فمسكنه (هَاوِيَةٌ) (وَمَا أَدْرَاكَ مَا هِيَهْ) اي ما هاويته (نَارٌ حَامِيَةٌ) شَدِيدَة الْحَرَارَة وَهَاء هِيَهْ لِلسَّكْتِ تُثْبَت وَصْلًا ووقفا وفي قراءة تحذف وصلا

ترجمه: په نوم د الله پاک چه ډير مهربانه او هميشه مهربانه دي شروع کوم! هغه ټکونکي يعنی د قيامت ورځ کومه چه به زړونو لره د خپلې سختئ د وجې نه اوټکوی څه څيز دي هغه ټکونکي؟ (دا استفهام) د قيامت د هيبت شان بيانولو دپاره دي (مـا القارعة) مبتداء او خبر دی، او مبتداء د خبر سره د (القارعة) خبر دي او تاسو ته څه خبر دي چه هغه ټکونکي څه څيز دي؟ دا د قيامت د مزيد هيبت بيان دي (ومـا ادراك مـا القارعة) کښې اولنئ (مـا) مبتداء ده او د هغې مابعد يعنی (ادراك) د خپلو دواړو مفعولونو سره د مبتداء خبر دي، د (ادرى) مفعول اول (ك) دي، او (ما القارعة) مبتداء د خبر سره مفعول ثانی دي، په کومه ورځ چه به انسانان د پريشانه پتنګانو په شان شی د (يوم) ناصب هغه (فعل) دي په کوم باندې چه (القارعة) دلالت کوی يعنی (تقرع) يعنی د ملخ منتشر بچی کوم چه د حيرانتيا د وجې نه په يو بل باندې اوخيژی، تردې چه هغوی د حساب دپاره راوبللې شی، او غرونه د وهلې شوې (د اندس شوې) رنګينو وړئ په شان شی يعنی په تيز رفتارئ کښې به د وهلې شوې وړئ په شان وی، تردې چه د زمکې د سطح برابر به شی بيا چه د چا چابړی درانه شی په داسې طريقه چه د هغه نيکئ زياتې شی په نسبت د ګناهونو نو هغه به د خندا خوشحالئ ژوند کښې وی، د رضا او خوشحالئ په جنت کښې، په داسې طريقه چه هغه به ددې نه خوشحاله وی يعنی د هغه د رضا مطابق به وی او د چا چابړی چه سپک شی په داسې طريقه چه ګناهونه ئې زيات شی په نسبت د هغه د نيکو، نو د هغه ټهکانه جهنم دي، تاته څه معلومه

ده چه هغه څه شیز دي؟ یعني ﴿ هاويه ﴾ څه شیز دي؟ هغه انتهائي سخت گرم اور دي او د ﴿ هيه ﴾ ها د وقف دپاره ده کوم چه وقفا او وصلا باقي وی او په یو قراءت کښې وصلا حذف کولې شي.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

قوله: ﴿ مَا الْقَارِعَةُ زِيَادَةَ تَهْوِيلٍ لَهَا ﴾ سره عبارت مقصد دا بيانول دی چه د استفهام نه پس استفهام سره مقصد د قيامت زياته سختی بيانول دی او ﴿ ما الاولى ﴾ مبتداء الخ د اضافې مقصد د ﴿ الْقَارِعَةُ مَا الْقَارِعَةُ ﴾ ترکيب نحوی بيانول دی، د ترکيب خلاصه دا ده چه اوله ﴿ ما ﴾ مبتدا ده، ﴿ ادرى ﴾ فعل ماضی متعدی په دوو مفعولو دې، ﴿ ك ﴾ مفعول اول دې او ﴿ ما القارعة ﴾ د مبتداء د خبر سره د ﴿ ادرى ﴾ مفعول ثاني دې، فعل د خپل فاعل او دواړو مفعولونو سره ﴿ ما ﴾ مبتداء خبر دې.

قوله: ﴿ يَوْمَ تَأْتِيهِ ﴾ الخ، د ﴿ يوم ﴾ ناصب ﴿ تقرع ﴾ فعل محذوف دې، لکه چه مفسر علام ﷫ ظاهرولو سره بيان کړې دې، او لفظ د ﴿ القارعة ﴾ په دې حذف باندې دلالت کوی، د عبارت تقدير به داسې وی: ﴿ تَقْرَعُ الْقُلُوبَ يَوْمَ يَكُونُ النَّاسُ كَالْفَرَاشِ الْمَبْثُوثِ ﴾ د ﴿ يوم ﴾ ناصب ﴿ تقرع ﴾ محذوف منلو ضرورت په دې وجه راغلو چه په ﴿ يوم ﴾ کښې نه خو ﴿ القارعة ﴾ اول عامل کيدې شي او نه ثاني او نه ثالث، اول خو په دې وجه نه شی کيدې چه د عامل او معمول ترمينځه د خبر فصل لازميږی، او ثاني او ثالث په دې وجه نه شی کيدې چه ﴿ يوم ﴾ د معنی په اعتبار سره د هغې سره هيڅ جوړ نشته.

قوله: ﴿ الْفَرَاشِ ﴾ دا د ﴿ فراشة ﴾ جمع ده پتنګ ته وئيلې شي، دلته د اسم جنس په طور استعمال شوې دې، هم دا وجه ده چه ددې صفت ﴿ المبثوث ﴾ راوړلې شوې دې، صاحب جلالين د ﴿ الْفَرَاشِ ﴾ ترجمه په ﴿ غَوْغَاءُ الْجَرَادِ ﴾ سره کړې ده، ﴿ غوغاء ﴾ د ملخ هغه بچی ته وائی کوم چه د الوتلو قابل شوې وی.

قوله: ﴿ المنتشر ﴾ په معنی د خواره، بې ترتيبه، د قيامت په ورځ به د حيرانئ او پريشانئ د وجې نه انسانان خواره واره او بې ترتيبه روان وی، هم ددې حيرانئ او پريشانئ د وجې نه د انسانانو د جراد منتشر سره تشبيه ورکړې شوه.

قوله: ﴿ الْمَنْفُوشِ ﴾ دا د ﴿ النفش ﴾ (ض، س، ن) نه اسم مفعول دې په معنی د وهلې (دانس) شوې.

قوله: ﴿ ذَاتِ رِضًا ﴾ ددې اضافه کولو کښې دې طرف ته اشاره ده چه ﴿ راضية ﴾ په معنی د ﴿ مرضية ﴾ دې، د علم معاني په ژبه کښې دې ته اسناد مجازی وئيلې شي، ﴿ اى عيشة مرضية ﴾ ځکه چه ﴿ عيش ﴾ راضی يعنی خوښونکې نه وی، بلکه ﴿ مرضية ﴾ يعنی خوښ کړې شوې وی.

قوله: ( أي ما هاوية ) ده عبارت د اضافي مقصد د ( ماهية ) مرجع متعين کول دی.
قوله: ( لمسكنه ) په دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چه (ام) نه مراد په طور د تشبيه مسکن او ټهکانه ده ځکه چه مور ( ام ) د بچي دپاره ټهکانه وي.

## [١٠٢] سورة التكاثر

## سورة التكاثر مكية ثمان آيات

سورة تکاثر مکی دې، اته آيتونه دی.

[اياتوله: ١ - ٨]

بسم الله الرحمن الرحيم (أَلْهَاكُمُ) شَغَلَكُمْ عَنْ طَاعَةِ اللهِ (التَّكَاثُرُ) التَّفَاخُرُ بِالْأَمْوَالِ وَالْأَوْلَادِ وَالرِّجَالِ (حَتَّى زُرْتُمُ الْمَقَابِرَ) بِأَنْ مُتُّمْ فَدُفِنْتُمْ فِيهَا أَوْ عَدَدْتُمُ الْمَوْتَى تَكَاثُرًا (كَلَّا) رَدْعٌ (سَوْفَ تَعْلَمُونَ) (ثُمَّ كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُونَ) سُوءَ عَاقِبَةِ تَفَاخُرِكُمْ عِنْدَ النَّزْعِ ثُمَّ فِي الْقَبْرِ (كَلَّا) حَقًّا (لَوْ تَعْلَمُونَ عِلْمَ الْيَقِينِ) عِلْمًا يَقِينًا عَاقِبَةَ التَّفَاخُرِ مَا اشْتَغَلْتُمْ بِهِ (لَتَرَوُنَّ الْجَحِيمَ) النَّارَ جَوَابُ قَسَمٍ مَحْذُوفٍ وَحُذِفَ مِنْهُ لَامُ الْفِعْلِ وَعَيْنُهُ وَأُلْقِيَتْ حَرَكَتُهَا عَلَى الرَّاءِ (ثُمَّ لَتَرَوُنَّهَا) تَأْكِيدٌ (عَيْنَ الْيَقِينِ) مَصْدَرٌ لِأَنَّ رَأَى وَعَايَنَ بِمَعْنًى وَاحِدٍ (ثُمَّ لَتُسْأَلُنَّ) حُذِفَ مِنْهُ نُونُ الرَّفْعِ لِتَوَالِي النُّونَاتِ وَوَاوُ ضَمِيرِ الْجَمْعِ لِالْتِقَاءِ السَّاكِنَيْنِ (يَوْمَئِذٍ) يَوْمَ رُؤْيَتِهَا (عَنِ النَّعِيمِ) مَا يُلْتَذُّ بِهِ فِي الدُّنْيَا من الصحة والفراغ والأمن والمطعم والمشرب وغير ذلك

ترجمه: په نوم د الله پاک چه ډير مهربانه او هميشه مهربانه دې شروع کوم، د مال او اولاد او افراد رجال په کثرت باندې فخر کولو تاسو د الله پاك د طاعت نه غافل کړئ تردې چه تاسو قبرونو ته اورسيدئ په داسې طريقه چه تاسو مړه شوئ او قبرونو کښې دفن کړې شوئ يا د کثرت ثابتولو دپاره مړی هم تاسو شمار کړل هرگز داسې نه ده پکار دا حرف ردع ده نزدې ده چه تاسو ته به معلومه شي، بيا هرگز داسې نه ده پکار تاسو ته به د خپل فخر کولو بد انجام د نزع په وخت او بيا په قبر کښې عنقريب معلوم شي دا امر واقعه دې که تاسو ته د تفاخر انجام د علم يقيني په طور علم وې نو تاسو به پکښې نه مشغوليدئ نو تاسو به بيشکه جهنم لره وينئ دا د قسم محذوف جواب دې (لترون) نه لام (چه ياء ده) او عين کلمه (چه همزه ده) حذف کړې شوی دی او د همزې حرکت راء ته ورکړې شوې دې، او بيا به تاسو دا د يقين په سترگه وينئ (عين) د ( لترون )مصدر (بغير لفظه) دې ځکه چه ( راى )او ( عاين )په يوه معنی دی ( عين ) د( رؤية )په معنی دی) بيا به هغې لره د ليدلو په ورځ تاسو نه ضرور د نعمتونو په باره کښې تپوس کولې شي، هغه نعمتونه د کومو نه چه به تاسو په دنيا کښې خوند اخستلو کوم چه صحت، مالداری، امن او خوراکونه او مشروبات وغيره دی. ( لتسئلن )نه نون رفع د درې نونونو د مسلسل راتلو د وجې نه حذف کړې شوې دې او د ضمير واؤ د التقاء ساکنين د وجې نه حذف کړې شوې دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** ﴿أَلْهَاكُمْ﴾ د ﴿الهاء﴾نه د ماضي واحد مذكر غائب صيغه ده، ته غافله كړي.

**قوله:** ﴿تكاثر﴾ د ﴿تفاعل﴾مصدر دې، مال او اولاد، هم دغه شان د عزت او جاه په كثرت كښې په يو بل باندې فخر كول.

**قوله:** ﴿أَوْ عَدَدْتُمْ﴾ دا د ﴿زُرْتُمُ الْمَقَابِرَ﴾ دويم تفسير دې.

**قوله:** ﴿عَاقِبَةَ التَّفَاخُرِ﴾ د دې عبارت د اضافې مقصد دا بيانول دي چه د ﴿تعلمون﴾مفعول محذوف دې او هغه ﴿عَاقِبَةَ التَّفَاخُرِ﴾دې.

**قوله:** ﴿مَا اشْتَغَلْتُمْ بِهِ﴾دا د ﴿لو﴾جواب دې.

**قوله:** جواب قسم محذوف يعني ﴿لَتَرَوُنَّ الْجَحِيمَ﴾دا د قسم محذوف جواب دې، اى والله لَتَرَوُنَّ الْجَحِيمَ

**سوال:** ﴿لَتَرَوُنَّ﴾لره د ﴿لو﴾جواب منلو كښې څه قباحت دې چه د هغې جواب ئې محذوف اومنلو؟

**جواب:** د ﴿لو﴾جواب غير يقيني الوقوع وى او دا يقيني الوقوع دې، لهذا دا د ﴿لو﴾جواب نه شي كيدې.

**قوله:** ﴿حُذِفَ مِنْهُ لَامُ الْفِعْلِ وَعَيْنُهُ وَأُلْقِيَتْ حَرَكَتُهَا عَلَى الرَّاءِ﴾ ﴿لَتَرَوُنَّ﴾ په اصل كښې ﴿لترايون﴾ په وزن د ﴿لتفعلون﴾وو، لام كلمه چه ياء ده او عين كلمه چه همزه ده حذف كړې شوې، ياء د التقاء ساكنين د وجې نه حذف كړې شوه، څكه چه ياء متحرك مخكښې ترې نه همزه مفتوح ،ياء په الف سره بدله كړې شوه، د واو او د ياء د ساكن كيدو د وجې نه ياء حذف كړې شوه، بيا د همزې (چه عين كلمه ده) حركت راء (چه فاء كلمه ده) ته وركړې شو او همزه حذف شو، بيا ئې په دې باندې نون تاكيد مشدد داخل كړو او نون رفع د دريو نونونو د جمع كيدو د وجې نه حذف كړې شو او واؤ ته ئې د هغې د مناسبت د وجې نه ضمه وركړه.

**سوال:** واو ئې د التقاء ساكنين د وجې نه حذف ولې نه كړو؟

**جواب:** څكه چه كه واو ضمير ئې حذف كړې وې نو فعل به (مختل)ختم شوې وې، څكه چه عين كلمه او لام كلمه خو د مخكښې نه حذف كړې شوى وو، اوس كه واؤ هم حذف كړې شوې وې نو باقى به څه پاتې شوى وو؟ په دې وجه واؤ حذف نه كړې شو.

**قوله:** ﴿لَتُسْئَلُنَّ﴾د نعمتونو په باره كښې دا سوال عام دې، د مومن او كافر دواړو نه به تپوس كولې شى،د كافرنه د توبيخ په طور او د مومن نه د تشريف او د اظهارِ فضيلت په طور.

**قوله:** ﴿حُذِفَ مِنْهُ النُّونُ﴾ لَتُسْئَلُنَّ د دې اصل ﴿لتسئلون﴾وو، نون اعرابى د دريو نونونو د جمع كيدو د وجې نه حذف كړې شو، بيا د التقاء ساكنين د وجې نه واؤ حذف كړې شو او د واؤ په ځائې د دلالت دپاره ضمه پاتې شوه.

## [١٠٣] سورة العصر

### سورة والعصر مكية او مدنية ثلاث آيات

### سورة عصر مكى يا مدنى دې، درې آيتونه دى.

### [ايا تو له: ١ - ٣]

بسم الله الرحمن الرحيم ﴿وَالْعَصْرِ﴾ الدهر أو ما بعد الزوال إلى الغروب أو صلاة العصر ﴿إِنَّ الْإِنسَانَ﴾ الجنس ﴿لَفِي خُسْرٍ﴾ في تجارته ﴿إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ﴾ فليسوا في خسران ﴿وَتَوَاصَوْا﴾ أوصى بعضهم بعضا ﴿بِالْحَقِّ﴾ الإيمان ﴿وتواصوا بالصبر﴾ على الطاعة وعن المعصية

**ترجمه:** په نوم د الله پاک چه ډير مهربانه او هميشه مهربانه دې شروع کوم! قسم دې په زمانه يا د زوال نه روستو تر د غروب پورې زمانه باندې يا د مازيگر په مونځ باندې بيشکه انسان په خپل تجارت کښې په لوئې نقصان کښې دې د هغه خلقو نه سوا چه ايمان ئې راوړې دې او نيک عمل ئې کړې دې او يو بل ته ئې د حق يعنى د ايمان نصيحت او په طاعت باندې د صبر او د گناه نه د ځان ساتلو تلقين کړې دې، نو دوى په تاوان کښې نه دى.

### د قيوداتو فوائد او تسهيل

مفسر علامﷺ ﴿الدهر﴾ او ﴿ما بعد الزوال﴾ او ﴿صلاة العصر﴾ وئيلو سره د عصر درېو تفسيرونو طرف ته اشاره اوکړه او د ﴿الانسان﴾ نه روستو ئې لفظ د ﴿جنس﴾ اضافه کولو سره د بيان کړل چه په ﴿الانسان﴾ کښې الف لام د جنس دې او د دې تائيد د ﴿الا الذين آمنوا﴾ د استثناء نه هم کيږى او بعض مفسرينو الف لام د عهد د پاره منلې دې، او معين افراد ئې مراد کړې دى، بعضو وليد بن مغيره، عاص بن وائل او اسود بن المطلب او بعضو ابو لهب مراد کړې دى.

**سوال:** ﴿تَوَاصَوْا بِالْحَقِّ وتواصوا بالصبر﴾ کښې د فعل د تکرار څه فائده ده، په عطف سره هم کار چليدې شو؟

**جواب:** دواړو ځايونو کښې چونکه مفعول مختلف دى، په دې وجه فعل مکرر ذکر کړې شو.

**سوال:** ﴿تواصى بالحق﴾ ټول تواصى بالخير ته شامل دې نو بيا د ﴿تواصى بالصبر﴾ مستقل ذکر ته څه ضرورت وو؟

**جواب:** د ﴿تواصى بالصبر﴾ د اهميت ښکاره کولو د پاره مستقلا ذکر کړې شو او دا ذکر د خاص بعد العام د قبيل نه دې لکه ﴿حافظوا على الصلوات والصلاة الوسطى﴾ کښې چه دى.

## [١٠٤] سورة الهمزة

### سورة الهمزة مكية او مدنية تسع آيات

### سورة همزه مكي يا مدني دي، نهه آيتونه دي.

### [ايا تونه: ١ - ٩]

بسم الله الرحمن الرحيم (وَيْلٌ) كَلِمَة عَذَاب أَوْ وَادٍ فِي جَهَنَّم (لِكُلِّ هُمَزَةٍ لُمَزَةٍ) أَيْ كَثِير الْهَمْز وَاللَّمْز أَيْ الْغِيبَة نَزَلَتْ فِيمَنْ كَانَ يَغْتَاب النَّبِيّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْمُؤْمِنِينَ كَأُمَيَّة بْن خَلَف وَالْوَلِيد بْن الْمُغِيرَة وَغَيْرهمَا (الَّذِي جَمَعَ) بِالتَّخْفِيفِ وَالتَّشْدِيد (مَالًا وَعَدَّدَهُ) أَحْصَاهُ وَجَعَلَهُ عُدَّة لِحَوَادِث الدَّهْر (يَحْسَبُ) لِجَهْلِهِ (أَنَّ مَالَهُ أَخْلَدَهُ) جَعَلَهُ خَالِدًا لَا يَمُوت (كَلَّا) رَدْع (لَيُنْبَذَنَّ) جَوَاب قَسَم مَحْذُوف أَيْ لَيُطْرَحَنَّ (فِي الْحُطَمَةِ) الَّتِي تُحَطِّم كُلّ مَا أُلْقِيَ فِيهَا (وَمَا أَدْرَاكَ) أَعْلَمَك (مَا الْحُطَمَةُ) (نَارُ اللهِ الْمُوقَدَةُ) الْمُسَعَّرَة (الَّتِي تَطَّلِعُ) تُشْرِف (عَلَى الْأَفْئِدَةِ) الْقُلُوب فَتُحْرِقهَا وَأَلَمهَا أَشَدّ مِنْ أَلَم غَيْرهَا لِلُطْفِهَا (إِنَّهَا عَلَيْهِمْ) جَمَعَ الضَّمِير رِعَايَة لِمَعْنَى كُلّ (مُؤْصَدَةٌ) بِالْهَمْزِ وَبِالْوَاوِ بَدَله مُطْبَقَة (فِي عَمَدٍ) بِضَمِّ الْحَرْفَيْنِ وَبِفَتْحِهِمَا (مُمَدَّدَةٍ) صِفَة لِمَا قَبْله فَتَكُون النَّار دَاخِل الْعَمَد

ترجمه: په نوم د الله پاک چه ډیر مهربانه او همیشه مهربانه دي شروع کوم، لویه خرابي ده (ويل) کلمه د عذاب ده یا په جهنم کښې یوه کنده ده د هر داسې کس دپاره چه عیبونه لټونکي، طعن (پيغور) کونکي وي یعنې په کثرت سره بدګوئي کونکي او پیغور ورکونکي وي، دا سورت د هغه سړي په باره کښې نازل شوي دي، چا چه به د رسول الله ﷺ او مومنانو غیبت کولو، لکه امیه بن خلف او ولید بن مغیره وغیرهما چا چه مال جمع کړي دي (جمع) په تخفیف او تشدید سره دي او په شمار شمار ئې کیخودلې دي او هغه ئې د زمانې د حوادثو دپاره تیار کیخودلي دي، (او) هغه د خپل جهالت د وجې نه (دا) خیال کوي چه د هغه مال به هغه ته دوام ورکړي چه کله به هم نه مري هرګز داسې نه ده، (كلا) حرف تنبیه دي دا سړي به اور ته اوغورځولې شي کوم چه به هر هغه څیز مات رامات کړي کوم چه به په هغې کښې اچولې شي تا ته څه معلومه ده چه هغه ماتونکي څه څیز دي؟ هغه د الله پاک بل کړې اور دي. یعنې بل کړې شوي کوم چه به زړونو ته اورسیږي نو هغه به هم اوسیزي، او د زړونو تکلیف د نورو اندامونو په نسبت زیات وي د هغه د لطیف کیدو د وجې نه هغه اور به په هغوی باندې بندولې شي د (كل) د معنی د رعایت د وجې نه (عليهم) ضمیر د جمع راوړلې شو، (موصدة) په همزې سره دي، او د همزې په عوض کښې په واؤ سره هم دي په معنی د بندیدونکې، په لویو لویو اوږدو ستنو کښې (عمد) کښې د دوارو حروفو په ضمې او فتحې سره، (ممددة) د خپل ماقبل صفت دي، لهذا اور به په ستنو کښې دننه وي.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

قوله: (هُمَزَة) په وزن د (فُعَلَة) ډير طعن کونکي، ډير عيب ويونکي، (فُعَلَة) د فاعل د مبالغې وزن دي، په دې کښې (ة) د مبالغې دپاره ده، (همز) (ن، ض) مصدر دې، طعن کول، په سترګو سره اشارې کول.

قوله: (لُمَزَة) صيغه د صفت د مبالغې دپاره، عيبت کول، بعض حضرات وائی چه د دواړو تقريبا يوه معنی ده.

قوله: (يَحْسَبُ اَنَّ) دا جمله استينافيه هم کيدې شی، په دې صورت کښې به د سوال مقدر جواب وی، ای (ما باله يهتم المال ويجمعه) يعنی هغه په دې اهتمام سره مال ولې جمع کوی؟ د دې جواب ئې ورکړو: (يَحْسَبُ اَنَّ مَالَهٗ اَخْلَدَهٗ) چه هغه دا خيال کوی چه د هغه مال به هغه ته دوام ورکړی، او دا هم کيدې شی چه: (يحسب) د (جمع واحلد) د فاعل نه حال واقع وی.

قوله: (جَوَابُ قَسَمٍ مَحْذُوفٍ) د عبارت تقدير داسې دې: (والله لينبذن في الحطمة)

قوله: (جَمْعُ الضَّمِيرِ رِعَايَةً لِمَعْنٰى كُلٍّ) يعنی د (عليهم) ضمير د (كل) طرف ته راجع دې، سوال دا دې چه (كل) مفرد دې او (هم) جمع ده، لهذا په ضمير او مرجع کښې مطابقت نشته؟

جواب: دا دې چه لفظ (كل) د معنی په اعتبار سره جمع دې، هم د دې رعايت په وجه (هم) ضمير د جمع راوړلې شو، (عَمَد) او (عُمُد) دا دواړه د (عمود) جمع ده.

### [١٠٥] سورة الفيل

### سورة الفيل مكية خمس آيات

سورة فيل مکی دې، پنځه آيتونه دی.

**[اياتوله: ١-٥]**

بسم الله الرحمن الرحيم (أَلَمْ تَرَ) استفهام تعجب اي اعجب (كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِأَصْحَابِ الْفِيلِ) هُوَ مَحْمُود وَأَصْحَابه أَبْرَهَة مَلِك الْيَمَن وَجَيْشه بَنَى بِصَنْعَاء كَنِيسَة لِيَصْرِف إِلَيْهَا الْحَاجّ عَنْ مَكَّة فَأَحْدَثَ رَجُل مِنْ كِنَانَة فِيهَا وَلَطَّخَ قِبْلَتهَا بِالْعَذِرَةِ احْتِقَارًا بِهَا فَحَلَفَ أَبْرَهَة لَيَهْدِمَنَّ الْكَعْبَة فَجَاءَ مَكَّة بِجَيْشِهِ عَلَى أَفْيَال الْيَمَن مُقَدَّمهَا مَحْمُود فَحِين تَوَجَّهُوا لِهَدْمِ الْكَعْبَة أَرْسَلَ اللّٰه عَلَيْهِمْ مَا قَصَّهُ فِي قَوْله (أَلَمْ يَجْعَل) أَيْ جَعَلَ (كَيْدهمْ) فِي هَدْم الْكَعْبَة (فِي تَضْلِيل) خَسَارَة وَهَلَاك (وَأَرْسَلَ عَلَيْهِمْ طَيْرًا أَبَابِيل) جَمَاعَات جَمَاعَات قِيلَ لَا وَاحِد لَهُ كَأَسَاطِير وَقِيلَ وَاحِده أَبُول أَوْ إِبَال أَوْ إِبِّيل كَعِجُول وَمِفْتَاح وَسِكِّين (تَرْمِيهِمْ بِحِجَارَةٍ مِنْ سِجِّيل) طِين مَطْبُوخ (فَجَعَلَهُمْ كَعَصْفٍ مَأْكُول) كَوَرَقِ زَرْع أَكَلَتْهُ الدَّوَابّ وَدَاسَتْهُ وَأَفْنَتْهُ أَيْ أَهْلَكَهُمْ اللّٰه تَعَالَى كُلّ وَاحِد بِحَجَرِهِ الْمَكْتُوب عَلَيْهِ اسْمه وَهُوَ أَكْبَر مِنْ الْعَدَسَة وَأَصْغَر مِنْ الْحِمَّصَة يَخْرِق الْبَيْضَة وَالرَّجُل وَالْفِيل وَيَصِل إِلَى الْأَرْض وَكَانَ هَذَا عَام مولد النبي صلى الله عليه وسلم

**ترجمه:** په نوم د الله پاک چه ډير مهربانه او هميشه مهربانه دې شروع کوم، آيا تاته معلومه نه ده چه ستا رب د هاتهي والو سره څه اوکړل؟ (او د هغه هاتهي نوم محمود وو، او د هغې ملګری ابرهه د يمن بادشاه او د هغه لښکر وو، هغه په صنعاء کښې ګرجا جوړه کړې وه، چه حاجيانو لره د مکې په ځائې د هغې طرف ته واپس کړی، د کنانه (قبيلې) يو سړی په دغه ګرجا کښې رفع حاجت کولو سره د هغه قبله د سپکاوی دپاره په نجاست ګنده کړه. پس ابرهه د خانه کعبې د منهدم کولو قسم اوخوړلو، پس هغه په خپل لښکر سره په هاتهيانو باندې سوريدو سره مکې ته راغلو او په هاتهيانو کښې د ټولو نه وړاندې محمود نومې هاتهي وو، پس چه کله دا خلق د کعبة الله د منهدم کولو دپاره متوجه شو (نو الله پاک) په هغوی باندې هغه څيز راوليږلو چه د هغې قصه (الله پاک) په خپل قول ﴿أَلَمْ يَجْعَلْ كَيْدَهُمْ﴾ الخ کښې کړې ده، آيا هغه د کعبې د ورانولو په باره کښې د هغوی تدبير تباه او ضائع نه کړو؟ او په هغوی باندې ئې د مرغانو سيلونه راوليږل وئيلې شوې دی چه د ﴿ابابيل﴾ واحد نشته او وئيلې شوې دی چه واحد ئې ﴿ابول﴾ دې لکه ﴿عجول﴾ چه د ﴿عجاجيل﴾ واحد دې يا ﴿ابال﴾ دې لکه ﴿مفتاح﴾ چه د ﴿مفاتيح﴾ واحد دې، يا ددې واحد ﴿ابيل﴾ دې لکه د ﴿سکاکين﴾ واحد چه ﴿سکين﴾ دې. چا چه هغوی په پخ شوو خاورې کانړو (کوړ کانړو) باندې ويشتل، بيا ئې د هغوی داسې حال کړو لکه د ځاروو خوړلې شوې بوس لکه د فصل پاڼړې، کوم چه ځاروو خوړلې وی، او هغه ئې فنا کړې وی، يعنې الله پاک د هغوی نه هر يو په هغه کانړی باندې هلاک کړو، په کوم چه د هغه نوم ليکلې شوې وو، او هغه د مسورو نه لوئې او د چڼړې نه وړوکې وو، کومه چه به زغره، هاتهي او انسان لره څيرلو سره زمکې ته رسيدو، او دا واقعه د رسول الله ﷺ د پيدائش په کال باندې پيښه شوې وه.

## د قيوداتو فوائد اوتسهيل

**قوله:** ﴿أَلَمْ تَرَ﴾ د رؤيت نه رؤيت علميه مراد دې، او خطاب رسول الله ﷺ ته دې او د رؤيت نه رؤيت بصری هم مراد کېدې شی، ځکه چه اګر که رسول الله ﷺ دا واقعه نه وه ليدلې، خو د هغې آثار او علامات ئې ليدلې وو يا رسول الله ﷺ دا واقعه د متواتر بيانونکو نه په دومره تواتر سره اوريدلې وه چه په منزله د مشاهدې شوه، ځکه چه د تواتر سره اوريدلې شوې څيز په منزله د مشاهدې وی.

**قوله:** ﴿استفهام لِلتعجب﴾ دا د يو سوال مقدر جواب دې؛

**سوال:** دا دې چه الله پاک عالم الغيب دې هغه ته خو د ﴿ماکان ومايکون﴾ علم دې، نو بيا الله پاک د ﴿الم تر﴾ په ذريعه باندې سوال ولې اوکړو؟

**جواب:** د جواب حاصل دا دې چه دا استفهام د تعجب دپاره دې د سوال کولو دپاره نه دې،

يعني اې مخاطبه! ته د اصحاب الفيل حالت ته كتلو سره تعجب اوكړه.

قوله: ﴿ هو محمود ﴾ د ټولو هاتهيانو سردار يو هاتهى وو چه نوم ئې محمود وو، كوم چه د لوئې جوثې او شان والا وو، او د هغه كنيت ابو العباس وو.

قوله: ﴿ ابابيل ﴾ يوه مرغئ چه د كوتترې نه لږه شان وړه وى.

قوله: ﴿ سجيل ﴾ دا د سنګ ګل معرب دې، هغه كانړې چه هغې كښې د خاورې ګډون وى، په اور كښې پخ شوې خاورې ته هم ﴿ سجيل ﴾ وئيلې شى.

## [١٠٦] سورة قريش

### سورة قريش مكية او مدنية اربع آيات

سورة قريش مكى يا مدنى دې، څلور آيتونه دى.

[اياتونه: ١-٤]

بسم الله الرحمن الرحيم ﴿لإيلاف قريش﴾ ﴿إيلافهم﴾ تأكيد وَهُوَ مَصْدَر آلَف بِالْمَدِّ ﴿رحلة الشتاء﴾ إِلَى الْيَمَن ﴿و﴾ رِحْلَة ﴿الصيف﴾ إِلَى الشَّام فِي كُلّ عَام يَسْتَعِينُونَ بِالرِّحْلَتَيْنِ لِلتِّجَارَة عَلَى الْمُقَام بِمَكَّة لِخِدْمَةِ الْبَيْت الَّذِي هُوَ فَخْرهمْ وَهُمْ وَلَد النَّضْر بْن كِنَانَة ﴿فليعبدوا﴾ تَعَلَّقَ بِهِ لِإِيلَافِ وَالْفَاء زَائِدَة ﴿رب هذا البيت﴾ ﴿الذي أطعمهم من جوع﴾ أَيْ مِنْ أَجْله ﴿وآمنهم من خوف﴾ أَيْ مِنْ أَجْله وَكَانَ يُصِيبهُمْ الْجُوع لِعَدَمِ الزَّرْع بِمَكَّة وَخَافُوا جَيْش الْفِيل

**ترجمه:** شروع كوم په نوم د الله چه ډير مهربانه ډير رحم كونكې دې، چونكه قريش محبت ساتلو «دويم ايلاف د رومبى ايلاف» تاكيد دې دا د آلف په مد سره، مصدر دې يعنى په يخنئ كښې د يمن سفر كولو سره او په ګرمئ كښې د شام سفر سره محبت، هر كال دواړه تجارتى سفرونو سره د بيت الله د خدمت د پاره په مكه كښې قيام كولو كښې مدد اخستلو، چه دا د هغوى د پاره د فخر سبب وو، او دوى د نضر بن كنانه د اولاد څخه وو، لهذا دوى له پكار دى چه لايلاف د فليعبدوا سره متعلق دې او فا زائده ده، د دې كور د رب عبادت اوكړى، څكه چه هغه دوى د ولږې نه بچ كړل خوراك ئې وركړو او د ويرې نه ئې اوساتل دوى ته ئې امن وركړو په مكه كښې د كروندې نه كيدو په وجه به په دوى لوږه راتله او د هاتهيانو د لښكر نه ويريدل.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**ترجمه:** ﴿ لايلاف قريش ﴾ ﴿ ايلاف ﴾ د باب افعال مصدر دې، مانوس ساتل، محبت كول.

قوله: ﴿ قريش ﴾ د قبيله عدنان د قبيله كنانه يو شاخ دې، كوم چه د خاندان قريش په نوم سره مشهور شو، د قريشو مورث اعلى نضر ته قريش وئيلې شى، ﴿ لايلاف ﴾ جار مجرور څه سره متعلق دې؟ په دې كښې ډير اختلاف دې، اول راجح قول ليكلې شى، راجح قول دا دې چه دا د خپل مابعد ﴿ فليعبدوا ﴾ سره متعلق دې، د عبارت تقدير به داسې وى ﴿ فان لم

یعبدوا الله لسائر نعمه السابقة فلیعبدوه لایلافهم رحلة الشتاء والصیف) یعنی که قریش د الله پاک نورو کاملو انعاماتو شکر نه ادا کوی نو کم از کم د دې نعمت په شکر کښې دې د دې کور مالك بندګی اوکړی چا چه هغوی کښې د یخنۍ او ګرمۍ د دوه سفرونو سره الفت پیدا کړی دې کوم چه د هغوی د خوشحالۍ ضامن دې.

عام طور سره د جار مجرور تعلق د مقدم سره وی لهذا د (لایلاف) تقاضه دا ده چه د خپل ماقبل سره متعلق وی، هم په دې وجه په متعلق کښې متعدد اقوال دی، د تیر سورة الفیل سره د معنوی تعلق په وجه باندې بعض حضرات وائی چه د (لایلاف) نه مخکښې یوه جمله محذوف ده او هغه (انا اهلکنا اصحاب الفیل) دې یعنی مونږ اصحاب الفیل په دې وجه هلاك کړل چه قریش مکه د یخنۍ او ګرمۍ د دوؤ سفرونو عادت وو، چه د هغوی په لاره کښې څه بندیز پاتې نه شی او د تولو په زړونو کښې د هغوی عظمت پیدا شی، پس د اصحاب فیل د هلاکیدو نه پس نه صرف دا چه د قریشو عظمت باقی پاتې شو، بلکه په هغې کښې نوره هم اضافه اوشوه او د عربو پوره یقین پیدا شو چه بیت الله واقعی د الله پاك کور دې، او که الله مه کړه ابرهه بیت الله وران کړې وې نو د قریش مکه به نه صرف دا چه عظمت کم شوې وې، بلکه ختم شوې به وې او د بیت الله د خادم او منجور کیدو په وجه چه کوم قدر او قیمت هغوی ته حاصل وو هغه ټول به خاورې شوې وې، د شوکو او لوټ مار چه کوم واقعات به د نورو سره کیدل هغه به د قریشو سره هم شروع شوې وې، خو الله پاك د بیت الله حفاظت کولو سره د قریشو عزت او وقار نور هم زیات کړو، او د هغوی دپاره لارې نورې هم په امن او محفوظ شوې.

او بعض حضراتو متعلق محذوف جمله (اعجبوا) منلې دې یعنی د قریشو د معاملې نه تعجب اوکړئ چه هغوی څنګه د یخنۍ او ګرمۍ د سفر نه ازاد بې خطرې دی.

قوله: (ایلافهم) دا د اولنی ایلاف تاکید لفظی دې بعض حضراتو ثانی لره د اول نه بدل منلې دې، (رحلة) د اولنی (ایلاف) مفعول به دې.

قوله: (فَلْيَعْبُدُوا) په دې کښې فاء جزائیه ده، شرط محذوف دې، د عبارت تقدیر داسې دې چه: (ان لم یعبدوا لسائر نعمه فلیعبدوا لایلافهم رحلة الشتاء والصیف فانها اظهر نعمه علیهم) او (فلیعبدوا) کښې لام د امر دې.

## [١٠٧] سورة الماعون

### سورة الماعون مكية او مدنية او نصفها و نصفها ست او سبع آيات

سورة ماعون مکی یا مدنی دي، یا نصف نصف دي، شپږ یا اووه آیتونه دي.

[ایاتونه: ١ - ٧]

بسم الله الرحمن الرحيم ﴿أَرَأَيْتَ الَّذِي يُكَذِّبُ بِالدِّينِ﴾ بِالْجَزَاءِ وَالْحِسَابِ أَيْ هَلْ عَرَفْتَه وَإِنْ لَمْ تَعْرِفْهُ ﴿فَذَٰلِكَ﴾ بِتَقْدِيرِ هُوَ بَعْدَ الْفَاءِ ﴿الَّذِي يَدُعُّ الْيَتِيمَ﴾ أَيْ يَدْفَعُهُ بِعُنْفٍ عَنْ حَقِّه ﴿وَلَا يَحُضُّ﴾ نَفْسَهُ وَلَا غَيْرَه ﴿عَلَىٰ طَعَامِ الْمِسْكِينِ﴾ أَيْ إِطْعَامِه نَزَلَتْ فِي الْعَاصِي بن وائل او الوليد بن المغيرة ﴿فَوَيْلٌ لِلْمُصَلِّينَ﴾ ﴿الَّذِينَ هُمْ عَنْ صَلَاتِهِمْ سَاهُونَ﴾ غَافِلُوْنَ يُؤَخِّرُوْنَهَا عن وقتها ﴿الَّذِينَ هُمْ يُرَاءُونَ﴾ فِي الصَّلَاةِ وَغَيْرِهَا ﴿وَيَمْنَعُونَ الْمَاعُونَ﴾ كَالْإِبْرَةِ وَالْفَأْسِ والقدر والقصعة

ترجمه: په نوم د الله پاک چه ډیر مهربانه او همیشه مهربانه دي شروع کوم، آیا تا هغه سړي لیدلي دي چه د جزا د ورځې یعنی د حساب او د جزا د ورځې تکذیب کوی؟ یعنی تا هغه پیژندلي دي یا نه؟ دا هم هغه سړي دي د فا نه روستو ﴿هو﴾ مقدر دي کوم چه یتیم ته دیکې ورکوی یعنی هغه لره سختئ سره د هغه د حق نه محروم کوی او مسکینانو ته د خوراک ورکولو نه خان ته ترغیب ورکوی او نه بل ته (دا آیت کریمه) د عاص بن وائل یا ولید بن مغیره په باره کښې نازل شوي وو، پس د داسې مونځ کونکو دپاره لویه خرابي ده کوم چه غفلت کوی داسې چه مونځ د وخت نه روستو کوی کوم چه داسې دي چه په مونځ وغیره کښې ریا کاري کوی او د ضرورت څیزونه منع کوی مثلا، ستن، تبر، کټوئ او پیاله وغیره.

### د قیوداتو فوائد او تسهیل

قوله: ﴿هَلْ عَرَفْتَه وَإِنْ لَمْ تَعْرِفْهُ﴾ ددې عبارت د اضافه کولو مقصد دې خبرې ته اشاره کول دي چه د ﴿ارايت﴾ نه مراد ﴿رؤيت﴾ علميه دې کوم چه یو مفعول ته متعدی دي.

قوله: ﴿بِتَقْدِيرِ هُوَ بَعْدَ الْفَاءِ﴾ دا تقدیر لازم نه دي، بلکه د اسم اشاره مبتداء واقع کیدل او د موصوف خبر واقع کیدل صحیح دی، بهرحال ﴿فذلك﴾ جمله اسمیه ده کوم چه جواب شرط واقع دي، هم په دې وجه په دې باندې فاء داخله ده او شرط مقدر دي.

## [١٠٨] سورة الكوثر

### سورة الكوثر مكية او مدنية ثلاث آيات

سورة کوثر مکی یا مدنی دي، درې آیتونه دي.

[ایاتونه: ١ - ٣]

بسم الله الرحمن الرحيم ﴿إِنَّا أَعْطَيْنَاكَ﴾ يَا مُحَمَّدُ ﴿الْكَوْثَرَ﴾ هُوَ نَهْرٌ فِي الْجَنَّةِ هُوَ حَوْضُه تَرِدُ عَلَيْهِ أُمَّتُه وَالْكَوْثَرُ الْخَيْرُ الْكَثِيرُ مِنَ النُّبُوَّةِ وَالْقُرْآنِ وَالشَّفَاعَةِ ونحوها ﴿فَصَلِّ لِرَبِّكَ﴾ صَلَاةَ عِيدِ النَّحْرِ ﴿وَانْحَرْ﴾ نُسُكَكَ

﴿إِنَّ شَانِئَكَ﴾ أي مُبغِضك ﴿هُوَ الْأَبْتَرُ﴾ المُنقطع عَن كلّ خَير أَو المُنقطع العَقب نَزلت فِي العَاصي بن وَائِل سَمَّى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبتر عِند مَوت إبنه القاسم

ترجمه: په نوم د الله پاک چه دير مهربانه او هميشه مهربانه دې شروع کوم اې محمد ﷺ موږ تاته د كوثر نهر دركړې دې (کوثر) په جنت کښې يو نهر يا حوض دې، چه په هغې باندې به د رسول الله ﷺ امت ورتيريږي، يا كوثر خير كثير ته وئيلې شي، كوم چه د نبوت، قرآن کريم او شفاعت په شان څيزونه دي. پس ته د خپل رب دپاره دغې اختر مونځ کوه او خپله قرباني كوه يقينا ستا دشمن بې اولاده لاوارثه دې (يعنې د هر يو خير نه پرې کړې شوې دې يا منقطع النسل دې) (دا آيت كريمه) د عاص بن وائل په باره کښې نازل شو، چا چه رسول الله ﷺ ته د هغه د خوئې سيدنا قاسم ؓ د وفات په وخت ﴿ابتر﴾ (يعنې منقطع النسل) وئيلې وو.

قوله: ﴿الْكَوْثَرَ﴾ د جنت د يو نهر يا حوض نوم دې، سعيد بن جبير ؒ د ابن عباس ؓ نه نقل کړې دی چه کوثر هر هغه څيز ته وائي چه په هغې کښې خير زيات وي، ﴿کوثر﴾ د ﴿كثرة﴾ نه ماخوذ دې لکه نوفل چه د ﴿نفل﴾ نه جوړ شوې دې، كوم څيز چه په تعداد کښې كثير او عظمت والاوي، هغې ته عرب كوثر وائي.

قوله: ﴿شَانِئَكَ﴾ ستا دشمن، دا د ﴿شنأ﴾ نه ماخوذ دې، چه د هغې معنى دشمنى ده.

قوله: ﴿الْأَبْتَرُ﴾ بې اولاده، لنډې بوچې، دا د ﴿بتر﴾ نه د صفت مشبه صيغه ده، (ن،س) بترا، پرې کول، پرې کيدل، ﴿باتر﴾ تيره توره.

## [١٠٩] سورة الكافرون

### سورة الكافرون مكية او مدنية ست آيات

سورة كافرون مكى يا مدنى دې، شپږ آيتونه دی.

[اياتونه: ١-٦]

بسم الله الرحمن الرحيم ﴿قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ﴾ ﴿لَا أَعْبُدُ﴾ فِي الحَال ﴿مَا تَعْبُدُونَ﴾ مِنَ الأصنام ﴿وَلَا أَنْتُمْ عَابِدُونَ﴾ فِي الحَال ﴿مَا أَعْبُدُ﴾ وَهُوَ اللهُ تَعَالَى وَحْده ﴿وَلَا أَنَا عَابِدٌ﴾ فِي الإسْتِقبَال ﴿مَا عَبَدْتُمْ﴾ ﴿وَلَا أَنْتُمْ عَابِدُونَ﴾ فِي الإسْتِقبَال ﴿مَا أَعْبُدُ﴾ عَلِمَ اللهُ مِنْهُمْ أَنَّهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ وَإطلَاق مَا عَلَى اللهِ عَلَى وَجْه المُقَابَلَة ﴿لَكُمْ دِينُكُمْ﴾ الشِّرْك ﴿وَلِيَ دِينِ﴾ الإِسْلام وَهٰذَا قَبل أَنْ يُؤمَر بِالحَرْب وَحَذَفَ يَاء الإضَافَة القُرَّاء السَّبْعَة وَقْفًا وَوَصْلًا وَأَثْبَتَهَا يَعْقُوب فِي الحَالين

ترجمه: په نوم د الله پاک چه دير مهربانه او هميشه مهربانه دې شروع کوم ته اوايه! اې کافرو! نه زه فى الحال د هغه بتانو بندگی کوم د کومو چه تاسو بندگی کوئ او نه فى الحال تاسو بندگی کوئ د هغه ذات د کوم چه زه بندگی کوم او هغه الله وحده لاشريك دې. او نه زه روستو زمانه کښې بندگی کونکې يم د هغه چا د چا چه تاسو بندگی کوئ او نه تاسو په روستو زمانه کښې بندگی

کونکي يئ د هغه ذات د چا چه زه بندګي کوم الله پاك ته د هغوى په باره کښې علم وو چه هغوى ايمان راوړونکي نه دي، او د ﴿ما﴾ اطلاق په الله پاك باندې د مقابلې په طور دې ستاسو دپاره ستاسو دين شرك او زما دپاره زما دين اسلام دې او دا حکم د جهاد د حکم ورکولو نه مخکښې وو، او قراء سبعه ياء اضافت وقفا او وصلا حذف کړې ده، او يعقوب په دواړو حالتونو کښې باقي ساتلې ده.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** ﴿أيها الكافرون﴾ ددې مخاطب مخصوص کفار دي د چا متعلق چه الله پاك ته علم وو چه هغوي ايمان راوړونکي نه دي.

**قوله:** ﴿في الحال﴾ لفظ في الحال په حقيقي صورت حال باندې د دلالت کولو دپاره دې، يعني حقيقت هم دا دې چه نه زه ستاسو د معبودانو بندګي کوم او نه تاسو زما د معبود بندګي کوئ.

**قوله:** ﴿في الاستقبال﴾ دا اضافه د يو سوال مقدر جواب دې.

**سوال:** په آيت کريمه کښې د ﴿اعبد﴾ تکرار دې کوم چه غوره نه دې.؟

**جواب:** تکرار نه دې، ځکه چه په اول کښې حال او په دويم کښې استقبال مراد دې.

**قوله:** ﴿علم الله منهم أنهم لا يؤمنون﴾ ددې عبارت د اضافې مقصد هم د يو سوال جواب ورکول دي.

**سوال:** رسول الله ﷺ د مشرکين مکه د ايمان نه ولې نااميده شو، حال دا چه د رسول الله ﷺ بعثت خو د هغوى د هدايت دپاره کړې شوې وو؛ بلکه دا چه رسول الله ﷺ خو د هغوى په ايمان باندې حريص وو؟

**جواب:** د ايمان نه راوړلو خبر د يوځو مخصوص کفارو په باره کښې دې چه د هغوى په باره کښې الله پاك د وحى په ذريعه بيان کړې وو چه فلانې فلانې ايمان راوړونکي نه دي.

**قوله:** ﴿وإطلاق ما على الله على وجه المقابلة﴾ دا هم د يو سوالِ مقدر جواب دې.

**سوال:** سوال دا دې چه د ﴿ما﴾ اطلاق په غير ذوى العقول باندې کيږي نه په ذوى العقول باندې حال دا چه دلته د ﴿ما﴾ اطلاق د الله پاك دپاره شوې دې کوم چه د قاعدې خلاف دې؟

**جواب:** دا قاعده کليه نه ده، بلکه د بعض نحويانو په نزد د ﴿ما﴾ اطلاق په ذوى العقول باندې هم صحيح دې، لهذا په دې صورت کښې د جواب څه ضرورت نشته او د چا په نزد چه د ﴿ما﴾ اطلاق په ذوى العقول باندې صحيح نه دې نو د هغوى د طرف نه به دا جواب وى چه دا د مشاکلت په طور استعمال شوې دې، چونکه مخکښې د بتانو دپاره د ﴿ما﴾ استعمال کړې شوې دې، لهذا د الله پاك دپاره هم د ﴿ما﴾ استعمال اوکړې شو، او د مشاکلت رعايت کول د فصاحت د مقتضى عين مطابق دي.

## [١١٠] سورة النصر

## سورة النصر مدنية ثلاث آيات

سورة نصر مدنی دي، دري آيتونه دي.

[ايات تونه: ١-٣]

بسم الله الرحمن الرحيم ﴿إِذَا جَآءَ نَصْرُ اللَّهِ﴾ نَبِيَّه صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى أَعْدَائِهِ ﴿وَالْفَتْحُ﴾ فَتْح مَكَّة ﴿وَرَأَيْتَ النَّاسَ يَدْخُلُونَ فِي دِينِ اللَّهِ﴾ أَيِ الإِسلام ﴿أَفْوَاجًا﴾ جماعات بعد ما كَانَ يَدْخُل فِيهِ وَاحِد وَاحِد وَذٰلِكَ بَعْد فَتْح مَكَّة جَاءَهُ الْعَرَب مِنْ أَقْطَار الأَرْض طائعين ﴿فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ﴾ أَيْ مُتَلَبِّسًا بِحَمْدِهِ ﴿وَاسْتَغْفِرْهُ إِنَّهُ كَانَ تَوَّابًا﴾ وَكَانَ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْد نُزُول هٰذِهِ السُّورَة يُكْثِر مِنْ قَوْل سُبْحَان اللّٰه وَبِحَمْدِهِ أَسْتَغْفِر اللّٰه وَأَتُوب إِلَيْهِ وَعَلِمَ بِهَا أَنَّهُ قَدْ اِقْتَرَبَ أَجَله وَكَانَ فَتْح مَكَّة فِي رَمَضَان سَنَة ثَمَان وَتُوُفِّيَ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي رَبِيع الأَوَّل سَنَة عشر

**ترجمه:** په نوم د الله پاک چه ډير مهربانه او هميشه مهربانه دي شروع کوم چه کله د خپل نبي ﷺ دپاره د هغه په دشمنانو باندې د الله پاک مدد راشي او فتح مکه نصيب شي او ته خلق وينې چه د الله پاک په دين اسلام کښې ډلې ډلې داخليږي پس د دې نه چه يو يو به دين کښې داخليدو، او دا صورت حال د فتح مکه نه پس شوې وو چه عرب په خوشحالئ سره د مختلف اطرافو او ارخونو نه په دين اسلام کښې د داخليدو دپاره داغلل، نو ته د خپل رب تسبيح او تحميد کوه او د هغه نه بخښنه غواړه بيشکه هغه ډير توبه قبلونکې دې چنانچه د دې سورت د نزول نه پس به رسول الله ﷺ ﴿سبحان الله وبحمده استغفر الله واتوب اليه﴾ په کثرت سره لوستلو او په دې سره پوهه شوې وو چه د هغوی ﷺ د وفات وخت رانزدې شوې دې، او فتح مکه په رمضان ٨ هجري کښې شوې وه او د رسول الله ﷺ وفات په ربيع الاول ١٠ هجري کښې شوې وو.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** ﴿إِذَا جَآءَ﴾ ﴿المجيء﴾ په اصل کښې د موجود غائب حاضريدلو ته وئيلې شي، دلته داسې نه ده، ځکه چه فتح د مخکښې نه موجود نه وه، چه هغه راغلې وی، په دې وجه دلته ﴿جاء﴾ په معنی د ﴿حصل﴾ او ﴿حقق﴾ دې، يا به دا وئيلې شي چه د کوم څيز موجود کيدل په تقدير الهی کښې مقدر شوی وی ګويا هغه موجود دې او چه کله د هغه موجود کيدو وخت راغلو نو ګويا اول هغه غائب وو اوس حاضر شو، په دې صورت کښې به ﴿جاء﴾ په خپله حقيقی معنی وی، ﴿اذا﴾ شرطيه دې او ﴿فسبح بحمد ربك﴾ د دې جزاء ده، دا په هغه صورت کښې ده چه کله سورة د فتح مکه نه مخکښې نازل شوې وی، او که سورت د فتح مکه نه روستو نازل شوې وی نو ﴿اذا﴾ به په معنی د ﴿اذ﴾ وی او د محذوف سره به متعلق وی، تقدير د عبارت به داسې وی: ﴿أكمل الله الامر واتم النعمة على العباد اذ جاء نصر الله﴾

قوله: ﴿ لنصر الله ﴾ دا مصدر مضاف الى الفاعل دی او ددی مفعول ﴿ نبيه ﴾ محذوف دی، کوم چه مفسر علام ظاهر کړی دی.
قوله: ﴿ الفتح ﴾ د کوفیانو په نزد په ﴿ الفتح ﴾ کښې الف لام د مضاف الیه په عوض کښې دی. ای فتحه.
قوله: ﴿ افواجا ﴾ دا د ﴿ یدخلون ﴾ د فاعل نه حال دی، که رؤیت بصریه مراد وی، او که رؤیت علمیه مراد وی نو مفعول ثانی دی.

[١١١] سورة ابی لهب
سورة ابی لهب مكية خمس آيات
سورة أبی لهب مکی دی، پنځه آیتونه دی.
[ایاتونه: ١-٥]

بسم الله الرحمن الرحيم لَمَّا دَعَا النَّبِيّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَوْمه وَقَالَ إِنِّي نَذِير لَكُمْ بَيْن يَدَيْ عَذَاب شَدِيد فَقَالَ عَمّه أَبُو لَهَب تَبًّا لك ألهذا دعوتنا نزل ﴿تَبَّتْ﴾ خَسِرَتْ ﴿يَدَا أَبِي لَهَبٍ﴾ أَيْ جُمْلَته وَعَبَّرَ عَنْهَا بِالْيَدَيْنِ مَجَازًا لِأَنَّ أَكْثَر الْأَفْعَال تُزَاوَل بِهِمَا وَهَذِهِ الْجُمْلَة دُعَاء ﴿وَتَبَّ﴾ خَسِرَ هُوَ وَهَذِهِ خَبَر كَقَوْلِهِمْ أَهْلَكَهُ اللّٰه وَقَدْ هَلَكَ وَلَمَّا خَوَّفَهُ النَّبِيّ بِالْعَذَابِ فَقَالَ إنْ كان ما يقول ابن أَخِي حَقًّا فَإِنِّي أَفْتَدِي مِنْهُ بِمَالِي وَوَلَدِي نزل ﴿مَا أَغْنَى عَنْهُ مَالُهُ وَمَا كَسَبَ﴾ أَيْ وَكَسْبُهُ أَيْ وَلَده مَا أَغْنَى بِمَعْنَى يُغْنِي ﴿سَيَصْلَى نَارًا ذَاتَ لَهَبٍ﴾ أَيْ تَلَهُّب وَتَوَقُّد فَهِيَ مَآل تَكْنِيَته لِتَلَهُّبِ وَجْهه إِشْرَاقًا وَحُمْرَة ﴿وَامْرَأَتُهُ﴾ عَطْف عَلَى ضَمِير يَصْلَى سَوَّغَهُ الْفَصْل المفعول وَصِفَته وَهِيَ أُمّ جَمِيل ﴿حَمَّالَةَ﴾ بِالرَّفْعِ وَالنَّصْب ﴿الْحَطَبِ﴾ الشَّوْك وَالسَّعْدَان تُلْقِيه فِي طَرِيق النَّبِيّ صَلَّى اللّٰه عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ﴿فِي جِيدِهَا﴾ عُنُقهَا ﴿حَبْلٌ مِنْ مَسَدٍ﴾ أَيْ لِيف وَهَذِهِ الْجُمْلَة حَال مِنْ حَمَّالَة الْحَطَب الَّذِي هُوَ نَعْت لِامْرَأَتِهِ أَوْ خَبَر مُبْتَدَأ مقدر

ترجمه: په نوم د الله پاک چه ډیر مهربانه او همیشه مهربانه دی شروع کوم چه کله رسول الله ﷺ خپل قوم راوبلو او وې وئیل چه زه تاسو د سخت عذاب د راتلو نه مخکښې ویروم، نو د رسول الله ﷺ تره ابو لهب اووئیل چه هلاك شې، آیا تا مونږ هم ددې دپاره راجمع کړی وو؟ نو ﴿ تبت یدا ﴾ نازل شو د ابو لهب دواړه لاسونه مات شو یعنی هغه پخپله هلاك شو، او د ذات نه ئې په دواړو لاسونو سره تعبیر مجازا کړی دی، ځکه چه اکثر افعال د لاسونو په شرکت سره کیږی، دا جمله بد دعاء ده. او هلاك شو او دا (جمله) د بد دعا د قبولیت خبر دی، لکه چه عرب وائی ﴿ اهلکه الله وقد هلك ﴾ او چه کله هغه لره نبی ﷺ د عذاب نه اوېرولو نو هغه اووئیل چه څه زما وراره وائی که هغه حق وی نو زه به د هغې د خپل مال او اولاد نه فدیه ورکړم نو ﴿ ما اغنی عنه ماله وما کسب ﴾ نازل شو. نه د هغه مال د هغه په کار راغلو او نه اولاد او ﴿ اغنی ﴾ په معنی د ﴿ یغنی ﴾ دی او هغه به عنقریب لمبې وهونکی اور ته داخل شی یعنی شعلې وهونکی تیز اور ته، دا انجام دی د هغه د کنیت، د هغه د مخ د پرقیدو د وجې نه، د چمك

او سرخې په اعتبار سره او د هغه ښځه به هم ځي ددې عطف د ﴿ یصلی ﴾ په ضمیر باندې دې مفعول او د هغه د صفت فصل دا عطف جائز کړې دې او د هغه ښځه ام جمیل ده کومه چه لرګو لره په شا راوړونکې ده ﴿ حمالة ﴾ په رفع او نصب سره دې یعنې ازغنو لره او سعدان (ازغني ګیاه) لره راوړونکې ده، کوم چه به هغې د رسول الله ﷺ په لاره کښې اچول، د هغې په ستې کښې به د کهجورو د پوستکي (پټ) رسۍ وي یعنې د پوستکي او دا جمله د ﴿ حمالة الحطب ﴾ نه حال ده کوم چه د ﴿ امرأة ﴾ صفت دې یا د مبتداء محذوف خبر دې.

## د قیوداتو فوائد او تسهیل

**قوله:** ﴿ تَبَّتْ يَدَا أَبِي لَهَبٍ ﴾ دې سورة ته سورة مسد او سورة ابی لهب هم وئیلې شي، د ابو لهب اصل نوم عبدالعزی دې، د خپل حسن او جمال او د مخ د سور والي د وجې نه به هغه ته ابو لهب (شعلو والا) وئیلې شو، ﴿ تَبَّتْ يَدَا أَبِي لَهَبٍ ﴾ دا بددعا ده او ﴿ وَتَبَّ ﴾ د قبولیت دعا اطلاع ده او بعض مفسرین وائي چه دواړه خبرې دي، یو د لاسونو دپاره او دویم د ټول بدن دپاره، د لاسونو نه مراد هم کل دې، لهذا ﴿ وَتَبَّ ﴾ به د ﴿ تبت یدا ﴾ تاکید وي.

**قوله:** ﴿ مَآلَ تَكْنِيَتِهِ ﴾ یعنې د جهنم اور ته داخلیدل د هغه د کنیت تاثیر او نتیجه وه.

**قوله:** ﴿ لِتَلَهُّبِ وَجْهِهِ ﴾ دا د هغه د کنیت علت دې، مطلب دا چه د هغه کنیت ابو لهب په دې وجه وو چه هغه په ښکلا او سرخۍ کښې د شعلو په شان وو، خو هم دا کنیت د تلازم النار طرف ته واوختلو.

**قوله:** ﴿ وَامْرَأَتُهُ ﴾ ددې عطف د ﴿ سیصلی ﴾ په ضمیر مرفوع مستتر باندې دې، یعنې د دوزخ اور ته به ابو لهب داخلیږي او د هغه ښځه ام جمیل د چا نوم چه ﴿ اروی ﴾ دې هغه به هم اور ته داخلیږي.

**قوله:** ﴿ سَوَّغَهُ الْفَصْلُ ﴾ دا د یو سوال مقدر جواب دې.

**سوال:** قاعده ده چه په ضمیر مرفوع متصل باندې د عطف کولو دپاره د ضمیر مرفوع منفصل په ذریعه تاکید راوړل ضروري دي، او حال دا چه دلته داسې نه ده.؟

**جواب:** په ضمیر مرفوع متصل مستتر باندې د عطف کولو دپاره په دوه شرطونو کښې د یو موجودیدل ضروري دي یو دا چه د ضمیر منفصل په ذریعه تاکید راوړلې شي او دویم دا چه د معطوف او معطوف علیه ترمینځه فصل واقع وي، او دلته دویم شرط موجود دې، ځکه چه د معطوف علیه او معطوف ترمینځه د مفعول یعنې ﴿ نارا ﴾ او د هغې صفت یعنې د ﴿ ذات لهب ﴾ فصل موجود دې، لهذا اوس هیڅ اعتراض نشته.

**قوله:** ﴿ ام جمیل ﴾ دا د ابوسفیان بن حرب رضي الله عنه خور وه او ﴿ عوراء ﴾ یعنې کاڼړۍ وه. (جمل)

**قوله:** ﴿ بِالرَّفْعِ وَالنَّصْبِ ﴾ په ﴿ حمالة ﴾ کښې رفع او نصب دواړه جائز دي، رفع یا خو د ﴿ امرأته ﴾

د صفت کیدو د وجې نه، (او دا جائز ده ځکه چه په حمالة الحطب کښې اضافت حقیقیه دې) یا د ﴿ امرأته ﴾ نه د عطف بیان کیدو د وجې نه او دا هم کیدې شي چه د مبتداء محذوف د خبر کیدو د وجې نه مرفوع وي، ﴿ اي هي حمالة الحطب ﴾ یو قراءت د نصب هم دې او د هغې ناصب فعل محذوف دې، اي اعني حمالة الحطب (یا) اذم حمالة الحطب ﴿ حطب ﴾ یو ازغو والا ګیا ده چه هغې ته په پښتو کښې ازغی داره زیلې وئیلې شي، دا ګیا د اوښ نه علاوه بل یو څاروې هم نه خوري او د اوچیدو نه پس ئې هغه هم نه خوري.

**قوله:** ﴿ لیف ﴾ د ﴿ لیف ﴾ جمع ﴿ الیاف ﴾ ده، د کهجورې د اونې پوستکي (پټ) ته وئیلې شي، مطلقا پوستکي ته هم وئیلې شي، د کوم چه عام طور رسئ جوړولې شي هغه هم یو قسم پوستکې وي.

**قوله:** ﴿ فی جیدها حبل من مسد ﴾ یعنې د مبتدا او خبر نه مرکب جمله او هغه ﴿ فی جیدها حبل من مسد ﴾ ده، ﴿ حبل ﴾ موصوف ﴿ من مسد ﴾ د کائن متعلق کیدو سره صفت، موصوف د صفت سره مبتداء موخر، ﴿ فی جیدها ﴾ خبر مقدم، مبتداء د خبر سره جمله د ﴿ حمالة الحطب ﴾ نه حال دې.

## [١١٢] سورة الاخلاص

### سورة الإخلاص مكية او مدنية اربع او خمس آيات

سورة اخلاص مکي یا مدني دې، څلور یا پنځه آیتونه دي.

[آیاتونه: ١-٤]

بسم الله الرحمن الرحيم النَّبِيّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ رَبِّهِ فَنَزَلَ ﴿قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ﴾ فَاللّٰه خَبَر هُوَ وَأَحَد بَدَل مِنْهُ أَوْ خَبَر ثَانٍ ﴿اللّٰهُ الصَّمَدُ﴾ مُبْتَدَأ وَخَبَر أَيْ الْمَقْصُود فِي الْحَوَائِج عَلَى الدَّوَام ﴿لَمْ يَلِدْ﴾ لِانْتِفَاء مُجَانَسَته ﴿وَلَمْ يُولَدْ﴾ لِانْتِفَاء الحدوث عنه ﴿وَلَمْ يَكُنْ لَّهُ كُفُوًا أَحَدٌ﴾ أَيْ مُكَافِئًا وَمُمَاثِلًا وَلَهُ مُتَعَلِّق بِكُفُوًا وَقُدِّمَ عَلَيْهِ لِأَنَّهُ مَحَطّ الْقَصْد بِالنَّفْيِ وَأُخِّرَ أَحَد وَهُوَ اسْم يكن عن خبرها رعاية للفاصلة

**ترجمه:** په نوم د الله پاک چه ډیر مهربانه او همیشه مهربانه دې شروع کوم د رسول الله ﷺ نه د هغه د رب په باره کښې سوال اوکړې شو نو ﴿ قل هو الله احد ﴾ نازل شو، او ایه چه هغه الله یو دې ﴿ الله ﴾ د ﴿ هو ﴾ خبر دې او ﴿ احد ﴾ تري نه بدل دې یا د ﴿ مبتدا ﴾ خبر ثاني دې. الله پاک بې حاجته دې دا د مبتداء خبر دې یعنی هغه په حاجتونو کښې همیشه مقصود دې نه د هغه څوک اولاد شته د مجانست د منفي کیدو د وجې نه او نه هغه د چا اولاد دې د هغه نه د حدوث د منتفي کیدو د وجې نه، او نه څوک د هغه برابر شته یعنی همسر او مماثل ئې نشته، ﴿ له کفوا ﴾ سره متعلق دې، ﴿ له ﴾ په ﴿ کفوا ﴾ باندې مقدم کړې شوې دې، ځکه چه هم هغه د (مماثل نه) مقصود بالنفي دې، او ﴿ احد ﴾ لره کوم چه د ﴿ یکن ﴾ اسم دې د هغه د خبر نه موخر کړې شوې دې د فواصل د رعایت د وجې نه.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

سورة اخلاص، ددې سورة ډير نومونه دي، او د اسماؤ كثرت د مسمى په شرف باندې دلالت كوي، صاوي رحمه الله ددې شل نومونه ذكر كړي دي، د هغې نه يو څو دا دي: سورة التفريد، سورة التجريد، سورة التوحيد، سورة الاخلاص، سورة النجات، سورة الولاية، سورة النسبة، سورة المعرفة، سورة الجمال، سورة المقشقشة. (تلك عشرة كاملة)

قوله: ﴿قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ﴾ ددې په تركيب كښې، څو صورتونه دي. ١: ﴿هو﴾ ضمير شان مفسَّر مبتداء او ﴿الله الصمد﴾ مفسِر جمله كيدو سره خبر. ٢: ﴿هو﴾ مبتداء اول، ﴿الله﴾ مبتداء ثاني او ﴿احد﴾ د مبتداء ثاني خبر، مبتداء ثاني د خپل خبر سره جمله د مبتداء اول خبر، په دې صورت كښې د ﴿هو﴾ مرجع هغه ده كوم چه مخكښې ذكر شو، ځكه چه ﴿قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ﴾ د مشركانو د سوال ﴿انسب لنا ربك﴾ اې محمد ﷺ مونږ ته د خپل رب نسب بيان كړه په جواب كښې دې، او دا هم صحيح ده چه ﴿الله﴾ د ﴿هو﴾ نه بدل وي.

قوله: ﴿الله الصمد﴾، ﴿الله﴾ مبتداء ﴿الصمد﴾ ئې خبر دې، ﴿الصمد﴾ ما يصمد اليه في الحاجات. ته وئيلې شي، يعنى په حاجتونو كښې چه د چا طرف ته قصد كولې شي، فعل ئې ﴿يصمد﴾ راځي، مصدر په معنى د مفعول (مصمود) دې.

### سورة الفلق

﴿نزلت هذه والتي بعدها لما سحر لبيد اليهودي النبي ﷺ في وتر به احدى عشرة عقدة فاعلمه الله بذلك وبمحله فاحضر بين يديه ﷺ وامر بالتعوذ بالسورتين فكان كلما قرأ آية منهما انحلت عقدة ووجد خفة حتى انحلت العقد كلها وقام كانما نشط من عقال﴾

دا سورة او د دې نه روستو سورت هغه وخت نازل شو چه كله لبيد يهودي په رسول الله ﷺ باندې د تار په يولسو غوټو كښې جادو كړې وو، الله پاك رسول الله ﷺ ته ددې جادو او د هغه ځاى خبر ئې وركړو، د رسول الله ﷺ مخې ته هغه راوړلې شو اود دواړو سورتونو په ذريعه د تعوذ (پناه) حكم وركړې شو، چه كله به رسول الله ﷺ په دواړو سورتونو كښې يو آيت لوستلو، نو يوه غوټه به پرانستلې شوه او رسول الله ﷺ به خپل وجود سپك محسوس كولو، تردې چه ټولې غوټې پرانستلې شوې او رسول الله ﷺ پاسيدو لكه چه رسول الله ﷺ د قيد نه ازاد كړې شوې وي.

قوله: ﴿فاحضر بين يديه ﷺ﴾ يعنى لبيد بن الاعصم د رسول الله ﷺ مخې ته حاضر كړې شو، (سيدنا على رضي الله عنه هغه راوستلې وو)

قوله: ﴿في وتر﴾ ... ﴿وتر﴾ تار (نيله) كوم چه د خاروى د كولمې نه جوړولې شي، دا يو قسم رګ دې كوم چه د مضبوط تار په شان وي.

## [١١٣] سورة الفلق

سورة الفلق مكية او مدنية خمس آيات

سورة فلق مكي يا مدني دي، پنځه آيتونه دی.

[اياتونه: ١-٥]

بسم الله الرحمن الرحيم (قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ) الصُّبح (مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ) مِنْ حَيَوَان مُكَلَّف وَغَيْر مُكَلَّف وَجَمَاد كَالسُّمِّ وَغَيْر ذَلِكَ (وَمِنْ شَرِّ غَاسِقٍ إِذَا وَقَبَ) أيْ اللَّيْل إِذَا أَظْلَمَ وَالْقَمَر إِذَا غَابَ (وَمِنْ شَرِّ النَّفَّاثَاتِ) السَّوَاحِر تَنْفُث (فِي الْعُقَدِ) الَّتِي تَعْقِدهَا فِي الْخَيْط تَنْفُخ فِيهَا بِشَيْءٍ تَقُولهُ مِنْ غَيْر رِيق وَقَالَ الزَّمَخْشَرِيّ مَعَهُ كَبَنَاتِ لَبِيد الْمَذْكُور (وَمِنْ شَرِّ حَاسِدٍ إِذَا حَسَدَ) أَظْهَر حَسَدَهُ وَعَمِلَ بِمُقْتَضَاهُ كَلَبِيد الْمَذْكُور مِنَ الْيَهُود الْحَاسِدِينَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَذِكْر الثَّلَاثَة الشَّامِل لَهَا مَا خَلَقَ بَعْده لِشِدَّةِ شَرّهَا

**ترجمه:** په نوم د الله پاک چه ډير مهربانه او هميشه مهربانه دي شروع كوم، او ايه! چه زه د صبا (سحر) د رب په پناه كښې راځم، د هر هغه څيز د شر نه كوم چه هغه پيدا كړي دي (يعنی) د حيوان مكلف او غير مكلف د شر نه او د جماد د شر نه مثلا زهره وغيره، او د شپې د تيارې د شر نه چه كله هغه خوره شي يعنی د شپې د شر نه چه كله هغه تياره شي، يا د سپوږمۍ د شر نه چه كله هغه غروب شي، او د پوكې وهونكو جادوګرو زنانو د شر نه كوم چه په غوټو كښې د لاړو نه بغير پوكې هغه غوټې دی كومې چه هغوی په تار كښې لګوی او زمخشری وئيلي دی، چه د لاړو سره، لكه د لبيد مذكور لونړه او د حاسد د شر نه چه كله هغه حسد او كړی يعنی خپل حسد لره ظاهر كړی او د هغې په مقتضی باندې عمل او كړی لكه د نبی ﷺ سره حسد كونكي يهودو كښې لبيد مذكور دي او درې وارو لره كومو ته (ماخلق) ته شامل دي، د (ماخلق) نه پس ذكر كول د هغوی د شر د شديد كيدو د وجې نه.

## د قيوداتو فوائد او تسهيل

**قوله:** (الفلق) اسم فعل، د سحر اوله برخه، (فلق) په معنی د (مفلوق)

**قوله:** (وقب) ماضی، واحد مذكر غائب (ض) (وقبا)، (وقوبا) خوريدل.

**قوله:** (غاسق) اسم فاعل، د شپې تياره (غسق) (ن) (غسوقا) د شپې تياره كيدل.

**قوله:** (اوالقمر) دا د غاسق دويم تفسير دي.

**قوله:** (السواحر) دا ددې خبرې ته اشاره ده چه د (نفاثات) موصوف محذوف دي، مفسر علامﷺ موصوف، (السواحر) محذوف راويستلې دې يعنی جادو كونكې زنانه، مراد د لبيد بن اعصم يهودی لونړه دی، ددې موصوف نفوس هم كيدې شی، (نفث) د (نفاثة) جمع او د مبالغې صيغه ده (نفث) (ض، ن نفثا: دې، تهوكل، په (نفث) او (تفل) كښې فرق دا دې چه (نفث) كښې لاړې كمې وی، او په (تفل) كښې لاړې زياتې وی.

## [١١٤] سورة الناس

### سورة الناس مكية او مدنية ست آيات

سورة الناس مكي يا مدني دې، شپږ آيتونه دی.

[ايات توله: ١ - ٦]

بسم الله الرحمن الرحيم (قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ) خَالِقِهِمْ وَمَالِكِهِمْ خُصُّوا بالذكر تشريفا لهم ومناسبة للاستعاذة من شر الموسوس في صدورهم (ملك الناس) (إِلَٰهِ النَّاسِ) بَدَلانِ أَوْ صِفَتَانِ أَوْ عَطْفَا بَيَان وَأُظْهِرَ الْمُضَاف إِلَيْهِ فِيهِمَا زِيَادَة لِلْبَيَانِ (مِنْ شَرِّ الْوَسْوَاسِ) الشَّيْطَان سُمِّيَ بِالْحَدَثِ لِكَثْرَةِ مُلَابَسَته لَهُ (الْخَنَّاسِ) لِأَنَّهُ يَخْنِس وَيَتَأَخَّر عَنْ الْقَلْب كُلَّمَا ذُكِرَ الله (الَّذِي يُوَسْوِسُ فِي صُدُورِ النَّاسِ) قُلُوبهمْ إِذَا غَفَلُوا عَنْ ذِكْر الله (مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ) بَيَان لِلشَّيْطَانِ الْمُوَسْوِس أَنَّهُ جِنِّيّ وَإِنْسِيّ كَقَوْلِهِ تَعَالَى شَيَاطِين الْإِنْس وَالْجِنّ أَوْ مِنْ الْجِنَّة بَيَان لَهُ وَالنَّاس عَطْف عَلَى الْوَسْوَاس وَعَلَى كُلّ يَشْتَمِل شَرّ لَبِيد وَبَنَاته الْمَذْكُورِينَ وَاعْتَرَضَ الْأَوَّل بِأَنَّ النَّاس لَا يُوَسْوِس فِي صُدُورهمْ النَّاس إِنَّمَا يُوَسْوِس فِي صُدُورهمْ الْجِنّ وَأُجِيبَ بِأَنَّ النَّاس يُوَسْوِسُونَ أَيْضًا بِمَعْنًى يَلِيق بِهِمْ فِي الظَّاهِر ثُمَّ تَصِل وَسْوَسَتهمْ إِلَى الْقَلْب وَتَثْبُت فِيهِ بِالطَّرِيقِ الْمُؤَدِّي إِلَى ذَلِكَ والله تعالى اعلم

**ترجمه:** په نوم د الله پاک چه ډير مهربانه او هميشه مهربانه دې شروع کوم، ته او وايه چه زه د خلقو د رب، د هغوی د مالک په پناه کښې راژم (يعنی) د هغوی د خالق او د هغوی د مالك (پناه کښې راژم) د انسانانو ذکر خاص طور سره د هغوی شرافت او د هغوی په سينو کښې د وسوسه اچونکی د شر نه د پناه غوښتلو د مناسبت د وجې نه کړې شوې دې، د خلقو د بادشاه، د خلقو د معبود دواړه بدل دی يا صفت دې يا عطف بيان دې، او دواړو ځايونو کښې ئې د مضاف اليه د زيادت د بيان دپاره ظاهر کړې دې، د وسوسه اچونکی، د شاته کيدونکی شيطان د شر نه (پناه غواړم) د شيطان نوم وسواس (يعنی معنی مصدری) کيخودلې شوې دې، د هغه په کثرت سره د وسوسې اچولو د وجې نه، ځکه چه هغه پټيږی او د زړه نه شاته شی چه کله بنده د الله پاك ذکر کوی. کوم چه د خلقو په زړونو کښې چه کله د الله پاك د ذکر نه غافله شی وسوسه اچوی (که هغه) د جناتو د قبيل نه وی او که د انسانانو د قبيلنه. دا د وسوسه اچونکی شيطان بيان دې چه هغه جنی دې او انسی دې، لکه چه د الله پاك قول دې ﴿شياطين الانس والجن﴾ ﴿يامن الجنة﴾ د (شيطان) بيان دې او ﴿الناس﴾ په ﴿الوسواس﴾ باندې عطف دې، او په هر صورت کښې، په ماقبل سورة کښې ذکر شوی لبيد او د هغه د لونړو شر ته شامل دې، په اول صورت کښې اعتراض کولې شی چه انسان، د انسانانو په زړونو کښې وسوسه نه اچوی، د انسانانو په زړونو کښې خو جنات وسوسه اچوی؟ (نو ددې اعتراض) جواب دا ورکړې شوې دې چه انسانان هم په داسې طريقو سره وسوسه اچوی کوم چه په ظاهره د هغوی سره مناسب وی، (مثلا د نميمه وغيره په ذريعه) بيا د هغوی وسوسه زړه ته په داسې طريقه رسيږی کوم چه ثبوت ته مفضی کيږی. (والله اعلم)

### د قيوداتو فوائد او تسهيل

د سورة فلق او سورة الناس د مجموعی آيتونو تعداد يولس دې، دا د غوټو او ستنو د

تعداد برابر دي كوم چه په رسول الله ﷺ باندې په جادو كښې استعمال كړې شوي وو.
قوله: ﴿ قُلْ أَعُوذُ ﴾ كښې خطاب اګرچه رسول الله ﷺ ته دې خو د امت هر يو فرد ددې مخاطب دې.
قوله: ﴿ الناس ﴾ ددې اصل ﴿ اناس ﴾ دې، ددې نه همزه حذف کړې شوې ده.
قوله: ﴿ ومناسبة للاستعاذة من شر الموسوس، كانه قيل: اعوذ من شر الموسوس الى الناس بربهم الذى يملك امرهم ﴾
قوله: ﴿ ملك الناس ﴾ دلته د ټولو قراؤ د الف په حذف باندې اتفاق دې، په خلاف د سورة فاتحه چه هلته اختلاف دې، بعض الف لره حذف كوي او بعض ئې باقي پريږدي.
قوله: ﴿ زيادة للبيان ﴾ د مزيد وضاحت دپاره دې، ځكه چه د رب اطلاق بعض وخت په غير الله هم كيږي لكه د الله پاك په قول ﴿ اتَّخَذُوا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللَّهِ ﴾ په دې وجه د رب درې صفات راوړلې شوي دي، چه د غير الله نه ممتاز شي، په ذكر شوې صفاتو كښې د ادنى نه د اعلى طرف ته ترقي ده، ځكه چه د مربي دپاره ملك كيدل ضروري نه دي، مګر چه څوک ملك وي هغه مربي هم وي، او ﴿ اله ﴾ د ټولو نه اعلى دې، ځكه چه ﴿ رب ﴾ او ﴿ ملك ﴾ دپاره ﴿ اله ﴾ كيدل ضروري نه دي، مګر د ﴿ اله ﴾ دپاره ﴿ رب ﴾ او ﴿ ملك ﴾ كيدل ضروري دي.
قوله: ﴿ مِنْ شَرِّ الْوَسْوَاسِ ﴾ دا د ﴿ اعوذ ﴾ سره متعلق دې.
قوله: ﴿ سمي بالحدث ﴾ يعني موسوس ته وسواس وئيلې شوې دې دا د زيد عدل د قبيل نه دې، ګويا زيد ټول په ټول عدل دې، هم دغه شان شيطان دومره وسوسې اچوي ګويا هغه پخپله وسوسه ده.
قوله: ﴿ الخناس ﴾ دا د مبالغې صيغه ده ډير زيات شاته كيدونكې، او ﴿ خناس ﴾ شيطان ته هم وئيلې شي.
قوله: ﴿ وَيَتَأَخَّر ﴾ دا د ﴿ الخناس ﴾ تفسير دې.
قوله: ﴿ بيان للشيطان الموسوس ﴾ يعني ﴿ من الجنة والناس ﴾ د ﴿ يوسوس ﴾ د ضمير فاعل بيان دې، مطلب دا دې چه وسوسه اچونكې جن هم كيدې شي او انس هم، او بعض خلقو وئيلي دي چه ﴿ من الجنة والناس ﴾، د هغه ﴿ الناس ﴾ بيان دې كوم چه ﴿ فى صدور الناس ﴾ كښې دې، مطلب به دا وي چه ابليس څنګه چه د انسانانو په زړونو كښې وسوسه اچوي، هم دغه شان د جناتو په زړونو كښې هم وسوسه اچوي، په دې صورت كښې به ﴿ موسوس ﴾ خاص او ﴿ موسوس له ﴾ عام وي، ﴿ كانه قال: اعوذ من شر الشيطان الذى يوسوس فى صدور الجن والانس ﴾ دا معنى د هغې برعكس ده كومه چه شارح بيان كړې ده.
قوله: ﴿ لا يُوَسْوِسُ فِي صُدُورِهِمُ النَّاسُ ﴾ يعني انسان د انسانانو په زړونو كښې وسوسه نه اچوي، مفسر علام ﷫ كه ددې په ځاى ﴿ لا يوسوسون فى صدور الناس ﴾ وئيلې وې نو ډير به اسان وې.
قوله: ﴿ الموصل الى ذلك اى الى ثبوتها فى القلب ﴾ يعني شيطان داسې وسوسه اچوي چه هغه په قلب كښې ځاى نيسي (مضبوطه شي). (الحمد لله ! څلورم جلد ختم شو).